فاسئلوا أهل الذكر إن كنتم لا تعلمون

# احسن الفتاویٰ

## پښتو ترجمه

تالیف

فقیہ العصر مفتی اعظم

حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمہ اللہ تعالیٰ


مکتبہ فریدیہ

محلہ جنگی پشاور

قال الله تبارک وتعالی

بسم الله الرحمن الرحیم

﴿فَسْئَلُوٓا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾

وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم

اِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَال (الحدیث)

# احسن الفتاوی

## دریم جلد

(له باب الامامة والجماعة څخه تر آخر د باب صدقة الفطر پورې)

تالیف: فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی

ناشرین

مولوی محمد ظفر ((حقانی)) , مولوی امیر الله ((شیرانی))

د ملاویدو پته

مکتبه فریدیه محله جنګۍ قصه خوانی پېښور

د کتاب نوم : احسن الفتاوی (دریم جلد) (له باب الامامة والجماعة څخه تر آخر د باب صدقة الفطر پورې)
د مؤلف نوم : فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی
پښتو ترجمه او کمپوز : قاری عبدالقیوم (لوګری)
ډیزاین ، اصلاح او نظر ثانی : حافظ محمد ولی (بغلانی)
د چاپ کال : ۲۰۱۲
د چاپ شمیر : ۱۰۰۰ ټوکه
**ناشرین** : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) مولوی امیر الله ((شیرانی))
د ملاویدو پته : مکتبه فریدیه محله جنګی قصه خوانی پیښور
د مکتبې مسؤل : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) صاحب

# باب الامامة و الجماعة

## د سهار د جماعت په وخت کښې د سُنتو ادا کول

**سوال**: چه د سهار جماعت ولاړ وي نو د سُنتو ادا کول جائز دي او که نه؟ که چیرته ئې څوک ادا نه کړي نو د لمر تر ختو دې مخکښې ادا کړي او که وروسته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته په التحیاتو کښې له جماعت سره د شریکیدو امید وي نو سُنت دې ادا کړي لیکن له جومات څخه د باندې او یا د پردې مثلاً مټه او داسې نورو شاته. په صف کښې د سُنتو ادا کول یا د صف شا ته پرته له کومې پردې څخه ادا کول ئې مکروه دي. لهذا که چیرته له جومات څخه د باندې یا د متې او داسې نورو شا ته د ادا کولو ځای نه وي نو نه دې ادا کوي همدارنګه که چیرته په تشهّد کښې د شریکیدو امید نه وي نو بیا دې هم نه ادا کوي او د لمر تر ختو وروسته دې ادا کړي. د لمر تر ختو وروسته ئې ادا کول افضل دي لیکن ضروري نه دي. د ډیرو فقهاوو قول دی چه که چیرته په دویم رکعت کښې دشریکیدو هیله نه وي نو سُنت[1] دې نه ادا کوي. لیکن له فتاوی شامي څخه د لومړني قو غوره والی څرګندیږي. **والتفصيل[2] في الشامية باب ادراك الفريضة.**

فقط والله تعالیٰ اعلم — ۱۶ ذی القعده ۷۲ هجری

## د نوافلو یا سنتونو د ادا کولو په حالت کښې د جماعت دریدل

**سوال**: یو څوک په نفلو یا سنتو باندې ولاړ وي چه په دې حالت کښې جمع ودریږي نو څه حکم دی چه څه باید وکړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې دا تفصیل دی چه د جماعت تر شروع کیدلو وروسته په نوافلو یا سنتو باندې شروع کول په دې شرط صحیح دي چه د لومړي رکعت د فوت کیدو یا تیریدو ویره نه وي پرته د سهار له سنتو څخه که چیرته د جماعت تر دریدو مخکښې ئې په نوافلو یا سنتو باندې شروع کړې وي نو د یوه قول پر بناء لومړی رکعت په سجدې سره تر مقید کیدو مخکښې دې لمونځ مات کړي او له جماعت سره دې شریک شي. لیکن صحیح دا ده چه که چیرته لومړی رکعت په سجدې سره مقید شوی وي او که نه وي. په هر حال کښې دې دوه رکعته پوره کړي بیا دې په جمع کښې شامل شي. که چیرته د ماسپښین څلور رکعته سنت ئې ادا کول نو د یوه قول له مخې دې څلور رکعتونه ټول پوره کړي. لیکن صحیح قول دا دی چه په دوه رکعتونو باندې

1. يعني په داسې حالت کښې سُنت مه شروع کوئ. که مو چیرته شروع کړل نو ماتول ئې جائز نه دي ۱۲ منه
2. په باب الوتر و النوافل کښې په تفصیل سره دلائل راغلي ۱۲ منه

دي سلام واړوي په جماعت کښې دې شريک شي. البت که چيرته دريم رکعت ته ولاړ شوی وي نو د يوه قول پر بناء دې په سجدې سره تر مقيد کولو مخکښې دې تشهد ته لاړ شي او سلام دې وګرځوي. ليکن را جح قول دا دی چه څلور رکعته دې پوره کړي، که ئې دريم رکعت په سجدې مقيد کړی وي او که نه د جُمعې د سنتو هم همدا حکم دی. يعنې که چيرته د سنتو تر شروع کيدلو وروسته خطبه شروع شي نو په دوه رکعتونو باندې دې سلام واړوي او که چيرته تر خطبې مخکښې دريم رکعت شروع کړی وي نو څلور دې پوره کړي. ليکن د خطبې تر شروع کيدو وروسته په هيڅ يوه صورت کښې هم دسنتو شروع کول جائز نه دي **والتفصيل فى الشامية باب ادراك الفريضة.**

**فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۶ ذی القعده ۷۲ ھجری**

## د فرض لمانځه د ادا کولو په وخت کښې د جماعت دريدل

**سوال**: يوه سړي فرض لمونځ کاوه چه په دې حالت کښې جماعت ودريد. ده ته څه حکم دی چه څه بايد وکړي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته د لومړي رکعت تر سجدې مخکښې امام تکبير تحريمه ووائي نو لمونځ دې مات کړي په امام پسې دې اقتداء وکړي.

که چيرته ئې د لومړي رکعت سجده کړې وي نو په سهار او ماښام کښې دې لمونځ مات کړي او په امام پسې دې اقتداء وکړي او په نورو لمونځونو کښې دې دوه رکعته پوره کړي بيا دې سلام وګرځوي

که چيرته ئې د دويم رکعت سجده کړې وي نو لمونځ دې نه ماتوي بلکه په سهار او ماښام کښې دې خپل لمونځ پوره کړي په امام پسې دې اقتداء نه کوي. په نورو لمونځونو کښې دې دوه رکعته پوره کړي بيا دې په امام پسې اقتداء وکړي.

که چيرته ئې د دريم رکعت سجده کړې وي نو بيا دې خپل فرض پوره کړي او په امام پسې دې د نفلو اقتداء وکړي

الا فی العصر. قال ابن عابدين رحمه الله: حاصل هذه المسئلة شرع فی فرض فاقيم قبل ان يسجد للاولی قطع واقتدى فان سجد لها فان فی رباعی اتم شفعاً واقتدى مالم يسجد للثالثة فان سجد اتم واقتدى متنفلاً الا فی العصر وان فی غير رباعی قطع واقتدى مالم يسجد للثانية فان سجد لها اتم ولم يقتد آه. ح وقال ايضاً تحت (قوله لا اقامة المؤذن) فكأنه قال المراد بالاقامة الشروع فی الفريضة فی مصلاة لا اقامة المؤذن الخ. (شامية ج۱)

**فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۶ ذی القعده ۱۳۷۲ ھجری**

## د ږیرې خریونکي یا لنډوونکي امامت

**سوال**: د ږیرې په خریونکي یا لنډوونکي پسې د لمانځه ادا کول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ږیرې له قبضې څخه کمول حرام دي بلکه دا له نورو کبیره ګناهونو څخه هم بده ګناه ده. ځکه چه د دې ګناه په ښکاره سره د کولو له وجې د اسلام د دین ښکاره سپکاوی دی. له الله او د هغه له رسول ﷺ څخه د بغاوت د ښکارولو اعلان دی. د دې لپاره حضراتو فقهاوو رحمهم الله دا فیصله لیکلې ده چه کوم سړی په رمضان شریف کښې په ښکاره توګه وخوري یا وچښي هغه واجب القتل دی. ځکه چه په ښکاره توګه د شریعت مخالف کوي. د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چه **كلّ امتي معافى الا المجاهرين** (زما ټول امت د عفو لائق دی لیکن په ښکاره ګناه کوونکي د معافي لائق نه دي)

دویم فرق دا دی چه نورې ګناوې په کوم خاص وخت کښې تر سره کیږي لیکن د ږیرې د خریلو ګناه هر وخت ورسره لګیدلې وي. چه ویده وي نو بیا هم په ګناه کښې وي تر دې پورې چه په لمانځه او داسې نورو عباداتو کښې د مشغولیدو په حالت کښې هم په دې ګناه کښې ګرفتار وي، د لوط علیه السلام د قوم په عذاب کښې د ګرفتارۍ له اسبابو څخه د ږیرې خریل هم دی.(در منثور)

لنډه دا چه د ږیرې خریونکی یا لنډوونکی فاسق دی او د فاسق امامت مکروه تحریمي دی. د دې لپاره داسې سړی امام جوړول جائز نه دي. که چیرته یو څوک په زوره امام جوړ شي یا د جومات منتظمینو امام جوړ کړ او په لرې کولو باندې ئې څوک قدرت و نه لري نو بیا دې په کوم بل جومات کښې نیک امام وګوري. که چیرته دا هم میسر نه شي نو جماعت دې نه پریږدي بلکه په فاسق پسې دې لمونځ وکړي. د دې وبال، ګناه او عذاب به د جومات په منتظمینو وي.

**صلّى خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة (در مختار) و فى الشامية افاد ان الصلوٰة خلفهما اولى من الانفراد لكن لا ينال كما ينال خلف تقى ورع (شامية ج۱) وقال النبى ﷺ صلّوا خلف كلّ برّ و فاجر.**

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ ذی قعده ۷۱ هجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: زید وائي چه د ږیرې په خریونکي او لنډوونکي پسې لمونځ مکروه تنزیهي دی له دې وجې په داسې سړي پسې خلک باید لمونځونه وکړي. حواله په شامي او فتح القدیر باندې ورکوي آیا د زید دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام مالک رحمه الله مذهب او یو روایت له امام احمد رحمه الله څخه دا

دی چه په فاسق پسې لمونځ با لکل صحيح کيږي نه. د احنافو په نزد لمونځ خو صحيح کيږي لیکن سره له کراهیته. د تنزیهي او تحریمي کراهت په باره کښې اګر که فقهاوو رحمهم الله څه اختلاف کړی دی لیکن راجح قول د تحریمي کراهت دی. د لمانځه غوندې اهم عبادت کښې احتیاط لازم دی. د محرم او مبیح تر منځ د تعارض (ټکر) په وخت کښې د اصولو له مخې د محرم ترجیح ټاکلی دی. خصوصاً په داسې حال کښې چه د ځینو ائمه وو په نزد لمونځ با لکل کيږي نه، او فرض نه ادا کيږي. له اختلاف څخه ځان ساتنه او د ترټولو اهم ترين فرض ادا کیدنه علی وجه الکمال (په پوره توګه) بلکه له فرض څخه په یقیني توګه د غاړې خلاصولو لپاره ضروري ده چه فاسق سړی هیڅکله امام جوړ نه کړی شي. د دې لپاره د موجود وخت محققین حنفي علماء کرام په کراهت تحریمي باندې متفق دي.

**قال فی الشامیة و امّا الفاسق فقد علّلوا کراهة تقدیمه بأنّه لا یهتم لامر دینه و بان فی تقدیمه للامامة تعظیمه وقد وجب علیهم اهانته شرعًا ولا یخفی انه اذا کان اعلم لا تزول العلّة فانه لا یؤمن ان یصلّی بهم بغیر طهارة فهو کالمبتدع تکره امامته بکلّ حال بل مشی فی شرح المنیة علی ان کراهة تقدیمه کراهة تحریم لما ذکرنا قال ولذا لم تجز الصلوة خلفه اصلا عند مالك فلذا حاول الشارح فی عبارة المصنف وحمل الاستثناء علی غیر الفاسق. والله اعلم** (رد المحتار ج۱) په فتح القدیر او شامي کښې د تنزیهي کراهت قول هیڅکله نشته. د زید قول محض افتراء او بهتان دی. یا دا چه زید د در مختار د متن او په شرح کښې ئې څه فرق نه شي کولی. د جهالت له وجې د متن او شرحې په خلطولو (ګډولو) سره غلطه نتیجه ترې باسي. په متن کښې یواځې د "یکره" لفظ دی. د تنزیهاً لفظ شارح ور زیات کړی دی لیکن د متن له **(الا ان یکون ـ الخ)** څخه د شارح فاسق لره مستثنی کول ښکاره دلیل دی چه د شارح له خوا څخه د **(تنزیهاً)** لفظ هم د غیر فاسق په اړه دی. د شامي له مذکوره عبارت یعني **(فلذا حاول الشارح ـ الخ)** د دې وضاحت کوي

لنډه دا چه په تنویر الابصار کښې د یکره لفظ مطلق دی چه متبادر ئې مکروه تحریمي دی **(کما صرح به الفقهاء)**. او د در مختار له عبارت څخه د تحریمي کراهت مفهوم را ووځي. او په رد المحتار کښې د تحریمي کراهت تصریح ده. په فتح القدیر، عالمګیري او داسې نورو کښې هم د یکره لفظ مطلق دی. او د فقهاوو رحمهم الله تصریح ده چه د کراهت د اطلاق په وخت کښې تحریمي کراهت مراد وي

البته که چیرته فاسق امام جوړ شي نو په هغه پسې لمونځ کول له یواځې لمونځ کولو څخه

افضل دی قال النبی ﷺ صلوا خلف کل بر وفاجر. وفی شرح التنویر عن النهر عن المحیط صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة وفی الشامیة افادان الصلوة خلفهما اولی من الانفراد لکن لا ینال کما ینال خلف تقی ورع ـ الخ. د امت علماوو په حجاج بن یوسف پسې لمونځونه کول او د حضرت عثمان رضی الله عنه د مقتل په زمانه کښې په باغیانو پسې د لمانځه د ادا کولو حکم پخپله له حضرت عثمان رضی الله عنه څخه ثابت دي لیکن پخپل اختیار سره فاسق لره امام جوړول جائز نه دي که چیرته د جومات منتظمینو کوم فاسق سړي لره امام جوړ کړ او په بل ځای کوم صالح او نیک مام میسر نه شي نو جماعت دې نه پریږدي بلکه د فاسق په اقتداء کښې دې لمونځ ادا کړي د فاسق د امام جوړولو عذاب به د جومات په منتظمینو وي. فقط والله تعالی اعلم ۱۳ ربیع الآخر ۷۳ هجری

## چه د ږیرې له خریلو توبه وباسي نو تر څو پورې چه ئې ږیره پوره نه وي راغلې تر هغه وخته ئې امامت مکروه دی

**سوال** : یو سړی ږیره خریله او اوس ئې له زړه نه توبه ایستلې ده او د ږیرې د پریښودلو عزم ئې کړی دی آیا په دې حالت کښې چه توبه ئې ایستلې ده لیکن ږیره ئې لا تر اوسه نشته او نه ئې د ږیرې د زر را شنه کولو وس شته، د امام په جوړلو کښې به ئې کراهت وي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باس ملهم الصواب** : د توبې باوجود د داسې سړي امامت له دوو وجهو څخه مکروه ده. یو دا چه په ده باندې تر اوسه پورې د صلاح (نیکي) اثر ښکاره نه دی. دا فیصله نه شي کیدلی چه په راتلونکي کښې به د دې کبیره ګناه څخه د ځان ساتني اهتمام کوي او که نه؟ بله دا چه کومو خلکو ته چه د ده د توبې علم نه وي هغوی په مغالطه کښې لویږي او دا فکر کوي چه فاسق سړی لمونځ راکوي. فقط والله تعالی اعلم ۷ رمضان المبارك ٦٧ هجری

## په فاسق پسې ادا شوی لمونځ واجب الاعاده نه دی

**سوال** آیا هغه لمونځ چه په فاسق پسې شوی وي بیرته را ګرځول ئې واجب دی او که نه؟ په شامي کښې دي چه (کل صلوة ادیت مع الکراهة تجب اعادتها) له دې څخه څرګنده شوه چه د لمانځه بیرته را ګرځول واجب دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې صورت کښې اعاده نشته د حضرت عثمان رضی الله عنه د مقتل په وخت کښې صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په باغیانو پسې لمونځونه کول له هیچا څخه اعاده (د لمانځه بیرته را ګرځول) ثابته نه ده د نبي کریم ﷺ په ارشاد (صلوا خلف کل برّ وّ فاجر) کښې هم د اعاده یادونه نشته او نه فقهاوو رحمهم الله په دې مسئله کښې د اعاده حکم ورکړی دی پاتې شوه د (کل صلوة

ادیت مع الکراهة تجب اعادتها) کلیې سره د تعارض خبره، نو د دې لاندیني ځوابونه کیدلی شي

۱ - علامه ابن عابدین رحمه الله د جماعت د پرېښودلو تر څنګ د یواځې لمونځ کوونکې د لمانځه د عدم اعاده د وجوب توجیه داسې بیان کړې ده الاان یدعی تخصیصها بان مرادهم بالواجب والسنة التی تعاد بترکه ماکان من ماهیة الصلوة واجزائها۔ (شامیة باب واجبات الصلوة) د مذکوره اعتراض په ځواب کښې دا هم ویل کیدلی شي چه په فاسق پسې ادا شوي لمانځه کښې د لمانځه په ماهیت او اجزاوو کښې د کوم یوه ترک یا پرېښودنه نشته. د دې لپاره واجب الاعاده نه دی. حالانکه په دې کښې د لمانځه له ماهیّت څخه د کوم کار ترک نه لیدل کیږي لکه څرنګه چه پخپله علامه شامي رحمه الله په آخر د بحث کښې دا اشکال ښکاره کړی دی

۲ - اعاده په هغه صورت کښې لازمه ده چه په اعاده کښې کوم کراهت نه وي. په فاسق پسې په ادا شوي لمانځه کښې د جماعت له بهتري څخه د یواځې لمونځ کولو غیر بهتری خوا ته د رجوع کراهت دی. د دې لپاره د صلوة خلف الفاسق اعاده نشته. په دې ځواب کښې دا اشکال دی چه که چیرته اعاده په جماعت سره ممکنه وي نو هغه دې باید واجب وي. حالانکه د دې هیڅ ثبوت نشته

۳ - د حدیث دا جزئیه چه (صلوا خلف کل برّ و فاجر) او د امت د اجماع پر بناء مستثنی ده. په دې کښې دا حکمت تر سترګو کیږي چه د فاسق د اقتداء په نه کولو کښې د فتنې او ګډوډۍ خطر دی. او تر اقتداء وروسته اګر ه د خطر نسبتاً کم دی لیکن حرج دی ځکه چه دا کار ډیر واقع کیږي

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ ربیع الآخر ۷۳ ھجری

## چه مسافر امام څلور رکعته وکړي نو د مقیم مقتدي لمونځ نه کیږي

**سوال** مسافر امام که چیرته څلور رکعته پوره وکړي نو د مقیم مقتدي لمونځ ور پسې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د مسافر امام آخري دوه رکعته نفل دي او د مقتدي فرض د مفترض اقتداء په متنفل پسې د لزوم له وجې د مقتدي لمونځ نه کیږي. البته که چیرته مقتي آخري دوه رکعته له خان سره وکړي او د امام د اقتداء لحاظ و نه ساتي نو لمونځ ئې صحیح کیږي

لما فی شرح التنویر ولو نوی الاقامة لالتحقیقها بل لیتم صلوة المقیمین لم یصر مقیماً وفی الشامیة (قوله لم یصر مقیماً) فلو اتم المقیمون صلوتهم معه فسدت لانه اقتداء المفترض بالمتنفل ظهیریة ای اذا قصدوا متابعه امالو نووا مفارقته ووافقوه صورة فلا فساد افاده الخیر الرملی (شامی ج ۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ ذی الحجة ۱۳۷۲ ھجری

## راتب (تاکل شوی) امام د امامت ډير حقدار دی

**سوال:** په جومات کښې يو تاکل شوی امام شته په ناڅاپي توګه که چيرته تر ده زيات عالم شخص جومات ته راشي نو د امامت حقدار کوم يو دی؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** راتب امام احقّ (ډير حقداره) دی. لما فی شرح التنوير واعلم ان صاحب البيت ومثله امام المسجد الراتب اولی بالامامة من غير مطلقاً وفی الشامية (قوله مطلقاً) ای وان کان غيره من الحاضرين من هو اعلم واقرأ منه. (ردالمحتار ج۱)

فقط والله تعالی اعلم ۲۰ ذی الحجة ۱۳۷۳ هجری

## د غير معذور اقتداء په معذور پسې جائزه نه ده

**سوال:** د غير معذور سړي لمونځ په معذور پسې صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب:** صحيح نه دی. قال فی التنوير فی موانع الاقتداء ولا طاهر بمعذور. (رد المحتار ج۱، ص۵۴۲)

فقط والله تعالی اعلم ۱۱ ذی الحجة ۱۳۷۵ هجری

## په رکوع او سجدې باندې د قادر سړي اقتداء په عاجز پسې جائزه نه ده

**سوال:** په رکوع او سجدې باندې د قادر سړي لمونځ په اشارې سره لمونځ کوونکي سړي پسې صحيح دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب:** صحيح نه دی. قال فی التنوير فی موانع الاقتداء وقادر علی رکوع و سجود بعاجز عنهما. (ردالمحتار ج۱، ص۵۴۲)

فقط والله تعالی اعلم ۱۱ ذی الحجة ۱۳۷۵ هجری

## د متوضي (اودس کوونکي) اقتداء په متيمم پسې جائزه ده

**سوال:** متوضي سړی په متيمم پسې اقتداء کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب:** هو! کولی ئې شي. قال فی التوير وصح اقتداء متوضئ لاماء معه بمتيمم. (ردالمحتار ج۱، ص۵۵۰)

فقط والله تعالی اعلم ۱۱ ذی الحجة ۱۳۷۵ هجری

## د مسح کوونکي سړي امامت جائز دی

**سوال:** د عذر له وجې په کوم غړي باندې په مسح کوونکي سړي پسې د غړيو د پريمينځونکي سړي لمونځ صحيح کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: هو! صحیح کیږي. قال فی التنویر وصح اقتداء متوضئ لامامعه بمتیمم وغاسل بماسح. (ردالمحتار ج۱، ص۵۵۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ ذی الحجة ۱۳۷۵ هجری

## په ناستې سره د لمونځ کوونکي امامت جائز دی

**سوال**: د ولاړ سړي اقتداء په ناست پسې د حنفیه وو په نزد جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: هو! جائزه ده. قال فی التنویر وصح الاقتداء (الی قوله) وقائم بقاعد. (ردالمحتار ج۱، ص۵۵۰) نبي کریم ﷺ په مرض الموت کښې صحابهٔ کرامو ﷺ ته په ناستې لمونځ ورکړی وو. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ ذی الحجة ۱۳۷۵ هجری

## د امام لپاره په زوره ویل د تکبیرونو سنت دي

**سوال**: امام که چیرته د انتقالاتو تکبیرونه او تکبیر تحریمه ډیر سوکه ووائي نو په لمانځه کښې کوم فرق راځي او که نه او د جهر اندازه څومره ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: د امام لپاره جهر په تکبیرونو کښې سنت دی. نو ځکه په پریښودلو سره ئې سجدهٔ سهو نشته. البته د سنت د پریښودلو ګناه پکښې شته. او د جهر اندازه دا ده چه د لومړي صف ټولو خلکو ته ئې آواز ورسیږي.

قال فی شرح التنویر فی سنن الصلوٰة وجهر الامام بالتکبیر بقدر حاجته للاعلام بالدخول والانتقال وکذا بالتسمیع والسلام وفی الشامیة واشار بقوله والانتقال الیٰ ان المراد بالتکبیر هنا ما یشمل تکبیر الاحرام وغیره وبه صرح فی الضیاء. (ردالمحتار ج۱، ص۴۴۳) وایضاً فی فصل القراءة من الشامیة قال فی الخلاصة والخانیة عن الجامع الصغیر ان الامام اذا قرأ فی صلوٰة المخافة بحیث سمع رجل او رجلان لایکون جهراً والجهر ان یسمع الکل اه ای کل الصف الاوّل لاکل المصلّین بدلیل ما فی القهستانی عن المسعودیة ان جهر الامام اسماع الصف الاوّل اه. (الی قوله) فقط ظهر بهذا ان ادنی المخافة اسماع نفسه او من بقربه من رجل او رجلین مثلاً و اعلاها مجرد تصحیح الحروف کما هو مذهب الکرخی ولا تعتبر هنا فی الاصح و ادنی الجهر اسماع غیره ممن لی سبقربه کاهل الصف الاول واعلاه لاحد له فافهم واغتنم هذا تحریر هذا المقام فقد اضطرب فیه کثیر من الافهام. (ردالمحتار ج۱، ص۴۹۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ صفر ۱۳۷۶ هجری

## د رکعتونو په تعداد کښې د مقتدیانو د اختلاف حکم

**سوال:** د ماسپښین په لمانځه کښې مقتدیانو اختلاف وکړ. ځینې وائي چه څلور رکعته شول او ځینې وائي چه درې شول. امام به د کومو په خبره باندې عمل کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب:** قال فی الهندیة فی اٰخر الفصل السّابع من الباب الخامس من کتاب الصلٰوة:

۱- لو وقع الاختلاف بین الامام و القوم فقال القوم صلیت اربعاً ان کان الامام علی الیقین لا یعید الصلٰوة بقولهم وان لم یکن علی یقین یعید الصلٰوة بقولهم.

۲ - ولو اختلف القوم فقال بعضهم صلّی ثلاثاً وقال بعضهم صلّی اربعاً والامام مع احد الفریقین یؤخذ بقول الامام وان کان معه واحد کذا فی الخلاصة.

۳ - واذا لم یکن مع الامام واحد واعاد الامام الصلٰوة واعاد القوم معه مقتدین به صح اقتداءهم به کذا فی المحیط.

۴ - ولو استیقن واحد من القوم انه صلّٰی ثلاثاً واستیقن واحد انه صلّی اربعاً والامام والقوم فی شك لیس علی الامام والقوم شیئ کذا فی الخلاصة ولا یستحب للامام الاعادة وعلی المُتیقن بالنقصان الاعادة.

۵ - ولو کان الامام استیقن انه صلّٰی ثلاثاً وواحد استیقن بالتمام کان علیه ان یعید بالقوم ولا اعادة علی الذی تیقن بالتمام هکذا فی المحیط.

۶ - ولو استیقن واحد من القوم بالنقصان وشك الامام والقوم فان کان ذٰلك فی الوقت اعادها احتیاطاً وان لم یعیدوا فلا شیئ علیهم الا اذا استیقن عدلان بالنقصان واخبرا بذٰلك کذا فی الخلاصة. (عالمگیریة ج۱، ص۱۲۸)

۷ - وایضاً فیها فی اٰخر الباب الثانی عشر عن الظهیریة قال محمد بن الحسن رحمة الله علیه فاعید بقول واحد عدل بکل حال کذا فی التاتارخانیة. (عالمگیریة ج۱،ص۱۲۸)

والروایات المذکورة کلها مسطورة ایضاً فی ردالمحتار قبیل باب صلٰوة المریض ج۱،ص۷۰۰.

**له دغو روایتونو څخه لاندینۍ خبرې را ووتلې:**

۱ - بهتره دا ده چه په هر صورت کښې د یوه عادل سړي په خبره د لمانځه اعاده وشي. (د اووم روایت له مخې)

۲ ـ که چیرته خپنو ته د اتمام (پوره والي) یا نقصان (کموالي) یقین وي نو چا ته چه په کوم طرف یقین وي په هر حال دې پخپل یقین عمل وکړي اګر که یو اځې پاتې شي. **(للروایة الخامسة والرابعة و الشق الآخر من الاولیٰ)** او په متردّدینو باندې د عدلینو (د دوه عادلانو) په قول سره اعاده دی. **(للروایة السادسة و الشق الآخر من الاولیٰ)** د یوه متیقن په قول سره اعاده نشته **(للروایة السادسة)** البته که چیرته امام ته په نقصان باندې یقین وي نو د ده په قول باندې په متردّدینو باندې اعاده شته اګر که یو عادل ئې په خلاف باندې ټینګ ولاړ وي. **(للروایة الخامسة)** د عدلینو په مقابله کښې یو اځې د امام قول حجت نه دی. **(کماهومفهوم الروایة الثانیة)**

۳ ـ که چیرته ګڼ شمیر کسان په دې باندې ټینګ وي چه لمونځ پوره نه دی او ګڼ شمیر په دې باندې ټینګ وي چه پوره دی او پاتې کسان متردّد (په شک کښې وي) نو په متردّدینو باندې به د امام په قول باندې عمل کول واجب وي. اګرکه له امام سره یو اځې یو سړی وي او له بلې خوا سره ډیر کسان وي. **(للروایة الثانیة)** که چیرته امام پخپله متردّد وو نو د **(اذاتعارضاتساقطا)** لاندې به په متردّدینو باندې اعاده نه وي. په دواړو خواوو کښې د ګڼ شمیر کسانو تر شته والي وروسته قلّت او کثرت اعتبار نه لري. **(لانه لااعتبار لکثرة الحجة بل لقوتها)**.

۴ ـ که چیرته امام ته د اتمام یقین وي لیکه سره له دې ئې د احتیاط له مخې لمونځ بیرته را وګرځاوه نو د متردّدینو (شکمنو) او په کموالي باندې د ټینګو خلکو اقتداء صحیح ده. **(للروایة الثالثة)**. وجه دا ده چه د امام په خیال کښې اګر که دا اعاده واجبه نه ده لیکن د مقتدیانو په خیال کښې واجبه ده. پس په نقصان باندې ټینګ ولاړ خلک د امام لمونځ هم فرض ګڼي له دې وجې اقتداء صحیح ده.

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ صفر ۷۶ھ ہجری**

## هل تجب الاعادة علی من سها خلف الامام

**سوال:** ما قولکم رحمکم الله فیما اذا سها المقتدی خلف الامام هل یعید الصلوٰة بطریق جبر النقصان ام لا؟ بینوا بالدلائل الشافیة والعبارات الواضحة.

**الجواب و منه الصدق و الصواب :** قال فی الفتح (قوله سهد وحدہٗ کان مخالفاً) ای فی نفس ما یؤدیه مع الامام حکماً وان کان سجوده بعد فراغ الامام الخ. (فتح القدیر ج ۱، ص ۳۶۲) و قال فی الشامیة تحت (قوله لا بسهوه اصلا) لا قبل السلام للزوم مخالفة الامام و لا بعده لخروجه من الصلوٰة لسلام الامام (الی قوله) بل الاولی التمسک بما روی ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما عنه ﷺ لیس علی من خلف الامام سهو آه (تنبیه) قال

فی النهر ثم مقتضی کلامهم انه یعیدها لثبوت الکراهة مع تعذر الجابر. (رد المحتار ج١، ص٥٢٩)

اقول مفاد عبارة الشامیة ان مدار وجوب الاعادة علی ثبوت الکراهة مع تعذر الجابر و ما ذکره ابن عابدین رحمه الله فی تعلیل التعذر اولاً اورد علیه اشکالاً من النهر ثانیاً ولذا قال بل الاولی التمسک بما روی الخ فکانه ما رضی بالتعلیل المذکور و اما تعلیل ابن همام رحمه الله فاعترض علیه ایضاً الفاضل الچلپی فی حاشیته علی العنایة فلمّا لم یثبت تعذر الجابر وآل الامر الی تمسك بالنص الناقص للقیاس فهدم بناء وجوب الاعادة والحدیث ایضاً یدل علی عدم الاعادة لانه لما ارتفع السهو عن المأموم وعفاه الشرع فلا وجه لایجاب الاعادة علیه علی ان صاحب النهر ما اتی بروایة من ائمة المذهب و ما ذکر نصا من المشائخ بل اخذ شیئاً من فحوی کلامهم وهو کما تری، لان سکوتهم عن وجوب الاعادة یدل علی عدمه. فان السکوت فی معرض البیان بیان، ولذا ذکره ابن عابدین رحمه الله معزیاً الی النهر بحثاً فقط و لم یفت به کما هو دأب المحققین فانهم قد یذکرون شیئاً علی طریق البحث المحض ولا یفتون به.

والحاصل ان الاعادة لیست بواجبة ومع هذا ان احتاط واعاد فقد احسن.

فقط والله تعالی اعلم ٢٢ ربیع الاول ١٣٧٧ هجری

## د هغه چا د امامت حکم چه لاس ئې په وزر کښې پرې وي

**سوال** څه فرمائي د دینِ متین علماء کرام په دې مسئلې کښې چه د زید کیڼ لاس له څنګلې څخه پورته پرې دی لیکن د قرآن قاري هم دی. د سُنتو مطابق ئې ږیره هم شته. واده ئې هم کړی دی او د فقهې له علم څخه هم خبر دی. آیا په ده پسې لمونځ کیږي او که نه؟ که چیرته کیږي نو کراهت پکښې شته او که نه؟ که د وخت ضرورت وي او که نه وي لمونځ خلکو ته ورکوی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** لکه څرنګه چه له داسې ډول معذور څخه خلک طبعاً کرکه کوي. همدارنګه پوره اودس کول ئې هم ممکن نه وي د دې لپاره د بل روغ امام په موجودوالي کښې د ده امامت مکروه تنزیهي دی که چیرته تر ده زیات د امام مستحق څوک موجود نه وي نو بیا هیڅ کراهت پکښې نشته

قال فی شرح التنویر تکره خلف امرد وسفیه ومفلوج وابرص شاع برصه، و قال ابن عابدین رحمه الله و کذلك اعرج یقوم ببعض قدمه فالاقتداء بغیره اولی تاتارخانیة. و کذا اجذم برجندی، و مجبوب وحاقن ومن له ید واحد فتاوی الصوفیة عن التحفة و الظاهر ان العلّة النفرة ولذا قید الابرص بالشیوع لیکون ظاهراً و

لعدم امکان اکمال الطهارة ایضاً فی المفلوج والاقطع والمجبوب، وفی العلائیة هذا ان وجد غیرهم والا فلا کراهة بحر بحثاً وفی الشامیة (قوله ان وجد غیرهم) ای من هو احق بالامامة منهم. (قوله بحر بحثاً) قد علمت انه موافق للمنقول عن الاختیار وغیره. (ردالمحتار ج۱، ص۵۲۵) قال الرافعی رحمه الله انظر وجه عدم امکان اکمال الطهارة فی المجبوب ولعله عدم تأتی الاستبراء فی الاستنجاء فربما کانت طهارة ناقصة. (التحریر المختار ج۱، ص۷۱)

فقط والله تعالی اعلم ٦ صفر ۱۳۸٦ هجری

## د امام تر لومړي سلام وروسته اقتداء صحیح نه ده

**سوال**: څه فرمائي د دین مشران او بزرګان د لاندینی مسئلې په اړه چه یوه سړي د امام یوې خوا ته تر سلام اړولو وروسته تکبیر تحریمه ووایه او اقتداء ئې پسې وکړه نو اقتداء خو ئې نه صحیح کیږي لیکن خپل لمونځ به څنګه ادا کوي؟ آیا همدغه تکبیر تحریمه ئې صحیح کیږي او که به ئې له سره وائي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مقتدي د تکبیر تحریمه تر پای ته رسولو مخکښې که چیرته امام یوې خوا ته سلام واړاوه اګر که ئې تر اوسه علیکم لا نه وي ویلی نو اقتداء نه صحیح کیږي تکبیر تحریمه به له سره وائۍ او لمونځ به کوي. که چیرته ئې تکبیر تحریمه له سره و نه وایه نو لمونځ ئې نه کیږي

قال فی العلائیة وتنقضی قدوة بالاول قبل علیکم علی المشهور عندنا وعلیه الشافعیة وفی الشامیة (قوله وتنقضی قدوة بالاول) ای بالسلام الاول قال فی التجنیس الامام اذا فرغ من صلوته فلما قال السلام جاء رجل واقتدی به قبل ان یقول علیکم لا یصیر داخلاً فی صلوته لان هذا سلام. (ردالمحتار ج۱، ص۴۳٦) وفی التنویر واذا فسد الاقتداء لا یصح شروعه فی صلوة نفسه علی المذهب. (ردالمحتار ج۱، ص۴۳٦)

فقط والله تعالی اعلم ۱۵ ربیع الاول ۱۳۸٦ هجری

## د مقتدي تر کیښناستلو مخکښې که امام دسلام اړولو حکم؟

**سوال**: یوه سړي تکبیر تحریمه ووایه او له امام سره په داسې حال کښې شریک شو چه امام په آخري قعده کښې وو مقتدي لا ناست نه وو چه امام سلام واړاوه. آیا د نوموړي مقتدي اقتداء صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو، اقتداء ئې صحیح کیږي قال فی شرح التنویر وتنقضی قدوة بالاول قبل علیکم علی المشهور عندنا وعلیه الشافعیة. (ردالمحتار ج۱، ص۴۳٦)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ رجب المرجب ۸۶ھ هجری

(له دې څخه زيات واضح دليل په تتمه کښې دی)

## پرته له جومات څخه په بل ځای کښې بې له عذره د جماعت د لمانځه ادا کول بدعت دي

**سوال**: محترم مولانا صاحب دامت برکاتهم. السلام عليکم و رحمة الله و برکاته!
يوه مسئله جومات ته د حاضريدو او د جماعت د لمانځه په اړه د حل غوښتونکې ده. له يوې زمانې راهيسې مې صحت خراب شوی دی. اکثره وخت په يو نه يوه تکليف کښې خو مبتلا وم چه له وجې ئې کمزوري او سستي ډيره را ته پيدا شوې ده. د ګرمۍ او يخنۍ هم برداشت نه شم کولی. او تر ډير لرې پورې د تګ له وجې مې زړه ټکان کوي. جومات مې له کور څخه تقريباً دوه يا يونيم فرلانګ (يو فرلانګ ۲۲۰ ګزه دی) لرې دی. چه تر څو پورې قوي او صحت مند وم نو جومات ته تلم او اوس د پورتنۍ عذر له وجې نه شم تللی او په کور کښې لمونځ ادا کوم. که چيرته يو بل څوک هم پيدا شي نو د جماعت لمونځ ادا کوم. يا هغه خلک (که چيرته پيدا شي) له ځان سره شريکوم چه د لمانځه عادتي نه دي او د لمانځه د وختونو هم ډير پابند نه دي، يا د کلي خلک پخپله راځي. دا خلک هغه دي کوم چه په پابندۍ سره نه راځي بلکه يوازې په ناڅاپي توګه يا د وخت د تنګۍ له وجې راځي. که چيرته دوی له ما سره په جماعت کښې شريک نه شي نو پخپله ځان ځانته خپل لمونځونه ادا کوي او ځي.

يا د ګاډي د دريدو د ځای د نژدې والي له وجې کوم مسافر د لمانځه په وخت کښې راشي له ما سره شريکيږي. دا خبره اکثره په مازديګر، ماښام او ماسخوتن کښې وي.

د عادت له مخې هره ورځ د مازديګر او ماښام تر منځ د دين د خبرو لپاره څو ملګري سره يو ځای کيږي. او همدلته د مازديګر او ماښام لمونځونه په جماعت سره ادا کوي.

جُمعې په ورځ د مازديګر او ماښام تر منځ تر نورو ورځو څه ډير خلک جمع کيږي. د مازديګر او ماښام لمونځونه په جماعت سره ادا کيږي. دا خلک کوم چه سره يو ځای کيږي اکثره په دفترونو کښې کارونه کوي او يا تاجران دي او له لرې لرې کليو څخه راځي کوم چه پخپله خو نه د لمانځه د وختونو پابند وي او نه جومات ته د تلو عادي دي او زمونږ د کلي هم نه دي. الا ما شاء الله.

ما څو څو ځلې اعلان وکړ چه دلته راتلونکي ملګري دې د مازديګر لمونځ په جومات کښې ادا کړي او بيا دې راشي او د ماښام د لمانځه لپاره دې پنځه دقيقې مخکښې له دې ځايه لاړ شي چنانچه د کلي خلک او يو څو نور کسان همداسې کوي. پاتې کسان چه کوم پاتې کيږي هغوی خپل جماعت ادا کوي. په پاتې شويو کسانو کښې هم يو څو ملګري د همدې کمزورۍ او د کوم بل

عذر له وجې مجبور دي
په پورتنیو امورو کښې د هرې یوې برخې په اړه شرعي جواز او نه جواز ښخه مو خبر کړئ. الله تعالی دې د خیر بدله درکړي

**الجواب باسم ملهم الصواب** : عن ابن مسعود رضي الله عنه قال لقد رأینا و ما یختلف عن الصلوٰة الا منافق قد علم نفاقه او مریض ان کان المریض لیمشی بین رجلین حتّٰی یأتی الصلوٰة و قال ان رسول الله ﷺ علمنا سنن الهدٰی و ان من سنن الهدٰی الصلوٰة فی المسجد الذی یؤذن فیه. الحدیث (رواه مسلم) و فی الشامیة ان مذهب الامام الحلوانی انه بذٰلك (بأن یجمع بأهله فی بیته) لا ینال ثواب الجماعة و انه یکون بدعةً و مکروهاً بلا عذر. (الی قوله) وسیأتی فی الامامة ان الاصحّ لو اجمع بأهله لا یکره و ینال فضیلة الجماعة لکن جماعة المسجد افضل. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۸) ثم نقل فی باب الامامة عن القنیة اختلف العلماء فی اقامتها فی البیت و الاصحّ انها کاقامتها فی المسجد الّا فی الافضلیة. (رد المحتار ج۱، ص۵۱۶) و فیها ایضاً (قوله و لو فاتته ندب طلبها) و لا یجب علیه الطلب فی المساجد بلا خلاف بین اصحابنا بن ان اتی مسجداً للجماعة اخر فحسن و ان صلّٰی فی مسجد حیّه منفرداً فحسن و ذکر القدوری یجمع بأهله و یصلّی بهم یعنی و ینال ثواب الجماعة کذا فی الفتح و اعترض الشرنبلالی بأنّ هذا ینافی وجوب الجماعة و اجاب ح بأنّ الوجوب عند عدم الحرج و فی تتبعها فی الاماکن القاصیة حرج لا یخفٰی. (رد المحتار ج۱، ص۵۱۸)

له پورتنیو روایتونو ښخه څرګنده شوه چه د غیر معذور سړي لپاره د جومات جماعت ته حاضریدل ضروري دي. په کلي کښې د جومات د موجودوالي تر ښنګ په کور کښې د جماعت په ادا کولو سره د جماعت ثواب نه ورکول کیږي. بلکه دا فعل بدعت او مکروه تحریمي دی. با لخصوص د دې په عادت جوړولو کښې کراهت نور هم سخت دی. البته که چیرته د جومات جماعت د کوم عذر له وجې فوت شي نو په کور کښې د جماعت په ادا کولو سره هم د جماعت فضیلت تر لاسه کیږي

په ظاهره د شامي له عبارت (وسیأتی فی الامامة ان الاصحّ ـ الخ) ښخه څرګندیږي چه پرته له عذر ښخه په کور کښې د جماعت د ادا کولو جواز مختلف فیه دی او د صحیح روایت له مخې جائز دی لیکن دا صحیح نه ده. ځکه چه د شامي په باب الامامة کښې د فتح القدیر په حوالې سره په راغلې جزئیې کښې د دې تصریح ده چه دا په هغه وخت کښې جواز لري چه کله د کلي په جومات کښې جماعت د کوم عذر له وجې فوت شوی وي. لهذا د قنیه جزئیه (واختلف العلماء فی اقامتها فی البیت ـ الخ) هم په دې باندې محمولیږي. همدارنګه د قنیه د جملې سیاق هم دا وائي چه دلته د جماعت د

کیدو شرائط بیانیږي او مقصود دا دی چه د صحیح روایت له مخې د جماعت د اقامت لپاره جومات د شرط په درجه کښې نه دی پس له دې څخه پرته له عذر څخه پرته له جومات څخه په بل خای کښې د جماعت جواز پرته له کراهت څخه ثابت نه شو. که چیرته د روغو خلکو لپار په هر خای کښې د جماعت د کیدو جواز و منل شي نو حضراتو فقهاوو رحمهم الله چه د ترک جماعت د عذرونو چه کوم تفصیل بیان کړی دی هغه ټول له منځه ځي او بې کاره کیږي. با لفرض که چیرته د دې جزئیې دلالت پرته له عذر څخه په جواز باندې تسلیم هم شي نو له دې څخه په دې باندې همیشه والی او عادت جوړولو جواز هیڅکله نه راووځي.

له جومات څخه پرته په بل خای کښې د جماعت د ادا کولو د کراهت یوه وجه دا هم ده چه دا د جوماتونو د ورانیدو سبب ګرځي. په **(قرون مشهود لها بالخیر)** بلکه تر دې وروسته هم د امت په اسلافو کښې بې له عذره پرته له جومات څخه په نورو خایونو کښې د جماعت د ادا کولو په خانګړې توګه د عادت له مخې ئې مثال نه تر سترګو کیږي. یواځې په یقیني توګ منافق او یا سخت مریض له جماعت څخه ځان پاتې کوي. لکه څرنګه چه د صحیح مسلم په مذکوره روایت کښې تیر شو. په صحیح البخاري کښې روایت دی چه نبي کریمﷺ دا اراده ښکاره کړه چه چا ته د امام حم ورکړم او پخپله د داسې خلکو کورونو ته لاړ شم څوک چه د جماعت د لمانځه لپاره نه راځي. او هغوی پخپلو کورونو کښې بند کړم او کورونو ته ئې اور ور واچوم. که چیرته په غیر مسجد کښې د جماعت اقامت روا وای نو آیا د هغو مخالفت کوونکو لپاره به دا عذر قبل نه وای چه هغوی په کور کښې جماعت کړی دی.

لنډه دا چه د صحیحو حدیثونو او د اُمت د اسلافو له تعامل او د فقهاوو رحمهم الله له عباراتو څخه دا ثابتیږي چه په جومات کښې له جماعت سره د لمانځ ادا کول ضروري دي البته معذور خلک تري مستثنی دي. دا خو عامه کلیّه وه. مخکښې د سوال د خانګړتیا په اړه څو خبرې وړاندې کیږي.

۱ - په مجلس کښې شریکیدونکو خلکو ته یواځې په جومات کښې د لمانځه ترغیب ورکول یا د هغه د فضیلت بیانول کافي نه دي بلکه د مسئلې له ټول حقیقت څخه ئې خبرول ضروري دي چه د غیر معذور سړي لپاره جومات ته تګ ضروري او پرته له جومات څخه ئې بل خای لمونځ مکروه تحریمي او بدعت دی. بلکه پخپلو خاصو خلکو باندې په کومو باندې چه شریعت د زور او جبر کولو نه یواځې اختیار ورکړی دی بلکه امر ئې کړی دی چه هغوی ته دې د جومات په جماعت کښې د شمولیت حکم وشي.

۲ - معذور خلک دې په ښکاره خای کښې د جماعت د ادا کولو په خای په کوم پټ خای کښې جماعت ادا کړي. په ښکاره خای کښې د معذورو خلکو له جماعت څخه لاندیني قباحتونه پیدا

پیدا کیږي
۱ ـ په دې کښې ډیر هغه خلک چه معذور نه دي هم د سُستی یا له مسئلې څخه د ناخبرتیا له وجې شاملیږي کوم چه د هغوی لپاره ناجائز دی. د دوی د دې گناه سبب د معذورو خلکو همدا ډله جوړیږي
۲ ـ خلک په دې عادي کار سره پرته له عذر څخه د جماعت د جواز په غیر جومات باندې دلیل او سند جوړوي خصوصاً په داسې حال کښې چه د یوه مقتدي فعل دی. عوام ته حجت او سند وي دې تفصیل ته هیڅوک فکر نه کوي چه دا فعل په عذر سره کیږي او که پرته له عذر څخه پس په دې عادي او دائمي فعل له وجې چه څومره خلک په غلط فهمی کښې په مبتلا کیدو سره ناجائز کار کوي د هغوی د گناه سبب همدغه فعل جوړ شو. او د عوامو په گناه کښې د مبتلا کیدو سبب پیدا کول پخپله گناه ده. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ رجب ۸۷ هجری

## د ټنډو الله یار د دار العلوم ځواب

**حامداً و مصلّیا و مسلماً** د فقهاوو د تصریح په مطابق ځینې عذرونه جماعت ته د حاضریدو ساقطوونکي دي چه له هغو څخه مرض، سخته یخني او سخته گرمي چه له هغه څخه د مرگ یا مرض اندیښنه وي. او شیخوخة (ای اذا صار شیخاً کبیراً لا یستطیع المشی) یعنې دومره بوډا توب چه په لارې تلی نه شي له دې برسیره نور هم مختلف عذرونه دي کوم چه تر شلو پورې رسیږي چه تفصیل نې علامه شامي په ج۱. ص ۴۱۰ کښې ذکر کړی دی او د مراقي الفلاح په ۱۷۸ مخ کښې موجود دی د ټولو عذرونو د تفصیل دلته ضرورت نشته له یادو شویو عذرونو څخه ځینې عذرونه داسې دي چه عام او دائمي گرځي لکه شیخوخة (ډیر بوډاتوب) دې درجې ته رسیدل چه تگ سخت شي نو د داسې سړي لپاره حکم دی چه په کور باندې لمونځ ادا کړي او د جماعت د ثواب د حاصلولو لپاره داسې خلک په جماعت کښې شریک کړي چه د جومات جماعت ته نه ځي تر څو چه د جماعت له ثواب څخه محروم پاتې نه شي او نور عذرونه لکه د یخني. گرمي او مرض عذرون دا حالت یو شان نه پاتې کیږي بلکه په هغو کښې د کموالي، زیاتوالي، وجود او عدم په اعتبار سره فرق موجود وي لهذا چه کله دا عذرونه پاتې نه وي یا دومره کم شي چه جومات ته په تلو سره د تکلیف یا مرگ ویره نه وي نو جومات ته تلل به واجب وي. لهذا په صورت مسئوله کښې چه په کومې زمانې یا وختونو کښې د تکلیف د پیښیدو اندیښنه وي جومات ته په نه حاضریدل څه پروا نه لري لیکن په طبعیت کښې د بشاشت (تکره والي) د پیدا کیدو او د ضرر او تکلیف د اندیښنې دنشتوالي په صورت کښې جومات ته د تللو حکم دی. همدارنگه په کوم وخت کښې پرته

له ستړيې څخه د سورلی. انتظام وي نو بايد چه جومات ته سړی لاړ شي جومات ته نه حاضريدل په کلي توګه غوره کول په هيڅ ډول سره مناسب نه دي خکه چه کله کله د طبعيت د تازه والي يا د سورلی د انتظام له وجې په تلو کښې سختي نه وي. همدارنګه نور خلک په عملي توګه په دې باندې پوهيدلی شي چه اصل حکم جومات ته د تللو دی او جومات ته نه تلل د عذر له وجې دی.

همدارنګه د خلکو له غلط فهمی. څخه د را ايستلو لپاره ځينې کارونه غوره کړئ. يو دا چه په هغه ځای باندې کوم چه د لمانځه لپاره جوړ شوی وي دا اعلان ولګوئ چه کوم خلک جومات تللی شي په هغو باندې جومات ته تلل لازم دي، زياتی ثواب يواځې په جومات پورې اړه لري. صرف معذورين ترې مستثنی دي.

دويم دا چه په کومه ورځ خلک زيات را جمع شي په ژبې سره هم اعلان وکړئ چه د لمانځه وخت راغی ټول خلک جومات ته لاړ شئ ځکه چه کيدلی شي داسې يو څوک به هم راغلی وي چه له مخکښيني اعلان څخه ناخبره وي. همدارنګه کوم خپلوان چه مو تر اثر لاندې وي هغو ته جومات ته د تلو حکم وکړئ او اعلان بايد دومره مخکښې وشي چه په وخت سره جومات ه په رسيدو سره تکبير اولی ونيسي.

او په کور باندې د عذر په حالت کښې چه کوم جماعت ادا کيږي په دې کښې د عذر د خاوند په شريکيدو کښې څه مضائقه نشته او غير معذورينو ته جومات ته د تلو تلقين وکړئ. ليکن د کومې خاصې مجبوری يا سستی. له وجې چه بيا هم شريک شي نو د هغه ذمه وار به هغه پخپله وي. او په دې کښې د کلي خلک او د نورو ځايو خلک سره برابر دي. د معذورينو لپاره رخصت دی. او د غير معذورينو جومات ته حاضريدل مطلوب دي. او د دفترونو د خلکو د جماعت د لمانځه نه پابند والی د جماعت مسقط نه دی، د دې ځواب به هغوی پخپله ورکوي او له تنها لمونځ کولو څخه دا بهتره ده چه په همدې جماعت کښې شريک شي. په دې سره د مسئوله صورتونو ځوابونه وشول. والله اعلم بالصواب

الجواب صحيح

کتبه محمد وجيه غفرله

ظفر احمد عثمانی عفا عنه ۲۵ رجب ۱۳۸۷ هجری دار العلوم ٹنڈو الله يار، ضلع حيدر آباد

## د امام په لمانځه کښې د کراهت له وجې د مقتديانو لمونځ هم مکروه کيږي

**سوال**: که چيرته د امام لمونځ مکروه شي نو آيا د مقتديانو لمونځ هم مکروه کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مقتديانو لمونځ د امام د لمانځه تابع دی. د دې لپاره د امام په

لمانځه کښې د کراهت د واقع کيدو له وجې د مقتديانو لمونځ هم مکروه کيږي

فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ ذيقعده ٨٦ هجری

## امام چه په کوم حالت کښې څوک پيدا کړي بايد اقتداء ورپسې وکړي

**سوال:** زيد په داسې وخت کښې راغی چه د ماسپښين جماعت ولاړ وو. زيد چه کله اودس وکړ نو امام په سجده کښې وو. نو آيا زيد ته د تکبير تحريمه په ويلو سره په سجده کښې له امام سره يو ځای کيدل واجب دي او که به د امام تر دريدو پورې انتظار کوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له امام سره بايد په سجده کښې شريک شي. دا يواځې د سجدې خصوصيت نه دی بلکه امام چه په کوم حالت کښې پيدا شي په هم هغه حالت کښې دې ورسره شريک شي. پرته له کومې وجې ځنډ يا تاخير ګناه ده.

عن علی و معاذ بن جبل رضی الله تعالیٰ عنهما قالا قال رسول الله ﷺ اذا اتی احدکم الصلوٰة والامام علی حال فليصنع کما يصنع الامام. رواه الترمذی، و عن ابی هريرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا جئتم الی الصلوٰة ونحن سجود فاسجدوا ولا تعدوه شيئًا الحديث. (رواه ابو داؤد) وفی العلائية ولو ادرکه راکعًا او ساجدا ان اکبر رأيه انه يدرکه اتی به ای بالثناء وفی الشامية (قوله او ساجدًا) ای السجدة الاولیٰ کما فی المنية و اشار با لتقييد راکعًا او ساجدًا الی انه لو ادرکه فی احدی القعدتين فالاولیٰ ان لا يثنی لتحصيل فضيلة زيادة المشارکة فی القعود و کذا لو ادرکه فی السجدة الثانية و تمامه فی شرح المنية. (ردالمحتار ج۱، ص۳۵۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ ذی قعده ۱۳۵۶ هجری

## د خنثٰی (نر ښځي) امامت صحيح نه دی

**سوال:** د هجړا (نرښځي) امامت صحيح دی او که نه؟ او که څوک اقتداء پسې وکړي نو آيا لمونځ ئې کيږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه نرښځی د شريعت متابع، لمونځ کوونکی او ديندار وي او ږيره ئې هم د شريعت مطابق پريښې وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته په نرښځي کښې د نارينه وو علامه زياته وي نو امامت ئې صحيح دی او که چيرته ښځينه علامه پکښې زياته وي يا ئې دواړه علامې برابرې وي نو بيا ئې امامت صحيح نه دی بلکه د خپلو همجنسو هم امام نه شي جوړيدلی. البته د ښځو اقتداء ورپسې صحيح ده.

قال فی الدر ولا يصح اقتداء رجل بامرأة و خنثٰی و صبی مطلقًا ولو فی جنازة و نفل علی الاصح و فی الشامية

(قوله ولا یصح اقتداء الخ) والخنثی البالغ تصح امامته للانثی مطلقاً فقط لا للرجل ولا لمثله لاحتمال انوثته و ذکورة المقتدی ویصح اقتدائه بالرجل لا بمثله ولا بانثی مطلقاً لاحتمال ذکورته الخ. (رد المحتار ج۱، ص۵۴۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ذی الحجة ۱۳۸۶ھ هجری

## خنثٰی یا نرښځی به تر هلکانو په شا ته صف کښې درېږي

**سوال** : د نرښځي امامت خو جائز نه دی لیکن په لومړي صف کښې ئې دریدل څرنګه دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته په نرښځي کښې د نارینه علامه زیاته وي نو په لومړي صف کښې دریدلی شي او که چیرته د ښځې علامې پکښې زیاتې وې نو د ښځو په صف کښې به درېږي. که چیرته دواړه علامې برابرې وې نو بیا ئې د دریدلو ځای د ښځو او هلکانو تر منځ دی یعنې د هلکانو شا ته او له ښځو څخه به مخکښې درېږي.

قال فی التنویر فیقف بین صف الرجال و النساء، و فی الشامیة اذ لو وقف مع الرجال احتمل انه انثی او مع النساء احتمل انه رجل. (رد المحتار ج۵، ص۵۱۳) و فی التنویر و یصف الرجال ثم الصبیان ثم الخناثی ثم النساء. (رد المحتار ج۱، ص۵۳۴)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ذی الحجة ۱۳۸۶ھ هجری

## رکوع یا سجدې ته تر امام مخکښې د تللو حکم

**سوال** : که چیرته مقتدي د لمانځه په کوم حرکت کښې له امام څخه وړاندې والی وکړي یعنې رکوع یا سجدې او داسې نورو ته تر امام مخکښې لاړ شي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته امام په رکوع یا سجده کښې په مقتدي پسې ورسیده نو لمونځ ئې کیږي لیکن له امام څخه وړاندې والی مکروه دی. او که چیرته دومره مخکښې تر امام سجدې ته تللی وي چه په بیرته را ولاړیدو سره له امام سره په قیام کښې شریکیدلی شوای نو د قیام خوا ته د مقتدي بیرته راګرځیدل واجب دي

قال فی الشامیة الخامس ان یأتی بهما قبله و یدرکه الامام فیهما و هو جائز لکنه یکره. (رد المحتار ج۱، ص۳۵۶) و فی العلائیة لو رفع الامام رأسه من الرکوع او السجود قبل ان یتم المأموم التسبیحات الثلاث وجب متابعته و کذا عکسه فیعود و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله و کذا عکسه) و هو ان یرفع المأموم رأسه من الرکوع او السجود قبل ان یتم الامام التسبیحات ح (قوله فیعود) ای المقتدی لوجوب متابعته لامامه فی

اكمال الركوع و كراهة مسابقته له فلو لم يعد ارتكب كراهة التحريم. (ردالمحتار ج۱، ص۴۶۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴ صف ۱۳۸۷ هجری

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال**: په شامي کښې ليکلي دي چه که چيرته يو چا رکوع او سجده دواړه له امام څخه مخکښې ادا کړل نو هغه به د يوه رکعت قضائي را اړوي او که چيرته ئې يواځې رکوع لم امام څخه مخکښې ادا کړه نو د څلورو رکعتونو قضائي به راوړي حالانکه په لومړي صورت کښې چه کومه وجه ليکل شوې ده په دې صورت کښې هم بعينه هم هغه وجه موجوده ده. د دې لپاره په دې صورت کښې هم بايد د يوه رکعت قضائي لازمه وای. د شامي د دې ځای په ملاحظه کولو سره په دواړو صورتونو کښې فرق وليکئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: صحيح دا ده چه په دغو دواړو صورتونو کښې د دوه رکعتونو قضائي راوړي.

قال الرافعی رحمة الله عليه فيما ذكره من توجيه الزامه بركعة نظر و ذلك انه فی الاولیٰ لم يعتبر ركوعها ولا سجودها لكونهما قبل الامام و يعتبر قيامها لكونها معه. فكأنه لم يأت بهما فليتحقان من الثانية بها و يلغو قيام الثانية لكونه حصل قبل اتمام الاولیٰ فبقی عليه الثانية ثم قيامه فی الثالثة معتبر لانه مع الامام و الركوع و السجود لا يعتبران لانهما قبله فينتقلان من الرابعة اليها و يلغو قيام الرابعة لحصوله قبل تمام الثانية[1] فبقی عليه الرابعة ايضاً فيلزمه ركعتان نظير ما قيل فی الوجه الثالث و ايضاً اذا لزمه ركعتان لو سجد قبله فقط لزمتاه فيما لو سجد و ركع قبله بالاولیٰ و ما ذكره من التوجيه هو المذكور فی الخانية ثم توجيه الوجه الرابع محل نظر و تأمل و ذلك انه حيث لغا ركوع و سجود الاولیٰ ينبغی ان يلتحقا من الثانية بها و يبطل قيام الثانية لوقوعه عقب قيام الاولیٰ فتلزمه الثانية ثم اذا قام الی الثالثة مع الامام كان قيامه معتبراً و يلغو ركوعها و سجودها ثم اذا اتی بالرابعة التحق ركوعها و سجودها بالثالثة و يبطل قيامها و حينئذٍ يلزمه الثانية و الرابعة حسبما قيل فی الوجه الثالث. (التحرير المختار ج۱، ص۷۷)

دا حکم په هغه حالت کښې دی چه په څلورو رکعتونو کښې مقتدي له امام څخه وړاندې والی کړی وي که چيرته ئې يواځې په اول رکعت کښې وړاندې والی کړی وي نو په دواړو صورتونو کښې به د يوه رکعت قضائي راوړي همدارنګه د امام تر فارغيدو وروسته د قضائي حکم هلته دی

[1] - لعله من سهو الناسخ و الصحيح الثالثة. ۱۲ رشيد احمد

چه په وخت سره په غلطۍ باندې خبر نه شي او که نه نو حکم دا دی چه پاتې شوی رکن دې لومړی ادا کړي او بیا دې په پاتې لمانځه کښې د امام متابعت وکړي که چیرته ئې په قصد سره د دې په خلاف وکړل نو لمونځ کیږي لیکن ګنهګار به وي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ ذی قعده ۹۸ هجری

## د مقتدي له اولې قعدې څخه د دریدلو حکم

**سوال**: که چیرته امام په اوله قعده کښې کښیني او مقتدي په ناڅاپي توګه ودریږي نو په دې اروند څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په مقتدي باندې قعدې ته بیرته را ګرځیدل واجب دي. **قال ابن عابدين رحمة الله عليه في الفتح والبحر وغيرهما من باب سجود السهو ان المؤتم لو قام ساهياً في القعدة الاولى يعود و يقعد لان القعود فرض عليه بحكم المتابعة (الى قوله) اقول الذي يظهر انهم ارادوا بالفرض الواجب. (رد المحتار ج۱، ص۴۳۹)**

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴ صفر ۱۳۷۸ هجری

## د اوږدې مودې تر امامت وروسته د کفر د اقرار حکم

**سوال**: یوه سړي تر ډیرې مودې پورې امامت کاوه. اوس پخپله د خپل کفر اقرار کوي او وائي چه ما د کفر په حالت کښې لمونځونه کول. آیا په مقتدیانو باندې د دومره اوږدې مودې د لمونځونو بیرته را ګرځول واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د هغه په کفر باندې پرته له اقرار څخه بل کوم دلیل نه وي نو د اقرار له وخت څخه دی کافر او مرتد ګڼل کیږي. په تیرې شوې زمانې کښې د ده په اقتداء کښې شوي لمونځونه صحیح دي.

**قال في شرح التنوير ولو زعم انه كافر لم يقبل منه لان الصلوة دليل الاسلام و اجبر عليه، و قال ابن عابدين رحمة الله عليه (قوله لان الصلوة دليل الاسلام) اى دليل على انه كان مسلماً و انه كذب بقوله انه صلى بهم و هو كافر و كان ذلك الكلام منه ردة فيجبر على الاسلام. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۴)**

فقط والله تعالیٰ اعلم غرة جمادى الاولى ۱۳۸۶ هجری

## تریوې مودې وروسته څرګنده شوه چه امام کافر دی

**سوال**: یوه سړي تر یوې اوږدې مودې پورې امامت کاوه. اوس له قرائنو څخه معلومه شوه چه کافر دی لیکن هغه د خپل کفر اقرار نه کوي بلکه خپل ځان مسلمان بولي. لیکن خلک د هغه په

خیره اعتماد نه کوي او خیال ئې دا دی چه دی د نفاق له وجې خپل ځان مسلمان ښکاروي. نو آیا ځومره لمونځونه چه د داسې امام په اقتداء کښې ادا شوي وي د هغو بیرته را ګرځول واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د شواهدو او قرائنو له مخې د هغه د کفر ظن غالب وشي نو په هغه پسې د شوي لمونځونو بیرته را ګرځول واجب دي

قال فی شرح التنویر و اذا ظهرت حدث امامه و کذا کل مفسد فی رأی مقتد بطلت فیلزم اعادتها و فی الشامیة (قوله و کذا کل مفسد فی رأی مقتد) اشار الی ان الحدث لیس بقید فلو قال المصنّف کما فی النهر ولو ظهر ان بامامه ما یمنع صحة الصلوٰة لکان اولیٰ لیشمل ما لو اخل بشرط او رکن والی ان العبرة برأی المقتدی حتی لو علم من امامه ما یعتقد انه مانع والامام خلافه اعاد. (قوله بطلت) ای تبین انها لم تنعقد ان کان الحدث سابقاً الخ. (قوله فیلزم اعادتها) المراد بالاعادة الاتیان بالفرض بقرینة قوله بطلت لا المصطلح علیها و هی الاتیان بمثل المؤدی لخلل غیر الفساد. (ردالمحتار ج۱،ص۵۵۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ جمادی الاولیٰ ۱۳۸٦ھ هجری

## د لویانو په صف کښې د کوچنیانو د دریدلو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیان عظام په دې مسئله کښې چه نابالغه هلکان د بالغانو سره د لمانځه په یوه صف کښې دریدلی شي او که نه او آیا هغه نابالغه هلکان کوم چه څه نا څه پوهه ولري یعنې د لمانځه وختونه. د رکعتونو شمیر. د لمانځه د ادا کولو کیفیت او داسې نور پیژني نو د هغو ځانته حکم دی او که د ټولو یو حکم دی. همدارنګه په لومړي، دویم او دریم صف کښې هم کوم فرق شته او که د ټولو صفونو حکم یو دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته یواځې یو نابالغ هلک وي نو هغه باید له بالغانو سره په یوه صف کښې ودرول شي. که چیرته نابالغه هلکان زیات وي نو دهغوی شا ته درول مستحب دي واجب نه دي لیکن په دې زمانه کښې هلکان باید د لویانو په صف کښې ودرول شي ځکه چه د دوه یا زیاتو هلکانو یو ځای له جمع کیدلو څخه خپل لمونځونه خرابوي بلکه د بالغانو په لمونځونو کښې هم خلل پیدا کوي

قال العلامة الرافعی رحمه الله علیه (قوله ذکره فی البحر بحثا) قال الرحمتی ربما یتعین فی زماننا ادخال الصّبیان فی صفوف الرجال لان المعهود منهم اذا اجتمع صبیّان فاکثر تبطل صلوٰة بعضهم ببعض و ربما تعدّی ضررهم الی فساد صلوٰة الرجال. انتهٰی (التحریر المختار ج۱،ص۷۳)

چونکه دا قول مطلق دی چه له دې وجې په لومړي، دويم او دريم صف کښې کوم فرق نشته، دا حکم د هغو هلکانو په اړه دی کوم چه د لمانځه، اوداسه او داسې نورو په تميز باندې پوهيږي زيات واړه هلکان د نارينه وو په صف کښې درول مکروه دي بلکه جومات ته ئې راوستل هم جائز نه دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربیع الاول ۹۳ هجری

## د مقتدي په فتحې سره لمونځ نه فاسديږي

**سوال** څه فرمائي علماء کرام او مفتيان عظام په دې مسئله کښې چه که چيرته د امام وروسته تر دې چه دومره قرائت ئې کړی وي چه لمونځ پرې روا کيږي، قرائت هير شي او رکوع هم نه کوي او بل آيت ته هم ټوپ نه اچوي بلکه بار بار همدغه آيت را ګرځوي او د مقتدي په فتحه ورکولو باندې ئې هم عمل و نه کړ د دې لپاره مقتدي څو څو ځله فتحه ورکړه. آيا په دې صورت کښې لمونځ فاسديږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ نه فاسديږي، البته امام ته داسې کول مکروه تحريمي دي همدارنګه مقتدي ته هم په فتحه ورکولو کښې بيړه کول مکروه دي.

کما فی الدر، بخلاف فتحه علی امامه فانه لا یفسد مطلقاً لفاتح وآخذ بکل حال آه. وفی الحاشیة ای سواء قرأ الامام قدر ما تجوز به الصلوٰة ام لا انتقل الی آیة اخری ام لا تکرر الفتح ام لا هو الاصح. نهر، وبعد اسطر (تتمة) یکره ان یفتح من ساعته کما یکره للامام ان یلجئه الیه بل ینتقل الی آیة اخری لا یلزم من وصلها ما یفسد الصلوٰة او الی سورة اخرٰ او یرکع اذا قرأ قدر الفرض کما جزم به الزیلعی وغیره وفی روایة قدر المستحب کما رجحه الکمال بانه الظاهر من الدلیل واقره فی البحر والنهر ونازعه فی شرح المنیة ورجح قدر الواجب لشدة تأکده. (رد المحتار ج۱، ص۵۸۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۱ ذی قعده ۱۳۹۳ هجری

## د مقتدي له تشهد يا درود څخه تر فارغيدو مخکښې د امام سلام اړول

**سوال** امام سلام واړاوه او د مقتدي تشهد لا پوره شوی نه دی. نو آيا مقتدي به تشهد پوري کوي او سلام به اړوي او که به له امام سره سلام اړوي؟ او که چيرته مقتدي تشهد او درود ووائي بيا سلام واړوي نو آيا د مقتدي په لمانځه کښې کوم کراهت راځي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې صورت کښې په مقتدي باندې د تشهد پوره کول او د درود په پريښودلو سره د امام متابعت کول پرې واجب دي. له تشهد څخه په فارغيدو دې سلام واړوي او درود دې نه وائي. د تشهد پريښودل مکروه تحريمي دی. همدارنګه په درود کښې په مشغوليدو سره په سلام کښې تاخير کول يا د رکوع او سجدې د تسبيحاتو په پوره کولو کښې له

امام څخه وروسته پاتې کيدل مکروه تحريمي دي

قال فی شرح التنویر واعلم انه مما یبتنی علی لزوم المتابعة فی الارکان انه لو رفع الامام رأسه من الرکوع او السجود قبل ان یتم المأموم التسبیحات الثلاث وجب متابعته و کذا عکسه فیعود ولا یصیر ذلك کوعین بخلاف سلامه او قیامه لثالثة قبل اتمام المؤتم التشهد فانه لا یتابعه بل یتمه لوجوبه ولو لم یتم جاز ولو سلم والمؤتم فی ادعیة التشهد تابعه لانها سنة والناس عنه غافلون. وفی الشامیة (قوله ولو لم یتمه جاز) ای صح مع کراهة التحریم کما افاده ح الخ. (قوله فی ادعیة التشهد) یشمل الصلوٰة علی النبی ﷺ وبه صرح فی شرح المنیة. (ردالمحتار ج۱، ص۴۶۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ ذی قعده ۱۳۸۶ هجری

## د شافعيانو او اهل حديثو امامت

**سوال**: آيا د حنفيانو لمونځونه په شافعيانو يا اهلِ حديثو پسې کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته دا يقين ئې وي چه امام د لمانځه په ارکانو او شرائطو کښې د نورو مذهبونو رعايت کوي نو اقتداء ورپسې پرته له کراهت څخه جائزه ده. او که چيرته ئې د نه رعايت کولو يقين وي نو په داسې چا پسې ادا شوی لمونځ به صحيح نه وي. او د چا چه حال معلوم نه وي په هغه پسې اقتداء مکروه ده. نن صبا ډير غير مقلدين يواځې دا نه چه د مذاهبو د رعايت خيال نه ساتي بلکه مذاهب غلط بولي او په قصد سره د دوی خلاف کار کوي. او دا کار ثواب گڼي. د دې لپاره د داسې خلکو له اقتداء څخه حتی الامکان ځان ساتنه لازمه ده. ليکن د ضرورت په وخت په دوی پسې لمونځ ادا کړئ او جماعت مه پريږدئ. قال فی العلائیة عن البحر ان تیقن المراعاة لم یکره او عدمها لم یصح وان شك کره. (ردالمحتار ج۱، ص۵۲۶)

دا تفصيل په هغه وخت کښې دی چه دا امام صحيح العقيده وي. که چيرته ئې عقيده فاسده وه، مقلدينو ته ئې مشرکين ويل او سلفو ته ئې ښکنځا کوله نو د داسې چا امامت په هر حال مکروه تحريمي دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربيع الآخر ۹۵ هجری

## د نوکر يا ملازم لپاره د جماعت پريښودل جائز نه دي

**سوال**: زيد چيرې مزدور دی. جماعت د لمانځه لپاره جومات ته ځي خو افسران يا مالکان ئې وائي چه د کار په وخت کښې د لمانځه ادا کول ضروري نه دي د دې لپاره چه په دې سره مالک ته تاوان رسيږي شرعا په دې باره کښې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د افسرانو په وينا د جماعت پريښودل جائز نه دي. داسې افسر يا

مالک سخت گنهگار دی کوم مزدور یا ملازم ته چه په جماعت سره د لمانځه د ادا کولو اجازه نه ورکوي نو هغه ته د داسې ملازمت یا مزدوري پریښودل واجب دي

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ صفر ۱۳۹۲ هجری

## د رياحي «باد خارجیدونکی» مریض لپاره د جماعت پریښودل جائز دي

**سوال**: یو سړی د رياحي تکلیف مریض دی د ده غالب گومان دی چه که چیرته د جماعت د لمانځه لپاره جومات ته لاړ شي نو باد یا ریح ئې ووځي نو په داسې صورت کښې په داسې سړي باندې جماعت واجب دی او که نه؟ که چیرته دی په کور کښې لمونځ ادا کړي نو د جماعت ثواب ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې حالت کښې په ده باندې به د جماعت د پریښودلو گناه نه وي بلکه د یواځې لمانځه په ادا کولو سره هم ده ته د جماعت ثواب ورکول کیږي

قال فی الشامیة معزیا الی نور الایضاح واذا انقطع عن الجماعة لعذر من اعذارها وکانت نیته حضورها لولا العذر یحصل به ثوابها آه والظاهر ان المراد به العذر المانع کالمرض والشیخوخه والفلج بخلاف نحو المطر والطین والبرد والعمی تأمل. (ردالمحتار ج۱، ص۵۱۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ جمادی الآخر ۱۳۹۲ هجری

## د جومات په جماعت کښې د ښځو شریکیدل مکروه دي

**سوال**: ښځو ته د جُمعې یا اخترونو یا د پنځګوني لمونځونو په جماعت سره په جومات کښې دننه یا د جومات په بام یا په کوم بل خای کښې د پردې شا ته یا په مدرسه کښې کومه چه له جومات سره لگیدلې وي په نارینه امام پسې د لمانځه ادا کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ښځو لپاره په جماعت کښې شریکیدل مکروه تحریمي دي قال فی شرح التنویر ویکره حضورهن الجماعة ولو لجمعة وعید ووعظ مطلقاً ولو عجوزاً لیلا علی المذهب المفتٰی به لفساد الزمان. (ردالمحتار ج۱، ص۵۲۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ رجب ۱۳۸۷ هجری

## دوړو متیازو، غټو متیازو یا د زیاتې لوږې له وجې د جماعت د پریښودلو حکم

**سوال**: که چیرته د جماعت لمونځ دریدلی وي او دې خوا ته زیاته لوږه وي او خوراک هم بالکل تیار وي، یا چا ته غټې یا وړې متیازې وراغلي وي نو کوم یو به وړاندې کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په نوموړي صورت کښې د خوراک، غټو او وړو متیازو حاجت به

وړاندې کوي.

قال فی الدّر فلا تجب علی مریض (الی قوله) او مدافعة احد الاخبثین و ارادة سفر و قیامه بمریض و حضور طعام تتوقه نفسه ذکره الحدادی الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۵۲۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی قعده ۱۳۹۷ هجری

## يواځې د نامحرمو ښځو امامت مکروه تحريمي دی

**سوال**: زيد يواځې د ښځو امامت کوي. آيا داسې کول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ښځو له پردي سړي سره لمونځ کول مکروه تحريمي دي په داسې حال کښې چه له هغوی سره کوم محرم نارينه يا محرمه ښځه نه وي. که چيرته له دوی څخه کوم يو په جماعت کښې شريک وي نو بيا پروا نه لري. ليکن بيا به هم د زمانې د فساد له وجې احتياط ضروري دی.

قال فی الدر ویکره حضورهن الجماعة ولو جمعة وعید و وعظ مطلقاً ولو عجوزاً لیلاً علی المذهب المفتی به لفساد الزمان (الی) کما تکره امامة الرجل لهن فی بیت لیس معهن رجل غیره ولا محرم عنه کأخته او زوجته او امته اما اذا کان معهن واحد ممن ذکر او امهن فی المسجد لا یکره. بحر (ردالمحتار ج۱، ص۵۲۹)

## تر اذان وروسته په جومات کښې يواځې لمونځ کول او تلل

**سوال**: د کوم کار د بيړې لکه سفر يا کوم بل ضروري کار له وجې تر آذان وروسته په جومات کښې د يواځې لمانځه په ادا کولو سره له جومات څخه تلل او د جماعت پريښودل په داسې حال کښې چه جماعت ناوخته ادا کيږي جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته د جماعت په انتظار کښې معتد به حرج (معقول تکليف) وي نو د جماعت پريښودل جائز دي.

قال فی التنویر فتسن او تجب علی الرجال العقلاء البالغین الاحرار القادرین علی الصّلوٰة بالجماعة من غیر حرج. (رد المحتار ج۱، ص۵۱۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ ذی قعده ۱۳۸۷ هجری

## د جومات د لرې والي له وجې د جماعت د پريښودلو حکم

**سوال**: د زيد کور له جومات څخه لرې دی، د تيز تلونکي لپاره د پنځلسو دقيقو لار ده. د پنځګوني لمونځونو په ادا کولو سره ډير ضروري کارونه پاتې کيږي. او ساره هم زيات دي نو په دې صورت کښې که چيرته زيد د پنځګوني لمونځونو له جماعت سره په ادا کولو کښې کوتاهي

وکړي نو ګنهګار خو به نه وي، په عذر سره یا بې له عذره؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : لکه څرنګه چه په پنځلسو دقیقو کښې تیز تلونکی سړی یو میل مسافه وهلی شي او اوبو چه یو میل لرې وي نو د اوداسه لپاره تر هغه ځایه تلل ضروري نه دي بلکه تیمّم کول صحیح دي. له دې څخه ثابته شوه چه د یو میل مسافې په طی کولو کښې حرج دی او حرج د جماعت د لمانځه ساقطوونکی دی.

قال فی التنویر فتسن او تجب علی الرجال العقلاء البالغین الاحرار القادرین علی الصّلوٰة بالجماعة من غیر حرج.(ردالمحتار ج۱،ص۵۱۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ذی قعده ۱۳۸۷ هجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال** : له کور څخه چه جومات په څومره فاصلې کښې وي نو د جماعت د لمانځه ادا کول واجب نه وي. که چیرته سورلۍ وي نو بیا په وجوب کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په عامو ښارونو او قصباتو کښې چه په عمومي توګه د محله یا کلي څومره اندازه وي که چیرته جومات له دې اندازې څخه په زیاتې فاصلې باندې وي نو د جماعت لپاره تلل واجب نه دي. په دې کښې د سورلۍ وجود او نه وجود سره برابر دی.

قال فی العلائیة فتسنّ او تجب ثمرته تظهر فی الاثم بترکها مرة علی الرّجال العقلاء البالغین الاحرار القادرین علی الصلوٰة بالجماعة من غیر حرج وقال ابن عابدین رحمه الله (قوله ولو فاتته ندب طلبها) فلا یجب علیه الطلب فی المساجد بلا خلاف بین اصحابنا بل ان اتی مسجداً للجماعة اُخر فحسن و ان صلّی فی مسجد حیّه منفرداً فحسن، و ذکر القدوری یجمع اهله و یصلّی بهم یعنی و ینال ثواب الجماعة کذا فی الفتح، و اعترض الشرنبلالی بان هذا ینافی وجوب الجماعة و اجاب ح بان الوجوب عند عدم الحرج و فی تتبعها فی الاماکن القاصیة حرج لایخفی.(ردالمحتار ج۱،ص۵۱۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۹ هجری

## د خصّي سړي امامت

**سوال** : کوم سړی چه په جبر او زور سره خصّی شوی وي امامت ئې جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : له خصّي څخه طبعاً څه نا څه انقباض (قبض) وي د دې لپاره د داسې سړي امامت مکروه تنزیهي دی. البته که چیرته له ده څخه زیات مستحق امام موجود نه وي نو بیا هیڅ کراهت نشته کما قالوا فی المجبوب. فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ جمادی الآخر ۸۸ هجری

## امام د سُنتو تر ادا کولو مخکښې د جماعت لمونځ ورکولی شي

**سوال**: د ماسپښین د جماعت وخت پوره شو، نو آیا د ساعت په اعتبار سره امام باید لومړی د ماسپښین سُنت ادا کړي او که خلکو ته د جمعې لمونځ ورکړي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په امام باندې د تاکل شوي وخت رعایت کول لازم دي د دې لپاره امام دې له جماعت څخه مخکښې له سُنتو څخه د فارغیدو اهتمام وکړي. که چیرته کله کله د عذر له وجې تاخیر ترې وشي نو مقتدیان باید امام ته د سُنتو د ادا کولو وخت ورکړي که چیرته داسې و نه شول او د سنتو له ادا کولو مخکښې ئې لمونځ ورکړ نو صحیح دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ ذی قعده ۸۸ هجری

## د امام په پورته منزل کښې د دریدلو حکم

**سوال**: یو جومات درې پوړه دی، په منځني پوړ کښې امام دریږي. په کښتني او پورتني منزل کښې مقتدیان دریږي. نو آیا په کښتني پوړ کښې د مقتدیانو لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ په نوموړې طریقې باندې د لمانځه ادا کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اقتداء صحیح کیږي لیکن امام باید په کښتني پوړ کښې ودریږي په پورتني منزل کښې دې پرته له ضرورت څخه نه دریږي. د جومات د اصل وضع (جوړښت) او د امت د متوارث (په میراث کښې د پاتې شوي) عمل په خلاف دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ رمضان المبارک ۸۸ هجری

## د جومات په پورتني منزل یا پوړ کښې د جماعت ادا کول

**سوال**: یو جومات دوه منزله دی. په کښتني منزل کښې حبس (هوا بنده) وي د دې لپاره د گرمی په موسم کښې که چیرته په پورتني منزل کښې جماعت وشي نو کوم قباحت خو به پکښې نه وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د جومات په سر باندې مستقل مسقّف منزل نه وي نو په داسې حالت کښې پرته له ضرورت څخه د جومات بام ته ختل او د حبس او داسې نورو له وجې په بام باندې یواځې لمونځ کول یا جماعت کول مکروه دي. البته په جومات کښې د ننه د ځای د نشتوالي له وجې د څه مقتدیانو په بام باندې لمونځ کول مکروه نه دي.

قال فی الهندیة فی الباب الخامس من کتاب الکراهیة الصعود علی سطح کل مسجد مکروه ولهذا اذا اشتد الحر یکره ان یصلّوا بالجماعة فوقه الا اذا ضاق المسجد فحینئذ لا یکره الصعود علی سطحه للضرورة کذا فی

الغرائب.(عالمگيرية ج۱ص۳۲۲)

نوموړي صورت له دې څخه څه مختلف دی. څکه چه په دې کښې د جومات پورتنی منزل مسقّف دی او د لمانځه په نيت باندې جوړ شوی دی. لهذا په دې کښې هغسې کراهت نشته، ليکن له نفسِ کراهت څخه خالي هم نه دی. د دې لپاره کښتنی منزل پريښودل او په پورتني منزل کښې د جماعت ادا کول د جومات د اصل وضع (جوړښت) او د امت د متوارث عمل په خلاف دی همدارنګه د جومات کښتنی منزل له جماعت څخه خالي پاتې کيدل د جومات د ادب او احترام خلاف دی. البته د حبس او داسې نورو عذرونو له وجې پرته له کراهت څخه جائز دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ رمضان المبارک ۸۸ هجری

## په رکوع کښې د شريکيدو صحيح طريقه

**سوال**: يو سړی په داسې حالت کښې په جماعت کښې شريکيږي چه کله امام د رکوع په حالت کښې وي. نو داسې سړی څه بايد وکړي؟ که چيرته خاص په زړه کښې د لمانځه نيت وکړي څکه چه په ژبې سره ويل خو يواځې مستحب دی. تکبير تحريمه ووائي، د دويم تکبير په ويلو سره فوراً رکوع ته لاړ شي، لږ غوندې توقف او قيام هم و نه کړي، او په دې وخت امام په رکوع کښې وي ليکن مقتدي تر شريکيدو وروسته فوراً ودريږي نو آيا دا ويل کيږي چه دا رکعت مقتدي ونيو. تر تکبير تحريمه وروسته د لاسونو تړل ضروري دي او که نه او همدارنګه تر تکبير تحريمه وروسته د يو ځل يا درې ځلې د تسبيح ويلو په اندازه دريدل ضروري دي او که نه؟ په رکوع کښې له امام سره مطلق شريکيدل کافي دي او که تر دومره څنډ پورې له امام سره په رکوع کښې پاتې کيدل ضروري دي چه يو ځل يا درې ځله د رکوع تسبيح وويلی شي. لنډه دا چه دا وليکئ چه په داسې حالت کښې مقتدي د کوم کار په تر سره کولو کښې رکعت پيدا کولی شي او له کومو کارونو پرته رکعت نه شي تر لاسه کولی او د کومو کارونو کول ضروري نه دي؟ په دې مسئلې باندې د نه پوهيدو له وجې اکثره خلک غلطی کوي، د دې لپاره د پوښتنې ضرورت پيښ شو؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په نوموړي صورت کښې رکعت پيدا کيږي. صحيح طريقه ئې دا ده چه د قيام په حالت کښې تکبير تحريمه وويل شي بيا فوراً د دويم تکبير له ويلو پرته رکوع ته لاړ شي. تر تکبير تحريمه وروسته دې لاسونه نه تړي، په رکوع کښې له امام سره لږ غوندې شريکيدل هم کافي دي. تر دې پورې که چيرته مقتدي په داسې حالت کښې د رکوع لپاره ټيټ شو چه امام له رکوع څخه د پورته کيدو په حال کښې وو ليکن امام لا پوره نه وو دريدلی چه د مقتدي لاسونه زنګنونو ته ورسيدل. نو په دې صورت کښې مقتدي دا رکعت پيدا کړ د دې لپاره مقتدي ته په

رکوع کښې د یو ځل تسبیح ویلو په اندازه پاتې کېدل واجب دي، تر دې وروسته د نورو تسبیحاتو په پرېښودلو سره د امام متابعت پرې واجب دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱٤ ذی قعده ۸۸ هجری «زیاتې تحقیق په تتمه کښې دی»

## د رشوت خور سړي امامت

**سوال**: یو سړی حکومتي افسر دی او رشوت هم اخلي. په داسې سړي پسې لمونځ جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: رشوت اخیستونکی فاسق دی. د دې لپاره په داسې سړي پسې لمونځ مکروه تحریمي دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ رجب ۸۹ هجری

## د تلویزون د کتونکي امامت

**سوال**: په داسې امام پسې اقتداء کول چه تلویزون ګوري جائز دي او که نه؟ همدارنګه د تلویزون کتل څنګه دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د تلویزون کتل ناروا دي. او په داسې امام پسې اقتداء مکروه تحریمي ده. لیکن لمونځ کېږي بیرته را ګرځول ئې ضروري نه دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ صفر ۹۰ هجری.

## د داسې سړي د امامت حکم چه په کور کښې ئې شرعي پرده نه وي

**سوال**: که چیرته د امام صاحب ښځه شرعي پرده نه کوي نو آیا د داسې سړي امام جوړول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د کوم سړي په کور کښې چه د شرعي پردې اهتمام نه وي هغه فاسق دی، داسې سړی امام جوړول جائز نه دي، امامت ئې مکروه تحریمي دی. البته څوک چه په ښځې باندې د پردې د کولو قدرت و نه لري د هغه امامت بې له کراهت څخه جائز دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ ربیع الآخر ۸۹ هجری

## د مقتدي د تشهد تر پوره کېدو مخکښې امام پورته شو

**سوال**: آیا مقتدي دې خپل تشهد پوره کړي او ودرېږي او که د امام اطاعت وکړي؟ په داسې حال کښې چه امام د مقتدي د تشهد تر پوره کېدو مخکښې ودرېږي، مقتدي د لمانځه له پیل څخه له امام سره شریک دی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : مقتدي دې تشهّد پوره کړي بیا دې ودریږي. قال فی الشامیة تحت (قوله ومتابعة الامام) والحاصل ان متابعة الامام فی الفرائض والواجبات من غیر تأخیر واجبة فان عارضها واجب لا ینبغی ان یفوته بل یأتی به ثم یتابع کما لو قام الامام قبل ان یتم المقتدی التشهد فانه یتمه ثم یقوم لان الاتیان به لا یفوت المتابعة بالکلّیة وانما یؤخرها والمتابعة مع قطعه تفوته بالکلّیة فکان تأخیر احد الواجبین مع الاتیان بهما اولی من ترک احدهما بالکلّیة الخ. (ردالمحتار ج۱،ص۴۳۹)

فقط والله تعالی اعلم ۲۳ رجب ۱۳۸۹ھجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال** : زید مقتدي د اولې قعدې تشهد لا نه وو پوره کړی چه امام ودریده. په دې موده کښې چه مقتدي خپل تشهد پوره کاوه نو امام له رکوع څخه خپل سر را پورته کړ او له زید څخه د امام رکوع تیر شو. نو آیا زید به څه ډول خپل لمونځ پوره کوي او لمونځ ئې څنګه صحیح کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په داسې صورت کښې دې مقتدي تشهّد او نور واجبات او فرائض په امام پسې وروسته ادا کوي نو لمونځ ئې صحیح کیږي.

قال فی الشامیة فان عارضها واجب لا ینبغی ان یفوته بل یأتی به ثم یتابع کما لو قام الامام قبل ان یتم المقتدی التشهّد فانّه یتمّه ثم یقوم. (ردالمحتار ج۱،ص۴۳۹)

فقط والله تعالی اعلم ۷ جمادی الاولی ۱۳۹۳ھجری

## د بدعتي سړي امامت

**سوال** : په بدعتي پسې لمونځ جائز دی او که نه او آیا داسې سړی د امامت قابل دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نن صبا د مبتدعه ډلې عقائد د شرک تر اندازې پورې رسیدلي دي د دې لپاره په هغوی پسې لمونځ نه کیږي. البته که چیرته کوم بدعتي شرکیه عقائد و نه لري بلکه موحد وي یواځې د دریمې، څلویښتمې او داسې نورو غوندې بدعاتو کښې مبتلا وي نو امامت ئې مکروه تحریمي دی

قال فی الشامیة فهو (الفاسق) کالمبتدع تکره امامته بکل حال. (ردالمحتار ج۱،ص۵۲۳) وقال العلامة الحلبی رحمة الله علیه بعد ما حرر من ان کراهة تقدیم الفاسق کراهة تحریم ویکره تقدیم المبتدع ایضاً لانه فاسق

من حيث الاعتقاد وهو اشد من الفسق من حيث العمل لان الفاسق من حيث العمل يعترف بانه فاسق ويخاف ويستغفر بخلاف المبتدع والمراد بالمبتدع من يعتقد شيئاً على خلاف ما يعتقده اهل السنة والجماعة وانما يجوز الاقتداء به مع الكراهة اذا لم يكن ما يعتقده يؤدي الى الكفر عند اهل السنة اما لو كان مؤدياً الى الكفر فلا يجوز اصلاً الخ. (غنية ص ۴۸۰)

که چيرته کوم صحيح العقيده امام پيدا شي نو د بدعتي په اقتداء کښې لمونځ مه کوئ او که نه په همدې پسې لمونځ وکړئ او جماعت مه پرېږدئ. د بدعتي په اقتداء کښې اګر که ادا شوی لمونځ مکروه تحريمي دی ليکن بيرته را ګرځول ئې واجب نه دي. دا د داسې بدعتي حکم دی چه مشرک نه وي. د شرکي عقائدو د درلودونکي حکم پورته ليکل شوی دی چه په هغه پسې قطعاً لمونځ کيږي نه فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ ربيع الآخر ۹۱ھ هجری

## له اصفرار (د لمر د زيړوالي) څخه مخکښې چه جماعت نه کيده نو يواځې دې لمونځ وکړي

**سوال** : د مازديګر لمونځ دلته په يوه جومات کښې ډير ناوخته کيږي. د ماښام او مازديګر تر منځ کله يو ساعت پاتې وي او کله نيم ساعت او کله له دې څخه کم وخت پاتې وي چه جماعت دريږي. نو که چيرته يو څوک له دې وجې څخه په داسې جماعت کښې نه شريکيږي نو ګنهګار به وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د لمر تر اصفرار پورې تاخير جائز دی. تر دې وروسته تاخير مکروه تحريمي دی. لهذا د لمر تر اصفرار مخکښې که چيرته جماعت نه قائميده نو يواځې دې لمونځ وکړي. له مشاهدې څخه ثابته شوې ده چه په کراچۍ کښې د لمر اصفرار له غروب څخه تقريباً پنځلس دقيقې مخکښې وي. د مکروه وخت تفصيل د احسن الفتاوىٰ په دويم جلد کښې ملاحظه کړئ. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ رجب ۹۰ھ هجری

## د مقتدي په قصد سره تشهد نه لوستل

**سوال** : که چيرته يو څوک په امام پسې قصداً التحيات او درود شريف و نه وائي نو لمونځ ئې کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : درود شريف سُنت دی او التحيات واجب دی منفرد يا امام چه په قصد سره واجب پرېږدي نو لمونځ ئې واجب الاعاده دی او که سهواً ترې پاتې شي نو سجدهٔ سهو واجبه ده ليکن په مقتدي باندې سهواً د واجب د پرېښودلو سره نه سجدهٔ سهو شته او نه د لمانځه

بیرته را ګرځول له دې څخه څرګنده شوه چه د مقتدي د واجبو پرېښودل کوم جابر نه لري لهذا په قصد سره د واجبو پرېښودل به د اعاده موجب نه وي. برسیره پر دې فقهاوو رحمهم الله تعالی د امام په متابعت کښې د واجبو د پرېښودو په بحثونو کښې چیرته هم د اعاده حکم نه دی لیکلی حالانکه د دې په څېنو مواقعو کښې په ارکانو کښې تکرار او په هغو کښې تقدیم او تاخیر هم شته له دې څخه هم همدغه مفهوم را ووځي چه د مقتدي قصد د اعاده (بیرته را ګرځولو موجب نه دی سره له دې په اعاده کښې احتیاط دی. د مقتدي سهو د اعاده د نه موجب کیدو باندې فقهاوو رحمهم الله بحث لیکلی دی نو په عمد کښې خو به په طریقۀ اولی سره بحث وي. لهذا اعاده بهتره ده.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ جمادی الآخر ۱۳۹۱ هجری

## د مودودي عقائدو د درلودونکي امامت

**سوال**: له جماعت اسلامي سره د تعلق درلودونکي حافظ پسې د قرآن کریم اوریدل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د داسې سړي امامت مکروه تحریمي دی. که چیرته په فرائضو کښې د صحیح عقیدې خاوند امام میسّر نه شي نو په همدې امام پسې دې وکړي. لیکن تراویح دې په هر صورت کښې د ده په اقتداء کښې نه کوي. چه صحیح امام پیدا نه شي نو تراویح تنها تنها ادا کړئ. د مودودي عقائدو د تفصیل لپاره د بنده رساله "مودودي صاحب او تخریب اسلام" د احسن الفتاوی په اول جلد کښې وګورئ.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ رمضان المبارک ۱۳۹۱ هجری

## د قضائي له ادا کولو پرته که په جماعت کښې د شریکیدلو حکم

**سوال**: یو سړی د ترتیب خاوند دی. هغه په سهو سره له جماعت سره لمونځ شروع کړ. د لمانځه په منځ کښې ور یاد شو چه زه خو د ترتیب خاوند یم. اوس د ده لپاره څه حکم دی؟ آیا لمونځ ئې له دې جماعت سره کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته له جماعت سره تر شریکیدو مخکښې ئې قضائي لمونځ په زړه وو نو په جماعت کښې دې نه شریکیږي بلکه لومړی دې قضائي وکړي. لیکن په جوماتکښې د لمانځه د قضائي ګناه لره د پټ ساتلو لپاره لازم دي چه له سهار او مابنام پرته په نورو وختونو کښې دې له جماعت سره د نفلو په نیت شریک شي. وروسته دې اول قضائي لمونځ وکړي او بیا دې د وخت لمونځ وکړي. او که چیرته سهواً په جماعت کښې شامل شي نو له امام سره دې دا لمونځ پوره کړي. دا لمونځ ئې نفلي وګرځیده، له دې وروسته دې قضائي لمونځ وکړي، بیا دې له

امام سره ادا شوی د وخت لمونځ دوباره ادا کړي.

قال فی الشامية (قوله للخبر المشهور من نام عن صلوٰة) تمام الحديث او نسيها فلم يذكرها الا وهو يصلی مع الامام فليصل التی هو فيها ثم ليقض التی تذکرها ثم ليعد التی صلی مع الامام ح عن الدر. (رد المحتار ج۱، ص ۶۸۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ صفر ۱۳۹۱ هجری

## د خپلې ښځې د خواهش د پوره کولو لپاره د جماعت د پریښودلو حکم

**سوال**: آذان شوی دی او سړي ته خپله ښځه وائي چه تر لمانځه مخکښې زما خواهش پوره کړه، که چیرته د ښځې خواهش پوره کړي نو جماعت فوت کیږي. په دې صورت کښې دې سړی څه کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته خاوند ته هم تر دې حده میلان (خواهش) پیدا شو چه په لمانځه کښې ئې پوره توجه نه پاتې کیده نو د جماعت پریښودل جائز دي، ځان دې فارغ کړي او په پوره اطمینان دې لمونځ وکړي. او که چیرته خاوند تر دې اندازې پورې خواهش نه درلود نو یواځې د ښځې په وینا سره د جماعت پریښودل جائز نه دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ ذی الحجه ۱۳۹۱ هجری

## د امام لپاره د محراب له منځنۍ برخې څخه بلې خوا ته دریدل مکروه دي

**سوال**: امام ته د لمانځه لپاره د محراب منځنۍ برخه پریښودل او ښۍ یا کیڼې خوا ته دریدل څنګه دي او که چیرته د محراب د ننه منبر لګیدلی وي لکه څرنګه چه په اکثرو جوماتونو کښې لیدل کیږي نو په دې صورت کښې امام باید په کوم ځای کښې ودریږي. مسئله واضحه کړئ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له محراب څخه مقصود دا دی چه امام د صف خاص په منځنۍ برخه کښې ودریږي او دا سُنت دی. البته که چیرته محراب په صحیح توګه د صف په منځنۍ برخه کښې واقع وي ن د محراب عین منځنۍ برخه پریښودل او ښۍ یا کیڼې خوا ته دریدل مکروه دي که د محراب د ننه منبر و او که نه وي، په هر حال دې د محراب وچ په منځ کښې باید ودریږي. په ډیرو جوماتونو کښې لیدل شوي دي چه امام د منبر د ځای په پریښودلو سره د پاتې محراب په منځ کښې دریږي، دا مکروه ده. د دې اصلاح لازم دی، او د دې مسئلې خپرونه ضروري ده. بلکه له دې څخه هم زیات د جوماتونو په تعمیر او جوړولو کښې د دې اصلاح سخت ضرورت دی چه د نبر ځای په ښي طرف پریږدي د جومات په وچ منځ کښې داسې محراب جوړ کړي چه محراب د

جومات په عین منځنی برخه کښې راشي یعنې چیرته چه امام دریږي له هغه ځای ځخه د جومات د دواړو خواوو مسافه او فاصله سره برابره وي

قال ابن عابدين رحمه الله قال في المعراج وفي مبسوط بكر السنة ان يقوم في المحراب ليعتدل الطرفان ولو قام في احد جانبي الصف يكره.(ردالمحتار ج۱،ص۵۳۱) فقط والله تعالى اعلم ۲۷ محرم ۱۳۹۳ھجری

## له امام ځخه مخکښې سلام ګرځول مکروه دي

**سوال** : څه فرمائي علماء کرام په دې مسئله کښې چه یوه مقتدي له امام ځخه مخکښې سلام واړاوه. آیا په دې صورت کښې د مقتدي لمونځ وشو او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : لمونځ ئې وشو لیکن داسې کول مکروه تحریمي دي البته که چیرته د داسې سختې مجبوری له مخې ئې سلام وګرځاوه کوم چه په لمانځه کښې د تشویش سبب جوړیده نو د لمانځه بیرته را ګرځول واجب نه دي. **لانه ترك واجب متابعة الامام لواجب اٰخر وهو اصلاح الصلوٰة والتحرز عن كراهة اداء الصلوٰة مع المشوش.**

دلته دا سوال پیدا کیږي چه په قصد سره د امام د متابعت واجب د پریښودلو له وجې دا لمونځ به واجب الاعاده وي او که نه؟ په دې اړه کوم صریح حکم نه دی لاس ته راغلی. البته د مقتدي په سهو سره د واجب په پریښودلو سجدهٔ سهو نه واجبیږي چه له دې ځخه ځرګندیږي چه د عمد او قصد په صورتکښې هم د لمانځه بیرته را ګرځول واجب نه دي.

فقط والله تعالى اعلم ۱۸ ذی قعده ۱۳۹۲ھجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال** : که چیرته د جماعت په لمانځه کښې کوم مقتدي له امام ځخه مخکښې سهواً سلام واړوي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ که چیرته هغه پرته له دې چه کوم مفسدِ صلوٰة خبره ئې کړې وي له امام سره یو ځای سلام وګرځوي نو څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د امام متابعت واجب دی. د دې لپاره له امام ځخه په قصد سره وړاندې والی مکروه تحریمي دی. البته په سهو سره یا د عذر له مخې د بې اودسه کیدو او داسې نورو له ویرې وړاندې والی مکروه نه دی.

قال في شرح التنوير ولو اتمه قبل امامه فتكلم جاز و كره. و قال ابن عابدين رحمه الله اى لو اتم المؤتم التشهد بان اسرع فيه وفرغ منه قبل اتمام امامه فاتى بما يخرجه من الصلوٰة كسلام او كلام او قيام جاز اى صحت صلوته لحصوله بعد تمام الاركان (الى قوله) و انما كره للمؤتم ذلك لتركه متابعة الامام بلا عذر فلوبه

کخوف حدث او خروج وقت جمعة او مرور مارّ بین یدیه فلا کراهة. کما سیأتی قبیل باب الاستخلاف. (رد المحتار ج۱، ص۴۹۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الآخر ۱۳۹۸ هجری

## د تور خضاب لګوونکي سړي امامت

**سوال**: کوم حافظ صاحب چه ږیرې ته تور خضاب ورکوي آیا هغه د تراویح لمونځ ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د تور خضاب لګوونکی فاسق دی. لهذا د داسې امام په اقتداء کښې د تراویحو ادا کول مکروه تحریمي دي. که چیرته نیک امام نه وي نو تراویح دې یواځې یواځې ادا کړي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ شعبان ۱۳۹۲ هجری

## د امام په ټاکنه کښې د نیکو خلکو د رائې ډیروالی معتبر دی

**سوال**: که چیرته د جومات اکثره مقتدیان او د کلي او کمیټي اکثره غړي یو امام له جومات څخه لرې کړي او کوم بل د هغه په ځای وټاکي. نو په داسې صورت کښې د رأیو اکثریت ته به کتل کیږي او که د اقلّیت زورواکي به منل کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته دواړه امامان په علم، فضل، ورع او تقوی کښې سره برابر دي نو په قوم کښې د نیکانو خلکو اکثریت ته به اعتبار ورکول کیږي.

قال فی الدر فان استووا یقرع بین المستویین او الخیار الی القوم فان اختلفوا اعتبر اکثرهم ولو قدموا غیر الاولیٰ اساءوا بلا اثم. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ ذی قعده ۱۳۹۳ هجری

## د ولد الزنا (حرامي) امامت

**سوال**: د ولد الزنا امامت او همدارنګه په کوم دیني منصب باندې ئې لګول څه حکم لري؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ولد الزنا د پلار د نشت والي له وجې صحیح تربیت نه وي شوی، همدارنګه له ده څخه طبعاً نفرت وي. د دې لپاره امامت ئې مکروه تنزیهي دی. او که چیرته په هغه کښې د کراهت دا علت پیدا نه شي بلکه عالم او متقي وي نو کراهت نه پاتې کیږي بلکه د نورو په نسبت د ده امامت افضل دی او په نورو دیني منصبونو کښې ئې هم همدغه حکم دی.

قال ابن عابدین رحمه الله علیه (قوله وولد الزنا) اذ لیس له اب یربیه و یؤدبه و یعلمه فیغلب علیه الجهل بحر او لنفرة الناس عنه. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۵) و نقل عن البحر و الاختیار و لو عدمت ای علة الکراهة بان کان

الاعرابي افضل من الحضري والعبد من الحرّ وولد الزنا من ولد الرشدة والاعمى من البصير فالحکم بالضد. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۴ هجری

## د امام شا ته د مؤذن د ځای معلومول جائز نه دي

**سوال**: د مؤذن د ځای ټاکل په امام پسې جائز دی او که نه؟ په ځینو جوماتونو کښې د امام شا ته د مؤذن جائ نماز خپور وي، په دې ځای باندې بل لمونځ کوونکی نه شي دريدلی. آيا داسې کول جائز دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په جومات کښې د هيچا لپاره د ځای ټاکل جائز نه دي. مؤذن که چيرته له امام سره نژدې ځای غواړي نو تر نورو لمونځ کوونکو دې مخکښې راشي. او که نه نو چه چيرته ځای ورته پيدا شي هم هلته دې اقامت وائي. د اقامت لپاره اوّل صف او له امام سره د نژدې والي کوم قيد نشته.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ رجب ۱۳۹۴ هجری

## امام دې رکوع او سجده مختصره کوي

**سوال**: امام او منفرد په رکوع او سجدې کښې څو څو ځله تسبيحات بايد ووائي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: منفرد ته اجازه ده که درې ځله تسبيحات وائي او که پنځه يا اوه يا تر دې زيات څو چه طاق وي. البته امام دې زيات تسبيحات نه وائي بلکه د دې لحاظ به ساتي چه مقتديان په اطمينان سره درې ځله تسبيحات پوره کړي.

قال في الشامية وصرحوا بانه يکره ان ينقص عن الثلاث وان الزيادة مستحبة بعد ان يختم على وتر خمس او سبع او تسع ما لم يکن اماماً فلا يطول. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۱) وايضاً فيها تحت مطلب في اطالة الرکوع للجائي وفي المنية ويکره للامام ان يعجلهم عن اکمال السنة ونقل في الحلية عن عبد الله بن المبارك واسحٰق وابراهيم والثوري انه يستحب للامام ان يسبح خمس تسبيحات ليدرك من خلفه الثلاث. آه (رد المحتار ج۱، ص۳۶۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ جمادی الآخر ۱۳۹۴ هجری

## له ښنګرو ښځه د پايڅو يا اوربه خولو کښته ساتونکي سړي امامت

**سوال**: څه فرمائي د دين علماء کرام په دې مسئله کښې چه د يوه جومات مشر يا صدر پرتوګ داسې اغوندي چه اوربه خولې يا پايڅې ئې تر ښنګرو کښته وي. که چيرته نوموړي ته دا معلومه شي چه امامت ده ته پاتې دی نو خامخا حاضرېږي او که نه نو په څو څو لمونځونو کښې موجود نه

وي د کرم او مهرباني له مخې چه کومه شرعي فيصله ده هغه را وليکئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر ښنګرو کښته د پايڅو ځړول جائز نه دي په دې باندې ډير وعيدونه راغلي دي.

عن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لا ينظر الله يوم القيامة الى من جر ازاره بطراً متفق عليه و عنه رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ما اسفل من الكعبين من الازار في النار. رواه البخاری (مشکوة ج۲، ص۳۷۳)

د لوط عليه السلام په قوم باندې چه د کومو بد اعماليو له مخې عذاب راغی د هغو له جملې څخه له ښنګرو څخه د پايڅو کښته ساتل هم دي. (در منثور) د دې لپاره د داسې سړي امام جوړول جائز نه دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ ربيع الآخر ۱۳۹۳ هجری

## په امام باندې د مقتديانو د بې احتياطۍ اثر لويږي

**سوال**: له امام څخه په لمانځه کښې اکثره غلطۍ پيښيږي. آيا دغه غلطيو له وجوهاتو څخه يوه وجه دا هم ده چه په مقتدي کښې غلطي وي او که څنګه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مقتدي چه په اوداسه او داسې نورو کښې احتياط و نه کړي نو په امام باندې ئې اثر لويدل په حديثو سره ثابت دی.

عن شبيب بن ابی روح عن رجل من اصحاب رسول الله ﷺ ان رسول الله ﷺ صلی صلوة الصبح فقرأ الروم فالتبس عليه فلما صلی قال ما بال اقوام يصلون معنا لا يحسنون الطهور و انما يلبس علينا القرآن اولئك رواه النسائی. (مشکوة ص۳۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ جمادی الآخر ۱۳۹۳ هجری

## د انعامي بانډ د ساتونکي امامت

**سوال**: آيا داسې سړی د امامت لائق دی چه پرائز بانډ ساتي او په هغه باندې د انعام روپۍ لاس ته راوړي او دا انعام د سود له روپو څخه تقسيميږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: انعامي بانډ له دې وجې چه د سود او جواري مجموعه ده، حرام دی د دې لپاره د انعامي بانډ ساتونکی فاسق دی او امامت ئې مکروه تحريمي دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ شوال ۱۳۹۴ هجری

## د اوداسه د ماتيدو له وجې چه يو څوک له صف څخه ووځي نو دا خالي ځای به څرنګه ډکيږي

**سوال**: که چيرته يو څوک په لومړي صف کښې د اوداسه د ماتيدو له وجې شا ته صفونه

وځيري او ووځي نو په دې صورت کښې د شا ته صف والا ټولو د هغه ځای ډکولی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په وروستني صف باندې واجب دی چه ټولو مخته لاړ شي او دا خالي ځای ډک کړي. که چیرته دوی داسې و نه کړي نو وروسته راتلونکی سړی دې د صف له مخې تیر شي او دا خالي ځای دې ډک کړي. که چیرته د صف له مخې څخه د تیریدو لار نه وي نو صف دې ځیرې کړي او هغه ځای دې ډک کړي.

## د صف د خالی ځای د ډکولو لپاره د لمونځ کوونکي له مخې تیریدل جائز دي

**سوال**: که چیرته د چا اودس مات شي نو آیا د لمونځ کوونکو په مخ کښې تیریدل جائز دي او که نه؟ او د اوداسه په کولو سره به دا سړی خپل ځای ته راځي او که به شا ته دریږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لمانځه د اصلاح لپاره د لمونځ کوونکو په مخ کښې تیریدل جائز دي. لهذا د تګ په وخت کښې دې د لمونځ کوونکو له مخې تیر شي او په بیرته راتلو سره که هغه ځای خالي پاتې وو نو بیا دې هم د دوی له مخې تیر شي او هغه ځای دې ډک کړي. بلکه که له مخې څخه د تیریدو لار نه وي نو صف هم ځیرې کولی شي.

قال في العلائية ولو كان فرجة فللداخل ان يمرّ على رقبة من لم يسدّها لانه اسقط حرمة نفسهٔ و قال ابن عابدين رحمة الله عليه قال في القنية قام في اٰخر الصف في المسجد بينه وبين الصفوف مواضع خالية فللداخل ان يمرّ بين يديه ليصل الصفوف لانه اسقط حرمة نفسه فلا يأثم المار بين يديه دل عليه ما ذكر في الفردوس برواية ابن عباس رضى الله تعالىٰ عنهما عن النبي صلى الله عليه و سلم انه قال من نظر الى فرجة في صف فليسدّها بنفسه فان لم يفعل فمر مار فليتخط على رقبته فانه لا حرمة لهٔ (الىٰ قوله) واذا كان له ذٰلك فله ان يمرّ بين يديه بالاولىٰ فافهم. (ردالمحتار ج۱، ص۵۹۵) فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۳ ذی قعده ۱۳۹۴ هجری

## مقتدي چه له امام څخه مخکښې ودریږي نو لمونځ ئې نه کیږي

**سوال**: په جومات کښې د جماعت په دوران کښې په دویم پوړ کښې لمونځ کوونکی له امام څخه لږ مخکښې ودریده. آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د مقتدي پونده د امام له پوندې څخه مخکښې وي نو لمونځ ئې نه کیږي، که چیرته ئې پوندې سره برابرې وي نو بیا کیږي اګر که د مقتدي د پښو ګوتې د امام له ګوتو څخه مخکښې وي. البته که چیرته د مقتدي او امام په پښو کښې دومره زیات فرق وو چه د دواړو د پوندو د برابر والي تر څنګ د مقتدي د پښو اکثره برخه د امام له پښو څخه

مخکښې وي نو لمونځ نه کیږي.

قال العلاء رحمه الله في شروط الامامة وعدم تقدمه علیه بعقبه. قال ابن عابدین رحمه الله فلو ساواه جاز و ان تقدمت اصابع المقتدی لکبر قدمه علی قدم الامام ما لم یتقدم اکثر القدم کما سیأتی. (رد المحتار ج۱، ص۵۱۴) وذکر التفصیل في بیان مقام المقتدی. فقط والله تعالی اعلم ۷ رمضان المبارک ۱۳۹۴ هجری

## د نابالغ مقتدي په اقتداء سره د جماعت ثواب حاصلیږي

**سوال**: څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په اړه چه په بالغ امام پسې د دولسو دیارلسو کالو هلکانو اقتداء وکړه. نو آیا جماعت ادا کیږي او د جماعت ثواب ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په امام پسې که چیرته یو نابالغ هلک هم اقتداء وکړه نو دې ته جماعت ویل کیږي او د جماعت پوره ثواب ورکول کیږي په دې شرط چه هلک عاقل وي.

قال في العلائیة واقلها اثنان واحد مع الامام ولو ممیزا. قال ابن عابدین رحمه الله لحدیث اثنان فما فوقهما جماعة اخرجه السیوطی في الجامع الصغیر ورمز لضعفه قال في البحر لانها مأخوذة من الاجتماع وهما اقل ما یتحقق به وهذا في غیر جمعة اه. ای فان اقلها فیها ثلاثة صالحون للامامة سوی الامام ومثلها العید الخ (قوله ولو ممیزا) ای ولو کان الواحد المقتدی صبیا ممیزا قال في السراج لو حلف لا یصلي جماعة وام صبیا یعقل حنث اه. ولا عبرة بغیر عاقل بحر قال ط ویؤخذ منه انه یحصل ثواب الجماعة باقتداء المتنفل بالمفترض لان الصبي متنفل الخ. (رد المحتار ج۱، ص۵۱۷) فقط والله تعالی اعلم ۸ محرم ۱۳۹۵ هجری

## یواځې چه یوه ښځه یا یو هلک مقتدي وي نو چیرته به ئې دروي؟

**سوال**: زید پخپل کور کښې په جماعت سره لمونځ ادا کوي. که چیرته مقتدي یواځې یو نابالغ هلک یا یوه ښځه وي یا ښځه او هلک دواړه اقتداء وکړي نو چیرته به دریږي؟ په محرمې ښځې او غیر محرمې کښې فرق شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هلک دې د امام ښي طرف ته ودریږي او ښځه دې د امام شا ته. که ښځه محرمه وي او که نامحرمه د دواړو یو حکم دی.

قال في العلائیة (ویقف الواحد) ولو صبیا اما الواحدة فتتأخر (محاذیا) ای مساویا (لیمین امامه) علی المذهب. وفي الشامیة خلافا لما عن محمد رحمه الله من انه یجعل اصابعه عند عقب الامام. بحر، (رد المحتار ج۱،

ص٥٣٠) فقط والله تعالى اعلم ١٧ ربیع الآخر ١٣٩٥ هجری

## نامحرمو ښځو ته د لاس ورکوونکي سړي امامت

**سوال**: کوم سړی چه نامحرمو ښځو ته لاس ورکوي په هغه پسې د لمانځه ادا کول څنګه دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نامحرمو ښځو ته لاس ورکوونکی سړی فاسق دی. د دې لپاره د داسې سړي امامت مکروه تحريمي دی. فقط والله تعالى اعلم ١٧ ربیع الاول ١٣٩٥ هجری

## مقتدي چه يو سړی او يو هلک وي نو صف به څنګه جوړوي؟

**سوال**: څه فرمائي علماء كرام په دې مسئله کښې چه په جومات کښې د جماعت په وخت له امام پرته يو سړی او يو نابالغ هلک موجود دی نو د دوی صف بندي په څه ډول باید وشي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: سړی او نابالغ هلک دې دواړه څنګ په څنګ ودرېږي.

قال فی شرح التنوير ثم الصبيان ظاهره تعددهم فلو واحداً دخل الصف وفی الشامية ذكره فی البحر بحثا قال وكذا لو كان المقتدی رجلاً وصبياً يصفهما خلفه لحديث انس رضی الله عنه فصففت انا واليتيم وراءه والعجوز من ورائنا. (ردالمحتار ج١، ص٥٣٤) فقط والله تعالى اعلم ٤ رمضان ١٣٩٥ هجری

## كه په پیل کښې يواځې يو مقتدي وو او د سجدې په حالت کښې نور راغلل

**سوال**: په جومات کښې امام يواځې له يوه مقتدي سره لمونځ کاوه. د آخري رکعت د سجدې په حالت کښې نور څو مقتديان را ورسيدل. آيا دا خلک په همدې حالت کښې د امام ښې او کيڼې خوا ته درېږي او که د امام له سجدې څخه د پورته کيدو انتظار به کوي تر څو چه امام مخکښې شي او بيا دوی له مخکښې څخه د موجود مقتدي سره يو ځای صف جوړ کړي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په امام پسې دې د صف په جوړولو سره د سجدې په حالت کښې شريک شي. له سجدې څخه تر را پورته کيدو وروسته دې اولنی مقتدي هم شا ته راشي.

قال فی التنوير ويقف الواحد محاذيا ليمين امامه (الى ان قال) والزائد خلفه وفی الشامية وفيه اشارة الى ان الزائد لو جاء بعد الشروع يقوم خلف الامام ويتأخر المقتدی الاول. (ردالمحتار ج١، ص٥٣٠)

فقط والله تعالى اعلم ٤ رمضان المبارك ١٣٩٥ هجری

## په امام باندې د ټاکل شوی وخت پابندی لازمه ده

**سوال**: په عمومي توګه په جوماتونو کښې چه کله امام د ګړی په صحیح وخت باندې ځان نه رسوې نو لمونځ کوونکي اعتراض کوي او دوه درې دقیقې انتظار ورته سخت شي. په داسې حال کښې چه د لمانځه د انتظار حدیث او دا چه تر آذان وروسته د ټول وخت په هر یوه ساعت کښې د جماعت اجازه شته. او د وخت ټاکنه محض د آسانتیا لپاره دی تر څو چه لمونځ کوونکی په همدې وخت سره یو ځای شي. دا کار د دوی د خیالاتو تائیدوونکی نه دی.

**پوښتنه دا ده چه**:

۱ - آیا امام ته انتظار باید وشي او که نه؟ او څومره انتظار باید وشي؟

۲ - آیا په امام باندې د ګړی داسې پابندي چه دوه یا درې دقیقې هم و نه ځنډیږي د شریعت له مخې ضروري ده؟

۳ - کوم امام چه اکثره دوه یا څلور دقیقې ناوخته راځي هغه په کومې خبرې کښې احتیاط ضروري دی؟

۴ - کوم لمونځ کوونکي چه د امام په تاخیر باندې په جومات کښې شور او غوغا جوړوي د هغو څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

۵ - د نبي کریمﷺ په زمانه کښې او په قرونِ اولی کښې څه ډول عمل کیده؟

۶ - فقهاء کرام په دې مسئله کښې څه وائي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نبي اکرمﷺ په مبارکه زمانه او قرونِ اولی کښې همدارنګه د فقهاؤ رحمهم الله په دور کښې نه دُنیوي شغل زیات وو او نه ګړی وې. د دې لپاره د جماعت اصول په هغه کښې دا وو چه د وخت له داخلیدو وروسته به آذان کیده او تر آذان وروسته به چه کله لمونځ کوونکي ډیر سره را جمع شول نو جماعت به قائمیده.

په دې زمانه کښې یوې خوا ته په دُنیوي مشغولیتونو کښې مصروفیت د انهماک (محو کیدل) په درجه کښې دی او بلې خوا ته له دین څخه د غفلت او بې شوقي له مخې د ګړیو یا ساعتونو له سهولت څخه استفاده کول ضروري شوي دی. له دې امله نن صبا د حالاتو له مخې د ګړی له مخې د وخت ټاکنه او د امام لپاره د ټاکل شوي وخت پابندي ضروري ده. د نبي کریمﷺ او صحابهٔ کرامو رضوان الله تعالی علیهم اجمعین په زمانه کښې به د خلکو د اجتماع لحاظ کیده، او اوس چونکه د ګړی په ټاکل شوي وخت باندې لمونځ کوونکي سره یو ځای کیږي. له دې امله دا خبره هم د دې تقاضا کوي چه له ټاکلي وخت څخه تاخیر و نه شي. بر سیره پر دې د قرونِ اولی امامانو تنخواوې نه اخیستلې او د دې زمانې امام یو تنخواه لرونکی ملازم یا نوکر دی. له دې وجې هم په ده باندې د ټاکلي وخت پابندي لازمه ده. البته په لمونځ کوونکو باندې هم د لاندینیو خبرو خیال

ساتل ضروري دي.

۱ - که چیرته کله کله د بشریت د تقاضا له وجې امام څلوریخه دقیقې ناوخته شي نو د بې صبرۍ، چیغو او نارو په ځای له صبر او تحمل (برداشت) څخه کار واخلئ. او دا تاخیر په کوم عذر باندې محمول کړئ، امام ته له بد رد ویلو او پیغور څخه پرهیز وکړئ.

۲ - که چیرته امام همیشه د ناوخته راتلو عادي وي نو بیا ئې په نرمۍ سره د پوه کولو کوشش وکړئ.

۳ - که چیرته د پوهولو ترځنګ دامام عادت بدل نه شي نو د جومات منتظمین ئې بیا معزولولی شي لیکن په دې صورت کښې هم د امام په اړه بده وینا او د هغه غیبت هیڅکله جائز نه دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۷شوال ۱۳۹۵هجری

## وارثانو ته د برخې نه ورکوونکي امامت

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیان کرام په دې مسئله کښې چه یو سړی زید نومی وفات شو او په اولاد کښې ئې درې هلکان او یوه نجلۍ پاتې شول. نوموړی (زید) د پاکستان له جوړیدو څخه څو کاله وتلي وو چه فوت شوی وو. لیکن جائیداد ئې د خپل اولاد په نامه نه وو منتقل کړی، د پاکستان په جوړیدو کښې چه کله په شرعي توګه د وراثت تقسیمول منظور شو نو د متوفی زید جائیداد د هغه په اولاد باندې د تقسیمولو په وخت کښې ئې مشر زوی (خالد) وویل چه زمونږ خور هنده د وراثت حقداره نه ده، لکه څرنګه چه زمونږ پلار د پاکستان له جوړیدو څخه څو کاله مخکښې وفات شوی دی، په هغه وخت کښې نجلۍ د قانون له مخې د وراثت حقداره نه وه. نو په دې صورت کښې د هنده په نام جائیداد منتقل نه شو. اوس پوښتنه دا ده چه که چیرته په عدالت کښې دعوی وکړي نو د شریعت له مخې هنده خپله برخه اخیستلی شي او که نه؟ او خالد چا چه خپله خور له برخې څخه محرومه کړې ده د هغه شرعاً څه حکم دی؟ که چیرته د جومات امام وي نو په هغه پسې د لمونځ کولو څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هنده خپله برخه په هر صورت کښې اخیستلی شي. خالد د قرآني حکم د خلاف ورزي له وجې فاسق او ظالم دی. له دې امله امامت ئې مکروه تحریمي دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲محرم ۱۳۹۶هجری

## کوم امام چه د حروفو په صحیح مخارجو باندې قادر نه وي د هغه امامت

**سوال**: یو سړی ښه تلاوت نه کوي او څه حروف ئې هم نه صحیح کیږي. ځینې خلک وائي چه له امامت څخه باید معزول شي. هغه دا وائي چه ما چونکه نوي غاښونه لګولي دي نو ځکه د تارونو

له وجې مې آواز لږ غوندې دروند دی. باقې پاتې شوه د حروفو د نه صحیح کیدلو اشکال نو په دې کښې دی وائي چه زه ټول حروف صحیح ادا کوم. آیا د داسې سړي امامت صحیح دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته امام حروف له خپلو مخارجو څخه په صحیح توګه ادا کوي او نژدې اوریدونکي ټول حروف په ښه توګه صحیح کولی شي نو دا امام د امامت حقداره دی او باید چه پخپلې وظیفې باندې برقراره پاتې شي. او که چیرته د حروفو په طریقې سره له خپلو مخارجو څخه د ادا کولو قدرت و نه لري، که دا نه قدرت د نوي غابښونو له وجې وي یا کوم بل سبب وي او نژدې اوریدونکي ټول حروف په ښه ، صافه او واضحه توګه نه شي صحیح کولی نو د داسې سړي امامت صحیح نه دی.

قال فی شرح التنویر و لا غیر الالثغ به ای بالالثغ علی الاصح کما فی البحر عن المجتبی و حرر الحلبی و ابن الشحنه انه بعد بذل جهده دائماً حتماً کالأمی فلا یؤم الا مثله ولا تصح صلوته اذا امکنه الاقتداء بمن یحسنه او ترک جهده او وجد قدر الفرض مما لا لثغ فیه هذا هو الصحیح المختار فی حکم الالثغ و کذا من لا یقدر علی تلفظ حرف من الحروف او لا یقدر علی اخراج الفاء الا بتکرار. (ردالمحتار ج۱، ص۵۴۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ محرم ۱۳۹۶ هجری

## د بانک دنوکر یا ملازم امامت

**سوال**: د اوقافو د وزارت ملازمین امامان د کومو چې ډیرې له موټې څخه کم دي. همدارنګه د بانک د ملازمینو حفاظو او قراوو په همدې ډیرې لنډوونکي په اقتداء کښې لمونځونه کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا ډیره لنډوونکی په بانک کښې د ملازمت له وجې سود خوره هم دی، دا دواړه ګناهونه هر یو د فسق موجب دی. د دې لپاره د ده امامت مکروه تحریمی دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ صفر ۱۳۹۶ هجری

## حنبلي امام چه قصر و نه کړي نو د مقتدي لمونځ واجب الاعاده دی

**سوال**: په جماعت کښې یو عربي حنبلي وو. لمونځونه به ئې ورکول. مونږ هم مسافر وو او دی هم مسافر وو. یوه ورځ هغه وویل چه نن زه پوره لمونځ درکوم. ځکه چه زمونږ په مذهب کښې د قصر یواځې جواز دی او ضروري نه دی لکه د روژې غوندې. له دې امله زه نن خامخا پوره لمونځ درکوم. په هر حال هغه پوره لمونځ راکړ. آیا زمونږ لمونځونه ورپسې وشول او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په داسې امام پسې د لمانځه ادا کول جائز نه وو. قصر واجب دی، د قصر په نه کولو سره مقتدیان ګنهګاره شول. په دوی باندې توبه لازمه ده او د دې لمانځه بیرته راګرځول واجب دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ ربیع الاول ۱۳۹۶ هجری

## د داسې سړي امامت چه قضائي لمونځ ئې په ذمّې باندې وي

**سوال**: زید د ترتیب خاوند دی او په یوه جومات کښې امام دی. په ناڅاپي توګه ئې یو لمونځ قضا شو، د بل لمانځه د جماعت وخت راغی لیکن ده لا د مخکښیني لمانځه قضائي نه ده را ګرځولې د دې لپاره زید د همدې وخت لمونځ خلکو ته ورکړ او د نورو څلورو لمونځونو تر ورکولو وروسته ئې قضائي لمونځ وکړ. نو آیا په دې صورت کښې د مقتدیانو په لمونځونو کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې مقتدیان باید امام ته لومړی د قضائي لمانځه د را ګرځولو موقع ورکړي، یا نوموړي امام ته لازمه ده چه امامت و نه کړي، بلکه کوم بل څوک د امامت لپاره مخکښې کړي. او دی دې د قضائي لمانځه تر را ګرځولو وروسته په جماعت کښې شامل شي. او که چیرته سره له دې زید لمونځ ورکړ نو د ده د لمانځه غوندې د مقتدیانو لمونځونه هم موقوف دي. که چیرته د قضاء شوي لمانځه څخه مخکښې د داسې پنځو لمونځونو وختونه تیر شول چه د هغو د ادا کولو په وخت کښې قضائي لمونځ ور په زړه وو نو د ټولو لمونځونه صحیح شول.

قال فی التنویر و تذکر فائتة علیه او علی امامه و هو صاحب ترتیب، و قال ابن عابدین رحمة الله علیه ای تذکر المصلّی فائتة علیه ان کان منفرداً او اماماً او علی امامه ان کان مقتدیاً و قوله و هو ای من علیه الفائتة مطلقاً و فی السراج ثم هٰذه الصلوٰة لا تبطل قطعاً عند ابی حنیفة رحمة الله علیه بل تبقی موقوفة ان صلّی بعدها خمس صلوات و هو یذکر الفائتة تنقلب جائزة. (ردالمحتار ج۱، ص۵۶۹)

په دې عبارت کښې د امام د یادونې په صورت کښې د مقتدیانو د لمانځه کوم جلا او بیل حکم نه دی بیان شوی. له دې څخه ثابته شوه چه د امام غوندې د مقتدیانو لمونځ هم بالآخره صحیح کیږي. د متابعت د قانون مقتضیٰ هم همدغه ده.

لیکن امام باید هیڅکله داسې و نه کړي ځکه چه که چیرته په دې وخت کښې امام یا له مقتدیانو څخه څوک مړ شي نو د قضائي د پاتې کیدلو عذاب به په امام باندې وي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ شوال ۱۳۹۸ هجری

## د کوم امام په ذمې باندې چه د وتر قضائي پاتې وي د هغه امامت

**سوال** زید په یوه جومات کښې امام دی. د شپې په آخره برخه کښې د نه را ویښیدو له وجې وتر ترې قضا شو او داسې وخت را ویښ شو چه د سهار د جماعت وخت نژدې وو. د دې لپاره ئې د وترو د قضائي کرخولو پرته ئې د سهار لمونځ ورکړ. دویمه ورځ ئې د اشراق په وخت کښې د وترو قضائي را وګرځوله. نو آیا د مقتدیانو لمونځونه صحیح شول او که نه؟ که چیرته په دویمه ورځ د سهار تر لمانځه مخکښې د وترو قضائي وګرځوي نو بیا ئې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د امام غوندې د مقتدیانو لمونځونه هم موقوف وو. د وترو له قضائي څخه مخکښې د شپږو لمونځونو په تیریدو سره د ټولو لمونځونه صحیح شول په دې شرط چه د دغو لمونځونو د ادا کولو په وخت کښې ئې قضائي په یاد وي که چیرته ئې دویمه ورځ د لمر تر ختلو مخکښې د وترو قضائي کړې وای نو د امام او مقتدي د ټولو په دې منځ کښې ادا شوي لمونځونه باطلیدلی

**خبرداري** امام ته داسې کول جائز نه دي که چیرته په دې دوران کښې امام یا کوم مقتدي مړ شي نو د قضائي لمونځونو د پاتې کیدلو عذاب به په امام باندې وي.

فقط والله تعالیٰ اعلم یوم العاشوراء ۱۴۰۰ هجری

## د مقتدي لپاره د امام د تکبیر تحریمه تر ختمیدو مخکښې د تکبیر ویلو حکم

**سوال** زید له امام سره تکبیر تحریمه شروع کړ لیکن د امام له تکبیر څخه مخکښې ئې تکبیر پای ته ورساوه. آیا لمونځ ئې وشو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** د زید لمونځ و نه شو ځکه چه د تکبیر تحریمه تر پوره کیدو وروسته لمونځ شروع کیږي. نو چاچه د امام د تکبیر تحریمه تر پوره کیدو مخکښې خپل تکبیر پوره کړ د هغه له امام څخه مخکښې لمونځ شروع شو. له دې امله د ده اقتداء نه صحیح کیږي که چیرته په همدې تحریمه باندې یو اخې لمونځ وکړي نو هغه هم نه کیږي

قال فی شرح التنویر ولا یصیر شارعاً بالمبتدأ فقط کالله اکبر وبأکبر فقط هو المختار فلو قال الله مع الامام واکبر قبله او ادرك الامام راکعاً فقال الله قائماً واکبر راکعاً لم یصح فی الاصح. (رد المحتار ج ۱، ص ۴۴۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ ذی قعده ۱۳۹۸ هجری

## د یو چا لپاره په جماعت کښې تاخیر کول جائز نه دي

**سوال** اکثره ناپوهه متولیان (د جومات متصرفین) په عالم امام باندې حکومت کوي مثلاً د

لمانځه په تیاکل شوي وختونو کښې چه کله امام په لمانځه باندې د شروع کولو اراده کوي نو متولي وائي چه امام صاحب! لږ ودریږه فلانی نه دی راغلی. آیا دا انتظار جائز دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لمونځ کوونکو تر یو ځای کیدو وروسته د کوم چا په انتظار کښې د جماعت ځنډول جائز نه دي. البته که چیرته کوم سړی شریر (بد چلن) وي او له هغه خطر وي نو د هغه له شر څخه د بچ کیدو لپاره تاخیر کیدلی شي.

قال ابن عابدین رحمه الله فی اذان البزازیة لو انتظر الاقامة لیدرك الناس الجماعة یجوز ولواحد بعد الاجتماع لا الا اذا کان داعرا شریرا آه.(ردالمحتار ج۱،ص۳۶۲) فقط والله تعالی اعلم ۲۹ صفر ۱۳۸۸ هجری

## هغه فصل (جلا والی) چه د اقتداء لپاره مانع دی

**سوال** : څه فرمائي د دي علماء کرام په دې مسئله کښې چه د عیدګاه د احاطې په دننه او د باندې په صفونو کښې څومره فاصله د اقتداء لپاره مانع نه ده. د عیدګاه د احاطې څخه د باندې څلور خوا ته سړکونه دي. خلک سړکونه پریږدي کله کله له ۱۵ فټ څخه تر ۲۵ فټه پورې په فاصله کښې صفونه جوړوي. په داسې د دغو خلکو لمونځونه کیږي؟ که چیرته نه کیږي نو د صحیح صفونو جوړولو طریقه څه ده؟ د احاطي په دننه او د باندې د صفونو د جوړولو صحیح طریقه را ولیږئ تر څو چه د چاپولو په صورت کښې د عامو خلکو د معلوماتو لپاره تقسیم کړی شي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د عیدګاه د احاطې په دننه د صفونو په منځ کښې فاصله (جلاوالی) د اقتداء د صحت مانع نه دی اګر که څومره زیاته وي. لیکن پرته له ضرورت څخه په منځ کښې خالي ځای پریښودل مکروه تحریمي دی. سره له دې لمونځ کیږي، البته که چیرته په عیدګاه کښې کوم بیاله وي نو هغه به د اقتداء مانع وي چه تفصیل ئې له عیدګاه څخه د باندې د صف جوړولو په بیان کښې راځي.

له عیدګاه څخه د باندې د اقتداء د صحت لپاره دا شرط دی چه د سجدې له ځای څخه د دوه صفونو په اندازه (تقریباً دوه نیم متره) خالي ځای نه وي. او دومره لویه لاره په منځ کښې نه وي چه په هغې باندې غواوې، ګاډي یا په سامان بار شوی خر تیریدلی شي. او د خالي اوښ د تیریدو په برابر سورورِه کومه بیاله هم نه وي. که چیرته په منځ کښې د دوه صفونو ځای خالي پاتې شي، یا بیاله یا سړک په منځ کښې راشي چه ډک نه شي کړی نو له دې څخه د وروسته دریدونکو صفونو اقتداء به صحیح نه وي. له دې امله د دوی د اختر لمونځ نه صحیح کیږي.

قال العلاء رحمه الله فی موانع الاقتداء او طریق تجری فیه عجلة آلة یجرها الثور او نهر تجری فیه السفن ولو

زورقا ولو فی المسجد او خلاء ای فضاء فی الصحراء او فی مسجد کبیر جداً کمسجد القدس یسع صفین فا کثر الا اذا اتصلت الصفوف. و فی الشامیة (قوله او طریق) ای نافذ ابو السعود عن شیخه ط قلت و یفهم ذلك من التعبیر عنه فی عدة کتب بالطریق العام و فی التاتارخانیة الطریق فی مسجد الرباط و الخان لا یمنع لانه لیس بطریق عام (قوله تجری فیه عجلة) ای تمر و به عبر فی بعض النسخ و العجلة بفتحتین و فی الدرر هو الذی تجری فیه العجلة و الاوقار آه و هو جمع وقر بالقاف قال فی المغرب و اکثر استعماله فی حمل البغل او الحمار کالوسق فی حمل البعیر (قوله ولو زورقاً) بتقدیم الزاء السفینة الصغیرة کما فی القاموس و فی الملتقط اذا کان کاضیق الطریق یمنع و ان بحیث لا یکون طریق مثله لا یمنع سواء کان فیه ماء او لا و قال ابو یوسف رحمه الله النهر الذی یمشی فی بطنه جمل و فیه ماء یمنع و ان کان یابساً و اتصلت به الصفوف جاز آه. اسمٰعیل (قوله ولو فی المسجد) صرح به فی الدرر و الخانیة و غیرهما (قوله او فی مسجد کبیر جداً الخ) قال فی الامداد و الفاصل فی مصلی العید لا یمنع و ان کثر و اختلف فی المتخذ لصلوٰة الجنازة و فی النوازل جعله کالمسجد و المسجد و ان کبر لا یمنع الفاصل الا فی الجامع القدیم بخوارزم فان ربعه کان علی اربعة آلاف اسطوانة و جامع القدس الشریف اعنی ما یشتمل علی المساجد الثلاثة الاقصی و الصخرة و البیضاء کذا فی البزازیة و مثله فی شرح المنیة. (ردالمحتار ج۱، ص۵۴۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی الحجة ۱۳۹۶ هجری

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال** : د جومات په صحن کښې حوض دی. د دې حوض شا ته يو څوک ودريده او په امام پسې ئې اقتداء وکړه نو لمونځ ئې کيږي او که نه؟ په جومات کښې يا له جومات څخه د باندې د صفونو تر منځ چه څومره خالي ځای وي نو اقتداء نه صحيح کيږي؟ په تفصيل سره ئې بيان کړئ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته حوض ۱۰۰ لاسه - ۲۲۵ مربع فټ - ۲۰/۹ مربع متر يا له دې څخه زيات وي نو د حوض شا ته د دريدونکو خلکو اقتداء نه صحيح کيږي. البته که چيرته د حوض په ټولو خواوو کښې له يوې خوا سره د شا ته دريدونکو خلکو صفونه سره لګيدلي وي نو اقتداء صحيح ده.

جومات. عيدګاه. د جنازې ځای. له ۲۷۰۰ مربع فټ - ۳۳۴/۴۵۱ مربع متر څخه وړه کوټه يا کمره او تر دې څخه کوچنی صحن. په دغو ټولو ځايونو کښې چه د صفونو تر منځ څومره لويه فاصله وي نو اقتداء صحيح ده. ليکن پرته له ضرورت څخه خالي ځای پريښودل مکروه تحريمي

دی. لیکن سره له دې لمونځ کیږي. البته که چیرته په منځ کښې ۲۰/۹ مربعه متره حوض یا دومره لویه بیاله چه د هغه په منځ کښې اوبۀ تلی شي نو شا ته ئې اقتداء صحیح نه ده لیکن دا چه که چیرته له یوې خوا څخه صفونه سره لګیدلي وي نو اقتداء صحیح کیږي.

په خلاص میدان ۳۳۴/۴۵۱ مربع متر یا تر دې لوئې کوټې یا لوی صحن کښې د اقتداء د صحت لپاره دا شرط دی چه په منځ کښې لاندیني خنډونه نه وي.

۱ - دومره لویه لار چه په هغې کښې غوا، ګاډي یا له سامان څخه بار خر تیریدلی شي. البته که چیرته دا لاره عامه نه وي بلکه له کومې خوا څخه بنده وي نو د اقتداء د صحت لپاره مانع نه ده.

۲ - ۲۰/۹ مربع متر حوض یا دومره لویه بیاله چه د هغه په اوږدوالي کښې اوبۀ تیریدلی شي.

۳ - د دوه صفونو په اندازه (تقریباً ۸ فټه - ۲/۴۴ متر) خالي ځای.

دا درې واړه خنډونه په دې صورت کښې دي چه له هیڅ یوې خوا څخه صفونه سره لګیدلي نه وي که چیرته له کومې خوا څخه د دغو خنډونو تر شا پورې صفونه سره لګیدلي وي نو اقتداء صحیح کیږي.

**قال فی شرح التنویر و یمنع من الاقتداء طریق تجری فیه عجلة آلة یجرها الثور او نهر تجری فیه السفن ولو زورقا ولو فی المسجد او خلاء ای فضاء فی الصحراء او فی مسجد کبیر جداً کمسجد القدس یسع صفین فاکثر الا اذا اتصلت الصفوف. وفی الشامیة (قوله او طریق) ای نافذ ابو السعود عن شیخه ط قلت و یفهم ذلک من التعبیر عنه فی عدة کتب بالطریق العام و فی التاتارخانیة الطریق فی مسجد الرباط و الخان لا یمنع لانه لیس بطریق عام (قوله تجری فیه عجلة) ای تمر و به عبر فی بعض النسخ و العجلة بفتحتین و فی الدرر هو الذی تجری فیه العجلة و الاوقار آه وهو جمع وقر بالقاف قال فی المغرب و اکثر استعماله فی حمل البغل او الحمار کالوسق فی حمل البعیر. (قوله او نهر تجری فیه السفن) ای یمکن ذلک و مثله یقال فی قوله تجر فیه عجلة ط. و اما البرکة او الحوض فان کان بحال لو وقعت النجاسة فی جانب تنجس الجانب الأخر لا یمنع و لا منع کذا ذکره الصفار اسمعیل عن المحیط. و حاصله ان الحوض الکبیر المذکور فی کتاب الطهارة یمنع ای ما لم تتصل الصفوف حوله کما یأتی (قوله ولو زورقاً) بتقدیم الزاء السفینة الصغیرة کما فی القاموس و فی الملتقط اذا کان کاضیق الطریق یمنع و ان بحیث لا یکون طریق مثله لا یمنع سواء کان فیه ماء او لا و قال ابو یوسف رحمة الله علیه النهر الذی یمشی فی بطنه جمل و فیه ماء یمنع و ان کان یابساً و اتصلت به الصفوف جاز آه. اسمعیل (قوله و لو فی المسجد) صرح به فی الدرر و الخانیة و غیرهما (قوله او فی مسجد کبیر جداً الخ) قال فی الامداد و الفاصل فی مصلی العید لا یمنع و ان کثر و اختلف فی المتخذ لصلوة الجنازة و فی النوازل جعله کالمسجد و المسجد و ان کبر لا یمنع الفاصل الا فی الجامع القدیم**

بخوارزم فان ربعه كان على اربعة آلاف اسطوانة وجامع القدس الشريف اعني ما يشتمل على المساجد الثلاثة الاقصى و الصخرة و البيضاء كذا في البزازية و مثله في شرح المنية. و اما قوله في الدرر لا يمنع من الاقتداء الفضاء الواسع في المسجد وقيل يمنع آه فانه و ان افاد ان المعتمد عدم المنع لكنه محمول على غير المسجد الكبير جداً كجامع خوارزم و القدس بدليل ما ذكرناه و كون الراجح عدم المنع مطلقاً يتوقف على نقل صريح فافهم (تتمه) في القهستاني البيت كالصحراء والاصح انه كالمسجد و لهذا يجوز الاقتداء فيه بلا اتصال الصفوف كما في المنية آه ولم يذكر حكم الدار فليراجع لكن ظاهر التقييد بالصحراء و المسجد الكبير جداً ان الدار كالبيت تأمل. ثم رأيت في حاشية المدني عن جواهر الفتاوى ان قاضي خان سئل عن ذلك فقال اختلفوا فيه فقدره بعضهم بستين ذراعاً و بعضهم قال ان كانت اربعين ذراعاً فهي كبيرة و الا فصغيرة هذا هو المختار آه. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۷) وفي المتانة معزيا لجواهر الفتاوى سئل قاضيخان رحمه الله عليه عن الدار ان له حكم المسجد ام حكم الصحراء في حكم اتحاد المكان واختلافه؛ قال اختلفوا فيه بعضهم قالوا ان كان ستين ذراعاً في ستين ذراعاً بذراع شاهجهان فهي كبيرة والا فصغيرة وبعضهم قالوا ان كان اربعين ذراعاً في اربعين ذراعاً فهي كبيرة والا فصغيرة هذا هو المختار. هكذا افتاوه. (المتانة في مرمة الخزانة ص۱۹۱)

فقط والله تعالى اعلم ٤ جمادى الآخر ۱۳۹۹ هجرى

## د استخلاف (خليفه نيولو) شرائط

**سوال**: كه چيرته د امام اودس مات شي او د لمانځه لپاره خليفه جوړول غواړي نو د دې څه صورت دى؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د استخلاف درې شرطونه دي:

۱ - د بناء د صحت هغه ټول شرائط چه تفصيل ئې په پورتنى مسئله كښې بيان شو (په تبويب كښې دا مسئله د لمانځه په مفسدات كښې "د بناء د صحت شرائط" په عنوان سره راغلې ده) البته د خليفه تر ټاكل كيدو وروسته نور شرائط يواځې د امام د بناء لپاره دي. د خليفه او مقتديانو د لمانځه لپاره نه دي. كه چيرته تر دې وروسته امام امام كوم كار داسې وكړ چه د لمانځه منافي يا تكرو و نو د خليفه او مقتديانو لمونځ صحيح كيږي.

۲ - كه چيرته پ جومات يا ۳۲۰۰ مربع فټ - ۲۲۴/۴۵۱ مربع متر څخه وړه كوټه يا تر دې څخه په كوچني صحن (سرائې) كښې جماعت كيده نو د امام به له دې ځاى څخه تر وتلو مخكښې خليفه ټاكل كيږي او كه چيرته په خلاصه فضا يا د مذكوره رقبې په اندازه يا له دې څخه د لويې

کوټې يا لوی صحن کښې وي نو د قبلې په طرف کښې له ستره څخه، که ستره نه وي نو د سجدې له ځای څخه تر تيريدو مخکښې او په پاتې دريو خواوو کښې له صفونو څخه تر تيريدو مخکښې خليفه ټاکل کيږي.

۳ - په خليفه کښې د امامت صلاحيت وي، يعنې ښځه يا نابالغ هلک نه وي.

د خليفه لپاره دا شرط نه دی چه هغه به يواځې امام ټاکي. بلکه که چيرته مقتديانو يو چا لره مخکښې کړ يا کوم سړی پخپله خليفه جوړ شي نو بيا هم جائز دي. بهتره دا ده چه امام پخپله يو چا لره خليفه وټاکي. مسبوق هم خليفه جوړيدلی شي. که چيرته خليفه ته پاتې رکعتونه معلوم نه وي نو امام دې د ګوتو په اشارې سره ورته ووائي، که قرائت پاتې وي نو په خوله دې لاس کښيږدي او اشاره دې ورته وکړي. که سورهٔ فاتحه پاتې وه نو له کوم ځايه ئې چه فاتحه پريښې وي له هغه ځای څخه دې مخکښې يو يا دوه کلمې په لوړ آواز سره ووائي، د رکوع لپاره دې په زنګنونو. د سجدې لپاره دې په تندي. د سجدهٔ تلاوت لپاره دې په تندي او ژبې. د سجدهٔ سهو لپاره دې په سينه باندې لاس کښيږدي او خليفه دې پوه کړي. بيا له اوداسه څخه تر فارغيدو پورې که چيرته جماعت پای ته نه وو رسيدلی نو په خليفه پسې دې اقتداء وکړي. او که رسيدلی وو نو يواځې دې خپل لمونځ پوره کړي. د اقتداء په صورت کښې به پاتې شوي رکنونه مخکښې ادا کړي او بيا دې له امام سره شامل شي.

که چيرته اوبو د جومات په داخل کښې وي نو د خليفه د جوړولو ضرورت نشته. امام دې اودس وکړي او بيا دې خپل ځای ته راشي امامت دې وکړي. مقتديان دې تر دې وخته انتظار ورته وکړي. ليکن په دې صورت کښې هم استخلاف جائز دی. که چيرته امام د خليفه د يوه رکن تر ادا کولو مخکښې اودس وکړ او راغی نو خليفه دې بيرته شا ته شي او اصل امام دې امامت وکړي. په دې شرط چه امام له جومات څخه وتلی نه وي. که چيرته اوبوله جومات څخه د باندې وي نو بهتره دا ده چه يو څوک خليفه وټاکي او پخپله دې له سره لمونځ وکړي. البته که چيرته وخت تنګ وي نو استخلاف او بناء واجبه ده. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ شعبان ۱۳۸۸ هجری

## د امام لپاره د محراب په منځ کښې د دريدلو حکم

**سوال**: د امام د محراب په منځ کښې په دريدلو سره لمونځ مکروه کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: امام دې پښې له محراب څخه د باندې ږدي. پرته له عذر څخه په محراب کښې دننه د پښو کيښودل مکروه تنزيهي دي. د کراهت په وجه کښې دوه قولونه دي:

۱ - په محراب کښې په دريدو سره د دواړو خواوو په مقتديانو باندې د امام حالت مشتبه کيږي. له دې امله که چيرته اشتباه نه پيدا کيدله نو په دې صورت کښې هيڅ کراهت نشته وهو

مختار ابن همام وصاحب الحلیة رحمهما الله تعالیٰ.

۲ . له اهلِ کتابو سره د تشبّه له وجې په دې بناء باندې په دواړو خواوو کښې د مقتدیانو لپاره د هیڅ ډول اشتباه د نه لویدو تر څنګ هم د امام په محراب کښې دریدل مکروه تنزیهي دی و هو قول الاکثر. البته د ځای د تنګي او داسې نورو عذرونو له وجې وي نو په اتفاق سره هیڅ کراهت پکښې نشته

قال العلاء رحمة الله علیه فی مکروهات الصلوٰة وقیام الامام فی المحراب لاسجوده فیه وقدماه خارجه لان العبرة للقدم مطلقاً وان لم یشتبه حال الامام ان علل بالتشبّه ولا الاشتباه فلا اشتباه فی نفی الکراهة (الی قوله) و هذا کله عند عدم العذر کجمعة و عید فلو قاموا علی الرفوف و الامام علی الارض او فی المحراب لضیق المکان لم یکره. وقال ابن عابدین رحمة الله علیه صرّح محمد رحمة الله علیه فی الجامع الصغیر بالکراهة ولم یفصل فاختلف المشائخ فی سببها فقیل کونه یصیر ممتازاً عنهم فی المکان لانّ المحراب فیمعنی بیت آخر و ذٰلک منع اهل الکتاب واقتصر علیه فی الهدایة واختاره الامام السرخسی وقال انه الاوجه وقیل اشتباه حاله علی من فی یمینه ویساره فعلی الاوّل یکره مطلقاً وعلی الثانی لا یکره عند عدم الاشتباه وایّد الثانی فی الفتح بانّ امتیاز الامام فی المکان مطلوب وتقدمه واجب وغایته اتفاق الملتین فی ذٰلک وارتضاه فی الحلیة وایده لکن نازعه فی البحر. (الی قوله) وفی حاشیة البحر للرملی الذی یظهر من کلامهم انها کراهة تنزیه تأمل آه. (رد المحتار ج ۱، ص ۶۰۴)

فقط والله اعلم — ۲۹ جمادی الاولی ۱۳۹۲ هجری

## د کرفیو (حکومتي بندیز) په حالت کښې جومات ته تلل

**سوال**: څه فرمائي علماء کرام چه د کرفیو په وختونو کښې خلک جوماتونو ته د جماعت د لمانځه لپاره باید لاړ شي او که په کورونو کښې لمونځونه ادا کولی شي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته فوځیانو د لمانځه لپاره جومات ته خلک له تللو څخه منع کول نو جومات ته تلل ضروري نه دي، په کور کښې دې له جماعت سره لمونځ ادا کړي. د قانون خلاف ورزي او خپل ځان او عزت په خطر کښې اچول جائز نه دي

فقط والله اعلم — ۷ جمادی الاولی ۱۳۹۷ هجری

## د امام لپاره تحمید (ربنا ولک الحمد) ویل افضل دي

**سوال**: امام دې تر (سمع الله لمن حمده) وروسته (ربنا ولک الحمد) هم وائي او که (ربنا ولک الحمد) به

يو اخې مقتدي وائي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام د تحميد د ويلو په اړه دواړه قولونه راغلي دي ليکن ويل ئې ورته بهتر دي.

قال فی شرح التنویر فی سنن الصلوٰة و التسمیع للامام و التحمید لغیره و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله لغیره) ای لمؤتم و منفرد لکن سیأتی انّ المعتمد ان المنفرد یجمع بین التسمیع و التحمید و کذا الامام عندهما وهو روایة عن الامام جزم بها الشرنبلالی فی مقدمته. (ردالمحتار ج۱،ص۴۲۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳۰ جمادی الأخر ۱۳۹۷ھ

## د امام لپاره آمين ويل سنت دي

**سوال**: امام به تر سورۀ فاتحه وروسته آمين وائي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام او مقتدي دواړو لپاره آمين ويل سنت دي. قال فی التنویر و امّن الامام سرّاً کمأموم و منفرد وفی الشامیة هو سنّة للحدیث الأتی المتفق علیه کما فی شرح المنیة وغیره.

(ردالمحتار ج۱،ص۴۵۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۳۰ جمادی الآخر ۱۳۹۷ھ

## د "السلام" د لفظ له امام څخه مخکښې پای ته رسول مکروه دي

**سوال**: آيا مقتدي به د امام د "السلام" د لفظ له ويلو سره به فوراً سلام ګرځوي او که څه ځنډ وروسته؟ د جوماتونو اکثره امامان د "الله" لفظ ډير زيات اوږدوي. آيا مقتدي به ئې همدومره اوږدوي او هغوی دواړو خواوو ته د امام له سلام څخه مخکښې د سلام الفاظ پای ته رسولی شي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په اوّل سلام کښې د "السلام" د لفظ په ويلو سره لمونځ پای ته رسيږي. د دې لپاره د لومړي سلام د ميم ټکی له امام څخه مخکښې ويل مکروه دي. له دې وروسته د نور سلام د مخکښې ويلو د کراهت کومه وجه نه معلوميږي

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳۰ جمادی الآخر ۹۷ھجری

## د ښځو جماعت مکروه تحريمي دی

**سوال**: په بهشتي زيور کښې مې ويلي دي چه په ښځې پسې اقتداء صحيح ده او تر ننه پورې ما دا اوريدلي وو چه ښځه امام نه شي جوړيدلی. د دې تحقيق بيان کړئ چه آيا ښځه په کوم خاص لمانځه کښې امام جوړيدلی شي او که نه؟ له وضاحت سره ئې بيان کړئ تر څو چه مسئله مو په

ذهن کښې کښيني بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ښځه د ښځو امام جوړيدلی شي، ليکن جماعت ئې مکروه تحريمي دی

قال فی العلائية ويکره تحريماً جماعة النساء ولو فی التراويح فی غير صلوة الجنازة (الی قوله) فان فعلن تقف الامام وسطهن فلو تقدمت اثمت، وفی الشامية (قوله فلو تقدمت اثمت) افاد ان وقوفها وسطهن واجب کما صرح به فی الفتح و ان الصلوة صحيحة و انها اذا توسطت لا تزول الکراهة و انما ارشدوا الی التوسط لانه اقل کراهية من التقدم کما فی السراج بحر. (ردالمحتار ج۱، ص۵۲۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم　　　غرة محرم ۱۳۹۸ھ

## امام د سهار په لمانځه کښې د دُعاء قنوت د ويلو په ځای غلی پاتې شو

**سوال**: زما يو ملګری حنفي دی. په جومات کښې امام شافعي دی. خلک هم اکثره شافعيان دي. د سهار په لمانځه کښې د امام د غير حاضري له وجې جماعت همدې حنفي ملګري ورکړ نو په دويم رکعت کښې خو د شافعي امام دُعاء نه کوي. ليکن تر رکوع وروسته د مقتديانو لپاره دريږي او انتظار کوي. آيا دا صحيح ده او که نه او زمونږ لمونځونه کوم چه په ده پسې مو کړي دي شوي دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته دی غلی نه دريږي بلکه کومه دُعاء وائي نو لمونځ کيږي. د غلي اوسيدو په صورت کښې د ده هم او د مقتديانو لمونځ هم واجب الاعاده دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم　　　۲۲ محرم ۹۸ هجری

## په مسافر باندې دمقيم امام په اقتداء کښې څلور رکعتونه فرض دي

**سوال**: مسافر مقتدي په مقيم امام پسې خو څلور رکعته ادا کوي. او په ده باندې دوه رکعتونه فرض دي ليکن چه کله امام د څلورو رکعتونو نيت کوي ځکه چه د مقتدي نيت د امام د نيت تابع وي نو آيا د خدای پاک سفري حکم يا رعايت ماتيږي او که پخپل حال پاتې کيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام د تابع والي له وجې په مسافر باندې هم څلور رکعته فرض کيږي

فقط والله تعالیٰ اعلم　　　۲ صفر ۱۳۹۸ھ

## د راتلونکو سړی لپاره د قرائت يا رکوع د اوږدولو حکم

**سوال**: که چيرته امام د لمونځ کوونکو د راتلو له وجې قرائت يا رکوع اوږد کړي تر څو چه

لمونځ کوونکی په رکوع کښې شامل شي نو آيا ګنهګاريږي او که نه؟ په شامي کښې دي چه فا لحاصل ان التأخير القليل لاعانة اهل الخير غير مكروه الخ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته امام کوم لمونځ کوونکي لره وپيژانده او د هغه په خاطر ئې قرائت يا رکوع اوږد کړ نو مکروه تحريمي دی. البته پرته له پيژندلو په اوږدوالي کښې کوم کراهت نشته

قال ارح التنوير رحمه الله عليه و كره تحريماً اطالة ركوع او قراءة لادراك الجائى اى ان عرفه والأفلا بأس به ولو اراد التقريب الى الله تعالىٰ لم يكره اتفاقاً لكنه نادر وتسمى مسألة الرياء فينبغي التحرز عنها. (ردالمحتار ج۱، ص۳۶۲) فقط والله تعالىٰ اعلم ۶ صفر ۱۳۹۸ هـ

## د ځای د تنګوالی له وجې د امام لپاره د صف په منځ کښې د دريدلو حکم

**سوال** : د هجوم له وجې که چيرته د صفونو توازن قائم نه وي، امام او مقتدي په يو برابر سره ودريږي. يعني کوچنی جومات لوئيږي چه مخکښينی جومات ئې يواځې ښی خوا ته راغلی. او د موجوده جومات عين محراب ته مخامخ يواځې امام خپل ښي او کيڼ طرف ته دوه دوه کسان ودروي اوجماعت وکړي کوم چه په اوس وخت کښې خارجي ځای د جومات د پوړيو لاره د. په داسې صورت کښې د جماعت څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : بې له ضرورته داسې کول مکروه دي ليکن د ځای د تنګوالي له وجې که چيرته وشي نو له کراهت پرته جائز دي. فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۲ ذوالحجة ۹۷ هجری

## د ماسپښين، ماښام او ماسخوتن نه وروسته د امام مقتديانو ته مخ اړول د سنتو خلاف دی

**سوال** : دلته ډير عالمان اوسيږي کوم چه د ماسپښين، ماښام او ماسخوتن تر فرضو وروسته مقتديانو ته مخ اړوي او دعاء کوي. دا کار څنګه دی؟ بينوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: د سنتو خلاف دی. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۹ ذی القعده ۹۸ هجری

## د نورو خلکو په لمانځه باندې د راوستو په غرض د جومات د جماعت پريښودلو حکم

**سوال**: زمونږ د کالج (پوهنتون) جومات سږ کال په رمضان المبارک کښې د پوره جوړيدو نه

وروسته لمونځونه پکښې شروع شول له دې جومات څخه مخکښې مونږ په هاسټل (لیلیه) کښې یوه کوټه د لمانځه لپاره مخصوصه کړې وه او هلته مو د جماعت لمونځونه کول. ما به چه کومو هلکانو د سهار لمونځونه کول په باقاعده توګه مې له خوبه را ویښول. چه کله جومات جوړ شو نو ما جومات تلل شروع کړل او د لیلیې د هلکانو را پورته کول مې پریښودل. همدارنګه مې د لمانځه په دې ځای کښې د هر لمانځه لپاره آذان کاوه. تقریباً په سلو کښې شپیته ۲۰ کسانو لمونځ کاوه. زما هلته جومات ته د تګ له وجې ځینې هلکان په لمانځه کښې سُست شول او یو نیم لمونځونه ئې پریښودل. هغه هلکان دې جومات ته نه راتلل او دا به ئې ویل چه څوک دومره لرې تللی شي. او بیا ئې دا د لمانځه ځای (کوټه) هم جومات ته د منتقل کولو اجازه نه ورکوي. ظاهره خبره ده چه د لمانځه لپاره په ټاکل شوې کوټې کښې د جومات ثواب نه حاصلیږي. اوس ستاسو له حضور څخه دا پوښتنه ده چه آیا زه بیا د لمانځه په هغې کوټې کښې آذان ورکول، د هلکانو را پورته کول شروع کړم او د جومات ثواب پریږدم او که په جومات کښې له پابندۍ سره لمونځونه وکړم او د هلکانو پروا و نه ساتم؟ آیا دلته د جماعت او جومات ثواب حاصلیږي؟ چه کله زمونږ سبقونه پای ته ورسیږي او لاړ شو نو دا د لمانځه عارضي ځای هم ختمیږي. دا شی مې په ذهن کښې پاتې شوی دی چه هلکان جومات ته په تلو سره د پنځه وخته لمانځه لپاره تیار نه دي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تاسو په جومات کښې خپل لمونځ کوئ، د خپل وس او طاقت مطابق نورو ته هم جومات ته د تلو تلقین او تبلیغ کوئ او د عادت مطابق د لمانځه لپاره ئې پورته کوه. د دې تر څنګ که چیرته څوک نه ځي نو د هغه فکر مه کوئ.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ صفر ۱۳۹۹هـ

## د شافعي امام په اقتداء کښې رفع یدین مه کوئ

**سوال**: زید د مذهب له مخې حنفي دی. هغه د جماعت لمونځ په یوه داسې امام پسې کوي کوم چه شافعي یا حنبلي دی. له دې امله زید نه آمین په زوره وائي او نه رفع یدین کوي. چونکه دا خو د امام اتباع یا تقلید نه دی نو په داسې صورت کښې د زید لمونځ صحیح شو او که نه؟ او همدارنګه که چیرته شافعي یا حنبلي په حنفي امام پسې لمونځ وکړي او هغوی د امام د اتباع په خلاف رفع یدین وکړي او آمین په زوره ووائي نو د دې څه صورت دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دغو امورو کښې د امام متابعت لازم نه دی. لهذا د حنفي لمونځ په شافعي پسې او د شافعي لمونځ په حنفي پسې صحیح دی. حنفیان دې رفع یدین نه کوي.

قال العلاء رحمه الله تعالیٰ ولو زاد تابعه الی ستة عشر لانه مأثور وفی الشامیة (قوله ولو زاد تابعه الخ) لانه تبع لامامه فتجب علیه متابعته وترك رأیه برأی الامام لقوله علیه الصلوة والسلام انما جعل الامام لیؤتم به

فلا تختلفوا عليه فما لم يظهر خطؤه بيقين كان اتباعه واجباً ولا يظهر الخطاء في المجتهدات فاما اذا خرج عن اقوال الصحابة فقد ظهر خطؤه بيقين فلا يلزمه اتباعه فلهذا لو اقتدى بمن يرفع يديه عند الركوع او بمن يقنت في الفجر او بمن يرى تكبيرات الجنازة خمساً لا يتابعه لظهور خطئه بيقين لان ذلك كله منسوخ. بدائع.

(رد المحتار ج۱، ص۴۸۰) فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۷ صفر ۱۳۹۹ھ

## د مقتدي د دريو تسبيحاتو تر پوره کولو مخکښې د امام د پورته کيدلو حکم

**سوال** څه فرمائي د دين علماء کرام او د شرع متين مفتيان کرام په دې مسئله کښې چه مقتدي امام لره په رکوع يا سجدې کښې پيدا کړ. تر اوسه پورې هغه لا درې تسبيحات يا ئې هيڅ نه دي ويلي چه امام ودريده. نو اوس مقتدي څه بايد وکړي. درې تسبيحات پوره کړي او که د امام متابعت وکړي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د يوې تسبيح په اندازه په رکوع او سجده کښې پاتې کيدل واجب دي او د دريو تسبيحاتو په اندازه سنت دي. له دې امله د وجوب په اندازه يعنې د يوې تسبيح د ويلو په اندازه تر پاتې کيدلو وروسته د امام متابعت کول واجب دي.

قال في العلائية واعلم انه مما يبتنى على لزوم المتابعة في الاركان انه لو رفع الامام رأسه من الركوع والسجود قبل ان يتمّ المأموم التسبيحات الثلاث وجبت متابعته وقال ابن العابدين رحمة الله عليه تحت (قوله واعلم الخ) ويسبّح فيه ثلاثاً فانه سنة على المعتمد المشهور في المذهب لا فرض ولا واجب كما مرّ فلا يترك المتابعة الواجبة لاجلها تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۳) فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۰ جمادى الاولىٰ ۱۳۹۹ھ

## امام چه اوله قعده پريږدي او جګ شي نو په مقتدي باندې ئې متابعت لازم دی

**سوال** امام په هيره سره اوّله قعده پريښودله او سيده ودريده. نو آيا مقتدي به التحيات وائي او که د التحيات په پريښودو سره د امام په متابعت که به دريږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې صورت کښې په مقتديانو باندې د امام متابعت لازم دی التحيات دې پريږدي او و دې دريږي.

کما في الشامية عن شرح المنية تجب متابعته للامام في الواجبات فعلاً وكذا تركاً ان لزم من فعله مخالفة الامام في الفعل كتركه القنوت او تكبيرات العيد او القعدة الاولى او سجود السهو او التلاوة فيتركه المؤتم ايضاً. (رد المحتار ج۱، ص۴۳۹) فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۰ شعبان ۱۳۹۹ھ

## امام چه تر آخرې قعدې وروسته پورته شي نو مقتدي به ئې متابعت نه کوي

**سوال**: تر آخرې قعدې وروسته امام په هېره سره ودرېده. د فتحې په ورکولو سره هم کښې نه ناست او دوه رکعتونه ئې پوره کړل سجدهٔ سهوه ئې وکړه. په دې صورت کښې مقتديان بايد څه وکړي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په امام باندې د قعدې خوا ته بېرته را ګرځېدل لازم دي. مقتدي دې د هغه متابعت نه کوي بلکه په کښيناستو سره به د امام د بېرته را ګرځېدو انتظار کوي که چېرته له سجدې څخه مخکښې د قعدې خوا ته را وګرځېده نو له هغه سره دې سجده سهو وکړي او سلام دې وګرځوي او که نه نو له ځان سره دې سلام واړوي خپل لمونځ دې ختم کړي

قال في شرح التنوير وان قعد في الرابعة مثلاً قدر التشهد ثم قام عاد وسلم ولو سلم قائماً صح ثم الاصح ان القوم ينتظرونه فان عاد تبعوه وان سجد للخامسة سلموا لانه تم فرضه اذلم يبق عليه الا السلام (الى قوله) وسجد للسهو في الصورتين لنقصان فرضه بتأخير السلام في الاولى وتركه في الثانية وفي الشامية (قوله اذ لم يبق عليه الا السلام) اشار به الى ان معنى تمام فرضه عدم فساده والا فصلوته ناقصة كما يأتي في قوله لنقصان فرضه بتاخير السلام اليه اشار في البحر. (رد المحتار ج۱، ص۶۰۰)

فقط والله تعالى اعلم　　　　۱۰ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## مسافر امام چه تر اولې قعدې وروسته پورته شي نو مقتدي به څه کوي؟

**سوال**: يو مسافر امام چه په څلور رکعتيزه لمانځه کښې تر اولې قعدې وروسته ودرېږي نو مقيم مقتديان به څه کوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مقتديان به د امام د بېرته را ګرځېدلو انتظار کوي که چېرته امام د دريم رکعت له سجدې څخه مخکښې بېرته را وګرځي نو له هغه سره دې سجدهٔ سهو وکړي او د هغه تر سلام وروسته دې خپل لمونځونه پوره کړي او که چېرته امام د دريم رکعت سجده وکړه نو مقتدي به پخپل سر ودرېږي او خپل لمونځ دې پوره کړي په پاتې لمانځه کښې دې د امام اقتداء نه کوه. که چېرته ئې اقتداء وکړه نو لمونځ ئې فاسدېږي

قال في شرح التنوير ولو نوى الاقامة لا لتحقيقها بل ليتم صلوة المقيمين لم يصر مقيماً. وفي الشامية (قوله لم يصر مقيماً) فلو اتم المقيمون صلوتهم معه فسدت لانه اقتداء المفترض بالمتنفل ظهيرية اي اذا قصدوا متابعته اما لو نووا مفارقته و وافقوه صورة فلا فساد افاده الخير الرملي. (رد المحتار ج۱، ص۸۰۱) قلت واما انتظارهم عود الامام فظاهر كما نصوا عليه في المسبوق اذا قام امامه بعد القعدة الاخيرة.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ رجب ۱۳۸۶ هجری

## د ګډ سړي د امامت حکم

**سوال**: آیا ګډ سړی امامت کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ګډ سړي امامت جائز دی لیکن له داسې سړي څخه په عمومي توګه د خلکو په طبعیت کښې انقباض (قبض او کرکه) وي د دې لپاره مکروه تنزیهي دی. که چیرته د چا د علم او تقوىٰ له وجې له هغه څخه د خلکو انقباض او کرکه نه وه نو تنزیهي کراهت هم نشته.

قال ابن عابدین رحمة الله علیه (قوله ومفلوج وابرص شاع برصه) وكذلك اعرج يقوم ببعض قدمه فالاقتداء بغيره اولى تاتارخانية.(الى قوله) والظاهر ان العلّة النفرة.(ردالمحتار ج۱،ص ۵۲۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ شوال ۱۳۹۹ هجری

## د پتلون اغوستونکي سړي امامت

**سوال**: یو سړی په پتلانه کښې خلکو ته لمونځ ورکوي. آیا په پتلون اغوستونکي سړي پسې لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته پتلون چُست (په بدن پورې داسې لګیدلی وي چه د غړیو هیئت له ورایه ښکاریده) یا ئې ښنګري پکښې پټ وو نو د لمانځه بیرته را ګرځیدل واجب دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ ربیع الآخر ۱۴۰۰ هجری

## بې پردې ښځو ته د سبق ور ښوونکي امامت

**سوال**: زید وائي چه بې پردې ښځو ته که بالغې وي یا مراهقې (بلوغ ته نژدې)، لیدونکي وي او که ړندې، نرسانې وي او که ښځینه ډاکټرانې یا د هوائي جهاز نوکرانې. په ځان ته ځای کښې وي او که په عامه مجمع کښې. د مکتب. پوهنتون په کوټو کښې وي یا د جومات په حجرې کښې د جماعت په شکل کښې وي یا د کور په دننه کښې ځان ځانته. نامحرمه سړی عالِم وي یا مفتي، پیر وي یا مرید، ځوان وي او که بوډا (زوړ) ړوند وي او که بینا یعني په یوه صورت کښې هم ځوک ښځو ته سبق نه شي ور ښودلی په داسې حال کښې چه بکر د دې اجازه ورکوي.

د بکر دلیل دا دی چه تر ځو پورې دا بې پردې ښځې له شرعي احکامو څخه خبرې نه شي تر هغو پورې د هغوی پرده نامکنه ده. او که چیرته دوی له نظره وغورځول شي، له دیني زده کړې څخه د دې لپاره بې برخې شي چه دوی بې پردې هلې نو دا صحیح نه ده. نور دا چه دا نرسانې، ښځینه ډاکټرانې. د هوائي جهاز نوکرانې او داسې نورې چه پردې نه کوي د پردې د کولو په شرط

سره له دیني زده کړو څخه بې برخي پاتې کیږي په داسې حال کښې چه په عملي توګه د دې تجربه شوې ده چه داسې ښځو ته چه کله دیني زده کړې ورکړ شوې دي نو له همدغو بې پردې ښځو څخه ځیني تهجد ګذاره جوړې شوي دي.

د زید دلیل دا دی چه شرعي حدود د هیچا له خانه د پیدا شوې مجبورۍ له وجې نه شي ماتیدلی. بې پردګي یو له خانه پیدا شوی اضطرار (بې وسي) دی. شرعاً د داسې اضطرار هیڅ اهمیت نشته. که چیرته په دې ډول سره عوام له خانه د داسې افعالو مرتکب وګرځي چه په هغو سره د دوی په مشکلاتو کښې لا زیاتوالی راشي نو په راتلونکي کښې هرې داسې مجبورۍ ته د اضطرار نوم ورکول کیږي او شرعي حدود تر پښو لاندې کیږي نو شرعي وجود بیا نه پاتې کیږي. حالانکه د پردې غرض او غایه د صنفي اختلاف (د نر او ښځې ګډوډ والی) له منځه وړل دي. که چیرته دا اختلاط برقراره پاتې شي نو د پردې اصل مقصد ختمیږي. په داسې حال کښې چه د ښځې او نر اختلاط د دې لپاره جائز نه دی ګڼل شوی چه په دې سره د دواړو صنفونو سفلي جذبات (شهواني خواهشات) لوړیږي. که چیرته اختلاط د دې لپاره ضروري وګرځي چه د نه اختلاط له وجې له دیني زده کړو څخه محرومي منځ ته راځي نو بیا په دنیوي مخلوطې زده کړې کښې هیڅ قباحت (بدوالی) نه پاتې کیږي ځکه چه ځیني خلک د ښځې او نر اختلاط د دنیوي زده کړې لپاره ضروري ګڼي او تاسو ئې د دیني زده کړې لپاره ضروري ګڼئ. نو د شرعي حددودو په ماتولو کښې تاسو دواړه سره برابر یئ اګر که مو غرضونه مختلف دي. چیرته چه بې پردې ښځې له شرعي احکامو څخه تر خبریدو وروسته ځیني ښځې تهجد ګذاره جوړې شوي دي هلته د لوی عمر درلودونکي استاذان له کم عمرو نجونو سره د زنا د ګناه تر ارتکابه پورې رسیدلي دي. د څو ښځو د تهجد ګذاره کیدو د ثواب په مقابله کښې د یوې زنا کیدنه ډیر سنګین او داسې جُرم دی چه د معافي وړ نه دی. همدارنګه په خیر القرون کښې نبي کریم ﷺ حضرت عائشې ﵂ ته له ړانده صحابي حضرت عبد الله ابن اُم مکتوم ﵁ څخه د پردې د کولو ویلي وو. نن په دې څوارلسمې پیړۍ په معاشره کښې خو باید د پردې لا زیات اهتمام وشي.

که چیرته د زید استدلال صحیح وي نو نور وضاحت غوښتونکې خبره دا ده چه بې پردې ښځو ته سبق ورښوونکي لره د جومات امام او خطیب جوړول او په هغه پسې د لمانځه ادا کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زید خیال او استدلال صحیح دی. ښځو ته دیني زده کړې د ښځو په واسطه سره یا د پردې شا ته ورکول کیدلی شي. بر سیره پر دې په اردو یا پښتو کښې د مستندو کتابونو په مطالعه کولو سره دا ضرورت پوره کیدلی شي. بې پردې ښځو ته مخامخ سبق ور ښوونکی فاسق دی. په داسې چا پسې لمونځ مکروه تحریمي دی او د داسې سړي امام او

خطيب جوړول جائز نه دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ شعبان ۱۴۰۰ هجری

## د مقتدي د قنوت تر پای ته رسيدو مخکښې امام رکوع ته لاړ

**سوال**: که چيرته په رمضان المبارک کښې د وترو په لمانځه کښې يو څوک له امام سره دُعاء قنوت پوره کولی نه شوای بلکه امام صاحب دعاء قنوت ډير زر پوره کوي او رکوع ته ځي نو په داسې صورت کښې د مقتدي لپاره څه حرج شته او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مطلقې کومه دُعاء يا د معروفې دعاء د کومې برخې په ويلو سره واجب ادا کيږي. مشهوره دُعا پوره لوستل مسنون دي ليکن واجب نه دے لهذا که چيرته د دعاء قنوت تر پوره کيدو مخکښې امام رکوع ته لاړ شي نو مقتدي لپاره د قنوت پريښودل او د امام متابعت کول واجب دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ شوال ۱۳۹۸ هجری

## په تکبير اولی کښې د شريکيدو حد يا اندازه

**سوال** : په جماعت کښې د تکبير تحريمه په شريکيدو کښې چه کوم فضيلت راغلی دی هغه تر څه وخته پورې دی. که چيرته يو څوک د لومړي رکعت په رکوع کښې له امام سره يو ځای شي نو هغه دا فضيلت ورکول کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې کښې مختلف اقوال دي. د سورهٔ فاتحه د نيولو قول راجح دی. قال فی الشامية وفی التاتارخانية عن المنتقی وقيل بادراك الركعة الاولى وهذا اوسع وهو الصحيح اه وقيل بادراك الفاتحة وهو المختار خلاصة. (ردالمحتار ج۱،ص۳۹۱) قلت لفظ المختار اٰكد من لفظ الصحيح لان الاختيار يستلزم التصحيح والتصحيح لا يستلزم الاختيار.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ شعبان ۱۴۰۰ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

ان رسول الله ﷺ اقبل من نواحی المدينة يريد الصلوٰة فوجد الناس قد صلّوا فمال الى منزله فجمع اهله فصلى بهم

# الوصية الاخوانية

## فی حکم الجماعة الثانية

### په جومات کښې د دويم جماعت حکم

**سوال**: څه فرمائي علماء کرام او فقهاء عظام په دې مسئلې کښې چه که چيرته په يوه جومات کښې دوه يا درې ځله جماعت وشي او لمونځ کوونکي هم د همدې محلې، کلي يا ښار وي. دا څو ځله جماعت د عذر له وجې وي يا پرته له عذر څخه. او دا تکرار د هميشه لپاره کيږي يا کله کله په ناڅاپي توګه. نو آيا دا لمونځ مکروه دی او که نه؟ که چيرته مکروه وي نو تنزيهي دی او که تحريمي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جماعت د تکرار صورتونه مختلف دي او حکم ئې هم مختلف دی لهذا د هر صورت حکم بيل بيل بيانيږي.

۱ - جومات د لارې وي، يعنې لمونځ کوونکي ئې معين نه وي.

۲- په دې جومات کښې مؤذن او امام معين (ټاکلي) نه وي.

۳ - په جومات کښې له کليوالو څخه پرته بل چا جماعت کړی وي.

۴ - په جومات کښې د کلي خلکو پرته له اعلان يا آذان څخه جماعت کړی وي.

په دغو څلورو صورتونو کښې د جماعت تکرار (اګر که د آذان او اقامت له تکرار سره وي) په اجماع سره جائز بلکه افضل دی.

۵ - په جومات کښې د کلي خلکو د آذان له اعلان سره جماعت کړی وي او دويم جماعت هم له آذان سره وشي.

۶ - په نوموړي صورت کښې د جماعت تکرار پرته له آذان څخه وشي او جماعت په لومړني هيئت باندې وشي يعنې له محراب څخه عدول (له محراب څخه بلې خوا ته، څنګ ته کيدل) و نه شي

په دغو دواړو صورتونو کښې په اتفاق سره تکرار د جماعت مکروه تحريمي دی.

۷- په مذکوره صورت کښې دويم جماعت په لومړني هيئت باندې و نهشي. يعنې له محراب څخه عدول وشي، امام د جومات په منځ کښې په محراب کښې يا د محراب په برابر و نه دريږي. په

دې حالت کښې کراهت د شیخینو تر منځ مختلف فیها دی.

قال فی شرح التنویر (٥) ویکره تکرار الجماعة باذان و قامة فی مسجد (١) لا فی مسجد طریق (٢) او مسجد لا امام له ولا مؤذن. قال فی الشامیة (قوله ویکره) ای تحریما لقوله الکافی لا یجوز والجمع لا یباح وشرح الجامع الصغیر انه بدعة کما فی رسالة السندی (قوله باذان واقامة) عبارته فی الخزائن اجمع مما ههنا ونصها (٥) ویکره تکرار الجماعة فی مسجد محلة باذان واقامة (٣) الا اذا صلی بهما فیه اولا غیر اهله (٣) او اهله لکن بمخافتة الأذان ولو کرر اهله بدونهما (١) او کان مسجد طریق جاز اجماعاً (٢) کما فی مسجد لیس له امام ولا مؤذن ویصلی الناس فوجا فوجا فان الافضل ان یصلی کل فریق باذان واقامة علیحدة کما فی امالی قاضیخان آه ونحوه فی الدرر والمراد بمسجد المحلة ماله امام وجماعة معلومون کما فی الدرر وغیرها قال فی المنبع (١) والتقیید بالمسجد المختص بالمحلة احتراز عن الشارع وبالأذان الثانی احتراز عما اذا صلی فی مسجد المحلة جماعة بغیر أذان حیث یباح اجماعاً آه. ثم قال فی الاستدلال علی الامام الشافعی النافی للکراهة ما نصل ولنا انه علیه الصلوة والسلام کان خرج لیصلح بین قوم فعاد الی المسجد وقد صلی اهل المسجد فرجع الی منزله فجمع اهله وصلی ولو جاز ذلك اختار الصلوة فی بیته علی الجماعة فی المسجد ولان فی الاطلاق هکذا تقلیل الجماعة معنیً فانهم لا یجتمعون اذا علموا انها لا تفوتهم واما مسجد الشارع فالناس فیه سواء ولا اختصاص له بفریق دون فریق آه. ومثله فی البدائع (٥ تا ٤) ومقتضی هذا الاستدلال کراهة التکرار فی مسجد المحلة ولو بدون آذان (٥ تا ٤) ویؤیده ما فی الظهیریة لو دخل جماعة المسجد بعد ما صلی فیه اهله یصلّون وحدانا وهو ظاهر الروایة آه وهذا مخالف لحکایة الاجماع المارة (٦) وعن هذا ذکر العلامة الشیخ السندی رحمة الله علیه تلمیذ المحقق ابن الهمام فی رسالته ان ما یفعله اهل الحرمین من الصلوة بائمة متعددة وجماعات مترتبة مکروه اتفاقاً ونقل عن بعض مشائخنا انکاره صریحاً حین حضر الموسم بمکة ٥٥١ه منهم الشریف الغزنوی (٦) وذکر انه افتی بعض المالکیة بعدم جواز ذلك علی مذهب العلماء الاربعة (٦) ونقل انکار ذلك ایضاً عن جماعة من الحنفیة والشافعیة والمالکیة حضروا الموسم ٥٥١ه (٦) واقره الرملی فی حاشیة البحر لکن یشکل علیه ان نحو المسجد المکی او المدنی لیس له جماعة معلومون فلا یصدق علیه انه مسجد محلة بل هو کمسجد شارع (١) وقد مرّ انه لا کراهة فی تکرار الجماعة فیه اجماعاً فلیتأمل هذا. (ردالمحتار ج١، باب الامامة)

وایضاً فی الشامیة فی باب الأذان (٥ تا ٤) وروی عن انس رضی الله عنه ان اصحاب رسول الله ﷺ کانوا اذا فاتتهم الجماعة فی المسجد صلوا فی المسجد فرادی (الی ان قال) وفی آخر شرح المنیة وعن ابی حنیفة ولو کانت الجماعة

اکثر من ثلاثة یکره التکرار و الا فلا (٤) و عن ابی یوسف اذا لم تکن علی الهیئة الاولی لا تکره و الا تکره و هو الصحیح و بالعدول عن المحراب تختلف الهیئة کذا فی البزازیة آه. و فی التاتارخانیة عن الولوالجیة و به نأخذ. (ردالمحتار ج۱، باب الأذان)

په شامي کښې چه کومه جزئیه له خزائن او منبع څخه منقوله ده په هغې کښې د کلي په جومات کښې د جماعت د تکرار روا والی له آذان پرته په اجماع سره بیان شوی دی لیکن دا صحیح نه دی ځکه چه د کلي په جومات کښې پرته له آذان څخه د جماعت د تکرار دوه صورتونه دي:

۱ - په لومړني هیئت باندې ۲ - د لومړني هیئت پر خلاف

لومړنی صورت په اتفاق سره مکروه دی ځکه چه د امام ابو یوسف په نزد د تکرار د جواز لپاره له محراب څخه عدول (څنګ ته کیدل) ضروري دی. (لکه څرنګه چي تیر شو) برسیره پر دې د مکې او مدینې په جوماتونو کښې د تکرار په کراهت باندې د څلورواړو مذاهبو د فقهاوو رحمهم الله اجماع لیکل شوې ده. په دغو دواړو جوماتونو کښې به پرته له آذان څخه تکرار په لومړني هیئت باندې کیده. لکه څرنګه چه د شامي له عبارت څخه هم ظاهره ده. شامي دې جوماتونو لره په شرعي جوماتونو کښې په داخلولو سره د تکرار په نه جواز باندې اشکال وړاندې کول هم د دې ښکاره دلیل دی چه د کلي په جومات کښې د جماعت تکرار هیڅکله جائز نه دی.

په دویم صورت کښې اختلاف دی. د امام صاحب په نزد مکروه دی. چنانچه شامي د ظهیریه د روایت په نقل کولو سره د اجماع قول فاسد ګڼلی دی. په هر حال دغو دواړو صورتونو ته په اجماع سره جائز ویل صحیح نه دي. بلکه لومړنی صورت په اتفاق سره مکروه او په دویم صورت کښې اختلاف دی.

د امام ابو یوسف رحمه الله له قول "عدول عن المحراب" څخه مراد حقیقي محراب نه دی بلکه د محراب محاذات (د محراب په برابر) مراد دی اګر که د جومات په صحن کښې هم وي ځکه چه د لومړني لمانځه په محراب کښې کیدل ضروري نه دي بلکه د محراب په محاذات کښې ئې کول مسنون دي. لهذا کوم لمونځ چه له محراب سره په محاذاتو کښې وي هغه به په لومړني هیئت باندې وي. د لومړني هیئت د تغیر لپاره ضروري ده چه د محراب له محاذاتو څخه عدول (څنګ ته کیدل) وي.

قال فی الشامیة (قوله و یقف وسطاً) قال فی المعراج و فی مبسوط بکر السنة ان یقوم فی المحراب لیعتدل الطرفان ولو قام فی احد جانبی الصف یکره (الی ان قال) قال علیه الصلوة والسلام توسطوا الامام الخ و ایضا فیها (تنبیه) یفهم من قوله او الی ساریة کراهة قیام الامام فی غیر المحراب (الی قوله) السنة ان یقوم الامام ازاء

وسط الصف الا ترى ان المحاريب ما نصبت الا وسط المساجد وهي قد عينت لمقام الامام آه. (رد المحتار ج۱) و ايضا فيها (قوله لان الاعتبار للقدم) يكره للامام ان يقف في غير المحراب الا لضرورة (رد المحتار ج۱)

له مذکوره جزئياتو څخه څرګنده شوه چه له محراب څخه مراد د محراب محاذات دي د امام په عين محراب کښې د دريدلو سنيت او له عين محراب څخه د عدول د کراهت هيڅوک قائل نه دي په اتفاق سره د محراب محاذات مسنون دی

لنډه دا چه له اوه وارو صورتونو څخه په لومړي څلورو صورتونو کښې د جماعت تکرار افضل دي او په پنځم او شپږم صورت کښې په اتفاق سره مکروه تحريمي دی. د تحريمي کراهت تصريح د شامي په عبارت کښې ليکل شوی دی.

په اووم صورت کښې د جماعت تکرار د محراب له محاذاتو څخه د عدول په حالت کښې د شيخينو اختلاف دی. او د اختلاف په حالت کښې د ترجيح يا تطبيق ضرورت دی. په شرح التنوير کښې د ترجيح اصول په دې الفاظو سره راغلي (واختلف فيما اختلفوا فيه والاصح كما في السراجية و غيرها انه يفتى بقول الامام على الاطلاق ثم بقول الثاني - الى قوله - وصحح في الحاوي القدسي قوة المدرك). (شرح التنوير مطلب رسم المفتي) لهذا د سراجيه د قانون مطابق ښکاره ده چه د امام صاحب قول مفتٰى به دی. او که چيرته د حاوي قدسي په قانون باندې عمل وشي نو بيا هم د امام صاحب قول مختار (غوره شوی) دی. د دې لپاره چه د امام صاحب د قول د عقلي او نقلي دلائلو څخه قوت ظاهر دی. عقلي دليل په شامي کښې دی. (ولان في الاطلاق - الخ) او نقلي دلائل دا دي:

۱.. الحديث المرفوع الذي مرّ في عبارة الشامية.

۲.. قول انس رضي الله عنه الذي نقله العلامة الشامي وفيه بيان تعامل الصحابة رضي الله عنهم.

۳.. عن ابي بكرة ان رسول الله ﷺ اقبل من نواحي المدينة يريد الصلوة وقد صلوا فمال الى منزله فجمع اهله فصلى بهم. (رواه الطبراني في الكبير الاوسط قال الهيثمي رجاله ثقات)

۴.. عن ابراهيم النخعي قال قال عمر رضي الله عنه لا يصلى بعد صلوة مثلها. (ابن ابي شيبه)

۵.. عن خرشة الحر ان عمر رضي الله عنه كان يكره ان يصلى بعد صلوة الجمعة مثلها. (رواه الطحاوي بسند صحيح)

لاندينۍ دوه روايتونه په ظاهره د امام رحمه الله د دلائلو په خلاف ښکاريږي.

۱.. عن ابي سعيد رضي الله عنه قال جاء في المسجد رجل وقد صلى رسول الله ﷺ فقال ايكم يتجر على هذا فقام رجل وصلى معه. (رواه الترمذي)

۲.. عن انس رضی الله عنه تعليقاً و ابى يعلى موصولاً انه جاء انس رضی الله عنه الى مسجد قد صلى فيه فاذن و اقام و صلى جماعة.(بخاري)

د دغو آثارو ځواب په طحاوي په حاشيه تابع الآثار کښې دا ډول راغلى دى.

وما ورد من قوله ﷺ من يتصدق لا يدل على جواز التكرار المتكلم فيه وهو اقتداء المفترض بالمفترض اذ الثابت به اقتداء المتنفل بالمفترض و لا يحكم بكراهته بل ورد فى جوازه حديث آخر من قوله عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام اذا صليتما فى رحالكما ثم اتيتما صلوة قوم فصليا معهم و اجعلا صلاتكما معهم سبحة كما هو ظاهر وما روى البخارى تعلقياً عن انس رضی الله عنه محمول على مسجد الطريق او نحوه لما نقل فيه الله رضى الله عنه اذن واقام وهو مكروه عند العامة آه.(تابع الأثار) قلت ويحمل على مسجد الطريق ايضاً لئلا يخالف قوله لما نقله الشامى من حكاية تعامل الصحابة رضی الله عنهم.

لنډه دا چه د دلائلو په لحاظ سره د امام صاحب قول تر ټولو قوي دى. برسيره پر دې د الترجيح للمحرم د اصولو له مخې هم د امام صاحب قول راجح ښکاريږي. پس د ترجيح په اصولو کښې د هر حيثيت له لحاظه د امام صاحب رحمه الله قول مفتى به او مختار (غوره شوى) دى.

## دتطبيق صورت

امام ابو يوسف رحمه الله د تحريمي کراهت نافي (نه منونکى) دى او حضرت امام د تنزيهي کراهت ثابتوونکى دى. په دې باندې دليل دا دى چه په شامي کښې ئې پنځم صورت ت مکروه تحريمي ويلي ده. له دې څخه څرګنده شوه چه په کومو صورتونو کښې چه د کراهت نفى شوې ده په هغو کښې د تحريمي کراهت نفى دى (للتقابل الظاهر) همدارنګه له مطلق کراهت څخه مراد کراهت تحريمي وي (كما هو مصرح فى كتب المذهب) نو د نفى په وخت کښې هم د همدغه تحريمي کراهت نفى ثابتيږي. وروسته د تنزيهي کراهت د نفى لپاره د کوم مستقل دليل ضرورت دى. په لومړي څلورو صورتونو کښې د تکرار د افضليت (بهتري) تصريح د تنزيهي کراهت په عدم (نشتوالي) باندې دليل دى. د کراهت له نفى څخه کراهت تحريمي منتفي شو او د افضليت په دليل سره تنزيهي کراهت منتفي شو او استحباب ثابت شو. د دې برعکس په اووم صورت کښې د تحريمي کراهت انتفاء دى او د تنزيهي کراهت په نفى باندې هيڅ دليل نشته بلکه له ظهيريه څخه منقول په ظاهر الرواية کښې د کراهت ثبوت دى. لهذا د تحريمي کراهت انتفاء او د تنزيهي کراهت ثبوت ښکاره دى. نو څرګنده شوه چه د امام صاحب اثبات او د امام ابو يوسف صاحب په نفى کښې هيڅ تعارض نشته. په دې صورت کښې له خزائن او منبع څخه د نقل شوي اجماعت د تغليط (غلط

کيلو، هم ضرورت نشته. ځکه چه مطلق (پرته له له آذانه تکرار د جماعت) لره په (على غير الهيئة الاولى) باندې محمولېږي او له (جاز اجماعاً) او (يباح اجماعا) څخه مرراد جواز سره له کراهت تنزيهي دی، د تحريمي کراهات نفی مقصود دی. د جواز او اباحت اطلاق په تنزيهي کراهت باندې هر وخت کيږي

قال فى الشامية و قد يقال اطلق الجائز و اراد به ما يعم المكروه ففى الحلية عن اصول ابن حاجب الله قد يطلق و يراد به ما لا يمتنع شرعاً و هو يشمل المباح والمكروه و المندوب و الواجب آه لكن الظاهر ان المراد المكروه تنزيهاً لان المكروه تحريماً ممتنع شرعاً لازماً. (ردالمحتار ج١)

و فى شرح التنوير و يجوز بلا كراهة اذا صبى مراهق و عبد. و فى الشامية (قوله بلا كراهة) اى تحريمية لان التنزيهية ثابتة لما فى البحر عن الخلاصة ان غيرهم اولى منهم. (ردالمحتار ج١)

له پورتني تقرير څخه څرګنده شوه چه په شپږم صورت کښې هم کراهت تحريمي دی. د امام ابو يوسف خاص له اووم صورت يعنې په لومړي هيئت باندې تکرار کښې د تحريمي کراهت نفی کول په دې باندې ښکاره دليل دی چه شپږم صورت يعنې پرته له آذانه په لومړني هيئت باندې تکرار په اتفاق سره د پنځم صورت غوندې مکروه تحريمي دی.

با لفرض که چيرته اباحت (رواوالی) په متبادرې نفی باندې محمول شي د امام ابو يوسف په نزد د تنيهي کراهت د نشتوالي قول تسليم شي نو بيا هم د تکرار مندوب والی او استحباب لکه څرنګه چه نه له کوم دليل څخه ثابت دی او نه پخپله له امام ابو يوسف رحمه الله څخه منقول دی. لهذا د کراهت له نفی څخه د ثواب اثبات نه لازميږي.

قال فى الشامية فى بيان كراهة الاقتداء فى النفل على سبيل التداعى و يمكن ان يقال الجماعة فيه غير مستحبة ثم ان كان احياناً كما فعل عمر رضي الله عنه كان مباحاً غير مكروه (الى قوله) فان نفى النسية لا يستلزم الكراهة الخ (ردالمحتار ج١)

لنډه دا چه په تکرار کښې د امام ابو يوسف په نزد هيڅ ثواب نشته او د امام صاحب رحمه الله په نزد کراهت پکښې دی او په نه کولو کښې د امام صاحب په نزد ثواب دی او د امام ابو يوسف په نزد هيڅ نقصان ئې نشته. تر دې پورې چه له ثواب څخه بې برخه والی هم نشته. په دې لحاظ سره د تکرار نه کول بهتر شو. ځکه چه په تکرار کښې د ګټې کوم ثبوت نشته بلکه د کراهت احتمال دی او د تکرار په نه کولو کښې کوم نقصان نشته بلکه د ثواب اُميد دی. دا ټول تحقيق في نفسه دی او که نه نو د خارجي مفاسدو له مخې د تکرار هيڅکله اجازت نه شي ورکول کيدلی. که چيرته د امام ابو يوسف په مخکښې دا مفاسد راتللی نو هيڅکله به ئې د جواز قول نه وای کړی. (هكذا افاد حكيم الامة قدس سرهٗ).

## د زمانې انقلاب

د شریعت حکم دا دی چه جماعت دې په جوماتونو کښې قائم شي، پرته له عذر څخه پرته له جومات څخه په بل ځای کښې جماعت کول خصوصاً عادت جوړول ئې مکروه او بدعت دی. په خیر القرون کښې د دې هیڅ مثال نه پیدا کیږي. په تګ باندې د نه قدرت لرونکي مریض نه بغیر یواځې داسې خلک به د جومات له جماعت څخه پاتې کیدل چه د هغوی نفاق او منافقت مشهور او معروفه وو.

قال عبد الله رضي الله عنه لقد رأيتنا وما يتخلف عن الصلوٰة الا منافق قد علم نفاقه او مريض ان المريض ليمشى بين رجلين حتى يأتي الصلوٰة وقال ان رسول الله صلى الله عليه وسلم علمنا سنن الهدى وان من سنن الهدى الصلوٰة في المسجد الذي يؤذن فيه. (رواه مسلم)

وعن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم فقد ناسا في بعض الصلوات فقال لقد هممت ان أمر رجلا يصلي با لناس ثم اخالف الى رجال يتخلفون عنها فأمر بهم فيحرقوا عليهم بحزم الحطب بيوتهم. الحديث (رواه مسلم)

البته د کوم عذر له وجې که چیرته د جومات جماعت فوت شي نو په کور کښې دې بیا جماعت وشي. لکه څرنګه چه په پورتني مضمون کښې له ګڼو احادیثو او د صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم له تعامل څخه ثابته شوه.

لیکن د زمانې انقلاب وګورئ چه پرته له عذر څخه په کورونو کښې د جماعت عام رواج جوړ شوی دی. علماء، صلحاء، مقتداء او د خواصو او عوامو مرجع هم په دې بدعت کښې مبتلا دي. د کومو عمل چه د نورو لپاره د لارې مشال دی. او بلې خوا ته په جوماتونو کښې د دویم جماعت هم عام رواج جوړ شوی دی چه لاندیني قبائح (بدی) پکښې دي:

۱- د نبي کریم صلى الله عليه وسلم او حضراتو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم د لارې مخالفت.
۲- د جماعت تقلیل او تهاون (کموالی او سپکوالی)
۳- له اصلي جماعت سره په شریکیدو کښې تکاسل (سستي) او د دې د عادت جوړیدو سبب.
۴- له جماعت څخه د مخالفت د ګناه اظهار (ښکارونه).
۵- د افتراق (خپل منځي جلاوالي) صورت او د دې سبب.

لنډه دا چه د بدعت د زمانې ستم ظریفي (په ټوکو ټوکو کښې ظلم) دی چه د شریعت د حکم بالکل برخلاف د جومات جماعتونه په کورونو کښې شروع شو او د کورونو جماعت په جوماتونو کښې. الله تعالی دې مسلمه أمت ته د سنت د اتباع او له بدعتونو څخه د اجتناب (پرهیز) توفیق ورکړي. فقط والله المستعان ولا حول ولا قوة الا به.

رشید احمد
۲۳ ربیع الآخر ۷۳ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

وما توفيقي الا بالله عليه توكلت واليه أنيب

**د حضرت مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله د (لاوډ سپیکر) متعلق په رساله باندې بعضې علماؤ اعتراضات کړی وؤ، په هغې باندې د فکر کولو او اظهار نظر لپاره مفتی صاحب له دې عاجز بنده نه درخواست وکړو، نو ما دهغه درخواست په سلسله کښې دا رساله ترتیب کړه او ومې لیکله.**

# امام الكلام فى تبليغ صوت الامام

## په لمانځه کښې د مکبر الصوت (د آواز د لوړولو) د آلې د استعمال حکم

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

سُبْحَانَكَ لَا عِلْمَ لَنَا إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا إِنَّكَ أَنْتَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ

**اما بعد**: د مكبر الصوت په اړوندې رسالې (مؤلفه مخدومي حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحب مد ظله) او په دې باندې د ځينو علماوو نيوكې مؤلف مد ظله د تنقيح (څيړنه او له عيبونو څخه پاكونه) او تحقيق په غرض سره بنده ته سپارلې ده چه منشأ ئې يواځې حسن ظن يعنې په ما نيک ګومان دی او که نه حقيقت دا دی چه چيرته زما غوندې فقيد العلم او چيرته د علماوو د ليكنو تنقيح او په هغو کښې محاكمه. په هر صورت امتثالاً للامر (د حكم د منلو له وجې) له علمي كمزورۍ سره. د ډير مصروفيت تر څنګ چه كوم شی مې په كمزوري ذهن كښې راشي كاغذ او دفتر ته ئې حواله كوم. فمني الجهد ومنه الاصابة لومړی د اصل رسالې څيړنه كيږي او تر هغې وروسته د نورو علماوو د نيوكو تجزيه كيږي. والله المستعان.

### د رسالې تنقيح (څيړنه)

**قوله**: په دغو دواړو مثالونو (د لاس يا سر په اشارې سره د سلام ځواب وركول او د روپۍ د بې كاره يا ناچله كيدو په اړه د سوال ځواب په اشارې سره وركول) كښې د لمانځه نه د خارج سړي ځواب او اتباع موجود دی. (الى قوله) د لمانځه نه د خارج سړي ځواب يا اتباع د لمانځه لپاره مفسد ګڼل د هغه د عملِ كثير په كيدو باندې مبني دی الخ. (۳مخ)

**اقول** خواب او اتباع له يوه او بل سره د مترادف په ګڼلو په دواړو باندې يو حکم لګول شوی دی حالانکه د دواړو په حقيقت کښې هم فرق دی او د دواړو حکم هم جلا جلا دی. د خارج سړي اتباع په هر صورت کښې د لمانځه فاسدوونکی دی. که په هغه کښې عملِ قليل وي او که عمل کثير (الا ان يکون امتثالا لامر الشارع فلا يفسد وان کان عملا کثيرا) او خواب په اشارې سره مفسد والی د عملِ کثير په کيدو باندې موقوف دی. په ذکر شوي دواړو مثالونو کښې اتباع نشته بلکه خواب دی. د دې لپاره چه د دې د فاسديدو علت عملِ کثير کيدل بيان شوي دي. د خارج سړي (له لمانځه څخه د باندې د سړي) اتباع په هر صورت کښې مفسدوالی له لاندېني جزئياتو څخه ثابت دی.

۱ - **ليس فيها (فی الاجابة بالرأس واليد) امتثال امر (تنبيه ذوی الافهام ص۱۸۰)** له دې څخه څرګنده شوه چه که چيرته په دې کښې د امر امتثال (د حکم منل) او د خارج اتباع وای نو مفسد به وای. اګر که عمل قليل وي ليکن چونکه په دې کښې د خارج اتباع نشته يواځې ځواب په اشارې سره دی او په کم عمل سره دی نو ځکه لمونځ نه فاسديږي.

۲ - **اذا قيل لمصلٍ تقدم فتقدم او دخل فرجة الصف احد فتجانب المصلی توسعةً له فسدت صلٰوته (الی قوله) اقول لو قيل بالتفصيل بين کونه امتثل امر الشارع فلا تفسد وبين کونه امتثل امر الداخل مراعاة لخاطره من غير نظر الی امر الشارع فتفسد. (طحطاوی علی شرح التنوير ج۱، ص۲۶۷)** تقدم او تاخر (وړاندې والی او وروسته والی) او خصوصاً توسعه (فراخوالی) عملِ قليل دی د دې تر څنګ که چيرته د شارع د امر د امتثال (د حکم د منلو) په غرض سره نه وي بلکه اتباع او امتثال له خارج څخه وي نو دا مفسد ګڼل شوی دی.

**قوله** په دې اتباع کښې چه چيرته عمل کثير نه تر سترګو کيږي او د غير الله د امر اتباع مقصود نه وي نو يواځې له دې وجې څخه چه د کوم خارج سړي په وينا سره يا د هغه د اشارې په کولو باندې نقل او حرکت وشي نو د لمانځه فاسدوونکی ورته ويل صحيح نه دي. (۴مخ)

**اقول** پورته بيان شوی دی چه د خارج په اتباع کښې په عملِ کثير او عملِ قليل کښې هيڅ فرق نشته که چيرته د خارج له اتباع څخه د شارع د امر امتثال مقصود وي نو په هر حال مفسد نه دی **(ولو کان عملاً کثيراً کدوران الصفوف عند سماع خبر تحويل القبلة وغيره من الجزئيات)** او که چيرته د شارع د امر امتثال مقصود نه وي نو د خارج اتباع په هر صورت کښې د لمانځه مفسد دی **(ولو کان عملاً قليلا کما مرّ)**.

**قوله** د مکبر الصوت د آلې په اواز باندې د تکبير تحريمه او د انتقاليه تکبيراتو په ادا کولو کښې د لمانځه له اعمالو پرته بل عمل نشته. نه قليل او نه کثير (نه کم او نه زيات). (۴مخ)

**اقول** : د خارج د اتباع مفسد والی په دې باندې موقوف نه دی چه په هغه کښې دې د لمانځه له اعمالو پرته نور عملونه پیدا شي بلکه د لمانځه په اعمالو کښې د خارج سړي اتباع مفسد دی **و هوظاهرجداً** پس دلمانځه د فاسد والي بناء دلمانځه له اعمالو څخه د عمل خارج والی نه دی بلکه د غیر شارع د امر منل د لمانځه د فساد بناء دی. لهذا مذکوره عبارت بې ګټې او محض حشو دی.

**قوله** : او د دې (آلې) د آواز په اتباع کښې د دې لرې احتمال هم نشته چه د دې آلې په خاطر سره یا د دې اتباع کیږي. دلته خو پرته د خدای د امر له اتباع څخه د بل هیڅ شي احتمال نشته الخ. (۴ مخ)

**اقول** : دا کار له قیاس څخه لرې نه دی لیکن د غزي، حموي، شامي او داسې نورو فقهاوو د خیال تغلیط (غلط ګڼل) هم آسانه خبره نه ده. **فليحرر**

**قوله** : په مطلقه توګه د کوم خارج سړي اتباع د لمانځه مفسد نه شي کیدلی تر څو پورې چه یا خو په هغه کښې عملِ کثیر پیدا نه شي او یا په هغه کښې د غیر الله د امر اتباع مقصود وي. (۵مخ)

**اقول** : پورته دوه ځلې ولیکل شو چه د خارج سړي د اتباع مفسد والی یواځې په دې باندې موقوف دی چه په هغه کښې د شارع د حکم منل نه وي. د عمل په کموالي او ډیر والي پورې اړه نه لري. د شارع د امر منل مفسد نه دی **(ولو كان العمل كثيراً)** او د غیر الله اتباع او امتثال مفسد دی **(و لو كان العمل قليلاً)**.

**قوله** : پخپله علامه شامي پخپلې رسالې "ذوی الافهام" کښې چه خاص ئې په همدې مسئلې د مکبر یا مبلغ لپاره لیکلې ده. اګر که د لمانځه د خارج په آواز باندې تکبیر تحریمه لره ئې د حموي په حوالې سره مفسد لیکلی دی لیکن له دې سره سره ئې په دې رسالې کښې دا هم لیکلي دي چه **(و نقل عن ذلك الكتاب ان الاجابة بالرأس لا بأس بها و لم ار من صرح بخصوص مسألتنا سوى ما مر عن الحموى وهذا الفرع اشبه بها من غيره لان الاجابة فيها بالفعل آه)**. **(الى قوله)** له دې څخه څرګنده شوه چه علامه شامي ته هم مکبر د لمانځه د خارج سړي د آواز اتباع ته د لمانځه د مفسد په ویلو باندې اطمینان نشته، بلکه د دې خلاف ته ترجیح حاصل دی. (۵مخ)

**اقول**: نوموړی مضمون لره علامه شامي یواځې د بحث له مخې ذکر کړی دی. **(كما هو دأب المحققين فانهم يذكرون فى اثناء تحقيقهم امورا كثيرة بحثا فقط ولا يفتون بها)**. له دې څخه هیڅکله نه

---

[1] - سيأتى تحريره فى آخر هذا التحرير ان شاء الله تعالى ۱۲ منه

ثابتیږي چه علامه شامي، حموي او غزي په تحقیق باندې مطمئن نه دی او د دې خلاف ته ترجیح ورکوي که چیرته داسې وای نو پخپله د خپلې رسالې "تنبیه ذوی الافهام" په آخر کښې به ئې د حموي په موافق فتوی نه ورکوله

**ونصهٗ فمن ذٰلك ان بعضهم یجهر بالتکبیر عند احرام الامام من غیر قصد الاحرام لیعلم الناس وربما یفعل ذٰلك وهو قاعد او منحن ثم یدخل بعد ذٰلك فی صلٰوة الامام ولا شك حینئذٍ ان من لم یکن قریباً من الامام یأخذ من ذٰلك المبلغ فلا یصح شروعهٗ لانه لم یدخل فی تکبیرة فی الصلٰوة فیکون اقتداء بمن لم یدخل فی الصلٰوة وهو لا یصح کما مرّ. ومن ذٰلك ان بعضهم یکون اعمٰی وهو بعید عن الامام فیقعد رجل الی جانب ذٰلك ان بعضهم یکون اعمٰی و هو بعید عن الامام فیقعد رجل الی جانب ذٰلك المبلغ الاعمٰی و یعلمه بانتقالات الامام والاعمٰی یرفع صوته لیعلم المأمومین کما شاهدت ذٰلك فی مسجد دمشق وعلی ما مر تکون صلٰوة المبلغ فاسدة لاخذه من الخارج و کذٰلك صلٰوة من اخذ من ذٰلك المبلغ.** (تنبیه ذوی الافهام ص ۱۴۲)

په دغو دواړو جزئیو کښې علامه شامي د غزي او حموي په تحقیق باندې فتوی ورکوي د تولې رسالې له مطالعې څخه دا خبره څرګندیږي چه د دې ټولې رسالې خلاصه او نتیجه همدغه د حموي تحقیق دی. په رد المحتار کښې هم شامي همدې لره اختیار کړی دی. علامه شامي د بحث په توګه **(وهذا الفرع اشبه بها من غیره ـ الخ)** څخه چه کوم اشکال ذکرکړی دی د هغه ځواب ظاهر دی چه اجابت په سر یا په لاس کښې امتثال او اتباع نشته بلکه ځواب دی او د تبلیغ (رسونې) په مسئله کښې اتباع او امتثال دی. **(فافترقا)**. شامي په دواړو مسئلو کښې د شبهې وجه **(لان الاجابة فیهما بالفعل)** سره بیان کړی دی لیکن د هغه نظر د مذکوره فرق خوا ته نه دی تللی

**قوله** او په دې رسالې کښې تر دوو صفحو وروسته ئې د دې تصریح کړې ده چه د حموي تخریج په یوه داسې اصولو باندې مبني دی چه صحیح نه دی. د هغه الفاظ دا دي **(اذا علمت هذا ظهر لك ما فی کلام الحموی ـ الی قوله ـ علی انه تخریج علی غیر صحیح.** (تنبیه ص ۱۴۲) (۵ مخ)

**اقول** په دې کښې مصنف مد ظله ته التباس ور لویدلی دی. دا د بحث لاندې مسئلې سره هیڅ تړاؤ نه لري بلکه له یوې بلې مستقلې مسئلې پورې تعلق لري او دا خبره د تنبیه له رسالې څخه با لکل څرګندیږي

**قوله** لیکن په دې رسالې کښې بیا هم علامه شامي دا لار ښوونه ورکړې ده چه د لمانځه نه د خارج سړي په آواز باندې تکبیر تحریمه او داسې نورو له ویلو څخه باید احتراز وشي او دا هم هغه فیصله ده کومه چه احقر پخپله رسالې مکبر الصوت کښې اختیار کړې ده چه چیرته د لمانځه د

فساد مظنه او احتمال هم وي هلته دې باید له دې څخه احتراز وشي څکه چه په لمانځه کښې د مکبر الصوت د آلې استعمال مناسب نه دی. (۵ مخ)

**اقول** شامي د احتراز روایت لره بنیان کړی نه دی بلکه د لمانځه د فساد حکم ئې ورکړی دی. د دې برعکس د مکبر الصوت په رساله کښې د لمانځه د صحت فیصله ورکړ شوې ده او احتراز اولی (بهتر) او د آلې استعمال یواځې نامناسب ګڼل شوی دی.

**قوله** (له امام څخه پرته بل چا ته فتحه ورکول) تر دې عنوان لاندې مؤلف مد ظله غیر امام ته فتح ورکول د لمانځه په حق کښې د فساد ذریعه د جوړیدو لپاره درې قیدونه بیان کړي دي.

۱ - د امام په استفتاح (فتحه غوښتنې) باندې چه خارج سړي فتحه ورکړي

۲ - خارج سړی د ور ښوولو په نیت سره فتح ورکړي. محض د خپل تلاوت په نیت سره نه وي.

۳ - د ور ښوونکي د پوره ور ښوولو په ذریعې سره امام ته خپله غلطي ظاهره شي. داسې نه وي چه د هغه په شروع کولو سره امام ته خپله ور په زړه شي. د دغو شرطونو د اثبات لپاره مؤلف مد ظله لاندیني جزئیات لیکلي دي.

۱.. وفی الدر المختار وفتحه علی غیر امامه الا اذا اراد التلاوة وکذا الاخذ الا اذا تذکر فتلا قبل تمام الفتح.

۲.. قال الشامی (قوله الا اذا تذکر) قال فی القنیة فان اخذ فی التلاوة قبل تمام الفتح لم تفسد والا تفسد وفی المبسوط للسرخسی بعد قوله تفسد به صلوٰة المصلی لانه تعلیم وتعلم.

۳.. (ثم قال) وانما هذا اذا اراد ان یفتح علی غیر امامه فحینئذ ینبغی ان ینوی التلاوة دون التعلیم فلا یضره ذٰلك. (مبسوط ج۱، ص۱۹۲)

۴.. قال فی البدائع لان فتحه بعد استفتاحه جواب وهو من کلام الناس فیوجب الفساد وان کان مرة واحدة هٰذا اذا فتح علی المصلی عن استفتاح واما اذا فتح علیه من غیر استفتاح لا تفسد صلوته بمرة واحدة وانما تفسد عند التکرار لانه عمل لیس من اعمال الصلوٰة. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۳۶)

۵.. وفی البحر واراد من الفتح علی غیر امامه تلقینه علی قصد التعلیم واما ان قصد قراءة القراٰن فلا تفسد عند الکل.

۶.. (وقال بعد ذٰلك) وفی القنیة ارتج علی الامام ففتح علیه من لیس فی صلوته وتذکر فاذا اخذ قبل تمام الفتح لم تفسد والا تفسد لان تذکره یضاف الی الفتح. (بحر ج۲، ص۰)

**اقول** د اصل کتابونو خوا ته له مراجعت څخه څرګنده شوه چه د دغو جزئیاتو په مفهوم کښې مؤلف مد ظله ته التباس شوی دی. چنانچه اوله، دریمه، څلورمه، پنځمه جزئیه مؤلف مد ظله د

امام د لمانځه په حکم پورې متعلق بللی دی. حالانکه په دغو کښې پخپله د فاتح د لمانځه حکم بیانیږي. لهذا له مذکوره شروطو څخه دویم شرط ثابت نه شو. همدارنګه څلورمه جزئیه د مذهب په خلاف ده. ملاحظه کړئ بحر الرائق ۲، ۷ مخ او کبیري ۴۱۷ مخ. پس لومړی شرط هم ثابت نه شو او د دویمې او شپږمې جزئې په اړه علامه شامي فرمائي:

**قال في الحلية وفيه نظر لانه ان حصل التذكر والفتح معاً لم يكن التذكر ناشئاً عن الفتح ولا وجه لافساد الصلوة بتأخر شروعه في القراءة عن تمام التح وان حصل التذكر بعد الفتح قبل اتمامه فالظاهر ان التذكر ناشئ عنه ووجبت اضافة التذكر اليه فتفسد بلا توقف للشروع في القراءة على اتمامه آه. ملخصاً قلت والذى ينبغي ان يقال ان حصل التذكر بسبب الفتح تفسد مطلقاً اى سواء شرع في التلاوة قبل تمام الفتح او بعده لوجود التعلم وان حصل تذكره من نفسه لا بسبب الفتح لا تفسد مطلقاً الخ.**

خلاصه دا چه تذکر ناشي له فتحې څخه دی نو په هر صورت لمونځ فاسدیږي اګر که د فاتح په شروع کولو سره هم امام ته خپله ور په زړه شي او هغه فوراً مخکښې د فتح له پوره کیدو څخه ویل شروع کړی وي. پس دریم شرط هم سالم پاتې نه شو.

**قوله**: او که چیرته ئې قرآنکریم یاد وو لیکن محض د امداد لپاره قرآن کریم مخې ته خلاص ایښی وي چه که ضرورت پیدا شي نو په دې باندې د نظر له اچولو څخه به آیت را په زړه شي. دا صورت په اجماع سره مفسد نه دی. (۷مخ)

**اقول**: د دې دعوی د اثبات لپاره چه څومره جزئیات وړاندې شوي دي د هغو ټولو مفهوم دا دی چه که چیرته د قرآن حافظ قرآن ته وګوري او لمونځ ورکړي لیکن قرآنکریم په لاس پورته نه کړي نو لمونځ نه فاسدیږي. له دې څخه دا نه ثابتیږي چه د ضرورت په وخت کښې که چیرته له قرآنکریم څخه د ور په زړه کیدو لپاره کار واخلي نو لمونځ نه فاسدیږي بلکه بلکه د دې ظاهر دا دی چه پرته د تذکر (ور په یادیدو) له استفادې څخه چه قرآن ته سړی وګوري نو لمونځ نه فاسدیږي. که چیرته د تذکر صورت فرض کړی شي نو دا د شامي د ۵۸۲ مخ د پورتنۍ یادې شوې جزئیې **(ان حصل التذكر بسبب الفتح - الخ)** سره به معارض (ټکر) وي.

**قوله**: تذکر یعنې د بل چا د خبرې په اوریدو سره کوم شی په یادیدل. دې لره له عمل څخه خارج او نه فاسدوونکی بللی دی. (۸ مخ)

**اقول**: د شامي د ۵۸۲ مخ له جزئیې څخه پورته ثابته شوه چه تذکر ناشي عن الفتح مفسد دی.

**قوله** : علامه عیني او حافظ ابن حجر او امام طحاوي د دې واقعې (تحویل قبله) څخه د دې خبرې استنباط کړی دی چه لمونځ کوونکي ته له لمانځه نه خارج سړي څخه کوم دول استفاده کول مطلقاً د فساد موجب نه دی. (۹ مخ)

**اقول** : دومره اندازه اطلاق او وسعت نه ترې څرګندیږي. خصوصا په داسې حال کښې چه حافظ ابن حجر په دې واقعه کښې د څه تاویلونو په کولو باندې مجبوریږي.

تر دې ځایه پورې د مکبر الصوت د رسالې په دلائلو پورې اړوند د ضرورت په اندازه خبره وشوه. لوس په نومورې رسالې باندې له نیوکو سره تعرض تر سره کیږي. په نفس مسئلې باندې تحقیق په آخر کښې لیکل کیږي.

## د مفتي عطاء محمد په نیوکې باندې تبصره

د مکبر الصوت په رساله کښې له تنبیه ذوی الافهام څخه را نقل شوې جزئیه **(ولم ار من صرح بخصوص مسألتنا سوی ما مرّ عن الحموی)** په باره کښې مفتي عطا محمد صاحب لیکي چه دا عبارت د تبلیغ په مسئلې پورې اړه نه لري بلکه له دې څخه مراد نژدې مذکورې مسئلې د امتثال امر الغیر (د غیر د امر منلو) یو مثال **(اذا قال له تقدم فتقدم ـ الخ)** دی.

بنده په پوره غور سره دا ځای وکوت او یو بل د اعتماد وړ عالم ته مې هم ور وښود لیکن په ذهن کښې دا راغی چه په اصل رسالې کښې چه د دې جزئیې کوم مفهوم لیکل شوی دی هم هغه صحیح دی. د مفتي عطا محمد د بیان شوي مفهوم هیڅ ګنجائش نشته. برسیره پر دې په مذکوره جزئیه کښې «مسألتنا» لفظ هم د دې وضاحت کوي چه د دې محمل هغه مسئله ده کومه چه د رسالې اصل موضوع ده. او د کوم چه پورته عنوان قائم شوی دی یعنې د تبلیغ مسئله. د شامي د دې قول په اړوند تحقیق پورته لیکل شوی دی.

## د قاضي شمس الدین صاحب په تنقید (نیوکې) باندې تبصره

**قوله** : بر تقدیر تسلیم نبودن آواز مکبر الصوت آواز اصلی متکلم درین تحریر منیر آنحضرت از مسئله صدای چرا گریز فرموده اند.

**اقول** : د دې ځواب مؤلف مد ظله پخپلې مخکښینی مطبوعه رسالې کښې داسې لیکلی دی چه د سجدې په مسئله کښې یو عبادت یعنې د سجدهٔ تلاوت مستقل ایجاب دی کوم چه د فقهاوو د تصریح مطابق د سجدې د صحیح تلاوت یا د هغې په اوریدو باندې موقوف دی. او د بدائع الصنائع د تصریح مطابق د صدي صوت ته تلاوت نه شي ویل کیدلی او که یو څوک د لیوني له

ژبې څخه سجدهٔ تلاوت واوري نو هغه اگر که تلاوت دی لیکن صحیح تلاوت نه دی ځکه چه مجنون یا لیونی د تلاوت اهلیت نه لري. د دې لپاره له هغه څخه د سجدې د آیت په اوریدو باندې سجده نه واجبیږي (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۸۲)

په خلاف د دې مسئلې چه په مقتدي باندې د امام اتباع او له هغه سره رکوع او سجدې ته تلل له مخکښې څخه لازم او واجب دي. د مکبر آواز د دې د واجب والي سبب یا علت نه دی بلکه د مکبر آواز یواځې د امام د انتقال خبر ورکوونکی دی او د امام په انتقالي حرکاتو باندې خبریدل لکه څرنگه چه عامه توگه د امام په آواز سره کیږي. همدارنگه کله کله د مخکښیني صف له نقل او حرکت څخه کله کله له سیوري او داسې نورو څخه هم کیږي. اوکله کله دمکبر په لوړ آواز سره د تکبیر په ویلو سره او کله کله د مکبر الصوت په آلې سره هم کیږي. په هر حال اتباع یواځې د امام وي کوم چه د اقتداء په سبب سره له مخکښې څخه په ده باندې لازم وو. د مکبر الصوت د آواز په اوریدلو یا نه اوریدو باندې د دې مدار نه دی. د دې لپاره د صدي د آواز وجوب په سجده کښې نه معتبرول بل شی دی او د دې په ذریعې سره د امام په انتقال باندې د استدلال په کولو سره نقل او حرکت کول بل شی دی آه.

احقر په دې تقریر باندې اشکال لري. د دې لپاره چه د مسئلې او حکم د موقع او محل تعلم له خارج څخه هم مفسد دی. (کماسیأتی) په حقیقت د فرق وجه دا څرگندیږي چه د سجدې وجوب د تلاوت په صحت باندې مبني دی کوم چه په نیت پورې موقوف دی او تلاوت کوونکی د صدي د آلې د استعمال نیت نه لري. پس د صدي آله د غیر مختاروالي له وجې د صدي صوت (آواز) د تلاوت کوونکي د صوت په حکم کښې خو راځي لیکن پرته د استعمال له نیت څخه د پیدا کیدو په سبب سره تلاوت ورته نه ویل کیږي. د دې برعکس د اقتداء د صحت لپاره د تکبیر نیت شرط نه دی بلکه نفس تکبیر هم ضروري نه دی. د امام د فعل اقتداء کافي دی. پس د صدي د آلې آواز د امام د صوت په حکم کښې دی لیکن امام د دې آلې په استعمالولو سره د دې آواز د پیدا کولو نیت نه دی کړی او د اقتداء د صحت لپاره دا نیت شرط نه دی.

**قوله** اگر در میان صفوف جماعت کلان بر جای بلند یك خوانده طوطی نشسته باشد و صلاحیت نقل تکبیرات امام دارد و چون امام تکبیرهٔ تحریمه گوید آن طوطی تکبیر او شنیده بآواز بلند فوراً نقل آن آواز کند مقتدیان بعید این جماعت که در انتظار تکبیرهٔ تحریمه امام بامر الهی اند و خواهند که بامر الهی باقتداء امام تکبیر گویند لیکن حال امام بوجه دوری از امام ازین مقتدیان مستور است و آواز تکبیر امام نیز باین مقتدیان نمی رسد و چون آواز طوطی شنیدند پس با خبر شده تکبیر پس امام خود گفته تحریمه بستند و از

آواز این طوطی منتقل کر شنیدند که اکنون امام تکبیر گفته است و درین جا هر گز احتمال نیست که کسی وقعت این طوطی مسکین در نظر می دارد و بپاس خاطر او تکبیر می گوید و کلام طوطی کلام طوطی است نه کلام الناس هم نیست، پس مطابق اصول زرین بیان فرمودۀ آنحضرت نماز همه مقتدیان صحیح باشد زیرا که در تکبیر گفتن این طوطی نیز نه عمل قلیل و کثیر است و نه کلام الناس.

**اقول**: طوطي نه د صدي او مكبر الصوت غوندې يوه غير مختاره آله ده چه فعل ئې د مستعمل خوا ته منتقل شي او صوت ته ئې د امام د صوت په حكم كښې وويل شي او نه طوطي انسان دی چه په مستقله توګه د هغه په خبر باندې اعتماد وشي. په معاملاتو كښې هم د طوطي په خبر باندې د اعتماد اجازه نه شته او دلته خو مسئله د دياناتو ده. د بيوع، اجاراتو او داسې نورو عقدونو د طوطي په ذريعې سره عدم انعقاد او د دې بر عكس د مكبر الصوت د آلې په ذريعې سره د هغو انعقاد دومره بيّن او واضح (ښكاره) دی ښائي هيڅوک هم له دې څخه د انكار جرئت و نه شي كړی

## د نفس مسئلې تحقيق

د مصلی (لمونځ كوونكي) له خارج سره د معاملې مختلف صورتونه دي:

۱ - اجابت با لقول.

۲ - اجابت با لعمل الكثير، دا دواړه د لمانځه مفسد دي.

۳ - اجابت با لعمل القليل كا لاجابة باشارة الرأس او اليد. دا د لمانځه مفسد نه دی.

۴ - تذكر، (ور په زړه كول) په دې اړه د شامي تحقيق تير شو چه كه چيرته تذكر ناشي عن فتح الخارج وي نو مفسد به وي او كه نه وي نو مفسد به نه وي. ليكن په دې كښې د بنده شرح صدر نشته. لومړی د دې لپاره چه په عامو كتابونو كښې (الا اذا تذكر قبل تمام الفتح) مطلق دی. دويم د دې لپاره چه تعلم د عمل كثير د كيدو پر بناء مفسد ګڼل شوی دی او د تذكر عمل كثير كيدل معرض خفاء كښې دی. دريم د دې لپاره چه د شامي په تحقيق باندې ځينې مواقع داسې پيښيږي چه په هغو كښې د لمانځه اصلاح ناممكن ګرځي. او لمونځ كوونكی د لمانځ د عمل په ابطال باندې مجبوريږي. مثلا لمونځ كوونكي ته په قيام، قعود يا د لمانځه په نورو اركانو څخه په يو ركن كښې سهو واقع شي. خارج فتحه وركړه او په دې باندې لمونځ كوونكي ته پخپله هم ور په زړه شو. اوس د دې لمانځه د پوره والي هيڅ طريقه ممكنه نه ده. نه پخپل تذكر ناشي عن فتح الخارج باندې عل كولی شي او نه تر تذكر وروسته په قصد سره كوم ركن پريښودلی شي. پس د لمانځه له باطلولو پرته بله لاره نه لري. (و قال الله تعالیٰ لا تبطلوا اعمالكم) پس په دې باندې عمل كول متعين شو

۵ - د خارج اتباع او متثال تطييباً لخاطره (د هغه د زړه د خوشحالۍ لپاره)، دا د لمانځه مفسد دی.

۶ - تعلم القرآن يا تعلم المسئله (د قرآن يا د مسئلې زده کړه) دا هم د لمانځه مفسد دی

۷ - تعلم محل المسئله (د مسئلې د ځای زده کړه) د کوم شي تعليم لره چه شامي په اعلام او تذکير سره تعبير کړی دی. لکه تقدم، تاخر، توسعه، د قبلې د تحويل واقعه له پورتني جزئياتو څخه څرګنديږي چه دا مفسد نه دي.

**وفي العلائية لو اشتبه على المريض اعداد الركعات و السجدات لنعاس يلحقه لا يلزمه الاداء ولو اداها بتلقين غيره ينبغي ان يجزيه كذا في القنية وقال في الشامية تحته قد يقال انه تعليم وتعلم وهو مفسد كما اذا قرأ من المصحف او علمه انسان القراءة وهو في الصلوة ط وقد يقال انه ليس بتعليم و تعلم بل هو تذكير و اعلام فهو كاعلام المبلغ بانتقالات الامام فتأمل. (ردالمحتار ج۱،ص۶۱۳)**

په دې کښې هم تصريح ده چه د مسئلې د محل تعلم مفسد نه دی. د تبليغ په مسئله کښې هم د مسئلې د محل تعلم دی. د نفس مسئلې تعلم نه دی. په دې لحاظ سره په دې کښې بايد تعلم له خارج څخه مفسد و نه بلل شي. د شامي په مذکوره عبارت کښې **(فهو كاعلام المبلغ)** هم د دې پوره وضاحت کوي ليکن په تنبيه ذوی الافهام کښې د غزي او حموي د تحقيق مطابطق شامي د تبليغ په مسئله کښې له خارج څخه تعلم لره مفسد ګڼلی دی. پس د تعارض د لرې کولو دا صورت په ذهن کښې راځي چه د تقدم، تاخر، توسعه او داسې نور د عدم فساد وجوهات مختلف بيان شوي دي ځينو د منصوص على خلاف القياس کيدلو حکم لګولی دی اوځينو د لمانځه د اصلاح ضرورت بللی دی. او ځينو د شارع د امر منل ګڼلی دی. د دغو مختلفو تعبيراتو نتيجه تقريباً يوه ده لهذا منصوص على خلاف القياس او د لمانځه د اصلاح د ضرورت په لحاظ ساتلو سره د شارع د امر د منلو مفهوم دا تاکل کيږي چه په دې خاصې موقع باندې د لمانځه د اصلاح د ضرورت په خاطر د شارع امر وارد شوی وي او د دې امتثال (منل) مقصود وي. د تبليغ په مسئله کښې تعلم من الخارج نه منصوص على خلاف القياس دی او نه په دې کښې د لمانځه د اصلاح ضرورت دی. د دې لپاره دا ضرورت په تعلم من الداخل څخه پوره کيدلی شي. او نه په دې باره کښې په خاصه توګه د شارع امر وارد شوی دی چه منل ئې مقصود وي. د مريض په اړه د قنيې جزئيه **(ولو اداها بتلقين غيره ينبغي ان يجزيه)** هم د لمانځه د اصلاح په ضرورت باندې مبني دی. شامي چه کوم د دې علت بيان کړی دی هغه صحيح نه معلوميږي د دې لپاره لومړی خو دې ته تذکير ويل لرې خبره ده. دويم دا چه د تذکير په اړه د شامي خپله فيصله پورته وليکل شوې ده چه تذکر ناشي عن التذکير

وي نو مفسد دی. دريم د شامي دا توجيه د دې مستلزم دی چه د تبليغ په مسئله کښې تعلم من الخارج دې جائز شي. بلکه تقريباً د دې تصريح دی چه کوم چه پخپله د شامي فيصله د مندرجه تنبيه په خلاف ده. ممکنه ده چه په فتأمل سره شامي همدې خوا ته اشاره کړې وي. لنډه دا چه د تبليغ په مسئله کښې تلقن من الخارج د لمانځه مفسد دی.

## د مکبّر الصوت آله

په حقيقت کښې دلته دوه جلا جلا مسئلې دي يوه مسئله د استعمال د جواز ده او بله د لمانځه د صحت ده. د بنده په خيال کښې د دغو دواړو سوالونو ځوابونه مختلف دي. يعنې د مکبر الصوت د آلې استعمال په لمانځه کښې مکروه دی. ليکن د دې تر څنګ که چيرته چا اقتداء وکړه نو لمونځ ئې صحيح کيږي. د استعمال کراهت د دې لپاره دی چه پرته له ضرورت څخه د تبليغ مسنونه او معتمد عليه او يقيني طريقې په پريښودلو سره د ناقابلِ اعتماد طريقې غوره کول صحيح نه دي. البته په عوامو کښې د جهل، ناپوهي زياتوالی او د اهليت د نشتوالي يا له کومې بلې وجې څخه د مکبرينو معقول انتظام نه وي نو د ضرورت له مخې د مکبر الصوت د آلې په استعمال کښې مضائقه نشته. تر خپله وسه پورې احتراز ترې اولی او احوط دی.

دويمه مسئله د لمانځه د صحت ده. چه په دې کښې د لاندينې وجوهاتو پر بناء بنده هم د مکبر الصوت د رسالې او د ديوبند د نورو اکابرينو (مشرانو) له رأيې سره موافق دی او د لمانځه د صحت قائل دی.

۱ - د مکبرالصوت آواز عين دمتکلم آواز دی او که د بل چا؟ د دې تر اوسه پورې سائنسدانانو فيصله نه ده کړې. د اختلاف په صورت کښې د (اليقين لا يزول بالشك) په قاعده د دې آلې صوت عين د متکلم صوت ګڼل کيږي. ځکه چه د متکلم د صوت وجود يقيني او د مغائر د صوت وجود مشتبه دی. خصوصا په داسې حال کښې چه د شريعت د احکامو مدار په ظاهر باندې دی. نه چه په فلسفيه تدقيقاتو باندې او ظاهره دا ده چه کله امام خبره کوي نو دا آواز د هم هغه دی.

۲ - که چيرته دا صوت (آواز) د متکلم د آواز غير فرض کړی شي نو د مکبر الصوت آله محض يوه غير مختاره آله ده. لهذا د دې غږ به د متکلم د غږ په حکم کښې وي.

۳ - فقهاوو رحمهم الله د اقتداء د عدم صحت صورتونه په ډير تفصيل سره بيان کړي دي ليکن د صدي د غږ د اقتداء فساد ئې هيچرته نه دی بيان کړی. دا هم نه شي ويل کيدلی چه د مصنفينو ذهن د صدي د غږ خوا ته نه دی تللی د دې لپاره د سجدهٔ تلاوت په بحث کښې ټول مصنفين په دې باندې بحث کوي. پس د سجدهٔ تلاوت په باب کښې د ټولو مصنفينو دا بيانول او د اقتداء په بحث کښې قاطبةً ټول فقهاء له دې څخه په مکمله توګه سکوت اختيارول او دې خوا ته د هيچا هم توجه

نه کول سره له دې چه مسئله محتمل الوقوع ده او دا نسبت د سجدهٔ تلاوت د وقوع زيات نژدې احتمال لري د دې خبرې واضح دليل دی چه د صوت صدي اقتداء صحيح ده.

۴ـ په جوماتونو کښې د محرابونو او منارو په ذريعې سره د غږ د تبليغ (رسونه) تعامل او توارث را روان دی خصوصاً د ټهټه قديمي تاريخي جومات کښې د معماري د فن اعجوبه به ډيرو حضراتو ليدلې وي چه د خطيب آواز د منارو يا گنبدو په ذريعه تر څومره لرې پورې په واضحه توگه رسيږي د گنبدونو په ذريعه په رسيدونکي آواز کښې تر ټولو نژدې احتمال دا دی چه صدی دی ليکن تر نن پورې په هيڅ يوې زمانې کښې په دې باندې اشکال نه دی وړاندې شوی که چيرته بالفرض د گنبدونو د آواز صدي نه کيدل هم تسليم شي نو بيا هم کم تر کمه د صدي والي احتمال خو ضرور شته د کوم چه مقتضی دا وه چه د دين علماء کرام دې خوا ته متوجه شوي وای او د دې د صدي والي او نه صدي والي تحقيق ئې کړی وای د عدم تحقيق په صورت کښې د لمانځه د اهميت له مخې به ئې له دې څخه احتراز ضروري گڼلی او د لمانځه د فساد حکم ئې صادر کړی وای ليکن تر ننه پورې هيڅ يوه عالم دې خوا ته قطعاً هيڅ کتنه نه ده کړې چه له دې څخه څرگنده شوه چه د صدي د غږ اتباع د لمانځه مفسد نه دی او دا له توارث څخه ثابت دی.

فقط وهذا ما جاء فی نظری القصير والعلم عند الله اللطيف الخبير.

غرهٔ محرم ۸۱ هجری، يوم الجمعة



وما توفيقى الا بالله عليه توكلت واليه أنيب

# نيل السعادة با لاقتداء فى الصلوة المعادة

**په لمانځه کښې د نقص د واقع کیدو له وجې چه جماعت دوباره وشي نو په هغې کښې د نوي مقتدي د شريکيدو حکم**

## په هغه لمانځه کښې چه د واجبو د ترک له وجې بيرته له سره ګرځول کيږي د نوي مقتدي لپاره د شريکيدلو حکم

د يوې اهمې مسئلې په اړه د دوه حضراتو متضاد ځوابونه ستاسو په خدمت کښې دي. له حضرت ځخه هيله ده چه د دغو په ملاحظه کولو سره فيصله وکړي او له خپل ژور تحقيق ځخه مونږ مستفيد وګرځوي. ((له مظفر نګر (انډيا) ځخه))

**سوال**: د واجبو د ترک پر بناء چه کله د لمانځه اعاده کيږي نو نوی راغلی سړی په دې دويم جماعت کښې شريکيدلی شي او که نه؟ په امداد الفتاوٰی کښې د نوي راغلي سړي د شرکت جواز مذکور دی او د امداد الفتاوٰی په حاشيه باندې شرکت د غير د قول مطابق غوره ګڼل شوی دی. او دليل ئي دا بيان کړی دی چه دويم لمونځ مستقل لمونځ نه دی. لهذا د مستقلو لمونځ کوونکو اقتداء نه صحيح کيږي. عرض دا دی چه د شرکت جواز مختار (غوره) دی او که نه جواز؟ له تفصيل سره ځواب وليکئ ډيره مهرباني به مو وي. ۹۵/۱۱/۲۰هجری

**لومړی ځواب**: **حامداً و مصلّياً** د مجتهدينو په خبرو کښې د پلټنې تر ځنګ د نوي راغلي مقتدي د شرکت يا نه شرکت تصريح لاس ته را نه غی. غالباً دا مسئله په دې باندې متفرع ده چه دويم لمونځ نفل دی که فرض. د دې فيصله حضرت علامه ابن عابدين شامي رحمه الله په دې الفاظو سره کړې ده.

يؤخذ من لفظ الاعادة و من تعريفها بما مرّ انه ينوى بالثانية الفرض لان ما فعل اولاً هو الفرض فاعادته فعله ثانيًا اما على القول بان الفرض يسقط بالثانية فظاهر و اما على القول الأخر لفان المقصود من تكرارها ثانياً جبر نقصان الاولى فالاولى فرض ناقص و الثانية فرض كامل مثل الاولى ذاتاً مع زيادة وصف الكمال ولو كانت الثانية نفلاً لزم ان تجب القراءة فى ركعاتها الاربع آه. (ردالمحتار باب قضاء الفوائت ص۴۹۷)

د فقهاوو په تعبیراتو کښې خامخا اختلاف شته. ځینو (سقط بالاول) او ځینو (یکون الفرض هو الثاني) څخه تعبیر کړی دی لیکن علامه شامي رحمه الله د تحقیق مطابق دا اختلاف د تعبیراتو دی، حقیقي نه دی ځکه چه (سقوط الفرض بالثانیة) مطلب دا نه دی چه په لومړي لمانځه سره د فرض سقوط با لکل شوی نه دی او په دویم لمانځه باندې په داسې ډول موقوف وو چه که چیرته با لفرض دویم ځل دا فعل نه وای شوی نو لمونځ کوونکی به خارج عن الصلوة نه وای بلکه مطلب دا دی چه د فرضو د سقوط حکم موقوف دی په عدم اعاده باندې (د شامي نظائر په باب قضاء الفوائت کښې راغلي) او چه که اعاده وشوه نو دا فرض نفل وګرځیدل لکه څرنګه چه که چیرته یو څوک د ماسپښین لمونځ وکړي او بیا د جُمعې په لمانځه کښې شریک شي فرض ئې د امام ابو حنیفه او امام ابو یوسف رحمهما الله په نزد په نفلو بدلیږي. چنانچه که چیرته د جُمعې په لمانځه کښې له هغه څخه کوم رکن فوت شي نو د ماسپښین د لمانځه بیرته را ګرځول به پرې لازم وي او د فرضو سقوط په اول لمانځه سره او دویم جابر (پتی) دی دا قول هم د دویم لمانځه د نفل کیدو په لاره کښې مستلزم نه دی ځکه چه د دې معنی د علامه شامي رحمه الله د تحقیق مطابق دا دی چه د فرضو سقوط د دویم لمانځه په شروع کولو باندې موقوف نه دی بلکه که چیرته اعاده و نه شي نو د فرضو سقوط سره له نقصانه شوی دی. اوس د دې نقصان د پوره کولو په خاطر د لومړي لمانځه ذات له کمال سره را ګرځول کیږي، په کومې طریقې سره چه په آخري قعدې باندې ارکان پوره کیږي د فرضو سقوط په کوم بل شي باندې موقوف نه دی لیکن د سجدهٔ سهو د سلام نه وروسته تر آخره پورې چه کومه حصه ده هغه به فرض واقع کیږي. چنانچه که څوک په دې حالت کښې اقتداء وکړي په اتفاق سره به د هغه اقتداء صحیح وي نو دا (دویم لمونځ) د سجدهٔ سهو مثال لري.
(کما فی رد المحتار جابر للاول بمنزلة الجبر بسجود السهو) چونکه د سجدهٔ سهو په صورت کښې له لمانځه سره منافي یا بل کوم عمل نه دی تر سره شوی د دې لپاره شارع علیه السلام د دې سجدې او تشهد زیاتوالی د سهو په محل پورې د مربوط په ګڼلو سره د نقصان د جبر لپاره کافي اعتبار کړ او د اعاده په صورت کښې د لمانځه سره منافي عمل تر سره شوی دی لهذا د دې زیاتوالي بنا په اصل لمانځه باندې ممکن پاتې نه شو د دې لپاره ئې د نوي تکبیر تحریمه سره مستقل لمونځ لره جابر قبول کړ. د څلور رکعته لمانځه لپاره څلور رکعته او د درې رکعتونو لپاره درې رکعته لمانځه تعدد یواځې صورةً دی. که چیرته د نقصان د جبر (پتی) لپاره محض زیاتوالی مطلوب وای نو دوه رکعته لمونځ مشروع دی. د هر لمانځه لپاره به دوه رکعته لمونځ جابر کیدلی شوای معاده لمونځ لترک الواجب د پاتې شوي واجب قائم مقام دی او د ټولو لمونځونو واجبات مساوي دي نو د هر

لمانځه لپاره په صرف یوه اندازه قیاس ته نژدې وو لیکن داسې نه دی نو څرګنده شوه چه محض زیاتوالی مطلوب نه دی بلکه زیاتوالی سره د ذات له اتحاده مجبور او جابر مطلوب دی مثلاً د ماسپښین د لمانځه د ذات وجود له څلوره رکعتو څخه کیږي له دې امله لجبر النقصان لپاره هم څلور رکعته مطلوب شول غرض دا چه مؤداة با لفعل الثاني مماثل با لفعل الاولی في سائر الاجزاء مطلوب کیدل دلیل دی چه دویم لمونځ د لومړي لمانځه غوندې تر وقوع وروسته فرض دی. د ذات له ذاتیاتو او ذاتي صفاتو څخه که چیرته کوم یو معدوم شي نو ذات هم باقي نه پاتې کیږي او که چیرته په عارضي صفاتو کښې خلل واقع شي نو ذات باقي پاتې کیږي لیکن په اوصافو کښې د دې خلل د واقع کیدو نقص خاص د ذات خوا ته راجع کیږي. بیا که چیرته دا نقصان پوره کیږي نو دا جبر نقصان پرته د ذات له واسطې څخه ممکن نه دی. دا تصریح هم مخې ته نه ده راغلې چه په دویم لمانځه کښې د نفلو نیت کاني ګرځي. په طحطاوي علی مراقی الفلاح کښې (نَفْلٌ جَابِرٌ) راغلی دی د دې معنی به د تطبیق په صورت کښې دا وي چه کله د لمانځ شرطونه او ارکان پوره شي نو اوس دوباره شروع په فعل باندې فرض نه دی بلکه غیر فرض دی. (چونکه د ځینو په نزد اعاده واجبه ده او د ځینو په نزد مستحبه او ځینو د فی الوقت او بعد الوقت تفصیل کړی دی د دې لپاره ئې د نفلو لفظ ذکر کړ کوم چه دواړو ته شامل دی) د اول لمانځه نقصان لره پوره کوي لهذا دا د فعل د ابتداء پسې د فرض د واقع کیدو منافي نه دی. په مسافر باندې د جُمعې لمونځ فرض نه دی لیکن چه کله ئې ادا کړي نو فرض واقع کیږي. چنانچه د مسافر اقتداء په اتفاق سره صحیح دی. حاصل دا چه ځینو تر اعاده مخکښې اولنی لمونځ او ځینو د بعد الاعاده په اعتبار سره دویم لمونځ په مسقطة الفریضه سره تعبیر کړی دی. د ټولو مآل یو دی. (کما فی رد المحتار وبهذا ظهر التوفيق بين القولين وان الخلاف بينهما لفظي). تر دې وضاحت وروسته د نوي راغلي مقتدي د عدم شرکت قول په غوره ګڼلو کښې تأمل دی. د عدم شرکت قول ته د غلط ویلو جرئت خو نه شي کیدلی. عارف با لله حضرت مولانا مفتي عزیز الرحمٰن صاحب فتوی په عدم شرکت باندې دی او د حکیم الامت حضرت مولانا القاري اشرف علي صاحب نور الله مرقدهما فتوی په شرکت باندې دی. دواړه حضرات مې مقتدایان دي او ممکنه ده بلکه ظن ده چه حضرت مفتي صاحب رفعت درجاتهم په مخکښې ډیر قوي دلیل وي چه د هغه په مخکښې د خاکسار دا لیکنه با لکل هیڅ وي لیکن چونکه د حضرت مفتي صاحب دلیل مستور دی او د حکیم الامت مدت فیوضهم د فتوی دلیل او ماخذ ظاهر دی د دې لپاره د شرکت قول لره غوره ګڼل قریب الفهم (پوهیدو ته نژدې) معلومیږي د عدم شرکت دلیل د دویم لمانځه غیر مستقل والی لیکل شوی دی. د مستقل او غیر مستقل لمانځه د تقسیم شرعي ماخذ او تعریف. بیا تعریف شوی د مستقل لمونځ کوونکو په غیر

مستقل لمونځ کوونکو پسې د اقتداء د عدم جواز ثبوت د بیان محتاج دی حضرت محشی صاحب ژوندی دی او لرې هم نه دی دا به د هغه خدمت ته وړاندې کړو. فقط والله تعالی اعلم

حررہ العبد............عفی عنه ۹۵/۱۱/۲۳ هجری

**دویم ځواب له محشی څخه:**

د علامه شامي رحمه الله تحقیق دا دی چه اصل لمونځ او را ګرځول شوی لمونځ دواړه فرض دي لیکن په دې تحقیق کښې حضرت علامه منفرد (یواځې) دی لکه څرنګه چه پخپله هغه د بحث په پای ته رسولو سره لیکلي دي چه **(هذا نهایة ما تحرر لی من فتح الملك الوهاب فاغتنمه فانه من مفردات هذا الکتاب ـ آه)**. لیکن غوره قول هغه دی کوم چه علامه طحطاوي د مراقی الفلاح په حاشیه باندې لیکلي دي چه **(و المختار ان المعادة لترك الواجب نفل جابر و الفرض سقط بالاولی)**. حضرت اقدس تهانوي قدس سرہ د حضرت علامه شامي د تحقیق مطابق فتوی لیکلې ده او حضرت مفتي عزیز الرحمن صاحب او حضرت مفتي کفایت الله صاحب. حضرت مفتي عبد الرحیم صاحب د طحطاوي د قول مطابق فتوی ورکړې ده. دا وخت د مظاهر العلوم او دار العلوم فتوی هم همدغه ده اوس تاسو فیصله وکړئ چه ډیروالی کومې خوا ته دی پاتې شو دا بحث نو دا د نظر یوه خاصه نقطه را اخیستل شوې ده. د دویم نقطهٔ نظر درلودونکي هم داسې بحثونه کوي **(فاین المفر و الله اعلم بحقیقة الحال)**. زما د بحث په څو څو ځله ویلو باندې هم سر خلاص نه شو. **(لعل الله یحدث بعد ذلك امراً)**.

کتبه............عفا الله عنه ۹۵/۱۱/۲۷ هجری

## د ځواب ځواب د لومړي ځواب ورکوونکي له خوا

نحمده و نستعینه و نصلی علی رسوله الکریم. د علامه شامي رحمه الله عبارت **(هذا نهایة ما تحرر لی ـ الخ)** مطلب دا دی چه د دواړو قولونو په تطبیق کښې حضرت علامه رحمه الله منفرد (یواځې) دی نه چه د دویم لمانځه په فرض ګڼلو کښې منفرد دی. حضرت علامه حلبي پخپل شرح کبیري کښې د لمانځه د واجباتو په شروع کښې فرمایلي دي **(ومن المشائخ من قال یلزمه ان یعید و یکون الفرض هو الثانی)** او پخپله علامه شامي رحمه الله د ابو الیسر قول را نقل کړی دی او ابن الهمام د فتح القدیر ملا صاحب دویم لمانځه لره د فرض په ګڼلو کښې عدم سقوط الفرض با لاولی (په اول لمانځه سره د فرض نه ساقطوالی) پرته د رکن له ترک څخه د اشکال په ظاهرولو **(الا ان یقال المراد ان ذلك امتنان ـ الخ)**

ځواب ورکړ همدارنګه په ځواب کښې منقول عبارت کښې **(و اما على القول بأن الفرض يسقط با لثانية)** مصرح دی بیا د علامه شامي رحمه الله انفرادیت په څه وجه تاکل کیدلی شي

د اول تفصیلي ځواب تر ملاحظې وروسته د طحطاوي له عبارت څخه دا معنی مراد اخیستل چه دویم لمونځ وروسته له وقوع څخه فرض نه دی پرته له دلیل څخه دې ته مختار ویل چا ته ښه ښکاریږي. د طحطاوي په مذکوره عبارت کښې د معاده د نفل خبره کوم چه تر وقوع وروسته متصف بالفعل کیدو باندې دال دی نه ذکر کول او نفل مصدر لره ذکر کول کوم چه یواځې په حدوث باندې دال دی په تیر شوي ځواب نمبر ۱ کښې د مذکور تاویل مؤید دی. د مجرد اولی د فرضیت د دلیل **(لان الفرض لا يتكرر)** په باره کښې په طحطاوي شرح درمختار کښې **(وفيه نظر)** مذکور دی.

کثرت په هغه وخت کښې راجح وي چه د جانبینو دلائل سره مساوي وي او هر یوه د جانبینو دلائل معلوم وي. د دې شاهد د خلیفه هارون الرشید د خلافت د دورې یوه واقعه ده چه غله د مال د اخیستلو اقرار وکړ. د مجلس ټولو فقهاوو د لاس د پرې کولو حکم ورکړ لیکن امام ابو یوسف رحمه الله د لاس له پریکولو څخه انکار وکړ او وئې ویل چه د مال په اخیستلو سره لاس نه پرې کیږي د غلا اقرار ضروري دی بیا هغه په معلومولو باندې د غلا اقرار هم وکړ نو د ټولو فقهاوو اتفاق راغی چه اوس خو د لاس پرې کول ضروري وګرځید لیکن امام ابو یوسف رحمه الله وفرمایل چه اوس ئې هم لاس نه پرې کیږي. په لومړي اقرار سره ضمان واجب شوی وو، بیا د غلا په اقرار سره ضمان ساقطوي لهذا اقرار به نه اوریدل کیږي. د امام ابو یوسف رحمه الله دلیل که چیرته دغو فقهاوو ته نه وای رسیدلی نو ټول به پخپلو رایو باندې قائم اوسیدل او د دوی د ټولو دا اتفاق صواب نه وو.

د دویم نقطهٔ نظر درلودونکو بحث چه لیکل شوی وای نو مهرباني به مو وای. هغه که چیرته قوي وای نو تسلیم شوی به وای او کم تر کمه د مستقل لمانځه الخ د بیان ثبوت خو مطلوب وو دا خو چه لیکل شوی وای بخل مناسب نه دی.

د مفر ضرورت نشته چه د هغه د پلټلو فکر وکړی، د ماوي ضرورت دی هغه بحمد الله میسّر دی. فقط والله تعالیٰ اعلم حررہ العبد..........................عفی عنه ۹۵/۱۲/۱۳هجری

## الجواب باسم ملهم الصواب:

د مسئلې د اهمیت او په دې کښې د اکابرو علماوو د اختلاف او بحث له مخې په دې اړوند د فقهاء کرامو رحمهم الله عبارتونه لړ غوندې په تفصیل سره وړاندې کیږي.

قال العلامة ابن عابدین رحمہ اللہ علیہ فی منحة الخالق علی البحر الرائق فی باب قضاء الفوائت وخرج به ایضاً فعل مؤله بعدہ لخلل غیر الفساد و عدم صحة الشروع فهو خارج عن الاقسام الثلاثة کما انبه علی المحقق ابن الهمام فی التحریر لکن قال العلامة ابن امیر حاج فی شرحه ان هذا مبنی علی ما علیه البعض و الا فقول المیزان الاعادة فی عرف الشرع اتیان بمثل الفعل الاوّل علی صفة الکمال بان وجب علی المکلف فعل موصوف بصفة الکمال فاداه علی وجه النقصان و هو نقصان فاحش یجب علیه الاعادة و هو اتیان مثل الاول ذاتاً مع صفة الکمال آہ یفید انه اذا فعل ثانیاً فی الوقت او خارج الوقت یکون اعادة کما قال صاحب الکشف آہ. و نحوه فی شرح اصول فخر الاسلام للشیخ اکمل الدین فانه قال ولم یذکر الشیخ الاعادة و هی فعل ما فعل اولاً مع ضرب من الخلل ثانیاً و قیل هو اتیان مثل الاول علی وجه الکمال لانها ان کانت واجبة بان وقع الاول فاسداً فهی داخلة فی الاداء او القضاء و ان لم تکن واجبة بان وقع الاول ناقصاً لا فاسداً فلا یدخل فی هذا التقسیم لانه تقسیم الواجب و هی لیست بواجبة و بالاوّل یخرج عن العهدة و انْ کان علی وجه الکراهة علی الاصح فالفعل الثانی بمنزلة الجبر کالجبر بسجود السهو آہ وهو موافق لکلام المیزان حیث لم یقیدها بالوقت و مخالف له حیث صرح بعدم وجوبها وفی شرح التحریر هل تکون الاعادة واجبة فصرح غیر واحد من شراح اصول فخر الاسلام بانها لیست بواجبة و ان بالاول یخرج عن العهدة و ان کان علی وجه الکراهة علی الاصح و ان الثانی بمنزلة الجبر و الاوجه الوجوب کما اشار الیه فی الهدایة وصرح به بعضهم کالشیخ حافظ الدین فی شرح المنار وهو موافق لما عن السرخسی و ابی الیسر من ترک الاعتدال تلزمه الاعادة زاد ابو الیسر و یکون الفرض هو الثانی و علی هذا یدخل فی تقسیم الواجب ثم نقل عن شیخه ابن الهمام لا اشکال فی وجوب الاعادة اذ هو الحکم فی کل صلوة ادیت مع کراهة التحریم ویکون جابراً للاول لان الفرض لا یتکرر و جعله الثانی یقتضی عدم سقوطه بالاول و هو لازم ترک الرکن لا الواجب الا ان یقال المراد ان ذٰلک امتنان من الله تعالی اذ یحتسب الکامل و ان تأخر عن الفرض لما علم سبحانه انه سیوقعه آہ. اقول ویظهر لی التوفیق بان المراد بالوجوب الافتراض فی عبارة الشیخ اکمل الدین لانه ذکر وجوبها عند وقوع الاول فاسداً و لا شبهة فی انها حینئذ فرض و ذکر عدم الوجوب عند وقوع الاول ناقصاً لا فاسدا و لا شبهة فی عدم افتراضها حینئذٍ و علی هذا یحمل کلام شراح اصول فخر الاسلام فلا ینافی ذٰلک ما اشار الیه فی الهدایة و صرح به فی شرح المنار من ان الوجه الوجوب لان المراد به الوجوب المصطلح لا الافتراض. (البحر الرائق ج۲، ص۸۷، ۸۹)

و قال الشیخ زین الدین ابن نجیم رحمۃ اللہ علیہ و الاعادة فعل مثله فی وقته لخلل غیر الفساد و عدم صحة الشروع وهو المراد بقولهم کل صلاة اديت مع كراهة التحريم فسبيلها الاعادة فكانت واجبة فلذا دخلت فی المأمور به.
(البحر الرائق ج۲،ص۷۹)

و قال ملك العلماء الكاسانی رحمۃ اللہ علیہ فان كان المتروك فرضاً تفسد الصلوٰة و ان كان واجباً لا تفسد ولكن تنتقص و تدخل فی حد الكراهة.(بدائع الصناع ج۱،ص۱٦۷)

و قال العلامة الحلبی رحمۃ اللہ علیہ فی الشرح الكبير و من المشائخ من قال يلزمه ان يعيد و يكون الفرض هو الثانی و المختار ان الفرض هو الاوّل و الثانی جبر للخلل الواقع فيه بترك الواجب قال الشيخ كمال الدين ابن الهمام لا اشكال فی وجوب الاعادة اذ هو الحكم فی كل صلوة اديت مع كراهة التحريم و يكون جابراً للاول لان الفرض لا يتكرر و جعله الثانی يقتضی عدم سقوطه بالاول و هو لازم ترك الفرض لا الواجب انتهٰی. (الشرح الكبير ص۲۸۸)

و قال فی العلائية و كذا كل صلوة اديت مع كراهة التحريم تجب اعادتها و المختار انه جابر للاول لان الفرض لا يتكرر قال فی الحاشية (قوله و المختار انه) ای الفعل الثانی جابر للاول بمنزلة الجبر بسجود السهو و با لاوّل يخرج عن العهدة و ان كان علی وجه الكراهة علی الاصح كذا فی شرح الاكمل علی اصول البزدوی و مقابله ما نقلوه عن ابی اليسر من ان الفرض هو الثانی و اختار ابن الهمام الاول قال لان الفرض لا يتكرر و جعله الثانی يقتضی عدم سقوطه بالاول اذ هو لازم ترك الركن لا الواجب الا ان يقال المراد ان ذٰلك امتنان من الله تعالیٰ اذ يحتسب الكامل و ان تأخر عن الفرض لما علم سبحانه انه سيوقعه آه. يعنی ان القول بكون الفرض هو الثانی يلزم عليه تكرار الفرض لان كون الفرض هو الثانی دون الاول يلزم منه عدم سقوطه بالاول و ليس كذٰلك لان عدم سقوطه بالاول انما يكون بترك فرض لا بترك واجب و حيث استكمل الاوّل فرائضه لا شك فی كونه مجزئاً فی الحكم و سقوط الفرض به و ان كان ناقصاً بترك الواجب فاذا كان الثانی فرضاً يلزم منه تكرار الفرض الا ان يقال الخ فافهم.(ردالمحتار ج۱،ص۴۲٦)

و فی الدر المختار فی باب قضاء الفوائت و الاعادة فعل مثله فی وقته لخلل غير الفساد لقولهم كل صلوٰة اديت مع كراهة التحريم تعاد ای وجوباً فی الوقت و اما بعده فندباً. قال ابن عابدين رحمۃ اللہ علیہ تحت (وله فی وقت) ثم اعلم ما ذكرهنا فی تعريف الاعادة هو ما مشی عليه فی التحرير و ذكر شارحه ان التقييد بالوقت قول البعض و

الا ففی المیزان الاعادۃ فی عرف الشرع اتیان بمثل الفعل الاوّل علی صفۃ الکمال بان وجب علی المکلف فعل موصوف بصفۃ الکمال فاداہ علی وجہ النقصان و ہو نقصان فاحش یجب علیہ الاعادۃ و ہو اتیان مثل الاوّل ذاتاً مع صفۃ الکمال آہ. (ثم قال بعد اسطر) و ان کان علی وجبہ الکراہۃ علی الاصح فالفعل الثانی بمنزلۃ الجبر کا لجبر بسجود السھو آہ. ثم قال تحت (قولہ ای وجوباً فی الوقت) و قال فی شرح التحریر و ہل تکون الاعادۃ واجبۃ فصرح غیر واحد من شراح اصول فخر الاسلام بانہا لیست بواجبۃ و انہ بالاولی یخرج عن العہدۃ و ان کان علی وجہ الکراہۃ علی الاصح و ان الثانی بمنزلۃ الجبر و الاوجہ الوجوب کما اشار الیہ فی الہدایۃ و صرح بہ النسفی فی شرح المنار و ہو موافق لما عن السرخسی و ابی الیسر من ترک الاعتدال تلزمہ الاعادۃ و زاد ابو الیسر و یکون الفرض ہو الثانی و قال شیخنا المصنف یعنی ابن الہمام لا اشکال فی وجوب الاعادۃ اذ ہو الحکم فی کل صلوۃ ادیت مع کراہۃ التحریم و یکون جابراً للاول لان الفرض لا یتکرر و جعلہ الثانی یقتضی عدم سقوطہ بالاول و فیہ انہ لازم ترک الرکن لا الواجب الا ان یقال الخ. (ثم قال) و من ہذا یظہر انا اذا قلنا الفرض ہو الاول فا لاعادۃ قسم آخر غیر الاداء و القضاء و ان قلنا الثانی ففی احدہما آہ اقول فتلخص من ہذا کلہ ان الارجح وجوب الاعادۃ (الی ان قال) و قد نقل الخیر الرملی فی حاشیۃ البحر عن خطّ العلامۃ المقدسی ان ما ذکرہ فی البحر یجب ان لا یعتمد علیہ لاطلاق قولہم کل صلاۃ ادیت مع الکراہۃ سبیلہا الاعادۃ آہ قلت ای لانہ یشمل وجوبہا فی الوقت و بعدہ ای بناءً علی ان الاعادۃ لا تختص بالوقت و ظاہر ما قدمناہ عن شرح التحریر ترجیحہ و قد علمت ایضاً ترجیح القول بالوجوب فیکون المرجح وجوب الاعادۃ فی الوقت و بعدہٗ و یشیر الیہ ما قدمناہ عن المیزان من قولہ یجب علیہ الاعادۃ و ہو اتیان مثل الاول ذاتاً مع صفۃ الکمال ای کمال ما نقصہ منہا و ذٰلک یعم وجوب الاتیان بہا کاملۃ فی الوقت و بعدہ کما مرّ. و قال ایضا تحت (تنبیہ) و یؤخذ من فلظ الاعادۃ و من تعریفہا بما مرّ انہ ینوی بالثانیۃ الفرض لان ما فعل اولاً ہو الفرض فاعادتہٗ فعلہٗ ثانیاً اما علی القول بان الفرض یسقط بالثانیۃ فظاہر و اما علی القول الاٰخر فلان المقصود من تکرارہا ثانیاً جبر نقصان الاولی فا لاولی فرض ناقص و الثانیۃ فرض کامل مثل الاولی ذاتاً مع زیادۃ وصف الکمال و لو کانت الثانیۃ نفلاً لزم ان تجب القراءۃ فی رکعاتہا الاربع و ان لا تشرع الجماعۃ فیہا و لم ید کروہ و لا یلزم من کونہا فرضاً عدم سقوط الفرض بالاولی لان المراد انہا تکون فرضاً بعد الرکوع اما قبلہ فا لفرض ہو الاولی و حاصلہ توقف الحکم بفرضیۃ الاولی علی عدم الاعادۃ و لہ نظائر کسلام من علیہ سجود السہو یخرجہ خروجاً موقوفاً و کفساد

الوقتية مع تذكر فائتة كما سيأتي و كتوقف الحكم بفرضية المغرب في طريق المزدلفة على عدم اعادتها قبل الفجر و بهذا ظهر التوفيق بين القولين و ان الخلاف بينهما لفظي لان القائل ايضاً بان الفرض هو الثانية اراد به بعد الوقوع ولا لزم الحكم ببطلان الاولى بترك ماليس بركن ولا شرط كما مرّ عن الفتح ولزم ايضاً انه يلزمه الترتيب في الثانية لو تذكر فائتة و الغالب على الظن انه لا يقول بذلك احد و نظير ذلك القراءة في الصلوة فان الفرض منها اٰية و الثلاث واجبة و الزائد سنة و ما ذاك الا بالنظر الى ما قبل الوقوع بدليل انه لو قرأ القرآن كله يقع الكل فرضاً و كذا لو أطال القيام او الركوع او السجود و هذا نهاية ما تحرر لي من فتح الملك الوهاب فاغتنمه فانه من مفردات هذا الكتاب والله تعالى اعلم بالصواب. (رد المحتار ج۱، ص۶۷۹)

د حضراتو فقهاء كرامو رحمهم الله په منقوله عباراتو باندې د غور له كولو ښخه ښرګنديږي چه غوره قول دا دی چه صلوٰة المعاده تر واقع كيدو مخكښې واجب دی او وروسته تر ايقاع فرض دی. اعرابي سړي د اعتدال تارک ته د نبي كريمﷺ ارشاد **(فصلّ فانّك لم تصلّ)** هم په دې باندې دليل دی چه صلوٰة معاده فرض دی. تاسو لومړنی لمونځ غير معتبر بللی او د دويم لمانځه حكم مو وركړی او دا مو معتبر ګڼلی دی. د مذكور قول له ترجيح ښخه پرته دې ته د تطبيق صورت هم ويل كيدلی شي. د غير واجب، واجب او فرض په اقوالو كښې تطبيق په پورتني عبارتونو كښې تير شول پاتې شو د نفل قول البته په دې كښې نفل په معنٰی د واجب اخيستل كيدلی شي. چنانچه وتر لره د نوافلو په باب كښې ذكر شوی دی او په غير رمضان كښې د جماعت كراهت او په ټولو ركعتونو كښې ئې د قرائت وجوب او داسې نورو احكامو كښې هم په حكم د نوافلو دی. خصوصا واجب بايجاب العبد باندې د نفلو اطلاق عام دی. **(كالصلوٰة المنذورة و ركعتي الطواف)**. چونكه د صلوة المعاده وجوب هم په فعل د بنده سره دے د دې لپاره دا واجب په اصطلاح كښې خاص په نفلو سره تعبيريږي. غرض دا چه د ترجيح او تطبيق د دواړو صورتونو مقتضٰی دا ده چه لومړی لمونځ ناقص فرض دی او صلوة معاده هم د لومړي لمانځه غوندې فرض سره له زياتوالي د صفت كمال دی. د دې لپاره د نوي راغلي سړي اقتداء به صحيح وي.

د (الفرض لا يتكرر) ښواب دا دی چه د كامل فرض تكرار جائز نه دی **(لانه يراد بالمطلق الفرد الكامل)**.

## تنقيد (نيوكه)

مجيب اول (لومړني خواب وركوونک) چه كوم تر اعاده مخكښې د ادا شوي لمانځه په اړه فرمايلي دي چه "او چه كله اعاده وشي نو دا فرض محول الى النفل شو" په دې كښې تأمل دی

ځکه چه فقهاء کرامو دا تصریح کړې ده چه صلوة معاده په مثل د اولی دی مع صفة زیادة الکمال پس که چیرته دا ومنل شي تر اعاده وروسته لومړنی لمونځ نفل ګرځي نو په لازمي توګه به دا هم منل کیږي چه صلوة معاده کوم چه د لومړي په شان دی هغه به هم نفل وي. مجیب چه کوم مثال وړاندې کړی دی چه ک چیرته یو څوک د ماسپښین لمونځ وکړي او بیا په جُمعه کښې شریک شي نو د امام ابو حنیفه او امام ابو یوسف رحمهما الله په نزد فرضیت باطلیږي او نفلیت پاتې کیږي دا د دې لپاره صحیح نه ده چه د جُمعې په ورځ د ظهر (ماسپښین د لمانځه) حکم د عجز او تخلف په وخت کښې دی. چه کله ئې جُمعه ادا کړه نو د عجز او تخلف تحقق پاتې نه شو د دې لپاره صرف د جُمعې لمانځه د صحت حکم وشو او کوم لمونځ ئې چه د ماسپښین په نیت سره ادا کړی وو هغه نفل وګرځیدل همدارنګه دلته دوه ځان ځانته لمونځونه دي او په صلوة معاده کښې خاص د یوه لمانځه اعاده وي لهذا دا قیاس مع الفارق دی. مجیب مخته په تلو سره پخپله مؤداة با لفعل الاول و الثاني لره متحد با لذات ګڼلی دی او دلومړي لمانځه په نفل ګڼلو سره ئې په اول او ثاني کښې اتحاد بالذات نه پاتې کیږي **فافهم وتدبّر**.

د مجیب ثاني د لومړي لمانځه او معاده لمانځه د دواړو د فرضیت په قول کښې علامه شامي رحمه الله لره منفرد بلل او په دې باندې د علامه شامي په قول **(هذاما تحرر لی. الخ)** څخه استدلال صحیح نه دی. ځکه چه دا د ټول تحقیق په اړه نه دی بلکه د بحث په آخر کښې چه کوم د تطبیق صورت بیان شوی دی دهغه په اړه دی. چنانچه پخپله علامه شامي رحمه الله په رد المحتار او منحة الخالق کښې او علامه حلبي رحمه الله په کبیري کښې د دویم لمانځه د فرضیت په اړه د څو حضراتو قولونه را نقل کړي دي. د دې لپاره دا څنګه کیدلی شي چه علامه شامي پخپله یو شي لره د ګنو کسانو له خوا څخه حکایةً ذکر کړي او بیا دا ووائي چه دا زما له تفرداتو څخه دی.

## د حضرت مخدوم محمد هاشم ټهټوي رحمه الله تحقیق

د دولسمې هجري پیړۍ مشهور فقیه النفس حضرت مخدوم محمد هاشم ټهټوي رحمه الله شخصیت د کوم تعارف (پیژندګلوي) محتاج نه دی لیکن حقیقت دا دی چه د ده په فتاواوو او فقهي څیړنو کښې د ده تبحر او تعمق (ژوروالي) تر مشاهدې وروسته څرګندیږي چه د ده د څیړنو له مطالعه کولو پرته د ده تعارف ناقص بلکه کا لعدم دی. د بحث لاندې مسئلې په اړه له ده څخه دوه فتواوې نقل کیږي

**سوال**: بعد از خروج وقت جبر نقصان مستحب است یا واجب؟

**جواب**: هر دو روایت است . و الاصح الوجوب کما فی مسائل شتی من شرح المنیة

**سوال:** در جبر نقصان نماز مغرب و وتر اگر سهواً بر سه رکعت نه نشست چه کند، سهو دهد یا جبر باز گرداند؟

**جواب**: باز گرداند. (بیاض هاشمی قلمی جلد اول باب قضاء الفوائت ص ۱۳۰)

## خلاصه

په صلوة معاده کښې د شریکیدونکي د لمانځه د صحت قول ارجح او اوسع دی او د عدم صحت قول احوط دی. د جماعت د ډیر والي په حالت کښې د نوي راغلي مقتدي لپاره دا پوهیدنه سخته ده چه دا اولنی جماعت دی او که معاده. لهذا په داسې صورت کښې د عدم صحت په قول کښې تنګي او حرج ښکاره دی. البته که چیرته کوم مقتدي ته د دې علم وشي یعنې په دې پوه شي چه دا صلوة معاده دی نو هغه ته عمل په احوط سره بهتر دی. فقط والله تعالیٰ اعلم

رشید احمد ۱٤ محرم ۹٦ هجری



وما توفیقی الا بالله علیه توکلت والیه أنیب

که چیرې د جماعت په لمونځ کښې ښځه له سړی سره او یا له سړی نه وړاندې ودریږی او امام د ښځې د جماعت نیت کړې وی نو د سړې لمونځ نه کیږی ، لیکن په حرمینو شریفینو کښې د جماعت په وقت کښې بعضې ښځې د سړو په صف کښې ودریږی، او همدارنګه د سړیو له صف نه وړاندې صف جوړوی ، په دې صورت کښې سړو ته فریشانی پیدا کیږی چه دجماعت لمونځ څنګه اداء کړی، د دې عمومی بلوی په نظر کښې نیولو سره له دې سره د متعلقه سوال په جواب کښې خصوصی توجه او تحقیق او د سړو د لمونځ له فساد څخه د بچ کولو په تدبیر باندې د غور کولو اساس پیدا شو او ،الحمد لله ، دهغې حل پیدا شو ((چه په همدې رساله کښې ذکر شوې دې)) .

# المشکوٰة لمسئلة المحاذات

## په حرمین شریفینو کښې د ښځو د محاذاتو د مسئلې حل

**سوال** : په حرمین شریفینو کښې په عامه توګه ښځې د نارینه وو په صف کښې شامليږي په دې صورت کښې لاندیني پوښتنې پیدا کیږي.

۱ - که چیرته امام د ښځو د امامت نیت نه وي کړی نو د یوې ښځې هم لمونځ نه صحیح کیږي. که د نارینه وو په صف کښې شامل شي یا له نارینه وو څخه جلا د ښځو لپاره په مخصوص ځای کښې ودریږي.

۲ - که چیرته امام د ښځو د امامت نیت کړی وي نو د دې ښځې دواړو خواوو ته او شا ته ئې یا لکل ورسره برابر د دریدونکو نارینه وو لمونځ فاسدیږي.

۳ - که چیرته ښځې له دریو څخه زیاتې په یوه صف کښې ودریږي نو په هغو پسې چه د نارینه وو څومره صفونه وي د هیڅ یوه هم لمونځ نه صحیح کیږي. که صفونه په همدې طرف کښې وي یا د کعبې مبارکې په نورو طرفونو کښې وي. همدارنګه دا اشکال یواځې په دې صورت کښې نه دی چه له دریو څخه زیاتې ښځې د نارینه وو په صف کښې ودریږي بلکه کومې ښځې چه په جلا ځای کښې دریږي د هغو شا ته هم له جوماتونو څخه د باندې د نارینه وو صفونه دریږي، د دغو ټولو لمونځونه هم باید صحیح نه شي.

د دغو ټولو اشکالاتو حل ولیکئ او مونږ خوشحاله کړئ. د مسئلې د اهمیت، ابتلاء عام او د حرمین شریفینو د مقدسو لمونځونو د حفاظت له مخې پوره څیړنه او د مسئلې هر اړخیز وضاحت په کولو سره د وخت اهم ضرورت پوره کړئ. والاجر عند الله الکریم.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : لومړی په دې اړوند د فقهاوو عبارات لیکل کیږي او بیا دي

وروسته له دغو عباراتو څخه ثابتیدونکي حکمونه لیکل کیږي

۱.. قال في التنوير و اذا حاذته (ولو بعضو واحد وخصه الزيلعي بالساق والكعب الشرح) امرأة مشتهاة ولا حائل بينهما (اقله قدر ذراع في غلظ اصبع او فرجة تسع رجلاً الشرح) في صلاة مطلقه مشتركة تحريمةً و اداءً و اتحدت الجهة فسدت صلاته ان نوى (اللامام وقت شروعه لا بعده الشرح) امامتها و الا فسدت صلاتها. (رد المحتار ج۱، ص۵۳۸)

۲.. قال ابن عابدين رحمه الله (قوله و خصه الزيلعي الخ) حيث قال المعتبر في المحاذاة الساق و الكعب في الاصح و بعضهم اعتبر القدم آه فعلى قول البعض لو تأخرت عن الرجل ببعض القدم تفسد و ان كان ساقها و كعبها متأخراً عن ساقه و كعبه و على الاصح لا تفسد و ان كان بعض قدمها محاذياً لبعض قدمه بأن كان اصابع قدمها عند كعبه مثلاً تأمل هذا و مقتضى قوله و خصه الزيلعي ان قوله ولو بعضو واحد خارج عما ذكر الزيلعي فيكون قولاً ثالثاً في المسألة كما فهمه في البحر و ظاهر كلام الزيلعي انه ليس في المسألة قول ثالث و الا لذكره بل المراد بالعضو من المرأة قدمها و من الرجل اي عضو كان على ما صرح به في النهاية و نصه و شرطنا المحاذاة مطلقاً لتتناول كل الاعضاء او بعضها فانه ذكر في الخلاصة محالاً على فوائد القاضي ابي على النسفي رحمه الله المحاذاة ان يحاذي عضو منها عضواً من الرجل حتى لو كانت المرأة على الظلة و رجل بحذائها اسفل منها ان كان يحاذي الرجل شيئاً منها تفسد صلاته و انما عين هذه الصورت لتكون قدم المرأة محاذية للرجل لان المراد بقوله ان يحذى عضو منها هو قدم المرأة لا غير فان محاذاة غير قدمها لشئ من الرجل لا يوجب فساد صلاته نص على هذا في فتاوى الامام قاضيخان في اواسط فصل من يصح الاقتداء به و من لا يصح و قال المرأة اذا صلت مع زوجها في البيت ان كان قدمها بحذاء قدم الزوج لا تجوز صلاتهما بالجماعة و ان كان قدماها خلف قدم الزوج الا انها طويلة تقع رأس المرأة في السجود قبل رأس الزوج جازت صلاتهما لان العبرة للقدم الا ترى ان صيد الحرم اذا كان رجلاه خارج الحرم و رأسه في الحرم يحل اخذه و ان كان على العكس لا يحل انتهى كلام النهاية و نقله في المعراج و اقره و في القهستاني المحاذاة ان تساوي قدم المرأة شيئاً من اعضاء الرجل فالقدم مأخوذة في مفهومه على ما نقل عن المطرزي فمساواة غير قدمها لعضوه غير مفسدة آه. فقد ثبت بما ذكرناه وجود المحاذاة بالقدم في مسألة الظلة المذكورة خلافاً لما زعمه في البحر و انه لا فرق بين التعبير بالعضو و بالقدم خلافاً لما زعمه في البحر ايضاً و انه لو اقتدت به متأخرة عنه بقدمها صحت صلاتهما و ان لزم منه محاذاة بعض اعضائها لقدمه او غيره في حالة الركوع او السجود لان المانع ليس محاذاة اي عضو منها لاي عضو منه و لا محاذاة قدمه

لای عضو منها بل المانع محاذاة قدمها فقط لای عضو منه. (رد المحتار ج۱ ص۵۳۵)

۳۔ قال فی الشامیة تحت (قوله او فرجة تسع رجلاً) قال فی السراج ولو قامت وسط الصف تفسد صلوٰة واحد عن یمینها و واحد عن یسارها و واحد خلفها بازائها دون الباقین فقد شرط ان یکون من خلفها محاذیاً لها للاحتراز عن وجود الفرجة و کذا صرح به الزیلعی والحاکم الشهید آه ملخصاً و قدمنا نحوه قریبا عن النهر وافاد فی النهر ایضاً ان اشتراط المحاذاة للفساد لیس خاصاً بتقدم المرأة الواحدة بل الصف من النساء کذلک ای بحیث لم یحاذهن صفوف الرجال فلا فساد والحاصل ان المراد من افساد صلاة من خلفها ان یکون محاذیاً لها من خلفها ای بان یکون مسامتاً لها غیر منحرف عنها یمنة او یسرة قدر مقام الرجل لا مطلق کونه خلفها. (رد المحتار ج۱ ص۵۳۶)

۴۔ قال الرافعی رحمہ اللہ (قوله و مراد البحر من تعیین الحمل علی المحاذاة ما ذکرنا الخ) علی[1] ان مراد صاحب البحر ما ذکره ابن عابدین لا یندفع به الاشکال بخلافه علی ما ذکره المحشی والحاسم لمادة الاشکال ان یقال ان التقدم مفسد آخر ولو مع وجود فرضه و یمنع صحة اقتداء الرجل کالنهر الفاصل والطریق فکما انهم لم یجعلوا الفرجة معتبرة فی مسألة النهر مثلاً فکذلک فی مسألة تقدم المرأة آه. (التحریر المختار ج۱ ص۴۳)

۵۔ قال فی الشامیة تحت (قوله فسدت صلاتها) وظاهر عود الضمیر فی صلاتها علی المرأة المحاذیة ای لا مام او لمقتدٍ انها لو اقتدت غیر محاذیة لاحد صح اقتداءها وان لم ینوها الا اذا نفی امامة النساء کما فی القهستانی و حینئذٍ فلا یشترط الصحة اقتداء المرأة نیة الامام امامتها الا اذا کانت محاذیةً والا فلا یشترط و قدم المصنف فی بحثه النیة ان فیه اختلافاً قدمنا هناک عن الحلیة انه یشترط ان لا تتقدم بعد فتحاذی احدٌ من امام او مأموم فان تقدمت و حاذت لا یبقی اقتداءها ولا تتم صلاتها آه و ذکر فی النهایة هنا ایضاً ان هذا قول ابی حنیفة الاول و ظاهره ان قوله الاخیر اشتراط النیة مطلقاً والعمل علی المتأخر کما لا یخفی ولهذا اطلق فی متن المختار قوله ولا تدخل المرأة فی صلوٰة الرجال الا ان ینویها الامام و مثله فی متن المجمع. (رد المحتار ج۱ ص۵۳۷)

۶۔ قال فی العلائیة والا ینوها فسدت صلاتها کما لو اشار الیها بالتأخیر فلم تتأخر لترکها فرض المقام و قال العلامة ابن عابدین رحمہ اللہ (قوله کما لو اشار الیها بالتأخیر الخ) قال فی الفتح و فی الذخیرة و المحیط اذا حاذته بعد ما شرع و نوی امامتها فلا یمکنه التاخیر بالتقدم خطوة او خطوتین للکراهة فی ذلک فتأخیرها ما

[1] ۔ کذا فی الاصل و لعل الصحیح ان مراد صاحب البحر الخ. ۱۲ رشید احمد

لاشارة و ما اشبه ذٰلك فاذا فعل فقد اخر فيلزمها التأخر فان لم تفعل فقد ترکت حینئذٍ فرض المقام فتفسد صلاتها دونه آه واستفید من قوله بعد ما شرع انها لو حضرت قبل شروعه ونوی امامتها محاذیاً لها وقد اشار الیها بالتأخر تفسد صلاته فالاشارة بالتأخر انما تنفع اذا حضرت بعد الشروع ناویاً امامتها قال ط و الظاهر ان الامام لیس بقید آه ای فلو حاذت المقتدی بعد الشروع و اشار الیها بالتأخر ولم تتأخر فسدت صلاتها دونه. (رد المحتار ج۱، ص۵۳۹)

۰.. قال فی العلائیة و یمنع الاقتداء صف من النساء بلا حائل قدر ذراع او ارتفاعهن قدر قامة الرجل مفتاح السعادة وفی الشامیة. قوله صف من النساء) المراد به ما زاد علی ثلاثة نسوة فانه یمنع اقتداء جمیع من خلفه و الا ففیه تفصیل بدلیل ما قدمنا حاصله عن البحر و هو ما اتفقوا علی نقله عن اصحابنا من ان المرأة الواحدة تفسد صلاة رجلین من جانبیها و رجل خلفها و الثنتین صلوة اثنین من جانبیهما و اثنین خلفهما و الثلاثة صلوة اثنین من جانبیهن و صلوة ثلاثة من خلفهن الی اٰخر الصفوف و لو کان صف من النساء بین الرجال والامام لا یصح اقتداء الرجال بالامام و یجعل حائلاً وایضاً فیها تحت (قوله بلا حائل) وحاصل انه اذا کان صف النساء امام صف الرجال یمنع الا اذا کان احد الصفین علی حائط مرتفع قدر قامة او کان بینهما حائل مقدار مؤخر رحل البعیر او خشبة منصوبة او حائط قدر ذراع وهذا مخالف لما فی الخانیة و البحر و غیرهما وهو قوم صلوا علی ظهر ظلة فی المسجد و بحذائهم من تحتهم نساء اجزأتهم صلاتهم لعدم اتحاد المکان بخلاف ما اذا کان قدامهم نسء فانها فاسدة لانه تخلل بینهم و بین الامام صف من النساء وهو مانع من الاقتداء آه وفی الولوالجیة قوم صلوا علی ظهر ظلة المسجد و تحتهم قدامهم نساء لا تجزیهم صلاتهم لانه تخلل صف من النساء فمنع اقتدائهم و کذا الطریق آه فهذا باطلاقه صریح بان الارتفاع غیر معتبر فی صف النساء وفی المعراج عن المبسوط فان کان صف تام من النساء و وراءهن صفوف الرجال فسدت تلك الصفوف کلها استحساناً و القیاس ان لا تفسد الا صلوة صف واحد ولکن استحسن لحدیث عمر ﷺ مرفوعاً و موقوفاً علیه من کان بینه و بین الامام نهر او طریق او صف من النساء فلا صلوة له آه فهذا صریح فی ان الحائل غیر معتبر فی صف النساء و الا لفسدت صلوة الصف الاوّل من الرجال فقط لکونه صار حائلاً بین من خلفه و بین صف النساء کما هو القیاس فظهر ان ما ذکره الشارح من اعتبار الحائل او الارتفاع انما هو فیما دون الصف التام من النساء کا لواحدة و الثنتین آه اما الصف فهو خارج عن القیاس اتباعاً للاثر ها ما ظهر فتدبر و الله اعلم. (رد المحتار

ج۱،ص۵۴۷)

۸.. قال الرافعی رحمة الله علیه (قوله یمنع اقتداء جمیع من خلفه الخ) تقدم عن النهر ان اشتراط المحاذاة للفساد لیس خاصاً بتقدم المرأة الواحدة بل الصف من النساء کذلک ای لحیث لم یحاذهن صفوف الرجال فلا فساد آه.(التحریر المختار ج۱،ص۷۶)

۹.. قال الرافعی رحمة الله علیه (قوله فهذا صریح فی ان الحائل غیر معتبر الخ) هو صریح فی ان الصف الاول من الرجال لا یعد حائلاً و لا یمکن ان یقال غیره من الحوائل مثله لنقل اهل المذهب ان الحائل یمنع الفساد کعبارة مفتاح السعادة و ما نقله ط عن ابی السعود فی اول مسألة المحاذاة بقوله و لو کان ورائهن حائط خلفه صفوف لا تفسد صلاتهم علی الاصح و لو کان ورائهن صف من الرجال ثم الحائط ثم الصفوف فسدت صلاة الکل آه و حینئذٍ یقید اطلاق ما فی الخانیة و غیرها بما فی مفتاح السعادة.(التحریر المختار ج۱،ص۷۶)

۱۰.. قال عبد الرحمٰن الجزیری الحنابلة. قالوا یشترط ان ینوی الامام الامامة فی کل صلوة و تکون نیة الامامة فی اول الصلوة الخ.(الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱،ص۲۱۸)

## له پورتني عباراتو څخه لاندیني امور ثابت شول

که چیرته امام د لمانځه د شروع په وخت کښې د ښځو د امامت نیت کړی وي نو

۱. که چیرته یوه یا دوه ښځې د نارینه وو په صف کښې ودریږي نو د همدغو ښځو لمونځ کیږي لیکن د هغو دواړو خوا ته لګیدلي او د هغو شا ته سیده په اول صف کښې د دریدونکو نارینه وو لمونځ نه کیږي (العبارة الثالثة والسابعة)

البته که چیرته د ښځې او نارینه تر منځ د یوه سړي د دریدو ځای خالي وي یا د یوه لاس په اندازه اوږده او د یوې ګوتې په برابر ډبله سُتره ودرول شي یا د زیلعي د تصحیح مطابق د ښځې پنډۍ او ښنګره د نهایه. خلاصه. نسفي. خانیه سراج. قهستاني. مطرزي او داسې نورو د اختیار مطابق د ښځې پوره پښه د نارینه له پښې څخه شا ته وي نو د نارینه لمونځ کیږي د شامي له تحریر څخه د دویم قول ترجیح څرګندیږي (العبارة الاولیٰ والثانیة)

که چیرته د نارینه پښه د ښځې له پښې څخه لوړه وي نو په دې باره کښې کومه صریحه جزئیه مې تر نظر نه ده تیره شوې البته په دویم عبارت کښې د مذکوره قاعدې مطابق په دې صورت کښې هم د نارینه لمونځ صحیح کیږي

د نارینه د لمانځه د صحت پورتني مذکوره ټول صورتونه د هغه نارینه لپاره دي چه د ښځې شي

یا کینې خوا ته دریدلی وي، د ښځې شا ته د دریدونکي سړي لپاره هم کومه سُتره یا داسې نور گټمن کیدلی شي او که نه؟ د دې تصریح چیرته حاصل نه شو، په ظاهره دا فیصله په دې باندې موقوفه ده چه د ښځې شا ته د دریدونکي نارینه د لمانځه د نه صحیح کیدو علت محاذات دی او که د ښځې وړاندې والی.

که چیرته محاذات علت وګڼل شي نو د ښځې په دواړو خواوو کنبې د دریدونکو نارینه وو غوندې دلته هم د یوه لاس غوندې لوړ او د یوې ګوتې په اندازه دبله ستره باید کافي شي. لیکن د محاذات په قول باندې ځو اشکالات شته. و لذلك قال المحشي و الحاسم لمادة الاشكال ان يقال ان التقدم مفسد آخر الخ. (العبارة الرابعة)

همدارنګم د محاذاتو د عرفي ترجمې مطابق هم د محاذاتو قول صحیح نه معلومیږي. لهذا دلته د عدم صحت علت محاذات ن دی بلکه د ښځې تقدم (وړاندې والی) دی. د دې لپاره یواځې د یوې ګوتې په اندازه سُتره به کافي نه وي.

بیا دا سوال پیدا کیږي چه د ښځو د صف شا ته د حائل د شته والي په صورت کنبې د اختلاف چه کوم تفصیل په څلورم نمبر کنبې راځي آیا دلته د یوې یا دوو ښځو د تقدم په صورت کنبې به هم هغه اختلاف وي؟ په ظاهره داسې معلومیږي چه چونکه د ښځو د پوره صف په نسبت د یوې یا دوو ښځو تقدم اهون (سپک) دی. چنانچه د ښځې د پوره صف تقدم د صفونو تر آخره پورې مؤثر د او د یوې یا دوه ښځو تقدم یواځې تر یوه صف پورې مؤثر دی. د دې لپاره په څلورم نمبر کنبې د مذکور تفصیل مطابق د حائل (پردې) یا لوړوالي په موجودوالي کنبې په اتفاق سره باید د لمانځه د صحت حکم وشي، د شامي رحمه الله هم همدغه رایه ده. (العبارة السابعة)

۲ - نارینه لمونځ شروع کړ او وروسته یوه ښځه د ده په محاذاتو کنبې ودریده او نارینه هغې ته د شا ته کیدلو اشاره وکړه لیکن هغه شا ته نه شوه نو د نارینه لمونځ کیږي او د ښځې نه کیږي. او که چیرته د لمانځه تر شروع کولو مخکنبې نارینه ښځې ته د شا ته کیدلو ووائي او هغه شا ته نه شي نو له دې سره سره په دې حالت کنبې نارینه لمونځ شروع کړ نو د نارینه لمونځ نه کیږي او د ښځې کیږي. (العبارة السادسة)

۳ - که چیرته له دوه ځخه د زیاتو صف وي که له نارینه وو سره یو ځای وي یا جلا نو د هغو دواړو خواوو ته او شا ته په سیده لیکه کنبې د صفونو تر آخره پورې د دریدونکو نارینه وو د یوه هم لمونځ نه کیږي. (العبارة السابعة)

په اووم عبارت کنبې د شامي رحمه الله دا تحقیق لیکلی دی چه د څلورو ښځو د صف شا ته د دریدونکو نارینه وو د پوره صفونو لمونځ نه کیږي. یعنې د هغو نارینه وو هم لمونځ نه کیږي کوم

چه د دغو ښځو شا ته په سیده لیکه کښې تر آخره پورې نه وي
لیکن حقیقت دا دی چه د دریو او له دریو څخه د زیاتو ښځو په حکم کښې کوم فرق نشته. لکه څرنګه چه د دریو ښځو صف یواځې د هغو نارینه وو د اقتداء لپاره مانع ده کوم چه د هغوی شا ته د دوی په برابري کښې دي همدارنګه د څلورو یا تر څلورو زیاتو ښځو صف هم یواځې د هغوی شا ته د هغوی په برابري کښې د دریدونکو د اقتداء لپاره مانع ده، کوم نارینه چه د هغوی په برابري نه وي د هغوی لمونځ کیږي. **(العبارة الثالثة والثامنة)**

علامه شامي رحمه الله ته د بحر له عبارت څخه اشتباه ور لویدلې ده. په بحر کښې د دریو ښځو د محاذاتو د حکم تر بیانولو وروسته دا عبارت دی **(ولو کان صف من النساء بین الرجال والامام لا یصح اقتداء الرجال بالامام ویجعل حائلا)** د دریو ښځو تر حکم وروسته د ښځو د صف په ذکر کولو سره دا اشتباه وشوه چه دلته له دریو څخه زیاتې ښځې مراد دي او **(لا یصح اقتداء الرجال)** په اطلاق سره ئې دا و فهموله چه کوم نارینه د ښځو په برابري شا ته نه دي د هغو اقتداء هم صحیح نه ده.

حالانکه د بحر د عبارت دا مطلب نه دی. حقیقت دا دی چه په بحر کښې لومړی د نارینه وو په صف کښې د شاملیدونکو ښځو حکم بیان کړی دی تر دې وروسته **(ولو کان صف من النساء ـ الخ)** سره د ښځو د مستقل صف حکم بیانول غواړي. که دا صف د دریو ښځو وي یا تر دې د زیاتو ښځو. چونکه په عامه توګه ټول صفونه په اوږدوالي کښې برابر وي د دې لپاره په ظاهره مستقل صف او د هغو شا ته د نارینه وو صف پخپل منځ کښې سره برابر وي. په دې بناء باندې ئې د نارینه وو د صف په حکم کښې تفصیل و نه لیکه. خصوصاً په داسې حال کښې چه د ښځو شا ته په صف کښې تفصیل لیکل شوی دی. د دې لپاره د دویم ځل لپاره د هغې د اعاده کولو ضرورت نه دی ګڼل شوی، چه کله دریو ښځو لره هم فقهاوو رحمهم الله تعالی صف ګڼلی دی نو بیا په دریو او څلورو کښې فرق څه شی دی؟

لنډه دا چه په دریو او څلورو ښځو کښې فرق نه معقول دی او نه منقول او نه د بحر له عبارت څخه مفهومیږي. د دې برعکس عدم فرق معقول هم دی او منقول هم **کما مر فی العبارة الثالثة والثامنة**.

پرته له دې څخه د ښځو صف ئې د طریق او نهر په حکم کښې بللی دی او دا دواړه یواځې د صف د هغې برخې د اقتداء لپاره مانع دی کوم چه د دوی شا ته وي او د نورو برخو لپاره مانع نه دی مثلا




د ښځو صف د طريق او نهر په حکم کښې تر راوستلو وروسته يو بل بحث مخې ته راځي او هغه دا چه د ښځو د صف شا ته د هغوی په برابري کښې د لومړي صف د نارينه وو لمونځونه خو د ښځې د تقدم يا د محاذاتو په علت سره نه صحيح کيږي (كما مر في المرأة القائمة في صف الرجال) ليکن د دويم او دريم صف لپاره له صحت اقتداء څخه مانع د ښځو د صف وړاندې والی دی کوم چه د طريق او نهر په حکم سره دی. لهذا چه کله دويم او دريم صف د ښځو په برابري سري ښي او کينې خوا ته لوی شوی وي او د صف له دې زياتې شوې برخې څخه واخله تر امام پورې په صفوفو کښې حقيقةً او حکماً اتصال موجود وي يعنې له اقتداء څخه هيڅ شی مانع نه وي لکه څرنګه چه په پورتنی نقشې کښې ښکاريږي نو د دې پوره صف لمونځ بايد صحيح شي. فليحرر

۴ - د ښځو د صف شا ته يو لاس يا له دې څخه زيات لوړ کوم حائل وي او تر هغه شا ته د نارينه وو صف وي يا د نارينه وو صف د ښځو له سرونو څخه زيات په لوړ مقام باندې وي. په دغو دواړو صورتونو کښې د اقتداء د صحت په اړه د فقهاوو رحمهم الله عبارتونه مختلف دي. په مفتاح السعادة او در مختار کښې د صحت قول ليکل شوی دی او په خانيه. بحر. ولوالجيه او داسې نورو کښې په صراحت سره او په معراج او مبسوط کښې دلالةً د عدم صحت ليکنه شوې ده او طحطاوي له ابو السعود څخه د صحت د قول صحيح والی را نقول کړی دی کوم چه د نقل القولين متضمن دی علامه شامي رحمه الله د عدم صحت قول په اختيارولو سره د مفتاح السعادة او در مختار د عبارت تقييد کړی دی او رافعي رحمه الله د صحت د قول په اختيارولو سره د خانيه او داسې نورو عبارتونو لره مقيد ګڼلی دی. (العبارة السابعة والتاسعة)

لنډه دا چه شامي او رافعي رحمهما الله دواړو په مختلفو عبارتونو کښې د تطبيق د کوشش کولو ترڅنګ پخپل منځ کښې مختلف دي

د فقهاوو په مذکوره عبارتونو کښې د غور له کولو څخه ثابتيږي چه دا دواړه قولونه مستقل دي د شامي او رافعي رحمهما الله د خيال مطابق له دواړو قولونو څخه په يوه کښې هم د تقييد ګنجائش نه تر سترګو کيږي پرته له دې څخه د طحطاوي له ابو السعود څخه د دواړو قولونو را

نقل کول پورته تیر شو. لهذا په دواړو قولونو کښې د تطبیق په ځای د ترجیح ضرورت دی
د غور او فکر تر کولو وروسته د عدم صحت قول ته ترجیح معلومیږي ځکه چه دا د اکثرو قول دی، پرته له دې څخه د قیاس علی الطریق و النهر هم همدغه مقتضی ده. اګر که ابو السعود د صحت قول ته اصح ویلي دي. والله اعلم.

د صحت په قول کښې شرط دا دی چه حائل د ښځو د صف شا ته او د نارینه وو د اول صف مخې ته وي. که چیرته د نارینه وو د اولنی صف مخې ته حائل نه وي بلکه د دویم یا دریم صف مخې ته وي نو د یوه صف لمونځ هم نه کیږي. (العبارة التاسعة)

د نارینه وو صف د ښځو له سر څخه پورته وي نو په دې کښې د مذکور شرط صراحت نشته. په ظاهره د حائل او لوړوالي تر منځ کوم فرق نه معلومیږي لهذا په دې کښې به هم هغه شرط وي چه تر ښځو شا ته د نارینه وو اولنی صف په لوړوالي کښې وي. که چیرته لومړنی صف کښته وي او تر اول صف وروسته نور صفونه په لوړوالي باندې وي نو بیا هم د یوه صف لمونځ نه کیږي
که چیرته امام د ښځو د امامت نیت و نه کړي

۵ - کومې ښځې چه د نارینه وو په صف کښې دریږي د هغو لمونځونه نه کیږي. د دغو ښځو دواړو خواوو ته او شا ته د دریدونکو نارینه وو لمونځونه صحیح کیږي. ښځه که یوه وي یا له یوې څخه زیاتې وي. (العبارة الاولیٰ والسادسة)

که چیرته له دوه څخه زیاتې ښځې د نارینه وو په صف کښې ودریږي او د هغو شا ته د هغوی په برابري کوم نارینه نه وي نو دواړو خواوو ته د محاذات له وجې د دوو ښځو لمونځونه په اتفاق سره نه صحیح کیږي، د منځنی ښځو د لمانځه حکم په صراحت سره تر نظره تیر نه شو. د قاعدې مطابق د هغو د لمانځه په صحت کښې به هم هغه اختلاف وي کوم چه په شپږم نمبر کښې راځي

۶ - کومې ښځې چې جلا یا ځانته ولاړې وي د هغو لمونځونه صحیح کیږي او که نه؟ په دې باره کښې د حضرت امام اعظم رحمه الله دوه قولونه دي. آخري قول دا دی چه لمونځونه ئې نه کیږي، همدغه راجح او مفتی به قول دی. (العبارة الخامسة)

## ایا د امام لپاره د ښځو د امامت نیت ضروري دی او که نه؟

د امام اعظم رحمه الله مسلک پورته لیکل شوی دی چه د ده آخري او راجح قول دا دی چه د ښځو د امامت نیت ضروري دی. که چیرته امام د ښځو د امامت نیت و نه کړي نو د ښځو لمونځ نه کیږي. د نورو امامانو په نزد د ښځو د امامت نیت شرط نه دی. په لسم عبارت کښې د حنبلیانو په نزد مطلقاً د امامت نیت ضروري بلل شوی دی له دې څخه په ځانګړې توګه د ښځو د امامت د نیت

شرطیت نه ثابتیږي. له دې څخه څرګندیږي چه د حرمین شریفینو امام د ښځو د امامت نیت نه کوي. د نور تثبّت لپاره بنده په دې باره کښې له شیخ عبد العزیز ابن باز څخه استفتاء وغوښته هغ په ځواب کښې په صراحت سره لیکلي دي چه د مونږ په نزد د ښځو د امامت نیت ضروري نه دی. د (اللجنة الدائمة للبحوث العلمية والافتاء) فتوی پخپلو ټکو کښې په لاندې ډول ده.

بسم الله الرحمن الرحيم

المملكة العربية السعودية

رياسة ادارات البحوث العلمية والافتاء والدعوة والارشاد

فتوى رقم ۱۳۶۰ وتاريخ ۱۳۹۷/۱/۲۵ هجرى

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبى بعده وبعد:

فقد اطلعت اللجنة الدائمة للبحوث العلمية و الافتاء على ما ورد الى سماحة الرئيس العام من السمتفتى رشيد احمد والمحال الى اللجنة من الامانة العامة لهيئة كبار العلماء. والسؤال: ان النساء اذا صلين فى جماعة الرجال فهل تشترط لصحة اقتدائهن نية الامام امامتهن با لخصوص ام تكفى نية الامامة مطلقاً من غير تفصيل بين الرجال والنساء او تلزم على الامام نية الامامة مطلقاً.

وبعد دراسة السؤال اجابت بما يلى:

نية الامام للامامة كافية للرجال و النساء الذين يصلون خلفه ولا داعى لافراد النساء بنية تخصهن لعدم الدليل الذى يدل على ذلك وقد كن يصلين مع رسول الله ﷺ ولم ينقل انه خصهن بنيته.

وصلى الله وسلم على نبينا محمد واله وصحبه

اللجنة الدائمة للبحوث العلمية والافتاء

| عضو | نائب رئيس اللجنة | الرئيس |
|---|---|---|
| عبدالله بن عبد الرحمن الغديان | عبد الرزاق عفيفى | عبد العزيز بن عبد الله بن باز |

له دې څخه دا هم څرګندیږي چه د حرمین شریفینو امامان د ښځو د امامت نیت نه کوي، د هغو په مذهب کښې نیت ضروري نه دی او دا هم څرګنده ده بلکه د بنده خپله تجربه ده چه د نورو مذهبونو د رعایت په اړوند کوم درخواست (عریضه. هیله) د هغوی په نزد نه اوریدل کیږي. لهذا د ښځو د امامت نیت نه کولو په صورت کښې چه کوم حکمونه پورته بیان شول په حرمین شریفینو کښې د هغو په مطابق عمل باید وشي.

## د تحقیق (څیړنې) خلاصه

## که چیرته امام د ښځو د امامت نیت و نه کړي

د حرمین شریفینو امام د ښځو د امامت نیت نه کوي د دې لپاره چه کومې ښځې د نارینه وو په صف کښې دریږي د هغو لمونځونه نه کیږي. د دغو ښځو دواړو خواوو ته او شا ته ئې د دریدونکو نارینه وو لمونځونه کیږي اگر که ښځې درې یا له دریو څخه هم زیاتې وي
کومې ښځې چه جلا ولاړې وي د حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله په مذهب کښې د هغو هم لمونځونه نه کیږي لیکن یو قول چونکه د جواز هم راغلی دی د دې لپاره په ښځو باندې په حرمین شریفینو کښې له جماعت سره د ادا شوي لمونځونو قضائي واجبه نه ده. البته قضائي را گرځول ئې بهتر دي. د لمانځه غوندې په اهم او قیمتي عبادت کښې د احتیاط همدغه غوښتنه ده.

## که چیرته امام د ښځو د امامت نیت وکړي

که چیرته کله دا ثابته شي چه د حرمین شریفینو امام د ښځو د امامت نیت کوي نو د ښځو لمونځ په هر حال کښې صحیح کیږي که جلا ولاړې وي او که له نارینه وو سره یو ځای.
که چیرته د نارینه وو په صف کښې یوه یا دوه ښځې ودریږي نو د هغو دواړو خواوو ته لگیدلي او شا ته ئې یواځې په لومړي صف کښې د دوی په برابر د دریدونکو نارینه وو لمونځونه نه کیږي د دویم او دریم صف د نارینه وو کیږي
د ابتلاء په وخت کښې د ښځې او کیڼې خوا نارینه د خپلو لمونځونو حفاظت په دې ډول کولی شي چه د خپل ځان او ښځې تر منځ د یوه لاس په برابر اوږد او د یوې گوتې په اندازه ډبل کومه لښته یا لرگی او داسې نور ودروي یا دومره مخکښې ودریږي چه د ښځې د پښو گوتې د نارینه له پوندې څخه شا ته پاتې شي یا دې د پښو لاندې یو داسې شی کښیږدي چه له ښځې څخه دومره لوړ شي چه د نارینه پښه د ښځې له ښنگري څخه پورته شي او د زیلعي د تصحیح مطابق دا هم کافي ده چه د ښځې پنډۍ او ښنگره د نارینه له پوندې څخه شا ته وي. او د ښځې شا ته د دریدونکو لمونځونه هلته صحیح کیږي چه خپلې مخې ته پخپل ټول سور (پلنوالي) کښې د یوه لاس په اندازه لوړه تخته یا کوم بل شی ودروي یا د ښځې له سر څخه په زیات لوړوالي باندې ودریږي
که چیرته له دوه څخه د زیاتو ښځو صف وي که له نارینه وو سره یو ځای وي او یا جلا وي نو د هغوی شا ته د هغوی په برابري تر آخره په ټولو صفونو کښې د دریدونکو نارینه وو لمونځونه نه کیږي که له نارینه وو سره یو ځای وي نو د ښۍ او کیڼې خوا د دریدونکو نارینه وو هم لمونځونه

نه کيږي.

که چيرته د ښځو د صف شا ته د نارينه وو د اول صف مخې ته د يوه لاس په اندازه لوړ کوم حائل وي يا د نارينه وو لومړی صف د ښځو له سر څخه زيات په لوړ مقام باندې وي نو د نارينه وو د لمانځه صحت مختلف فيه دی. د صحت قول اوسع او د عدم صحت ارجح او احوط دی. دا اختلاف په هغه صورت کښې دی چه د ښځو د صف شا ته د د نارينه وو د اول صف مخې ته کوم حائل وي يا د نارينه وو اول صف په ښه لوړوالي باندې وي که چيرته د لومړي صف مخې ته کوم حائل نه وي يا د لومړي صف نه وروسته د کوم بل صف مخې ته حائل يا په لوړوالي باندې وي نو د يوه صف لمونځ هم نه کيږي.

## د اشتباهاتو ازاله

۱ - پوته د **اللجنة الدائمة للبحوث العلمية و الافتاء** (رياض) له ليکنې څخه دا ثابته شوه چه د حرمين شريفين د امامانو په نزد د ښځو د امامت نيت ضروري نه دی. په دې باندې چا ته دا خيال لويدلی شي چه ښائي هغوی د حنفي مذهب د رعايت له مخې د ښځو د امامت نيت وکړي. د دې ځواب دا دی چه د بل مذهب د رعايت د اهتمام سعادت يواځې حنفيه وو ته حاصل دی، د غير مقلدينو او د حرمينو د امامانو د بل مذهب له رعايت څخه بې غوري بلکه په قصد سره مخالفت ئې عام مشهور او معروف دی. سره له دې دوه مثالونه وړاندې کيږي:

۱ - د هغوی په مذهب کښې د وترو په دويم رکعت باندې سلام ګرځول واجب نه دي، يواځې افضل دی او په حنفي مذهب کښې ناجائز دی او همدارنګه د وترو واجب نه ادا کيږي. د دې مقتضیٰ خو دا وه چه په رمضان شريف کښې د وترو په جماعت کښې د احنافو د رعايت له مخې ئې په دويم رکعت باندې سلام نه وای ګرځولی ليکن دا خلک په دويم رکعت باندې خامخا سلام اړوي او احنافو ته د جلا جماعت اجازه هم نه ورکول کيږي. بلکه دويی په شرکت باندې مجبوريږي. فتنه او فساد او د احنافو د لمانځه بربادي قبلوي ليکن د بل مذهب رعايت ورته مشکل دی.

۲ - د حج په موسم کښې په منی، عرفات او مزدلفه کښې د حج امام قصر کوي حالانکه د هغوی په نزد دلته قصر واجب نه دی بلکه سنت دی او په حنفي مذهب کښې د غير مسافر لپاره قصر جائز نه دی. د دې باوجود امام قصر کوي. د احنافو د لمانځه هيڅ پروا ورسره نشته. ما يو ځل د حرم شريف امام ابو السمح څخه هيله وکړه چه تاسو په ګاډي کښې د سفر د مسافې په اندازه چکر ولګوئ او بيا عرفات ته راشئ نو مونږ ته به هم ستاسو په اقتداء کښې د لمانځه د ادا کولو شرف حاصل شي ليکن هغه دې ايثار (قرباني) ته هم تيار نه شو چه په دې کښې هغه ته د يوې ذرې

غونډې تکليف هم نه وو.

۲ - د ځينو دا خيال دی چه د حرمينو امامان د ښځو د عدم امامت نيت نه کوي او د ښځو د لمانځه د صحت لپاره همدومره کافي ده. دا خيال صحيح نه دی. په شامي کښې د دې ترجيح ليکل شوی دی چه د امامت د نيت نه نفی کول کافي نه دي بلکه د امامت د نيت ايجاد ضروري دی.

۳ - ځينو دا خيال ښکاره کړی دی چه امام ته دا علم وي چه ښځې په ما پسې اقتداء کوي بس همدومره کافي ده. دا خيال هم صحيح نه دی. امام ته د ښځو د اقتداء علم کافي نه دی بلکه د ښځو د امامت نيت شرط دی. په علم او نيت کښې فرق ښکاره دی. **قال فی التنویر لا (یشترط لصحة الاقتداء نیة،شرح) امامة المقتدی لو ام رجالا وان ام نساءً فان اقتدت به محاذیة لرجل فی غیر صلوة جنازة فلا بد من نیة امامیتها وان لم تقتد محاذیة اختلف فیه.** (رد المحتار ج۱، ص۳۹۵) د لو ام له لفظ سره د نيت د اشتراط له بحث څخه ثابته شوه چه علم د اقتداء د نيت قائم مقام نه دی. چنانچه په يوه منفرد (تنها لمونځ کوونک) پسې يوه چا په جهري لمانځه کښې اقتداء وکړه او دی پرې پوه هم شو نو تر څو پورې چه منفرد د امامت نيت و نه کړي تر هغو پورې په زوره قرائت ويل پرې نه واجبيږي.

**تنبيه** : د حرمينو د امامانو د ښځو د امامت نيت نه کول بهتر دي ځکه چه په دې صورت کښې د جلا يا بيل دريدونکو ښځو لمونځونه مشتبه شول چه له دې څخه ځان ساتنه د هغو ښځو په اختيار کښې ده چه په جماعت سره لمونځ و نه کړي کوم چه د دوی لپاره افضل هم دی. او د ښځو د امامت په نيت کښې دا فساد دی چه د ښځو د محاذاتو يا تقدم په صورت کښې د نارينه وو لمونځ نه کيږي او له دې څخه ځان ساتنه نوره هم سخته ده. د نارينه وو د حرم شريف لمونځونه له فساد څخه د ساتنې په فکر کښې په دې ليکنه کښې د محنت او ستړيې محرک جوړ شو. **تقبل الله جهد المقل ولا حول ولا قوة الا به.**

(اشکال او خواب ئې په تتمه کښې دي)

۹ جمادی الآخر ۹۶ سـ هجری



كان النبي صلى الله عليه وسلم

اذا صلى صلوة اقبل علينا بوجهه (رواه البخاري)

# انصراف الامام الى جهة الانام

په دې رساله کښې دا خبره ثابته شوې ده چه امام وروسته د سحر او مازديگر له لمونځ نه اوراد او دعاگانې هماغه ځائ کښې کيناستلو سره وئيل پکار دی، نو د دې لپاره د ښې يا چپ طرفته د مخ گرزولو په ځائ مقتديانو ته مخامخ کيناستل مسنون دی.

**تنبيه**: په دې تحرير کښې په څو ځايونو کښې د اجتماعی اورادو او دعاگانو ذکر دې، په دې کښې تفصيل دا دې چه صورة اجتماعی هيئت جائز دې، دامام او مقتديانو ترمينځ ارتباط بدعت دې، د دې مدلل تحقيق په (زبدة الكلمات) رساله کښې دې.

## د سهار او مازديگر تر لمونځونو وروسته د امام د انحراف هيئت

**سوال**: څه فرمائي د دين علماء كرام په دې مسئله کښې چه د سهار او مازديگر تر لمانځه وروسته امام ښى خوا ته مخ اړوي او کښيني او مقتديانو ته مخ اړوي؟ يو مولوي صاحب فرمائي چه ښى خوا ته مخ گرځول او کښيناستل مستحب دي او مقتديانو ته مخامخ کيدل د استحبابو خلاف دی آيا د دې مولوي صاحب دا خيال صحيح دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لانديني حديثونو څخه د تيامن (ښى خوا ته د گرځيدلو) شبهه کيدلی شي

عن انس رضي الله عنه قال كان النبي ﷺ ينصرف عن يمينه. (رواه مسلم)

وعن البراء رضي الله عنه قال كنا اذا صلينا خلف رسول الله ﷺ احببنا ان نكون عن يمينه يقبل علينا بوجهه.

(رواه مسلم)

ليکن د دغو حديثونو دا مطلب نه دی چه نبي كريم ﷺ تر لمانځه وروسته ښى خوا ته مخ اړاوه او کښيناسته بلکه د حديثو شراح د دې دويم مختلف مفهوم بيان کړی دی چنانچه علامه علي قاري رحمه الله د لومړي حديث په شرح کښې وائي:

(كان النبي ﷺ) اى احياناً (ينصرف) اى عن مصلاه (عن يمينه) فى شرح السنة روى عن علي رضي الله عنه انه قال اذا كانت حاجته عن يمينه اخذ عن يمينه وان كانت عن يساره اخذ عن يساره فقلت اذا كان المصلى له حاجة

ينصرف الى جانب حاجته فان استويا الجانبان فينصرف الى اى جنب شاء واليمين الى لان النبي ﷺ كان يحب التيامن فى كل شيء وكان يقبل على الناس اذا لم يرد الخروج من المسجد بوجهه من جانب يمينه. (مرقاة ج ص۲۵۲)

او د دويم حديث په شرح كښې ليكي: (يقبل علينا بوجهه) اى عند السلام اولا قبل ان يقبل على من على يساره وقيل معناه يقبل علينا عند الانصراف. (مرقاة ج۲، ص۳۵۳)

حاصل دا شو چه نبي كريم ﷺ به له مصلی څخه جګ شو او بل ځای ته به ئې تشريف يوړ د وخت او په جومات كښې د كښيناستو په صورت كښې به د مقتديانو خوا ته په مخ ګرځولو كښې به ئې تيامن خوښاوه يعنې په ښي طرف باندې به ئې مقتديانو ته مخ را واړاه، نه دا چه ښی خوا ته به ئې مخ اړاوه او كښې به ناست. البته ځينو فقهاوو رحمهم الله له دويم حديث څخه ښی خوا ته د مخ ګرځولو مفهوم هم ترې اخيستى دی.

كما فى شرح المنية ونصه فاذا تمّت صلوة الامام فهو مخير ان شاء انحرف عن يساره وجعل القبلة عن يمينه وان شاء انحرف عن يمينه وجعل القبلة عن يساره وهذا اولى لما فى مسلم عن حديث البراء كنا اذا صلينا خلف النبى عليه السلام احببنا ان نكون عن يمينه حتى يقبل علينا بوجهه فان مفهومه ان وجهه عند الاقبال عليهم كان يقابل من هو عن يمينه وذلك انما يكون اذا كان المسجد عن يمينه و القبلة عن يساره. (كبيرى ص۳۳۰) وفى مراقى الفلاح ان الامام انحرف عن يساره وجعل القبلة عن يساره وهذا اولى لما فى مسلم كنا اذا صلينا خلف رسول الله ﷺ احببنا ان نكون عن يمينه حتى يقبل علينا بوجهه الخ.

سره له دې دغو حضراتو دويم مفهوم هم ذكر كوي. چنانچه علامه حلبي رحمه الله د پورتني مفهوم تر بيانولو وروسته فرمائي: وقيل معناه حتى يقبل علينا بوجهه قبل من هو عن يساره فيفيد الانصراف عن يمينه لانه يجلس منحرفا بل يستقبلهم فى القعود بعد الانصراف عن يمينه كما فى حديث انس رضي الله عنه فى مسلم ايضاً كان النبى ﷺ ينصرف عن يمينه (الى قوله) والمراد من الانصراف الالتفات عن جهة الصلوة وهى القبلة اعم من ان يجلس بعده اولا. (كبيرى ص۳۳۰)

لنډه دا چه د دې حديث په مفهوم كښې ګڼ شمير احتمالات دي. پس كه چيرته احياناً ښی خوا ته مخ اړول هم تسليم شي نو د جواز ئې ثابتيږي نه استحباب. د ده ﷺ عام شريف عادت مقتديانو ته د مخ ګرځولو وو.

كما روى الامام البخارى رحمه الله عن سمرة بن جندب رضي الله عنه قال كان رسول الله ﷺ اذا صلى صلوة اقبل

علیہا بوجهه قال العلامة القاری رحمہ اللہ علیہ قال الابهری والصحیح ان معناه انه علیه الصلوٰة والسلام کان اذا فرغ من الصلوٰة استقبل المأمومین. (مرقاة ج۲، ص۳۵۲)

## د فقهاوو رحمهم الله کلام

حضرات فقهاء رحمهم الله فرمائي چه له فرائضو څخه تر فارغيدو وروسته امام په همدې هيئت باندې پاتې کيدل بدعت دي. د دې لپاره امام به خپل هيئت بدلوي چه د دې مختلف صورتونه دي يعني يا خو دې له مصلی څخه جګ شي او لاړ دې شي يا دې ښی يا کينې خوا ته د مقتديانو خوا ته واوړي او کښيني. که چيرته تر لمانځه وروسته سنتونه وي نو د هغو د ادا کولو لپاره دې له مصلی څخه مخکښې يا وروسته يا ښی او کينې خوا ته حرکت وکړي. امام په همدې هيئت باندې مخامخ قبلې ته په پاتې کيدلو کښې نوي راغلي سړي ته د جماعت د بقاء اشتباه ور لويدلی شي او د دې ويره ده چه اقتداء پسې وکړي او لمونځ ئې صحيح نه شي. د دې لپاره د امام خپل هيئت نه بدلول مکروه دي.

قال العلامة الکاسانی رحمہ اللہ علیہ اذا فرغ الامام من الصلوٰة فلا یخلوا ما ان کانت صلوٰة لا تصلی بعدها سنة کا لفجر والعصر فان شاء الامام قام وان شاء قعد فی مکانه یشتغل بالدعاء لانه لا تطوع بعدها تین الصلاتین فلا بأس بالقعود الا انه یکره المکوث علی هیئته مستقبل القبلة لما روی عن عائشة رضی اللہ عنہا ان النبی صلی اللہ علیہ وسلم کان اذا فرغ من الصلوٰة لا یمکث فی مکانه الا مقدار ان یقول اللّٰهم انت السلام ومنك السلام تبارکت یاذا الجلال والاکرام و روی جلوس الامام فی مصلاه بعد الفراغ مستقبل القبلة بدعة ولان مکثه یوهم الداخل انه فی الصلوٰة فیقتدی به فیفسد اقتداؤه فکان المکث تعریضاً لفساد اقتداء غیره به فلا یمکث ولکنه یستقبل القوم بوجهه ان شاء ان لم یکن بحذائه احد یصلی لما روی ان النبی صلی اللہ علیہ وسلم کان اذا فرغ من صلاة الفجر استقبل بوجهه اصحابه وقال هل رأی احد کم رؤیا کأنه کان یطلب رؤیا فیها بشری بفتح مکة فان کان بحذائه احد یصلی لا یستقبل القوم بوجهه لان استقبال الصورة فی الصلوٰة مکروه لما روی ان عمر رضی الله تعالی عنه رأی رجلا یصلی الی وجه غیره فعلاهما بالدرة وقال للمصلی التستقبل الصورة وللأخر التستقبل المصلی بوجهك وان شاء انحرف لان با لانحراف قال بعضهم ینحرف الی الیسار لیکون یساره الی الیمین وقال بعضهم هو مخیر ان شاء انحرف یمنة و ان شاء یسرة وهو الصحیح لان ما هو المقصود من الانحراف وهو زوال الاشتباه یحصل بالامرین جمیعا. وان کانت صلوٰة بعدها سنة یکره له المکث قاعداً وکراهتهٔ مرویة عن الصحابة رضی اللہ عنہم روی عن ابی بکر وعمر رضی الله تعالی عنهما انهما کانا اذا فرغا من الصلوٰة قاما کانهما علی الرضف ولان المکث یوجب اشتباه الامر علی

الداخل فلا يمكث ولكن يقوم ويتنحى عن ذلك المكان ثم يتنفل لما روى عن ابي هريرة ﷺ عن النبي ﷺ انه قال ايعجز احدكم اذا فرغ من صلوته ان يتقدم او يتأخر وعن ابن عمر رضى الله تعالى عنهما انه كره للامام ان يتنفل فى المكان الذى امّ فيه ولان ذلك يؤدى الى اشتباه الامر على الداخل فينبغى ان يتنحى ازالة الاشتباه او استكثارا من شهوده على ماروى ان مكان المصلى يشهد له يوم القيامة. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۶۰)

غرض دا چه د هيئت په بدلولو سره اصل مقصد د اشتباه لرې کول دي کوم چه په پورتني تولو صورتونو کښې حاصلیږي د دې لپاره د امام له مصلی څخه جګيدل او تلل يا ښی او کينې خوا ته د مقتديانو خوا ته ګرځيدل او کښيناستل في نفسه د دې مقصد د حاصليدو په لاره کښې دا ټول صورتونه برابر دي. ليکن د ځينو وجوهاتو پر بناء مقتديانو ته د مخ اړولو صورت راجح دی.

## د ترجيح وجوه

۱ - د نبي کريم ﷺ عام مبارک عادت مقتديانو ته د مخ اړولو وو. کما روينا عن سمرة بن جندب ﷺ قال كان رسول الله ﷺ اذا صلّى صلوة اقبل علينا بوجهه. (رواه البخاری)

ولما روى ان النبى ﷺ كان اذا فرغ من صلوة الفجر استقبل بوجهه اصحابه الخ. (بدائع الصنائع)

۲ - قال فى الهندية ويستقبل بوجهه اذا لم يكن بحذائه مسبوق فان كان ينحرف يمنة او يسرة والصيف و الشتاء سواء هو الصحيح كذا فى الخلاصة. (عالمگيرية ج۱، ص۷۷)

له دې عبارت څخه ثابته شوه چه اصل حکم مقتديانو د مخ اړولو دی او ښی يا کينې خوا ته انحراف د مسبوق د محاذاتو د عارض (پيښيدو) په حالت کښې دی. په امداد الفتاویٰ کښې له حنبلي فقهې څخه هم يواځې مقتديانو ته د مخ اړولو صورت منقول دی. ونصه ويكره للامام استقبال القبلة بل يستقبل المأمومين لما تقدم انه ينحرف اليهم اذا سلم. (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۵۰۰)

۳ - په تيامن او تياسر (ښی او کينې خوا ته په ګرځيدلو) کښې له ځينو مقتديانو څخه د اعراض (مخ اړولو) صورت منځ ته راځي کوم چه د مسلمان د حرمت په خلاف دی. کعبې ته د شا ګرځولو او مقتديانو د مخ اړولو حکمت حضرات فقهاء رحمهم الله دا بيانوي چه د مسلمان حرمت د کعبې له حرمت څخه زيات دی. په تيامن او تياسر کښې اګر که د شا ګرځولو غوندې قباحت نشته ليکن څه اندازه اعراض خامخا پکښې شته.

۴ - شرعاً تر سلام وروسته د امام او مقتديانو رابطه بالکل ختميږي. د دې لپاره تر سلام وروسته مجلس د عام مجلس غوندې دی او په عام مجلس کښې د تقابل په ځای ديو چا څنګ ته

کیدل (مجلس ته ځنګ اړول) عیب جن او د مجلس د آدابو په خلاف ګڼل کیږي.
لنډه دا چه نبی خوا ته له ګرځیدلو څخه مقتدیانو ته مخ ګرځول اولی او بهتر دي. حضراتو فقهاؤ رحمهم الله چه چیرته د تیامن بهتري بیان کړې ده هغه د تیاسر (کینې خوا ته د ګرځیدلو) په نسبت ئې بیان کړی دی. کما هو ظاهر من عبارة الحلبی رحمة الله علیه استقبال له تیامن څخه هم بهتر دی.
بلکه په دې زمانه کښې د لاندیني وجوهاتو پر بناء تیامن مکروه او بدعت دی.
۱ - نن صبا د تیامن دومره التزام لګول شوی دی چه د هغه په تارک باندې بد رد ویل کیږي. حالانکه یو مندوب کار د التزام له وجې مکروه ګرځي.

قال ابن مسعود رضی الله عنه لا يجعل احدکم للشيطان شيئاً من صلوته يرى ان حقًا عليه ان لا ينصرف الا عن يمينه لقد رأيت رسول الله صلی الله علیه وسلم كثيرا ينصرف عن يساره. (متفق عليه) قال الطيبى و فيه ان من اصر على امر مندوب وجعله عزما ولم يعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشيطان من الاضلال. (مرقاة ج۲،ص۳۵۳)

۲ - په دې زمانه کښې له فرائضو څخه تر فارغیدو وروسته هم له دُعا څخه تر فارغیدو پورې امام او مقتدیان پخپل منځ کښې رابطه سره ساتي. په اورادو او دعاګانو کښې د اشتراک او اجتماع صورت وي. له مقتدیانو سره د دې تعلق مقتضٰی دا ده چه له ځینو مقتدیانو څخه د اعراض صورت نه تر سترګو کیږي.

كما لا يجوز الاعراض عن البعض فى صورة التعليم قال فى اعلاء السنن شارحاً لكيفية انصرافه صلی الله علیه وسلم واذا اراد تعليم القوم استقبلهم جميعا و جعل ظهره نحو القبلة و لا يجرى احتمال التعليم فى الوجهين الاولين (التيامن والتياسر) لان فيهما الاقبال عليا لبعض دون البعض وهٰذا يخالف ما ثبت فى حديث الحسن بن على رضى الله تعالى عنهما عند الترمذى فى شمائله من عادته صلی الله علیه وسلم انه كان صلی الله علیه وسلم يعطى كل جلسائه نصيبه حتى لا يحتسب جليسه ان احدا اكرم عليه منه. (اعلاء السنن ج۳،ص۱۸۹)

۳ - په اورادو او دُعا کښې له مقتدیانو سره د اشتراک مقتضٰی دا ده چه مقتدیانو ته مخ واړول شي لیکن د دې تر ځنګ تیامن ته له ترجیح ورکولو څخه ثابتیږي چه په دې کښې د زیاتی خصوصیت او زیات ثواب عقیده لري. لهذا دا عمل بدعت ګرځي.
د دې لپاره حضراتو فقهاوو رحمهم الله چه چیرته هم د اجتماعي دُعا یادونه کړې ده هلته ئې یواځې د استقبال صورت بیان کړی دی. تیامن او تیاسر ئې نه دی ذکر کړی او چه چیرته له استقبال سره د تیامن او تیاسر مذکور دی هلته د اجتماعي دُعا ذکر نشته.

قال العلامة الشرنبلالى رحمة الله علیه و يستحب للامام بعد سلامه ان يتحول الى يساره لتطوع بعد الفرض و

ان يستقبل بعده الناس يستغفرون الله و يقرؤن اٰية الكرسی و المعوذات و يسبحون الله ثلاثا و ثلاثين و يحمدونه كذلك ويكبرونه كذلك ثم يقولون لا اله الا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شیء قدير، ثم يدعون لانفسهم وللمسلمين رافعي ايديهم ثم يمسحون بها وجوههم فی اٰخره.(نور الايضاح ص ٦٩)

په مذکوره عبارت کښې په اجتماعي صورت کښې اوراد او دُعا راغلې ده د دې لپاره نې د تيامن او تياسر صورتونه بيان نه کړل بلکه يواځې ئې د استقبال ذکر کړی دی په مراقی الفلاح کښې په دې مقام باندې تيامن. تياسر او ذهاب (تلل) هم مذکور دی له دې څخه ثابته شوه چه د ذهاب (تللو، غوندې تيامن او تياسر هم په دې صورت کښې دی چه کله د امام او مقتديانو تر منځ کومه رابطه نه وي. د اجتماعي دعا تبديع (بدعت والی) په "زبدة الکلمات" کښې دی.

۴ - نن صبا په عمومي توګه دا خبره اوريدل کيږي چه اکثره خلک په دې حالت کښې قبلې ته شا اړول مکروه بولي او امام په تيامن باندې مجبوره کوي. دا په دين کښې زياتی او بدعت دی

روی الامام ابن ماجة رحمه الله عن عراك عن عائشة رضی الله عنها قال ذكر عند رسول الله ﷺ قوم يكرهون ان يستقبلوا بفروجهم القبلة فقال اراهم قد فعلوها استقبلوا بمقعدتی القبلة.

د دې روايت يو تاويل دا هم شوی دی چه خلک د غټو او وړو متيازو برسيره په نورو حالاتو کښې هم قبلې ته مخ او شا ګرځول مکروه ګڼل. په دين کښې د دې غلو (زياتوالی) د اصلاح او د باطل ګومان د ترديد په غرض سره نبي کريم ﷺ ارشاد وفرمايه چه په مجلس کښې زما د ناستې ځای قبلې ته مخامخ جوړ کړئ. (هدية المجتبی)

غرض دا چه امام په سهار او مازديګر کښې تر لمانځه وروسته مقتديانو ته بايد مخ واړوي اوکښيني. البته که چيرته امام ته مخامخ په لومړي صف کښې کوم مسبوق وي نو هغه ته مخامخ کښيناستل مکروه دي. لهذا په دې صورت کښې دې يا تيامن او يا تياسر وکړي. که چيرته د لومړي صف شا ته په کوم بل صف کښې مسبوق وي نو هغه ته د مخامخ کښيناستو په جواز کښې اختلاف دی علامه شامي رحمه الله جواز ته ترجيح ورکړی دی. چنانچه د کراهت د قول تر نقل کولو وروسته فرمائي

واستظهر ابن امير حاج فی الحلية خلاف هذا فقال الذی يظهر انه اذا كان بين الامام والمصلی بحذائه رجل جالس ظهره الی المصلی لا يكره للامام استقبال القوم لانه اذا كان سترة للمصلی لا يكره المرور ورائه فكذا هنا وقد صرحوا بانه لو صلی الی وجه انسان وبينهما ثالث ظهره الی وجه المصلی لم يكره ولعل محمداً رحمه الله تعالی لم يقيد بذلك للعلم به.(رد المحتار ج۱ ص۳۳۲) فقط والله تعالی اعلم ۱۰ ذی قعده ۱۳۹۷ هجری

## الحاق

عقد الامام البخاری رحمه الله باب يستقبل الامام الناس اذا سلم. و اورد لاثباته ثلاثة احاديث: قال الحافظ العسقلانی رحمه الله وسياق سمرة ظاهره انه كان يواظب على ذلك. قيل الحكمة فی استقبال المأمومين ان يعلمهم ما يحتاجون اليه فعلى هذا يختص بمن كان فی مثل حاله ﷺ قصد التعليم و الموعظة. (فتح الباری ج۲، ص۲۷۷) و ذكر الحافظ العينی رحمه الله ايضاً نحو ذلك من الحكمة و الاختصاص. (عمدة القاری ج۶، ص۱۳۶) و قال الشيخ الجنجوهی رحمه الله اراد بذلك الباب اثبات ان ذلك جائز لا ضير فيه واما اثبات المداومة عليه وانه السنة فغير مقصود ههنا وان كان صحيحا فی نفسه. (لامع الدراری ج۳، ص۴۰۰) و قال الشيخ انور رحمه الله اعلم ان الامام اذا اراد الانصراف الى بيته سلم و انصرف و ان اراد القعود فالسنة له ان يستقبل القوم و به جزم المصنف رحمه الله و صرح به الجوزجانی فی مبسوطه و اما التيامن او التياسر المعمول بهما فی زماننا فليسا من السنة فی شیء و انما هما عند ارادة الانصراف الى البيت لا عند الجلوس بعد الصلوة فعن علی رضی الله عنه عند الترمذی انه قال ان كانت حاجته عن يمينه اخذ عن يمينه و ان كان حاجته عن يساره اخذ عن يساره فهما عند الانصراف لحاجته و ما عن البراء ابن عازب رضی الله عنه عند ابی داؤد من حبهم بكونهم فی ميمنة النبی ﷺ فهو لان يقع بصره عليهم عند التسليم اولا لا عند الجلوس بعد الصلوة دائما و غلط فيه الناس عن عبارات بعض المتأخرين مع انهم ارادوا بيان الجواز الفقهی فحملوه على بيان السنة فان كنت تريد السنة فالسنة فی الاستقبال و ان كنت تريد الجواز[1] فافعل ما شئت. (فيض الباری ج۲، ص۳۱۶)

له دغو عبارتونو ښخه ثابته شوه چه د امام بخاري، عسقلاني، عيني، حضرت ګنګوهي او حضرت كشميري رحمهم الله تعالى په نزد يواځې استقبال مسنون دی. د عسقلاني او عيني په عبارت كښې ياد شوی حكمت د تمريض په صيغې سره راغلی دی. دې لره د اختصاص وجه ګڼل معقول نه دی. د دې لپاره چه د مقتديانو له حالاتو ښخه خبرداري او د هغوی اصلاح د هر امام په ذمه دی. حضرت ګنګوهي قدّس سرّه اګر كه له ترجمة الباب ښخه د سنيت اثبات غير مقصود ګڼلی دی ليكن سره له دې ئې د نفس سنيت تصريح كړې ده. په حاشيه د لامع الدراري او اعلاء السنن كښې د انصراف په احاديثو كښې ئې مختلف احتمالات او د هغو لاندې مختلف خيالات ليكلي دي وفی ماذكرنا كفاية ونسأل الله هداية. وله الحمد فی البداية والنهاية.　　فقط والله تعالى اعلم.

۱۲ ذی الحجة ۱۴۰۰ هجری

---

۱ - تيامن او تياسر في نفسه جائز دی ليكن دا سنت ګڼل او سنيت په دې كښې منحصر بلل، په دې باندې اصرار او د استقبال له سنت ښخه انكار همدا رنګه د اجتماعي اورادو او دُعا تر ښنګ له مقتديانو ښخه اعراض بدعت دی ۱۲ منه

# باب المسبوق و اللاّحق

## له مقتدي څخه یوه سجده پاتې شوه

**سوال**: زید له امام سره یوه سجده وکړه او دویمه سجده ئې و نه کړه یعنې په دویمې جدې کښې ویده شو او تر سجدې وروسته ئې سترګې خلاصې شوې نو له امام سره ئې قیام وکړ، نو آیا د زید لمونځ وشو او که نه؟ که چیرته نه وي شوی نو لمونځ به څه ډول ادا کوي. له سره دې شروع کړي او که په آخر کښې د امام تر سلام وروسته د. یوې سجدې په کولو سره سجدهٔ سهو وکړي، نو که داسې وکړي آیا لمونځ ئې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا سړی لاحق دی. په ده باندې واجبه وه چه د سترګو تر خلاصیدو وروسته ئې سجده کړې وای او بیا ئې د امام مُتابعت کړی وای. په دې وخت کښې ئې چه سجده و نه کړه نو د امام تر سلام ګرځولو وروسته د یوې سجدې په کولو. د التحیاتو په ویلو او سلام ګرځولو سره ئې لمونځ صحیح کیږي. لیکن د واجبو په ترک (پریښیدو) سره ګنهګاریږي. سجدهٔ سهوه پرې واجبه نه ده ځکه چه په مقتدي باندې د واجبو په ترک سره سجدهٔ سهو یا د لمانځه بیرته راګرځول نه واجبیږي.

نقل فی الشامیة عن البحر وحکمه انه یبدأ بقضاء ما فاته بالعذر ثم یتابع الامام ان لم یفرغ وهذا واجب لا شرط حتی لو عکس یصح فلو نام فی الثالثة واستیقظ فی الرابعة فانه یأتی بالثالثة بلا قراءة فاذا فرغ منها صلی مع الامام الرابعة وان فرغ منها الامام صلاها وحده بلا قراءة ایضاً فلو تابع الامام ثم قضی الثالثة بعد سلام الامام صح واثم آه.(ردالمحتار ج۱،ص۵۵۷) فقط والله تعالیٰ اعلم ۸رمضان المبارک ۱۳۸۷ هجری

## د امام په متابعت کښې په مسبوق باندې هم تشهّد واجب دی

**سوال**: آیا په مسبوق باندې هم د امام په متابعت کښې د تشهّد لوستل واجب دي؟ که چیرته ئې و نه وائي نو آیا لمونځ ئې کیږي او که نه. او آیا ګنهګاریږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام په متابعت کښې په مسبوق باندې هم تشهّد واجب دی. په پریښودو سره ئې ګنهګاریږي لیکن لمونځ ئې کیږي.

لما جاء فی واجبات الشامیة والحاصل ان متابعة الامام فی الفرائض والواجبات من غیر تأخیر واجبة.(رد المحتار ج۱،ص۴۳۹) وفی العلائیة بخلاف سلامه او قیامه لثالثة قبل اتمام المؤتم التشهد فانه لا یتابعه بل یتمه لوجوبه ولو لم یتم جاز. وفی الشامیة وشمل باطلاقه ما لو اقتدی به فی اثناء التشهد الاول او الاخیر الخ

(قوله ولولم يتم جاز) اى صح مع كراهة التحريم كما افاده ح الخ (ردالمحتار ج۱،ص۴۶۳) وفى سجود السهو من الشامية عن شرح المنية عن القنية من ادرك الامام فى القعدة الاولى فقعد معه فقام الامام قبل شروع المسبوق فى التشهد فانّه يتشهّد تبعاً لتشهد امامه آه.(ردالمحتار ج۱،ص۶۹۸)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۳۸۸ھ هجرى

## د مسبوق په کښيناستو سره امام له اولې قعدې څخه پورته شو

**سوال**: که چيرته د کوم سړي په کښيناستو سره امام له اولې قعدې څخه پورته شي او دا سړی التحيات و نه شي ويلی نو شرعاً د دې څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې دې مسبوق التحيات پوره کړي او بيا دې ودريږي. پرته د تشهّد له پوره کولو څخه د امام متابعت کول مکروه تحريمي دی ليکن لمونځ ئې کيږي. په آخري قعدې کښې د شريکيدونکي سړي هم همدا حکم دی چه د مسبوق د التحيات تر پوره کيدو مخکښې امام سلام واړوي نو دی دې تشهد پوره کړي او بيا دې ودريږي

قال فى الدر بخلاف سلامه او قيامه لثالثة قبل اتمام المؤتم التشهّد فانه لا يتابعه بل يتمه لوجوبه ولولم يتم جاز وفى الشامية (قوله فانه لا يتابعه الخ) ولو خاف ان تفوته الركعة الثالثة مع الامام كما صرّح به فى الظهيرية وشمل باطلاقه ما لو اقتدىٰ به فى اثناء التشهّد الاول او الاخير فحين قعد قام امامه او سلم و مقتضاه انه يتمّ التشهّد ثم يقوم و لم اره صريحا ثم رأيته فى الذخيرة ناقلاً عن ابى اللّيث المختار عندى انه يتم التشهّد وان لم يفعل اجزأه آه. ولله الحمد (قوله ولولم يتم جاز) اى صحّ مع كراهة التحريم كما افاده ح (ردالمحتار ج۱،ص۴۶۳)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۱ جمادى الآخر ۱۳۸۸ھ هجرى

## د مسبوق له امام سره د آخرې قعدې د نه کولو حکم

**سوال**: زيد مسبوق له امام سره په آخره قعده کښې کښې نه ناست. ودريده او څلور رکعتونه ئې پوره کړل. په آخره قعده کښې تر ناستې وروسته ئې سجدهٔ سهو وکړه نو آيا د زيد لمونځ کيږي او که نه؟ او په قصد سره يا سهواً د امام د متابعت نه کولو به څه ډول گناه وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام د التحياتو په اندازه له کښيناستو څخه مخکښې مسبوق چه کوم قرائت. قيام او داسې نور ادا کړي دي هغه معتبر نه دي. دتشهّد له اندازې څخه د امام له التحيات ويلو څخه فارغوالی مراد نه دی بلکه دومره وخت ترې مراد دی چه په هغه کښې په زر نه

زر وخت کښې التحیات ویل کیدلی شي. که چیرته په یوه یا دوه رکعتونو کښې مسبوق وي او دامام د تشهّد په اندازه سره تر کښیناستو وروسته مسبوق په ولاړې د (قدر ما تجوز به الصلوة) قرائت کړی وي نو لمونځ ئې کیږي او که نه نو نه کیږي. اوکه چیرته په دریو یا څلور رکعتونو کښې مسبوق وي نو د هغه دلمانځه د صحت لپاره دا شرط نه دی. البته ضروري ده چه د امام د التحیاتو په اندازه سره تر کښیناستو وروسته هم د مسبوق د قیام څه برخه پیدا شي اګر که د قدر ما تجوز به الصلوة قرائت ئې پکښې نه وي کړی. په دې شرط چه تردې وروسته په دوه رکعتونو کښې سورهٔ فاتحه او یو بل سورت ولولي.

په قصد سره د امام متابعت نه کول ګناه ده، او داسې کول مکروه تحریمي دي. سجدهٔ سهو په هیڅ صورت کښې پرې واجب نه دی ځکه چه د مقتدي ترکِ واجب د سجدهٔ سهو موجب نه دی.

قال فی العلائیة ولو قام قبل السلام هل یعتد بادائه ان قبل قعود الامام قدر التشهّد لا و ان بعده نعم و کره تحریماً الا لعذر. وفی الشامیة (قوله لا) ای لا یعتد بما اداه قبل قعد امامه من قیام و قراءة و انما یعتد بما اداه بعده قال فی الفتح ولو قام قبله ای قبل قدر التشهّد قال فی النوازل ان قرأ بعد فراغ الامام من التشهد ما تجوز به الصلوة جاز و الّا فلا، هذا فی المسبوق بر کعة او رکعتین فان کان بثلاث فان وجد منه قیام بعد تشهد الامام جاز و ان لم یقرأ لانّه سیقرأ فی الباقیتین و القراءة فرض فی رکعتین آه. (ردالمحتار ج۱، ص۵۵۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ شعبان ۱۳۸۸ هجری

## مسبوق باید دپاتې لمانځه لپاره کله ودریږي؟

**سوال** مسبوق د خپل پاتې لمانځه د پوره کولو لپاره څه وخت باید ودریږي؟ د امام نبی خوا ته له سلام ګرځولو سره سره او که وروسته او که دواړو خواوو ته تر سلام ګرځولو وروسته؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** مسبوق دې د امام دواړو خواوو ته تر سلام ګرځولو دومره وروسته باید ودریږي چه دا څرګنده چه د امام په ذمې باندې سجدهٔ سهو نشته.

قال فی الهندیة: و ینبغی للمسبوق ان یمکث ساعة بعد سلام الامام لجواز ان یکون علی الامام سهو. (عالمګیریة ج۱، ص۲۶) وفی العلائیة وینبغی ان یصبر حتّی یفهم انه لا سهو علی الامام. (ردالمحتار ج۱، ص۵۵۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ جمادی الاولی ۱۳۹۲ هجری

## امام چه پنځم رکعت ته پورته شي نو مسبوق به څه کوي؟

**سوال**: لاندینی فتوی د تصدیق غوښتونکې ده:

که چیرته امام په څلورم رکعت باندې تر کښیناستو وروسته د پنځم لپاره ودریږي نو مسبوق به د هغه متابعت نه کوي بلکه غلی به کښیني او انتظار به کوي، که چیرته امام بیرته را وګرځي نو مسبوق به سجدهٔ سهو ورسره وکړي او د امام تر سلام ګرځولو وروسته به ودریږي. او که چیرته امام بیرته را و نه ګرځي نو مسبوق دې خپل لمونځ پوره کړي. لیکن وروسته په داسې حال کښې مسبوق تر اوسه لا یو رکعت نه دی ادا کړی د امام لمونځ له کومې وجې څخه فاسد شي نو د مسبوق لمونځ فاسدیږي. او که چیرته مسبوق یو رکعت ادا کړی وي او تر دې وروسته د امام لمونځ فاسد شي یا نفل وګرځي د مسبوق په لمانځه باندې د دې هیڅ اثر نه لویږي. (الدر المختار ج۱، ص۵۷۱/ البحر الرائق ج۱، ص۲۰۹) او که چیرته امام د آخري ناستې تر کولو مخکښې پنځم رکعت ته ولاړ شي نو بیا به هم مسبوق انتظار کوي، که چیرته امام د پنځم رکعت له سجدې څخه مخکښې را وګرځي نو مسبوق دې تر سجدهٔ سهو وروسته د امام په سلام ګرځولو سره ودریږي او خپل لمونځ دې پوره کړي لیکن په دې صورت کښې که چیرته امام را و نه ګرځي نو د ټولو لمونځونه باطلیږي. (امداد الفتاوی ج۱، ص۲۴۰) او په دواړو صورتونو کښې که چیرته مسبوق د امام له انتظاره پرته خپل لمونځ پوره کول شروع کړي نو دا مکروه تحریمي دی ځکه چه که چیرته امام د پنځم رکعت له سجدې څخه مخکښې را وګرځي او مسبوق تر اوسه فارغ شوی نه وي نو اوس دې له امام سره شي او تر سجدهٔ سهو وروسته د امام په سلام ګرځولو سره دې ودریږي او خپل لمونځ دې پوره کړي او که چیرته له امام سره شامل نه شي نو د خپل لمانځه په آخر کښې په هغه باندې سجدهٔ سهو لازمه ده.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په پورتنۍ لیکنه کښې لاندیني نقصانات دي:

۱ - د مسبوق لپاره د امام د انتظار حد نه ده ټاکل شوی، دی باید د امام د پنځم رکعت تر سجدې پورې انتظار وکړي.

۲ - د امام تر آخرې قعدې وروسته د ودریدو په صورت کښې ئې لیکلي دي چه "که چیرته مسبوق ودریږي او یو رکعت وکړي تر دې وروسته د امام لمونځ فاسد شي یا نفل وګرځي نو د مسبوق په لمانځه باندې د دې هیڅ اثر نه لویږي" په دې کښې دا غلطي ده چه تر آخرې قعدې وروسته د نفل ګرځیدلو هیڅ احتمال نشته، دا احتمال د آخري ناستې د پریښودلو په صورت کښې دی.

۳ - له امداد الفتاوی څخه چه د بطلان کوم حکم را نقل شوی دی له دې څخه د فرضیت بطلان مراد دی. د دې تفصیل دا دی چه دامام لمونځ نفل وګرځید کوم مدرک مقتدي چه سلام وګرځوي که د امام د پنځم رکعت له سجدې څخه مخکښې سلام وګرځي او که وروسته. په هر صورت کښې

ئې لمونځ باطليږي. قال ابن عابدين رحمه الله (تتمه) يتفرع ايضاً على قوله و العبرة للامام ما فى البحر عن الخانية لو تشهد له اقتدى و سلم قبل ان يقيد الخامسة بالسجدة ثم قيدها بها فسدت صلوتهم جميعاً. (رد المحتار ج۱،ص۶۹۹) مدرک يا مسبوق دواړه چه د امام اتباع وکړي نو لمونځ ئې نفل ګرځي. قال ابن عابدين رحمه الله قبيل باب الاستخلاف فان قيدها بسجدة انقلبت صلوته نفلاً فان ضم اليها سادسة ينبغي للمسبوق ان يتابعه ثم يقضي ما سبق به و تكون له نافلة كالامام و لا قضاء عليه لو افسده لان لم يشرع فيه قصداً. رحمتي (رد المحتار ج۱،ص۵۶۰) مسبوق چه پاتې لمونځ انفرادا شروع کړي نو لمونځ ئې فاسديږي لانه قام الى قضاء ما سبق به قبل تشهد الامام.

۴ - په پنځم رکعت کښې د امام د اتباع حکم نه دی ليکل شوی. په دې کښې دا تفصيل دی چه امام تر آخرې قعدې وروسته ودريږي او مسبوق ئې متابعت وکړي نو د ده لمونځ له همدې وخت څخه فاسديږي. او که امام بې له آخرې ناستې څخه ودريږي نو د پنځم رکعت په سجدې سره د امام، مسبوق او مدرک د ټولو لمونځونه نفل وګرځيدل. قال فى العلائية ولو قام امامه لخامسة فتابعه ان بعد القعود تفسد و الا لا حتّٰى يقيد الخامسة بسجدة و فى الشامية ·قوله و الّا لا) اى و ان لم يقعد و تابعه المسبوق لا تفسد صلوته لان ما قام اليه الامام على شرف الرّفض و لعدم تمام الصلوة فان قيدها بسجدة انقلبت صلوته نفلاً فان ضمّ اليها سادسة ينبغي للمسبوق ان يتابعه ثم يقتضي ما سبق به و تكون لهٗ نافلة كالامام. (رد المحتار ج۱،ص۵۶۰) فقط والله تعالى اعلم ۱۱ ذيقعده ۱۳۹۲ هجری

## امام چه تر آخرې قعدې وروسته ودريږي او مسبوق ئې متابعت وکړي نو د مسبوق لمونځ فاسد شو

**سوال** : تر آخرې ناستې وروسته امام په سهو سره ودريده او مسبوق هم ورسره ولاړ شو. د فتحې تر حاصليدو وروسته امام بيرته را وګرځيد او د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ پوره کړ. مسبوق هم له امام سره سجدهٔ سهو وکړه او د امام تر سلام اړولو وروسته ئې خپل پاتې لمونځ پوره کړ نو آيا لمونځ ئې وشو او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې صورت کښې د مسبوق لمونځ په دريدو سره فاسد شو. په ده باندې لازمه وه چه ناست وای او د امام د بيرته را ګرځيدو انتظار ئې کړی وای.

قال فى شرح التنوير قبيل باب الاستخلاف ولو قام امامه لخامسة فتابعه ان بعد القعود تفسد و الّا لا حتّٰى يقيد الخامسة بسجدة. و فى الشامية (قوله ان بعد القعود) اى قعود الامام القعدة الاخيرة (قوله تفسد) اى صلوة

المسبوق لانه اقتداء فی موضع الانفراد ولان اقتداء المسبوق بغیره مفسد کما مرّ (قوله والا) ای وان لم یقعد و تابعه المسبوق لا تفسد صلوته لان ما قام الیه الامام علی شرف الرفض و لعدم تمام الصلوة فان قیدها بسجدة انقلبت صلوته نفلاً فان ضمّ الیها سادسة ینبغی للمسبوق ان یتابعه ثم یقضی ما سبق به و تکون له نافلة کالامام ولا قضاء علیه لو افسده لانه لم یشرع فیه قصداً، رحمتی. (ردالمحتار ج۱، ص۵۶۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## د لاحق د فوت شوي لمانځه تر پوره کيدو مخکښې چه امام سلام واړوي

**سوال** : لاحق (هغه مقتدي چه د لمانځه په سر او آخر کښې شریک وي او په منځ کښې د څه عذر له وجې څه لمونځ ځنې تیر شي) د اوداسه لپاره لاړ چه کله راغی نو یو رکعت ترې تیر شوی وو او امام په آخره قعده کښې وو نو آیا لاحق به اول یو رکعت ادا کوي او که له امام سره په آخره قعده کښې شریکیږي او د امام تر سلام وروسته به خپل رکعت ادا کوي؟ ځکه چه که چیرته لومړی خپل رکعت ادا کوي نو امام سلام اړوي او لمونځ پای ته رسوي. په دې صورت کښې شرعاً څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته دا سړی د بناء له شرائطو څخه خبر نه وي یا ئې د شرائطو پابندي و نه کړه نو دی لاحق نه دی بلکه مسبوق دی. د دې لپاره نیت دې وکړي له امام سره دې شریک شي او تر دې وروسته دې فوت شوي رکعتونه ادا کړي. البته کوم سړی چه د بناء له شرائطو څخه خبر وي او د دغو شرائطو پابندي هم وکړي نو دی لاحق دی. لاحق به لومړی فوت شوی رکعت ادا کوي بیا ئې که امام ونیو نو په لمانځه کښې دې ورسره شریک شي او که نه نو یواځې دې لمونځ پوره کړي.

قال فی العلائیة ویبدأ بقضاء ما فاته عکس المسبوق ثم یتابع امامه ان امکنه ادراکه والا تابعه ثم صلّی ما نام فیه بلا قراءة وفی الشامیة (قوله ان امکنه ادراکه) قید لقوله ویبدأ ثم یتابع و قوله والا تابعه الخ تصریح بمفهوم هذا الشرط ولیس بصحیح والصّواب ابدال قوله ان امکنه ادراکه بقوله ان ادرکه مع اسقاط ما بعده و من التعبیر ان یقول ویبدأ بقضاء ما فاته بلا قراءة عکس المسبوق ثم یتابع امامه ان ادرك ثم ما سبق به الخ ففی شرح المنیة وحکمه انه یقضی ما فاته اوّلاً ثم یتابع الامام ان لم یکن قد فرغ وفی النتف اذا توضأ ورجع یبدأ بما سبقه الامام به ثم ان ادرك الامام فی شئ من الصلوة یصلّی معه آه. وفی البحر وحکمه انه یبدأ بقضاء ما فاته بالعذر ثم یتابع الامام ان لم یفرغ وهذا واجب لا شرط حتی لو عکس یصحّ الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۵۵۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۶ هجری

## مسبوق به د امام په آخري قعدې کښې تر تشهّد وروسته څه وائي؟

**سوال**: مسبوق به د امام په آخري قعده کښې درود شريف او دُعا هم وائي او که څنګه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مسبوق به د امام په آخري قعده کښې درود شريف او دُعا نه وائي بلکه له تشهّد څخه تر فارغيدو وروسته به غلی اوسي يا دې کلمهٔ شهادت او يا دې د التحيات دوباره ووائي. تر ټولو بهتره دا ده چه تشهّد سوکه سوکه ووائي تر څو چه د امام له سلام سره يو ځای له التحياتو څخه فارغ شي.

قال فی شرح التنویر و اما المسبوق فیترسل لیفرغ عن دلام امامه وقیل یتم و قیل یکرر کلمة الشهادة وفی الشامیة (قوله فیترسل) ای یتمهل وهذا ما صحّحه فی الخانیة وشرح المنیة فی بحث المسبوق من باب السهو و باقی الاقوال مصحّح ایضاً قال فی البحر وینبغی الافتاء بما فی الخانیة کما لا یخفی ولعل وجهه کما فی النهر انه یقضی اٰخر صلوته فی حق التشهد ویأتی فیه بالصلوة والدعاء وهذا لیس اٰخرً قال ح وهذا فی قعدة الامام الاخیرة کما هو صریح قوله لیفرغ عند سلام امامه و اما فیما قبلها من القعدات فحکمه السکوت کما لا یخفی آه. و مثله فی الحلیة (قوله و قیل یکرّر کلمة الشهادة) کذا فی شرح المنیة و الذی فی البحر و الحلیة و الذخیرة یکرّر التشهّد تأمل. (ردالمحتار ج۱، ص۴۷۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ شعبان ۱۳۹۷ هجری

## د مُدرک او مسبوق لپاره د ثناء (سبحٰنک اللّٰهم الخ) حکم

**سوال**: مدرک او مسبوق چه په لمانځه کښې د امام د قرائت له شروع کولو څخه وروسته شريک شي نو د ثناء ويل ورته جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام له جهري قرائت سره دې ثناء نه وائي. که چيرته مسبوق وو نو چه کله پاتې لمونځ ادا کوي نو هلته دې وائي. په سرّي لمانځه کښې دې له امام سره هم ووائي او چه کله پاتې لمونځ پوره نو هلته دې هم دوباره ووائي

قال فی التنویر الا اذا کان مسبوقاً وامامه یجهر بالقراءة فلا یأتی به وفی الشامیة وینبغی التفصیل انّ الامام یجهر لا یثنی و ان کان یسرّ یثنی فکان المعتمد ما مشی علیه المصنّف فافهم. (ردالمحتار ج۱، ص۴۵۶) و قال الحلبی رحمة الله علیه فی الغنیة و المسبوق یأتی با لثناء اذا ادرک الامام حالة المخافة ثم اذا قام الی قضاء ما سبق به یأتی به ایضاً کذا ذکره فی الملتقط و وجهه ان القیام الی قضاء ما سبق کتحریمة اخری للخروج به فاحکم الاقتداء الی حکم الانفراد الخ. (کبیری ص۲۹۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ رمضان المبارک ۱۳۹۷ هجری

## مسبوق د امام له سرّي قرائت سره یو ځای ثناء ویلی شي

**سوال**: امام چه د سرّي لمانځه قرائت شروع کړی وي تر دې وروسته یو څوک په لمانځه کښې شریک شي نو حکم خو دا دی چه هغه دې په دې حالت کښې ثناء ولولي. په دې باندې دا اشکال واردیږي چه کله د امام د سرّي قرائت په وخت کښې مقتدي ته د سورهٔ فاتحه ویل جائز نه دي نو ثناء به ولې ورته جائزه وي. تسلي بخښونکی ځواب راکړئ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په جهري قرائت کښې خو په مقتدي باندې د قرائت د اوریدو لپاره انصات (چُپوالی) فرض دی لیکن په سرّي قرائت کښې د انصات حکم د دې لپاره دی چه د امام قرائت د مقتدي قرائت دی. چونکه د امام ثناء د مقتدي ثناء نه ده د دې لپاره به مقتدي ثناء لولي.

قال ابن عابدین رحمہ اللہ علیہ وعلّله فی الذخیرة بما حاصله ان الاستماع فی غیر حالة الجهر لیس بفرض بل یسنّ تعظیماً للقراءة فکان سنّة غیر مقصودة لذاتها وعدم قراءة المؤتم فی غیر حالة الجهر لا لوجوب الانصات بل لان قراءة الامام له قراءة واما الثناء فهو سُنّة مقصودة لذاتها ولیس ثناء الامام ثناء للمؤتم فاذا ترکه یلزم ترک سنة مقصودة لذاتها للانصات الذی هو سنّة تبعاً بخلاف ترک حالة الجهر اه. (ردالمحتار ج۱، ص۳۵۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ شوال المکرم ۱۳۹۹ هجری

راجحه خبره دا ده چه ثناء و نه وائي که په جهري قرائت کښې وي یا په سرّي کښې. تفصل ئې په تتمه کښې دی.

## د دریو رکعتونو مسبوق به اوله قعده کله کو؟

**سوال**: یو سړی د څلور رکعتیزه لمانځه په څلورم رکعت کښې له امام سره شریک شو او پاتې لمونځ ئې په دې ډول ادا کړ چه په لومړي رکعت کښې ئې د قعدې په ځای په دویم رکعت باندې قعده وکړه. آیا لمونځ ئې وشو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بهتره دا ده چه مسبوق له یوه رکعت څخه وروسته قعده وکړي، که چیرته تر دوه رکعتونو وروسته قعده وکړي نو بیا هم پروا نه لري.

قال فی العلائیة ویقضی اوّل صلوته فی حق قراءة وآخرها فی حق تشهّد فمدرک رکعة من غیر فجر یأتی برکعتین بفاتحة وسورة وتشهّد بینهما وبرابعة الرباعی بفاتحة فقط ولا یقعد قبلها، وقال ابن عابدین رحمہ اللہ علیہ هذا قول محمد رحمہ اللہ علیہ کما فی مبسوط السرخسی وعلیه اقتصر فی الخلاصة وشرح الطحاوی والاسبیجابی والفتح والدرر والبحر وغیرهم. (الی قوله) وفی الفیض عن المستصفی لو ادرکه فی رکعة الرباعی یقضی رکعتین بفاتحة وسورة ثم یتشهّد ثم یأتی بالثالثة بفاتحة خاصّة عند ابی حنیفة وقالا رکعة بفاتحة وسورة وتشهّد ثم رکعتین اولاهما

بفاتحة وسورة و ثانيهما بفاتحة خاصة اه و ظاهر كلامهم اعتماد قول محمد رحمه الله (قوله و تشهد بينهما) قال في شرح المنية ولو لم يقعد جاز استحساناً لا قياساً ولم يلزمه سجود السهو لكون الركعة اولى من وجه اه. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۸)

فقط والله تعالى اعلم ۸ ربيع الآخر ۱۳۹۸ هجرى

## د لاحق لپاره د امام تر متابعت وروسته د فوت شوی لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال**: لاحق د مسبوق غوندې چه کوم لمونځ ترې پاتې وو هغه ئې د امام تر فارغیدو وروسته ادا کړ. آیا لمونځ ئې وشو او که نه؟ په داسې حال کښې چه ده باید لومړی فوت شوی لمونځ ادا کړی وای او بیا له امام سره شریک شوی وای. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لاحق باندې واجب دي چه لومړی خپل فوت شوی لمونځ ادا کړي او بیا له امام سره شریک شي. که چیرته داسې و نه کړي نو ګنهګاریږي. په مقتدي باندې د واجبو پریښودل د بیرته را ګرځولو موجب نه دی.

قال شارح التنوير رحمه الله ويبدأ بقضاء ما فاته عكس المسبوق ثم يتابع امامه ان امكنه ادراكه والا تابعه ثم صلى ما نام فيه بلا قراءة وقال ابن عابدين رحمه الله وفي البحر وحكمه انه يبدأ بقضاء ما فاته بالعذر ثم يتابع الامام ان لم يفرغ وهذا واجب لا شرط حتى لو عكس يصح فلو نام في الثالثة واستيقظ في الرابعة فانه يأتي بالثالثة بلا قراءة فاذا فرغ منها صلى مع الامام الرابعة وان فرغ منها الامام صلاها وحده بلا قراءة ايضاً فلو تابع الامام ثم قضى الثالثة بعد سلام الامام صح واثم. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۵)

فقط والله تعالى اعلم ۱۷ جمادى الآخر ۱۳۹۹ هجرى

## لاحق به فوت شوې لمونځ سره له سُنتو او آدابو ادا کوي

**سوال**: لاحق چه کله د پاتې شوي لمانځه قضاء را ګرځوي نو آیا یواځې دې فرائض او واجبات ادا کړي او له امام سره دې د شاملیدلو کوشش کوي او که هر رکن به سره له سُنتونو او آدابو ادا کوي اګر که په دې منځ کښې د امام د سلام ګرځولو ویره وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لاحق به فوت شوی لمونځ سره له سُنتو او آدابو ادا کوي. تر دې وروسته که امام په لمانځه کښې پیدا کړي نو ورسره شریک دې شي او که نه نو یواځې دې خپل لمونځ پوره کړي.

قال في الهندية: اللاحق اذا عاد بعد الوضوء ينبغي له ان يشتغل اوّلا بقضاء ما سبقه الامام بغير قراءة يقوم مقدار قيام الامام وركوعه وسجوده ولو زاد او نقص فلا يضره هكذا في شرح الطحاوي. (عالمگيرية ج۱، ص۹۲)

فقط والله تعالى اعلم ۱۸ جمادى الآخر ۱۳۹۹ هجرى



وما توفيقى الا بالله عليه توكلت واليه أنيب

# القول السافر

## عن حكم المسبوق خلف المسافر

((په مسافر امام پسې مسبوق مقيم (مقتدی) باقی پاتې رکعتونه څنګه اداء کړی؟))

## نادره څېړنه د مقيم مسبوق په مسافر امام پسې د اقتداء په اړه

**سوال** له مسافر امام سره مقيم مقتدي د ماسپښين په دويم رکعت کښې شريک شو نو پاتې رکعتونه به څه ډول ادا کوي؟ د دې ځای علماء کرامپه دې کښې اختلاف کوي. لهذا مدلل او مفصل ځواب وليکئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا سړی به ولاړيږي او په لومړي رکعت کښې به سورهٔ فاتحه او يو سورت لولي او بيا دې قعده وکړي او بيا دې په دوه رکعتونو کښې يواځې سورهٔ فاتحه ولولي او د آخري دوه رکعتونو په منځ کښې به قعده نه کوي. دا مسئله د فحول علماوو تر منځ معرکة الآراء (اختلافي) ده. په دې اړوند د علم او معرفت د همدغو خزانو ليکنې احقر ته له پير شير محمد شاه صاحب مدظلهم د ګهوټکي (سندھ) اوسيدونکي له خوا لاس ته راغلې چه د علم د خاوندانو د تحقيق د شوق او ذوق په خاطر ئې قلم ته حواله کوم.

**استفتاء : له شيخ رشيد احمد دهلي صاحب څخه**

څه فرمائي د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په مسافر امام پسې مقيم مقتدي څلور رکعتيزه لمونځ اد اکوي. نوموړی مقتدي له نوموړي امام سره په اول رکعت کښې شريک شو نو مقتدي به خپل لمونځ څرنګه پوره کوي او کوم مقتدي چه په دويم رکعت کښې شريک شي نوهغه به ئې څنګه پوره کوي او کوم مقتدي چه په التحيات کښې له امام سره شريک شي نو هغه به ئې څه ډول پوره کوي؟بينوا توجروا.

**الجواب : له حضرت مولانا خليل احمد سهارنپوري قدّس الله سرّه څخه:**

د دې مسئلې تحقيق په دې باندې منحصر دی چه لومړی دا ثابته شي چه مقتدي په کوم وخت کښې مدرک دی. په کوم وخت کښې مسبوق يا لاحق او په کوم وخت کښې مسبوق او لاحق دی؟ پس څرګنده دې وي چه کوم مقيم مقتدي چه په لومړي رکعت کښې په مسافر امام

پسې اقتداء وکړي هغه لاحق دی. چنانچه د درمختار د دې قول په شرح کښې دي: **(و مقیم ائتم بمسافر)** د رد المحتار ملا صاحب لیکي: **قوله ومقیم ای فهو لاحق بالنظر الی الاخیرتین.** همدارنګه په دې باندې د لاحق تعریف هم صادقیږي. چنانچه په در مختار کښې دي: **و اللاحق من فاتته الرکعات کلها او بعضها لکن بعد اقتدائه بعذر - الخ** نو دا مقتدي لاحق دی. نو چه کله د امام له لمانځه څخه جلا شي خپل دوه رکعته دې بې له قرائت څخه ادا کړي. چنانچه په دُرمختار کښې دي: **وحکمهٔ کمؤتم فلا یأتي بقراءة ولا سهو - الخ.** بناءً علیه دا مقتدي چا چه په لومړي رکعت کښې اقتداء کړی دی په اعتبار د دوو آخرنیو رکعتونو صرف لاحق دی او په لومړیو دوارو صورتونو کښې (په داسې حال کښې چي په دویم رکعت کښې ئې اقتداء کړې وي یا ئې په تشهّد کښې اقتداء کړې وي) په دغو دوارو صورتونو کښې صرف مسبوق دی. په دویم صورت کښې په دریو رکعتونو کښې مسبوق دی او په دریم صورت کښې په څلورو رکعتونو کښې مسبوق دی. چنانچه په ده باندې د مسبوق تعریف صادقیږي. **والمسبوق من سبقه الامام بها او ببعضها (درمختار)** لهذا دا مقتدي له اقتداء څخه په جلا کیدو سره منفرد ګرځي. ده ته په کار دي چه په لومړي رکعت کښې ثناء. تعوذ او سورهٔ فاتحه او یو بل سورت ووائي. او که چیرته په ټولو رکعتونو کښې مسبوق وي نو دوه رکعته دې له سورت سره وکړي او پاتې دوه رکعته دې بې له سورته وکړي یعنې یواځې دې سورهٔ فاتحه ولولي (که د دریو رکعتونو مسبوق وي او که د څلورو رکعتونو). په درمختار کښې دي **و المسبوق من سبقه الامام بها او ببعضها و هو منفرد حتّی یثنّی و یتعوذ و یقرأ و ان قرأ مع الامام لعدم الاعتداد بها لکراهیتها مفتاح السعادة فیما یقضیه ای بعد متابعته لامامه.** او په عالمګیري [۱] کښې دي:

**و تجیء الطائفة الثانیة الی مکان صلوتهم فمن کان مسافراً یصلی رکعة بقراءة لانه مسبوق و من کان مقیماً یصلی ثلاث رکعات الاولی بفاتحة الکتاب و سورة لانه کان مسبوقاً فیها و فی الاخریین بفاتحة الکتاب علی الروایات کلها. والله تعالی اعلم وعلمه احکم** (املاه بلسانه خلیل احمد عفی عنه)

**۲۷ ربیع الثانی ۱۳۳۳ هجری**

**الجواب صحیح عنایت الهي عفه عنه**

---

۱ـ و فی الشامیة تحت (قوله لانهم لاحقون) وعم کلامه المیم خلف المسافر حتّی یقضی ثلاثا بلا قراءة ان کان من الطائفة الاولی وبقراءة ان کان من الثانیة. رشید احمد لدهیانوی.

## د مذکوره فتوىٰ په اړه د حضرت مولانا عزيز الرحمٰن صاحب قدس سرّه خط شيخ رشيد احمد دهلوي ته:

بسم الله الرحمٰن الرحيم.................. له طرفه د بنده عزيز الرحمٰن عفي عنه

د ښاغلي محترم شيخ رشيد احمد صاحب مد فيوضهم له برکته ډک خدمت ته. وروسته مسنون سلام له تحفې څخه عرض دا دی چه تاسو کومې ليکنې په مسافر امام پسې د مقيم د اقتداء د مسئلې په اړوند پريښې دي هغه مې وليدل او اصل روايت عالمګيري مې هم وکوت. په صلوة الخوف کښې فتح القدير او پخپله شامي هم همداسې ليکلي دي. له دې څخه دا شبهه پيدا کيږي چه دا حکم د کلي قاعدې په خلاف کوم چه د مسبوق لاحق لپاره مقرره ده د کوم چه تفصيل ما مخکښې ليکلی دی. ښائي چه د صلوة الخوف لپاره ځانګړې وي. يا په دويم روايت باندې بناء ده کوم چه په مسافر پسې د مقيم په اقتداء کښې ده کوم لره چه ځينو مشائخو اعتبار ورکړی دی. هغه دا چه مقيم دې په مسافر پسې خپل پاتې دوه رکعتونه په قرائت سره پوره کړي. ليکن دا د اصح خلاف ده. **كذا في الهداية وغيرها**. باقي په عالمګيري کښې د **على الروايات كلها** د ويلو مطلب دا دی چه دا موقع د خوف (ويرې) په لمانځه کښې ټول روايتونه په همدې ډول دي چه دويمه ډله دې خپل رکعتونه له قرائت سره پوره کړي اګر که قاعده د مسبوق لاحق په خلاف ده. ليکن د روايت له اتباع څخه دا حکم ورکړ شوی دی. والله اعلم. او په عالمګيري کښې د يوه رکعت په فاتحه او له يوه سورت سره تر ادا کولو وروسته دا ليکل چه **لانه كان مسبوقا فيها** د دې تائيدوونکی دی چه مسبوق يواځې په همدې يوه رکعت کښې دی او که نه نو په آخر کښې به ئې ليکلي وو چه **لانه مسبوق فيها اى في جميع الركعات** او کومه کلي قاعده چه احقر د شامي په حوالې سره نقل کړې وو هغه صاحبِ فتح القدير هم د مسبوق او لاحق په بحث کښې دا ډول ليکلی دی او دا تصريح ئې کړې ده چه کوم سړی چه مسبوق هم وي او لاحق هم وي هغه دې د احقر د وړاندې شوي ترتيب مطابق خپل رکعتونه پوره کړي او کوم تطبيق چه حضرت مولانا خليل احمد صاحب ليکلی دی په هغه مې سر خلاص نه شو. په دې کښې تأمل دی. ما حضرت مولانا محمود الحسن صاحب او مولانا انور شاه کشميري صاحب ته هم ور وښود، ټولو حضراتو د غور تر کولو وروسته دا وفرمايل چه د قاعده کليه اقتضاء هغه ده کومه چه مخکښې ليکل شوې دي. بنده په دې تأمل کښې وو چه بله ورځ يوه صاحب حافظ عبد الرحمٰن منداوري بعينه هم هغه سوال ليکلی او د هغه لاندې ئې د حضرت مولانا ګنګوهي رحمه الله خواب را نقل کړی دی کوم چه سره د لږ غوندې تغير د احقر د ځواب مطابق دی. بنده له هغه څخه د خط په ذريعې سره پوښتنه وکړه چه له تاسو سره د حضرت ګنګوهي قدس سرّه اصل فتوىٰ موجوده ده او که تاسو له کوم بل ځای څخه را نقل کړې ده؟ که چيرته موجوده وي نو هغه را وليږئ

او تر کتلو وروسته به بیرته در لیږل کیږي. دهغه سوال او ځواب بعینه د ملاحظې په غرض سره درځي. د هغه غرض هم د اختلاف رفع کول دي. ځکه چه هغه یو بل ځواب د دې په خلاف د علم الفقه له کتاب څخه نقل کړی دی هغه ټول ستاسو خدمت ته در لیږل کیږي. انتهی.

## د اصل مجیب مولانا خلیل احمد صاحب سهارنپوري قدس سرّه خط د شیخ رشید احمد صاحب دهلوي په نامه.

زما عنایت فرما ښاغلی محترم شیخ رشید احمد صاحب!

السلام علیکم. ستاسو له مهربانۍ نه ډک لیک په مسافر پسې د مقیم د اقتداء په اړه له لیکنو سره را ورسید. ما په غور سره دا ټولې لیکنې وکتلې. د هغو له کتنې څخه معلومه شوه چه ټولو لویو او وړو حضراتو ته په دې مسئله کښې د دُرمختار او شامي له هغه عبارت څخه کوم چه د مسبوق او لاحق په بحث کښې لیکلی دی، دوکه ور لویدلې ده. د دې اشتباه وجه دا ګرځیدلې ده چه فقهاوو په مسافر پسې د مقیم د اقتداء مسئلې لره دومره په مختلفو ځایونو او په مظانِ بعیده وو کښې لیکلې ده چه د هغو خوا ته د چا خیال او فکر هم نه وي. چنانچه په صلوٰة الخوف، سجدهٔ سهو، صلوة المسافر او د مسبوق او لاحق په بحث کښې ئې دا مسئله لیکلې ده. چونکه په دې مسئله کښې د مسبوق و لاحق خوا ته تبادر دی لهذا دې مجمل عبارت ته په کتو سره مفتیان حضرات اکتفاء کوي او د نورو غیر متبادره ځایونو خوا ته التفات او پلټنه نه کوي. مخکښې زما پخپله مسلک هم د دې عبارت پر بناء هغه وو کوم چه د نورو ټولو حضراتو دی. لیکن د غور تر کولو وروسته زما په خیال کښې بدلون راغی او دا خیال راغی چه مقیم په مسافر پسې چه کله په لومړي رکعت کښې اقتداء وکړي نو د آخرنیو دوه رکعتونو په اعتبار سره د قرائت په حق کښې د لاحق په حکم کښې دی لیکن چه کله په دویم رکعت یا په التحیاتو کښې اقتداء وکړي نو په دغو دواړو صورتونو کښې هغه محض منفرد د مسبوق په حکم کښې دی او د لاحق په حکم کښې با لکل نه وي. چونکه په دې مسئله کښې ګڼ شمیر علماء کرام زما د دې خیال په خلاف دي لهذا زه غواړم چه خپله مُدعا سره له ټولو استدلالاتو په تفصیل سره ولیکم او د حضراتو علماء کرامو په خدمت کښې ئې وړاندې کړم او دا هیله ترې وکړم چه که چیرته دا صحیح وي نو قبوله ئې کړئ او که نه وي نو چه کومه خبره صحیح او محققه وي په دلائل سره مې پرې خبر کړئ زه به انشاء الله تعالی د حق له قبلولو څخه د ذرې غوندې هم انحراف او انکار و نه کړم والله ولي التوفیق وبیده ازمة التحقیق.

د نزاع (اختلاف) ځای دا ی چه مقیم په مسافر پسې په څلور رکعتیزه لمانځه کښې که په اول

رکعت کښې اقتداء وکړي او که په دويم يا په تشهّد کښې هغه د آخرنيو دوه رکعتونو په اعتبار سره مسبوق دی يا لاحق دی. او يا لاحق او مسبوق دواړه دی. پس څرګنده دې وي چه د محققينو فقهاؤ له تصريحاتو څخه ثابته ده چه په مسافر پسې مقيم اګر که په اول رکعت کښې اقتداء کړې وي نه حقيقةً مسبوق دی او نه حقيقةً لاحق. بلکه ځينې فقهاؤ ده ته مثلِ مسبوق «د مسبوق غوندې» وائي. او ځينې مثلِ لاحق ورته وائي. او لومړنی قول لره محققينو فقهاوو صحيح ګڼلی دی. اول خو د مسبوق د لفظ او د لاحق د لفظ مدلول او د هغو تعريف پخپله په دې دلالت کوي. ځکه چه مسبوق هغه دی له چا څخه چه امام ټول رکعتونه يا ځينې رکعتونه مخکښې ادا کړي وي او ظاهره ده چه دا مفهوم او تعريف په خلف المسافر باندې ددوه آخرنيو رکعتونو په اعتبار سره صادق نه راځي او لاحق هغه دی چه دخپلو فوت شوي رکعتونو کوم چه وروسته د امام له اقتداء څخه د کوم عذر له وجې فوت شوي وي په ادا کولو سره له امام سره برابريږي. او په مقيم خلف المسافر باندې دا مفهوم هم نه صادقيږي ځکه چه هغه د امام د لمانځه په اندازه د اقتداء نيت کړی وو هغه ئې پوره کړ او له هغو څخه يو رکعت هم نه دی ترې فوت شوی او دوه آخري رکعتونه نه د امام په لمانځه کښې وو او نه ده په هغو کښې اقتداء کړې وه او نه هغه د امام په ملګرتيا او متابعت کښې اداشول. لهذا دا مقيم حقيقةً لاحق هم نه شي کيدلی. پرته له دې څخه د فقهاوو رحمهم الله عبارات په دې باندې شاهد دي. د دُرمختار په باب د سجود السهو کښې ليکلي دي: **والمسبوق يسجد مع امامه مطلقاً سواء كان السهو قبل الاقتداء او بعده ثم يقضي ما فاته ولو سها فيه سجد ثانياً و كذا اللاحق لكنه يسجد في اٰخر صلاته ولو سجد مع امامه اعاده والمقيم خلف المسافر كالمسبوق وقيل كاللاحق.**

علامه طحطاوي په دې باندې ليکي: **قوله كالمسبوق فيلزمه السجود وصححه في البدائع لانه انما اقتدى با لامام بقدر صلوة الامام فاذا انقضت صلوة الامام صار منفرداً فيما وراء ذٰلك وانما لا يقرأ فيما يتم لان القراءة فرض في الاوليين و قرأ الامام فيهما (بحر)** له دې عبارت څخه د دريواړو مسبوق، لاحق او مقيم خلف المسافر له يوه او بل سره تقابل «مخامخيدل» او همدارنګه د تشبيه او مماثلت «يو شان والی» واضح دليل دي چه مقيم خلف المسافر نه حقيقةً مسبوق دی او نه حقيقةً لاحق. البته وروسته د امام تر لمانځه منفرد ګرځي لکه څرنګه چه مسبوق هم منفرد ګرځي. اوس په دې باندې دا اعتراض کيده چه کله ده لره په دوه رکعتونو کښې منفرد وګاڼه نو په دې صورت کښې د قرائت د پريښودلو هيڅ وجه نشته. د دې ئې دا ځواب ورکړ چه لکه څرنګه فرض قرائت په دوه اولنيو رکعتونو کښې د ده له خوا څخه امام ادا کړی دی له دې وجې څخه دی دې په دې ځای کښې قرائت نه کوي او د بدائع عبارت دا دی: **واما المقيم اذا اقتدى بالمسافر ثم قام الى اتمام صلاته وسها هل يلزمه سجود السهو**

ذکره فی الاصل و قال انه یتابع الامام فی سجود السهو و اذا سها فیما یتم فعلیه سجود السهو ایضاً و ذکر الکرخی فی مختصره انه کاللاحق لا یتابع الامام فی سجود السهو و ذا سها فیما یتم لا یلزمهٗ سجود السهو لانه مدرک لاول الصلٰوة فکان فی حکم المقتدی فیما یؤدیه بتلك التحریمة کالاحق و لهٰذا لا یقرأ کاللاحق و الصحیح ما ذکر فی الاصل لانه ما اقتدی بامامه الا بقدر صلٰوة الامام فصار منفرداً فیما وراء ذٰلك و انما لا یقرأ فیما یتم لان القراءة فرض فی الاولیین و قد قرأ الامام فکانت قراءة له. او صاحب د ردالمحتار له بحر څخه د نقل په توګه لیکي:

قوله و المقیم الخ ذکر فی البحر ان المقیم المقتدی بالمسافر کالمسبوق انه یتابع الامام فی سجود السهو ثم یستقبل بالامام. و اما اذا قام الی اتمام صلٰوته و سها ذکر الکرخی انهٗ کاللاحق فلا سجود علیه بدلیل انه لا یقرأ و ذکر فی الاصل انه یلزمه السجود و صححهٗ فی البدائع لانه انما اقتدٰی بالامام بقدر صلٰوة الامام فاذا انقضت صار منفرداً و انما لا یقرأ فیما یتم لان القراءة فرض فی الاولیین و قرأ الامام فیهما له دغو عبارتونو څخه دمقیم خلف المسافر حقیقةً مسبوق او لاحق نه کیدل واضح شو. همدارنګه صاحب رد المحتار وروسته د عباراتو له نقل کولو څخه دا هم لیکي: قال فی النهر و بهٰذا علم انه کاللاحق فی حق القراءة فقط. دي عبارت دمسئلې له خیرې څخه با لکل پرده پورته کړه او دا ترې ثابته شوه چه د ده قرائت پرینښودل د ده په حکم د مسبوق کښې نه کیدل مزاحم نه دی. بلکه دی یواځې د قرائت په باره کښې د لاحق په حکم کښې ګڼل کیږي. په پاتې ټولو احکامو کښې دی د مسبوق غوندې منفرد دی. دغو عبارتونو څرګنده کړه چه دی د منفرد په کیدو سره به لومړی آخري رکعتونه[1] د مسبوق غوندې ادا کوي نه د لاحق غوندې. همدغه مضمون لره صاحب د هدائې لیکي: و اذا صلی المسافر بالمقیم رکعتین سلم و اتم المقیمون صلاتهم لان المقتدی التزم الموافقة فی الرکعتین فینفرد فی الباقی کالمسبوق الا انهٗ لا یقرأ فی الاصح لانهٗ مقتدٍ تحریمةً لا فعلا و الفرض صار مؤدًّا فیترکها احتیاطًا بخلاف المسبوق لانه ادرك قراءة نافلة فلم یتأد الفرض فکان الاتیان اولی. صاحب د هدائې علامه برهان الدین مرغیناني رحمه الله د مذکور اعتراض په ځواب کښې د خپل عادت مطابق د تدقیق لار غوره کړی دی او د قرائت د پرینښودلو وجه ئې دا ښوولې ده چه مقیم خلف المسافر په اعتبار د تکبیر تحریمه سره مقتدي دی او په اعتبار دفعل سره مقتدي نه دی. تحریمةً په اقتداء باندې په نظر کولو سره ده ته قرائت ویل په داسې حال کښې چه د امام اولنې لمونځ ئې پیدا کړی وي مکروه تحریمي دي. او

[1] - یعنې اولنیو رکعتونو لره کوم چه د لاحق په حکم کښې د ګڼونکو په خیال کښې آخرینې رکعتونه دي ۱۲ رشید احمد

د فعل له مخې په نه مقتدي توب باندې په نظر کولو سره د ده لپاره قرائت مستحب دی. او چه کله یو کار د مستحب او حرامو تر منځ راشي نو د احتياط له مخې ئې پرېښودل لازمېږي. په خلاف د مسبوق چه هغه فرض قرائت نه دی پیدا کړی بلکه نفل قرائت ئې پیدا کړی دی. لهذا ده ته د قرائت پرېښودل ناجائز دي. صاحبِ فتح القدير وائي:

**قوله احتياطاً فانه بالنظر الى الاقتداء تحريمة حين[1] ادركوا اول صلوة الامام يكره القراءة تحريماً وبالنظر الى عدمه فعلاً اذلم يفتهم مع الامام ما يقضون وقد ادركوا فرض القراءة تستحب واذا دار الفعل بين وقوعه مستحباً او محرماً لا يجوز فعله بخلاف المسبوق فانه ادرك قراءة نافلة.**

اګر که د بدائع، طحطاوي. شامي او داسې نورو له عبارتونو څخه څرګنده وه ليکن د هدايې عبارت نور زياتي وضاحت وکړ چه هغه مقيم خلف المسافر چا چه په تحريمه کښې اقتداء کړې وي، په هرو دوه رکعتونو آخرنيو کښې د مسبوق په مثل سره منفرد دی او د صحيح قول په مطابق لاحق نه دی. او سره د منفرد والي ده ته د يوه عارض له وجې د قرائت د پرېښودلو حکم دی. چه له دې څخه صاف څرګندېږي چه د ده د قرائت پرېښودل د ده د لاحق والي مقتضٰی نه دی او د ده له لاحق سره مماثلت (يو شان والی) يواځې د قرائت د پرېښودلو په حکم کښې دی نه په نورو حکمونو کښې. ځکه چه په نورو احکامو کښې دا سړی منفرد په مثل د مسبوق دی. همدارنګه د ترکِ قرائت دا حکم په همدې مقيم مقتدي بالمسافر سره مخصوص دی چا چه پخپل امام پسې په تحريمه کښې اقتداء کړې وي. او چا چه په تحريمه کښې اقتداء نه وي کړې او د امام اول لمونځ ئې نه وي نيولی بلکه په دويم رکعت يا په تشهّد کښې شريک شوی وي نو د هغه دا حکم نه دی چه هغه دې هم قرائت نه وائي بلکه د هغه لپاره به د مذکوره قاعدې مطابق قرائت کول مستحب وي. ځکه چه د ده لپاره له قرائت څخه مانع په تحريمه کښې اقتداء وه او د يو رکعت يا دوه رکعتونو د مسبوق په حق کښې هغه مانع پورته کېږي کوم چه د قرائت د کراهت تحريم موجب وو. يواځې استحباب باقي پاتې شو. پرته له دې څخه په دې باندې نور ګڼ شمير عبارتونه او روايتونه دلالت کوي. د فتح

---

[1] - الظاهر ان هذا ليس قيداً الكراهة بالنظر الى الاقتداء تحريمة لان من لم يدرك اول صلوة الامام بل ادرك الركعة الثانية او التشهد فهو ايضا مقتدٍ تحريمة فراده والله اعلم لان المقصود ههنا بيان حكم مدرك الامام المسافر فى الركعة الاولى لا لان المدرك بعدها ليس بمقتدٍ تحريمة. فالقيد لبيان الواقع لا للاحتراز ولما كان ذلك كذلك يرد عليه انه يقتضى ان لا يقرأ فى الاخريين المقيم المقتدى بالمسافر بعد الاولى ايضاً وكذا المقتدى بالمقيم اذا كان مسبوقاً بثلاث ركعات فصاعداً ويمكن الجواب بانا لما استطعنا اعتبار الاقتداء تحريمة لاداء القراءة الواجبة فى الاوليين لا يعود اعتباره فى الاخريين. والله اعلم ۱۲ رشيد احمد لدهيانوى.

القدير په صلوة الخوف كښې دي

قوله لانهم مسبوقون ويدخل فى حكمه المقيم خلف المسافر حتى يقضي ثلاث ركعات بلا قراءة ان كان من الطائفة الاولى وبقراءة ان كان من الثانية. په فتاوی عالمګيري کښې دي: وان كان الامام مسافراً والقوم مقيمين ومسافرين صلى الامام بالطائفة الاولى ركعة ثم انصرفوا بازاء العدو وجاءت الطائفة الثانية وصلى بهم ركعة فمن كان مسافراً خلف الامام بقى الى تمام صلاته ركعة ومن كان مقيماً بقى الى تمام صلاته ثلاث ركعات ثم ينصرفون بازاء العدو ورجع الطائفة الاولى الى مكان الامام فمن كان مسافرا يصلى ركعة بغير قراءة لانه مدرك اول الصلوة ومن كان مقيماً يصلى ثلاث ركعات بغير قراءة فى ظاهر الرواية فاذا اتمت الطائفة الاولى صلاتهم ينصرفون بازاء العدو وتجئ الطائفة الثانية فمن كان مسافراً يصلى ركعة بقراءة لان مسبوق وان كان مقيماً يصلى ثلاث ركعات الاولى بفاتحة الكتاب وسورة لانه كان مسبوقاً فيها وفى الاخريين بفاتحة الكتاب على الروايات كلها.

د عالمګيري په دې عبارت کښې چه حضرت مفتي عزيز الرحمن صاحب کوم اشکال وړاندې کړی دی اوويلي ئې دي لانه كان مسبوقا فيها لره مقدم (وړاندې) بيان کړی دی. که چيرته په آخرنيو دوه رکعتونو کښې هم مسبوق وای نو دا دليل به ئې په دې موقع باندې نه بيانولی بلکه وفى الاخريين بفاتحة الكتاب على الروايات كلها ترليکلو وروسته به ئې ليکلي وای. د دې اشکال ځواب د ناچيزه بنده له ليکنې څخه بالکل صاف او څرګند شوی دی. هغه دا دی چه په لومړي رکعت کښې چه تر هغه وروسته د لانه كان مسبوقاً فيها دليل ليکلی دی هغه سړی حقيقةً مسبوق دی. ځکه چه تردې وروسته ئې دا دليل ليکلی دی او چونکه په دوه آخرنيو رکعتونو کښې حقيقةً مسبوق نه دی د دې لپاره ئې تردې وروسته دا دليل نه دی ليکلی که چيرته ئې تر رکعتينو وروسته دا دليل ليکلی نو واهمه به پيدا شوې وای چه مقيم په درې واړو رکعتونو کښې حقيقةً مسبوق دی. والحال انه ليس كذلك كما حققناه من قبل. د بنده له تير تحقيق څخه څرګنده شوه چه مقيم خلف المسافر نه حقيقةً مسبوق دی او نه حقيقةً لاحق بلکه هغه په پاتې رکعتونو کښې منفرد خو په حکم دې مسبوق کښې دی. پس په کومو عبارتونو کښې چه ده ته لاحق يا مسبوق ويل شوي دي هغه مجاز اطلاق دی. چنانچه د دُر مختار د لاحق او مسبوق په بحث کښې ليکلي دي. واللاحق من فاتته الركعات كلها او بعضها بعذر كغفلة وزحمة او وبق حدث ومقيم ائتم بمسافر. او په شامي کښې دي و مقيم ائتم الخ اى فهو لاحق بالنظر الى الاخيرتين وقد يكون مسبوقاً ايضا كما اذا فاته اول صلاة امامه المسافر

**(طحطاوی)** په دغو دواړو عبارتونو کښې مقیم مقتدي با لمسافر باندې د لاحق د لفظ اطلاق شوی دی. پس دا اطلاق مجاز دی. له دې ځخه دا مراد دی چه هغه د قرائت د پریښودلو په حکم کښې په مرتبه د لاحق کښې دی. دا عبارت دی چه د دیوبند د عالي مدرسې مفتي مولانا عزیز الرحمٰن صاحب سلمه ویلي دي چه مقیم په مسافر امام پسې که په تحریمه کښې اقتداء وکړې یا وروسته د رکعت له تیریدو ځخه په هر حال کښې په ټولو احکامو کښې لاحق دی او دعویٰ ئې کړې ده چه قاعدهٔ کلیه ده او د شبهې په توګه ئې دا هم فرمایلي دي چه په صلوة الخوف کښې چه کوم حکم لیکل شوی دی هغه بنائي له صلوة الخوف سره د کلي قاعدې په خلاف مخصوص وي لیکن د کلي قاعدي او د اختصاص دعوې دلیل ته احتیاج لري. حالانکه د دې د ثابتوونکی دلیل نه لري. برسیره پر دې له تیرو عباراتو او تصریحاتو ځخه ځرګنده شوې ده چه دا قضیه جزئیه ده چه مراد ترې هغه مقیم دی چا چه په اول رکعت کښې اقتداء کړې وي او ځوک چه د یوه یا دوه رکعتونو مسبوق وي هغه هیڅکله په دې کښې داخل نه دی. همدارنګه د طحطاوي مطبوعه مصر له عبارت ځخه صاف واضح دی. **قوله ومقیم ائتم بمسافر فهو لاحق بالنظر للاخیرتین وقد یکون مسبوقاً کما اذا فاتهٔ فی اول صلوة امامه المسافر.** د مقیم مقتدي چه په مسافر پسې ئې اقتداء کړې وي دوه حالتونه ئې بیان کړل. لومړی دا چه چا په لومړي رکعت کښې اقتداء کړې وي هغه ته د دوه آخرنیو رکعتونو په اعتبار سره لاحق وویل. ویم حالت هغه حالت دی له چا ځخه چه د مسافر امام د لمونځ اوله برخه تیره شوې وي که په دویم رکعت کښې ئې اقتداء کړې وي یا د دویم رکعت په تشهّد کښې. داسې ځوک ئې یواځې مسبوق وګانه. له دې ځخه ځرګنده شوه چه **مقیم ائتم بمسافر** قاعدهٔ کلیه نه ده بلکه د دې ځای له مقیم ځخه هغه ځوک مراد دی چا چه په اول رکعت کښې اقتداء کړې وي. چنانچه دې خوا ته ما پخپلې لومړنۍ لیکنې کښې اشاره کړې وه. او شامي د طحطاوي دې عبارت لره نقل کړی دی لیکن داصل په خلاف په دې کښې د ایضاً لفظ زائد دی. په طحطاوي کښې دي چه **وقد یکون مسبوقاً** او په شامي کښې له طحطاوي ځخه نقل دی. **وقد یکون مسبوقاً ایضاً** او دا د ایضاً لفظ خلجان (ګډوډي) او موهم (وهم اچوونکی) او د مقصود خلاف وو. د دې ئې هم توجیه کړې ده چه مزاحم د منلو په شرط مقصود نه دی. لیکن حضرت مفتي صاحب د دې توجیه نه ده کړې د ځینو اذکیاؤ [۱] دا خیال هم اوریدل شوی دی هغوی فرمائي چه د خوف د لمانځه مشروعیت په خلاف د قیاس دی. لهذا په دې باندې نور لمونځونه نه شي قیاس کیدلی. نو کوم حکم چه د خوف په لمانځه کښې دی ضروري نه ده چه په نورو لمونځونو کښې دې هم وي. ګورئ تګ را تګ

---

۱ - یعني حضرت حکیم الامت قدس سرّہ کما سیاتي عن امداد الفتاویٰ ۱۲ رشید احمد.

او داسې نور کارونه د خوف په لمانځه کښې روا دي او په نورو لمونځونو کښې روا نه دي بلکه د لمانځه مفسد دي. د دې منع ځواب دا دی چه دا منع به هلته د منلو وړ کيدلی شي چه کله استدلال يواځې د خوف له لمانځه څخه وي او په حقيقت کښې استدلال له هغو روايتونو څخه دی په کومو کښې چه په مسافر امام پسې مقيم مقتدي د مسبوق په شان ګڼل شوی دی. او د صلوٰة الخوف روايتونه د تائيد او تقويت په توګه ليکل شوي دي. برسيره پر دې د خوف په لمانځه کښې چه کوم کارونه پرته د لمانځه له جنس څخه جائز ګرځيدلي دي هغه کارونه دي د کومو چه د خوف او ويرې په وخت کښې ضرورت ورته پيښيږي. دا هيڅکله نه دي چه د خوف ټول کارونه په خلاف د قياس د ضرورت له مخې روا شوي دي. او مبحوث فيه افعال له دغو افعالو څخه نه دي چه مشروعيت ئې د خوف د ضرورت له وجې په خلاف د قياس واقع شوي دي لهذا دا خيال هم په دې بحث کښې کار نه شي ورکولی. سره له دې با لفرض و التسليم هيڅ حکم معدول عن القياس پرته له نص څخه نه شي کيدلی نو خامخا د داسې نص موجودوالی ضروري دی کوم چه دخوف په لمانځه کښې د لاحق د حکم لپاره صارف عن القياس وي. که چيرته کوم ښاغلي ته معلومه وي نو د مهربانۍ له مخې دې ما ته هم اطلاع راکړي او ما دې د خپلې ښيګړې شکر ګذار جوړ کړي. حضرت مفتي صاحب د خپلې ليکنې په آخر کښې يوه فتوی چه د حضرت سيّدي و مولائي حضرت مولانا رشيد احمد صاحب خوا ته ئې منسوب کړي ده او يو د علم الفقه ځواب کوم چه غالباً د مولانا عبد الشکور لکهنوي صاحب تاليف دی، نقل کړی دی. چه کله يو حکم له د فقهې له صحيحو او صريحو روايتونو له مخې ثابت شي نو د هغه په اړه د څه ليکلو او عرض کولو ضرورت نه پاتې کيږي. **فقط والله تعالیٰ اعلم.** (املاه بلسانه الاحقر خليل احمد وفقه الله لتزودغد)

اقول ونقل عن العلامة المخدوم محمد هاشم التتوی (قدس سرهٗ) مثل قول مولانا خليل احمد (قدس سرهٗ) وزاد فيه جواب شبهةٍ و نصهٗ فان قلت قد ذكر ايضاً صاحب المحيط و السراج و الجوهرة ان الامام اذا جعل الناس فی صلوٰة اربع طوائف فصلی لكل طائفة ركعة فصلوٰة الاولی و الثالثة فاسدة لانهم انصرفوا عن القبلة فی غير اوان الانصراف وصلوٰة الثانية و الرابعة صحيحة ويقرأ كل طائفة فيما سبقت ولا يقرأ فيما لحقت فاذا عادت الطائفة الثانية صلوا الركعة الثالثة و الرابعة بغير قراءة لانهم فيهما لاحقون ثم الركعة الاولی بقراءة لانهم فيها مسبوقون فكان هٰذا مناقضا لما ذكرتموه اوّلا (ای الرواية التی اوردها مولانا خليل احمد رحمه الله من الهندية نقلها المخدوم رحمه الله من الجوهرة و المحيط و الظهيرية و الخزانة) قلنا لا مناقضة لان هٰذه المسألة الاخيرة مصورة فيما اذا كان الامام و المقتدون مقيمين كما صرح به فی تلك الكتب فكان ذٰلك مسألة المسبوق

صار لاحقاً بخلاف ماذکرنا اولاً فانه مصور فیما اذا کان الامام مسافراً والمقتدی المسبوق مقیما. فکان اختلاف الاجوبة لاختلاف موضوع المسألة فلیتأمل اھ.

ارسل الیّ تحریر المخدوم قدس الله تعالیٰ سرہ مولانا احمد الهالائی ناقلاً عن کراسة ابیه مولانا محمد الهالائی رحمهما الله تعالیٰ.

حضرت حکیم الامت قدس سرّہ په دې مسئلې باندې تر اوږده بحث وروسته فرمائي. تر دې وروسته دا واقعه وشوه چه د داسې صورت په اړه مقیم مقتدي د یوه رکعت تر کیدو وروسته په دویم رکعت کښې یا تر دویم رکعت هم وروسته په مسافر امام پسې اقتداء کړې وي. د سهارنپور په مدرسه کښې یوه فتویٰ لیکل شوې ده چه دا سړی لاحق نه دی بواځې مسبوق دی نو دا سړی به پخپل لمانځه کښې قرائت لرونکي رکعتونه مخکښې کوي (یعنې په کومو رکعتونو کښې چه قرائت فرض دی)، په آخرنیو کښې قرائت فرض نه دی بلکه مستحب دی. رشید احمـــد) او د دیوبند په مدرسه کښې دا فتویٰ لیکل شوې ده چه دا سړی لاحق هم او مسبوق هم دی د دې لپاره دې قرائت لرونکي رکعتونه مخکښې کړي. پس کوم ترتیب ته چه بنده جائز او غیر اولی ویلی دی هغه د سهارنپور په فتویٰ کښې واجب دی او کوم ته چه بنده صرف اولی ویلی دی هغه په دې فتویٰ کښې ناجائز دی او ددیوبند فتویٰ د مشهور موافق دی. کتونکي دې د دې زیاتی تحقیق د خپل اطمینان له ځایه وکړي او که چیرته تر تحقیق وروسته د هیڅ یوه قول ترجیح ثابت نه شي نو د اختلافي مسائلو غوندې په هیڅ یوې خوا باندې دې په قصد سره یا د عدم تحقیق له وجې اتفاقاً او عادتاً په عمل کوونکي باندې ملامتي نه وائي او د هغه په عمل باندې دې د صحت حکم ولګوي. او دا به زما د لومړي قول سره موافقه وي یعنې د دواړو د جواز د کوم شي په اړه چه د دې فصل مباحث دي. او تر تحقیق وروسته هم هغه شق د عمل او تعلیم لپاره ټاکل کیږي او د دواړو خواوو ځینې برخې خو استنباطات دي کوم چه د دویمې توجیه د احتمالاتو له وجې حجت نه دي او ځینې برخې ئې صریح دي. چنانچه د مظاهر العلوم دلیل د عالمګیري د خوف د لمانځه هغه روایت دی کوم چه د دې فصل تر ټولو په اولنې سوال کښې مذکور دی چه په هغه کښې دا عبارت دی. **و تجئ الطائفة الثانیة الیٰ مکان صلوتهم فیصلون ثلاث رکعات الاولیٰ بفاتحة الکتاب و سورة لانهم مسبوقون فیها و الاخرین بفاتحة الکتاب** چه له دې څخه څرګنده شوه چه تر لومړي رکعت وروسته شاملیدونکی مقیم په مسافر امام پسې مسبوق دی او د خوف د لمانځه د خصوصیت هیڅ وجه نشته. او د دار العلوم صریح دلیل د شامي دا روایت دی **وقد یکون (ای المقیم المؤتم بالمسافر) مسبوقاً ایضاً کما اذا فاته اول صلوة امامه المسافر ط ج۱، ص۱۲۱، احکام المسبوق والمدرك واللاحق.** لیکن

د مظاهر العلوم په دليل کښې د نهر له يوې جزئيې څخه (نقلها الشامی رشيداحمد) کوم چه د همدې فصل په تر ټولو آخري سوال کښې منقول دی چه په هغه کښې دا عبارت دی والمسبوق ان ادرك ركعة من الشفع الاول فهو من اهل الاولى و الا فمن الثانية. (ج۱،ص۸۸۶، صلوٰة الخوف) دا شبهه ولويدله چه کله څرنګه چه د نهر دا حکم چه «د اولې شفعې د دويم رکعت پيدا کوونکی ئې له اولې طائفې څخه وګڼل او د همدې لپاره له قرائت څخه منع شوي دي. چنانچه اوله طائفه په پاتې لمانځه کښې قرائت نه کوي لانه لاحق حقيقة كمدرك الركعة الاولى او حكماً كمدرك الركعة الثانية من الشفعة الاولى) د دې سرې حقيقةً عدمِ مسبوقيت او د نورو مسبوقينو خوا ته د منعِ قرائت دا تعديه «پرېښودل او لازم فعل لره متعدي جوړول» د هيچا په نزد مستلزم نه دی ګرځيدلی. همدارنګه د عالمګيري دا حکم چه د دويم رکعت ميندونکی دې په پاتې لمانځه کښې قرائت کوي. د دې سړي حقيقةً عدمِ لاحقيت او د نورو لاحقينو خوا ته د قرائت دا تعديه هم بايد مستلزم و نه ګڼل شي. بلکه د نهر په جزئيه کښې دې سړي ته حکماً لاحق وايو او د عالمګيري په جزئيه کښې دې سړي ته حکماً مسبوق وايو او چه کله د نهر حکم د خوف له لمانځه سره خاص کيږي لعدم التعدية همدارنګه د عالمګيري حکم ته هم د خوف له لمانځه سره مخصوص وايو او دواړه حکمونه به په کوم استحسان باندې مبني وي کوم چه مونږ ته نه دی ښکاره شوی او دا دواړه جزئيې په مقيم خلف المسافر او د خوف په لمانځه پورې په متعلق کيدو کښې شريک هم دي پس د دواړو شقونو به يو حالت وي. پس هغه مقدمه مخدوشه شوه چه د خوف د لمانځه د خصوصيت هيڅ وجه نشته. ۱۲ «د امداد الفتاوی حاشيه مبوب ج۱، ص۳۵۰»

**اقول**: د نهر د جزئيې دا مطلب نه دی چه په دويم رکعت کښې شريکيدونکی دې په پاتې دريو رکعتونو کښې قرائت نه کوي او په دې حکم کښې هغه د خوف د لمانځه د اولې طائفې غوندې دی بلکه مقصود دا دی چه په تګ او راتګ او په آخرنيو کښې د قرائت په نه کولو کښې د اولې طائفې غوندې دی نه چه په مسبوقه رکعت کښې هم. وهذا ظاهر جداً. د فتح القدير دوه جزئيې هم د دې تائيد کوي.

ولو جعلهم ثلاث طوائف (ای فی صلوٰة المغرب) و صلی بكل طائفة ركعة فصلاة الاولى فاسدة و صلاة الثانية و الثالثة صحيحة و المعنى ما قدمنا و تقضى الثانية الثالثة اولاً بلا قراءة لانهم لاحقون فيها و تشهد و ثم الركعة الاولى بقراءة لانهم مسبوقون (وبعد سطرين) لو جعلهم اربعاً فی الرباعية و صلی بكل ركعة فسدت صلوٰة الاولى و الثالثة دو الثانية و الرابعة ثم تقضى الطائفة الثانية الثالثة و الرابعة اولاً بغير قراءة ثم الاولى بقراءة و الطائفة الرابعة تقضى ركعتين بقراءة و يتخير فی الثالثة لانهم مسبوقون بثلاث ركعات. (فتح القدير

ج۱،ص۲۳۳) وکذا فی الهندیة ایضاً. د مخدوم محمد هاشم تهتوي قدس سرّه په فتوىٰ کښې هم دا جزئیه له محیط. سراج او جوهره څخه تیره شوې ده.

همدارنګه د نهر دا جزئیه د مقیم خلف المسافر په اړه نه ده. لومړی د دې لپاره چه په مسافر پسې د دویم رکعت د میندونکی شمار به له دویمې طائفې څخه وي. ده لره له اولې طائفې څخه شمارول هیڅ معنىٰ نه لري او دا (والا - ای ان لم یدرك الرکعة الثانیة - فمن الثانیة) په خلاف دی. او دویم د دې لپاره چه کله چیرته د نهر جزئیه له خلف المسافر سره متعلق وبلله شي نو دا به بعینه د عالمګیري د جزئیې مفهوم په ځای کري، په دواړو کښې به هیڅکله کوم فرق پاتې نه شي. حالانکه د دواړو په حکم کښې کلّي تباین دی چه د نهر په جزئیه کښې په دریو رکعتونو کښې د ترکِ قرائت حکم متصورّ دی او د عالمګیري په جزئیه کښې د دریو رکعاتونو د قرائت نه کولو حکم دی. غرض دا چه د نهر جزئیه نه د خوف له لمانځه سره مخصوص دی او نه هم د خلف المسافر کیدو کښې د عالمګیري له جزئیې سره مشترکه ده. پس د مظاهر العلوم په دلیل کښې چه د نهر له جزئیې څخه کومه شبهه پیدا شوې وه هغه پورته شوه. برسیره پر دې د سهارنپور په تحقیق کښې د خوف د لمانځه له جزئیې پرته نور هم ډیر دلائل دي چه د هغو ځوابونه نه دي ورکړ شوي بلکه د حضرت مولانا خلیل احمد صاحب قدس سرّه د تصریح مطابق اصل دلائل نور دي. د صلوة الخوف جزئیه محض د تائید له مخې لیکل شوې ده. د دې په مقابله کښې د دار العلوم د دلیل ځواب د مظاهر العلوم په لیکنه کښې موجود دی. او د مخدوم محمد هاشم تهتوي قدس سرّه ځواب د مظاهر العلوم له ځواب سره موافق والی پورته تیر شوی دی. پس چه کله د دلائلو له تحقیق څخه د مظاهر العلوم ځواب راجح ثابت شو نو د عمل او تعلیم لپاره به همدا ځواب متعیّن کیږي. فقط.

ولله الحمد علی توفیقه لهذا التحریر وهو علی ما یشاء قدیر فاغتنمه وتفکر ولعل الحق لایعدوه فتشکر. و هذا ما جاء فی فهم هذا الفقیر والعلم عند الله اللطیف الخبیر.

رشید احمد ۱۰ ربیع الآخر ۷۹ سنه هجری

# باب مفسدات الصلوٰة و المکروهات

## په سجده کښې له زمکې څخه د دواړو پښو د پورته کولو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې د سجدې په حالت کښې که چیرته د چا دواړه پښې له زمکې څخه جلا شي نو لمانځه د فساد په حکم سره د دې لمانځه بیرته را ګرځول واجب دي او که نه؟ همدارنګه که چیرته د لمانځه په فسد حکم وشي نو په کوم بناء باندې، سره له دلیله د مفصل ځواب غوښتونکی یم؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سجدې په حالت کښې د پښو په زمکې باندې د کیښودلو په باره کښې درې قولونه دي: فرض، واجب، سنت. د وجوب قول راجح دی. په دواړو پښو کښې د یوې پښې چه هره یوه برخه وي د یوې تسبیح په اندازه لګول ئې په زمکې باندې کافي دي. پس که چیرته یو څوک د یوې تسبیح په اندازه له دواړو پښو څخه د یوې پښې چه هره یوه برخه وي په زمکې باندې کښېښودې نو واجب ئې ادا کیږي. که چیرته ئې په همدومره اندازه هم و نه لګوي نو د واجبو د ترک له وجې به ئې لمونځ واجب الاعاده وي. څرګنده دې وي چه د پښې د شا طرف یا یواځې یوه پښه پرته له عذر څخه په زمکې باندې په کیښودلو سره واجب خو ادا کیږي لیکن مکروه دی. د دې لپاره چه د دواړو پښو په زمکې باندې لګول او د ګوتو مخونه د قبلې خوا ته اړول سنت مؤکد دي.

قال ابن عابدین رحمه الله علیه والحاصل ان المشهور فی کتب المذهب اعتماد الفرضیة والارجح من حیث الدلیل و القواعد عدم الفرضیة و کذا قال فی العنایة والدرر انه الحق ثم الاوجه حمل عدم الفرضیّة علی الوجوب والله اعلم (وبعد اسطر) قال فی الفیض ولو وضع ظهر القدم دون الاصابع بأن کان المکان ضیقاً اووضع احداهما دون الاخرٰی لضیقه جاز کما لو قام علی قدم واحد و ان لم یکن المکان ضیقا یکره آه. (الی قوله) المصرّح به ان توجیهها (الاصابع) نحو القبلة سنة یکره ترکها کما فی البرجندی والقهستانی. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۷)

فقط والله تعالی اعلم ۲ ربیع الاول ۱۳۸۶ هجری

## په لمانځه کښې د ستر د ښکاریدلو حکم

**سوال:** آیا د داسې صدرۍ، په اغوستلو سره لمونځ کیږي او که نه چه رکوع او سجدې ته د تلو په وخت کښې تر نامه لاندې ځای ښکاره شي کوم چه پټول ئې فرض دي. او که ئې څوک ورسره وکړي نو آیا بیرته را ګرځول ئې پرې واجب دي او که نه؟ چه د ستر څومره اندازه ښکاره شي نو

لمونځ نه ورسره کیږي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته له داسې صدري سره د علم درلودلو باوجود لمونځ ادا کړي، یا د غلفت له وجې د ستر د پټولو اهتمام و نه کړي او د اندام څلورمه برخه ښکاره شي نو لمونځ نه کیږي اګر که د ډیر لږ لپاره هم ښکاره شي. او که چیرته بې له اختیاره ستر ښکاره شي نو په دې کښې دا تفصیل دی چه که چیرته تر دري خله سبحان ربی الاعلی ویلو په اندازه اندام ښکاره پاتې شي نو لمونځ نه کیږي او که تر څلورمې حصې کمه اندازه وي یا تر دري خله سبحان ربی الاعلی ویلو څخه د کم وخت لپاره ښکاره شي نو لمونځ نې کیږي. کوم اندام چه ښکاره شي د هغه څلورمه برخه معتبره ده. او که یو اندام څو ځایه ښکاره وي او د ټولو ځایونو په یو ځای کولو سره د اندام څلورمه برخه تري جوړیدله نو لمونځ فاسدیږي او که چیرته د ګڼ شمیر اندامونو څه څه ځایونه ښکاره وي نو ټولو په یو ځای کولو سره د تر ټولو کوچني اندام څلورمه برخه جوړیدله نو د لمانځه لپاره مفسد دی. د نامه له محاذاتو څخه واخله تر عانه پورې څلور واړه خواوې یو اندام ګڼل کیږي. عانه له نامه څخه لاندې له ګرد یا ګول لیکې څخه شروع کیږي.

فی شرح التنویر و تجمع بالاجزاء لو فی عضو واحد و الا فبالقدر فان بلغ ربع ادناها کاذن منع. و فی الشامیة فی بیان اعضاء عورة الرجل الثامن ما بین السرة الی العانة مع ما یحاذی ذٰلك من الجنبین و الظهر و البطن. (رد المحتار ج۱، ص۳۸۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ محرم ۱۳۸۷ هجری

## د پورتنی مسئلې نور تحقیق

**سوال:** په خدمت د مخدومي حضرت مفتي رشید احمد صاحب مد ظلهم

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته! هیله ده چه صحت مو ښه وي او د عافیت په جامو کښې پټ یاست یوه تحقیق غوښتونکې پوښتنه مو خدمت ته در وړاندې کوم. د محقّق ځواب په لیکو سره په ما احسان وکړئ. د ظاهري او باطني مرضونو څخه د شفاء لپاره د دُعا ګانو په کولو سره نوره زیاته ښیګړه را سره وکړئ. فقط و السلام

عبد الستار مقیم دار الافتاء خیر المدارس ملتان ۱ ۱ ۵ ۹ هجري

په اصلي بهشتي زیور کښې دي چه

**مسئله** که چیرته د لمانځه د ادا کولو په وخت کښې د پنډۍ یا ورانه څلورمه برخه ښکاره شي او تر دومره خنډه ښکاره پاتې شي په څومره څنډ کښې چه دري خله سبحان الله ویل کیدلی شي نو لمونځ له منځه ځي (حصه دوم ص۱۳)

په دي مسئلې کښې د تحقیق وړ خبره دا ده چه د ډیري زمانې دا اندازه (دري خله سبحان الله

لو ستل، صحیح ده او که نه؟ له منحة الخالق څخه په ظاهره څرګندیږي چه دا دري څله تسبیحات د رکوع یا د سجدې تسبیحات دي. هغه عبارت دا دی:

**(و قدر الکثیر ما یؤدی فیه رکن) ای بسنته کما قیده فی المنیة قال شارحها ابن امیر حاج ای بما له من السنة ای بما هو مشروع فیه من الکمال الشئ کالتسبیحات فی الرکوع و السجود مثلاً وهو تقیید غریب و وجهه قریب ولم اقف علی التقیید بکونه قصیراً او طویلاً اه.ای تقیید الرکن ای هل المراد منه قدر رکن طولی بسنته کالقعود الاخیر او القیام المشتمل علی قراءة المسنون او قدر رکن قصیر کالرکوع او السجود بسنته ای قدر ثلاث تسبیحات و بالثانی جزم البرهان الحلبی فی شرح النیة حیث قال و ذلک مقدار ثلاث تسبیحات اه فافادان المراد اقصر رکن و کأنه لانه الاحوط والله اعلم. (منحة الخالق حاشیة البحر الرائق ج۱،ص۲۸۶)**

الغرض منیه، کبیري، منحة الخالق او داسې نورو له عباراتو څخه د بنده په نیمګړې پوهه کښې چه کوم تحقیق راڅي ائمهٔ ثلاثه په دې باندې متفق دي چه د عورت بربنډیدل، په نجاست باندې دریدل، له امام څخه مخکښې کیدل او داسې نور کارونه د لږ وخت لپاره پیدا کیدل د حرج او تکلیف د دفع کیدو په غرض سره معاف دي. هو! که چیرته دا کارونه د زیاتې مودې لپاره باقي پاتې شي نو لمونځ فاسدیږي.

## د ډیرې مودې (زمنِ کثیر) تحقیق

زمنِ کثیر (ډیره موده) د امام محمد رحمه الله په نزد دا ده چه: په همدې حالت دې انکشاف (بربنډوالي) او داسې نورو کښې بالفعل یو رکن ادا کړی شي. او د شیخینو رحمهما الله په نزد بالفعل د رکن ادا کول ضروري نه دي بلکه بالفعل د رکن د ادا کیدو یا دومره وخت چه په هغه کښې رکن ادا کیدلی شي، زمن کثیر دی. اوس چونکه د لمانځه رکنونه څینې اوږده دي لکه آخري قعده او څینې لنډ دي لکه رکوع او سجده. نو د شیخینو د مذهب د تحقیق لپاره د دې تشریح ضروري ده چه اوږده رکن د ادا کیدو بالقوة زمانه معتبره ده او که د لنډ رکن د ادا کیدو. نو فقهاوو حضراتو د احتیاط له مخې دویم احتمال را اخیستی دی. **فافادان المراد اقصر رکن و کأنه لانه الاحوط (منحة) کمامرّ.** لیکن د دې تشریح تر څنګ د شیخینو په مذهب کښې اوس هم ابهام باقي دی څکه چه د لنډ رکن لکه د رکوع د ادا کیدلو درې صورتونه دي:

۱ - د فرضیت او رکنیت د درجې ادا کیدنه

۲ - په تعدیل او واجب اطمینان سره ادا کول

۳ - له مسنون ذکر سره د رکوع ادا کول

له دغو احتمالاتو څخه حضراتو فقهاوو دریم احتمال متعین کړی دی. لکه څرنګه چه په منیه او

داسې نورو کښې تصریح پرې شوې ده. په در مختار او شامي کښې دي چه **قدر اداء رکن ای بسنته آه** په البحر الرائق مع منحة الخالق کښې دي چه **وقدر الکثیر ما یؤدی فیه رکن ای بسنته کما قیده فی المنیة آه**. په دې تفصیل او تشریح سره د شیخینو له مذهب څخه دا محققه او منقحه شوه چه زمن کثیر (ډیره موده) دومره وخت دی چه په هغه کښې رکوع یا سجده د هغو له مسنون ذکر سره ادا کیدلی شي. او دا د درې څله رکوع یا سجدې د تسبیحاتو د ویلو زمانه ده. ځکه چه د رکوع او سجدې ذکر د رکوع او سجدې مشروع او مسنونو تسبیحاتو ذکر دی، نه د سبحان الله ذکر. پس د رکوع له مسنون او مشروع ذکر سره د ادا کولو زمانه درې څله د سُبحان ربی العظیم د ویلو زمانه کیدلی شي. پس همدغه زمن کثیر دی. د لمانځه په باره کښې پخپله د لمونځ کوونکي لپاره د تسبیح چه کوم عمومي لفظ ذکر شوی دی له هغه څخه مراد همدغه د رکوع او سجدې تسبیحات دي. ځکه چه په لمانځه کښې همدغه تسبیحات مشروع او روا دي. د لمانځه په سنتونو کښې فرمائي چه **و التسبیح فیه ثلاثاً** د سجدې په اړه فرمائي چه **و التسبیح فیه ثلاثاً آه (در مختار)** مراد ترې همدغه مخصوصه تسبیح ده. د ارکانو د تعدیل او اطمینان په متعلق لیکي: **ای تسکین الجوارح قدر تسبیحة فی الرکوع و السجود آه (در مختار) وقال فی العنایة ومقدر الطمانینة بمقدار تسبیحة آه وفی شرح الوقایة وقدر بمقدار تسبیحة آه**.

په دغو عبارتونو کښې له تسبیحه څخه مراد د رکوع یا سجدې تسبیحه ده نه سبحان الله **کما قال فی عمدة الرعایة ای قدر الاطمینان الواجب بمقدار تسبیحة واحدة من تسبیحات الرکوع و السجود آه (شرح وقایة سعیدی ص۱۶۳)** پس همدارنګه په دې مقام باندې له ثلاث تسبیحاتو څخه مراد د رکوع او سجدې تسبیحات دي. لهذا له دې عموم څخه په مراداخیستلو سره په اولی (یعني سبحان الله) اکتفاء کول د کتنې محل دی. همدارنګه سُبحانه یا سبحانک له سبحان الله څخه هم مختصر دی بیا دا ولې مراد نه ترې وا نه خیستل شي؟

که چیرته کوم فقیه پرته له سنتو څخه رکن لره په سبحان الله سره مقدر کړی دی نو له دې څخه له سنتو سره رکن لره هم په سبحان الله سره مقدر کول نه لازمیږي. ځکه چه د لنډ رکن په منځ کښې هیڅ ذکر د فرض او واجبو په درجه کښې فرض او واجب نه دي. د دې لپاره له خارج څخه په سبحان الله سره به د تعین حاجت وي لیکن قدر اداء رکن بسنته چه تشریح ئې **ای بما له من السنة** دی. او د کوم چه توضیح ئې **ای بما هو مشروع فیه من الکمال الشامی** دی او د کوم چه تمثیل ئې **کالتسبیحات فی الرکوع و السجود** دی. د دې د اندازه کولو په سبحان الله سره څه حاجت او ضرورت دی؟ همدارنګه دا به هم

کتل کیږي چه له دغو دواړو څخه افقه او اقدم کوم یو دی؟ فقط
**الجواب باسم ملهم الصواب** وعلیکم السلام و رحمة الله و برکاته، الحمد لله په خیر او عافیت کښې یم په رالیږل شوې مسئله کښې ستاسو تحقیق صحیح دی. ستاسو لپاره له زړه څخه دُعا کوم او د ځان لپاره هم د دُعا غوښتونکی یم فقط و السلام علیکم
رشید احمد ۱۳ محرم ۹۸ هجری

## په لمانځه کښې د ښځې د ښنګرو د ښکاره پاتې کیدلو حکم

**سوال** د لمانځه په حالت کښې که چیرته د ښځې ښنګری ښکاره پاتې شي نو آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا
**الجواب باسم ملهم الصواب** قاعده دا ده چه که چیرته سهواً د اندام څلورمه برخ د درې خله سبحان ربّی الاعلی ویلو په اندازه بربنډ پاتې شي نو لمونځ فاسدیږي او که قصداً څوک د اندام څلورمه برخه د یوې ثانیې په اندازه بربنډ پریږدي نو لمونځ ئې فاسدیږي د اندام له څلورمې برخې څخه کم د ستر بربنډیدل که قصداً وي یا سهواً. د درې خله تسبیحاتو د ویلو له اندازې څخه کمه موده یو یا زیاته په هر حال لمونځ نه پرې فاسدیږي. ښنګري له پنډۍ سره چه یو ځای شي نو یو اندام دی او د څلورمې برخې څخه کمه اندازه ده له دې وجې لمونځ کیږي

قال فی العلائیة ویمنع کشف ربع عضو قدر اداء رکن بلا صنعه وقال ابن عابدین رحمه الله علیه فلو به فسدت فی الحال عندهم قنیة قال ح ای وان کان اقل من اداء رکن اه وفی الخانیة اذا طرح المقتدی فی الزحمة امام الامام اوفی صف النساء اومکان نجس اوحولوه عن القبلة اوطرحوا ازاره اوسقط عنه ثوبه اوانکشفت عورته ففیها اذا تعمد ذلک فسدت صلوته وان قل والا فان ادی رکناً فکذلک والا فان مکث بعذر لا تفسد فی قولهم والا ففی ظاهر الروایة عن محمد تفسد اه (ردالمحتار ج۱، ص۳۷۹) وقال بعد ذکر الاعضاء الثمانیة من عورة الرجل وفی الحرة فهذه الثمانیة ویزاد فیها ستة عشر الساقان مع الکعبین الخ (ردالمحتار ج۱، ص۳۸۰)

فقط والله تعالی اعلم ۲ رجب ۱۳۸۶ هجری

## په نرې ټیکرې کښې لمونځ نه کیږي

**سوال** که چیرته ښځه نرۍ ټیکری یا کمیس واغوندي او لمونځ ورسره وکړي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا
**الجواب باسم ملهم الصواب** په داسې نرې ټیکرې کښې لمونځ نه کیږي چه له هغه څخه د ویښتانو تور والی ښکاریږي. همدارنګه داسې کمیس چه د ښځې د بدن رنګ ترې ښکاریږي

لمونځ ئې نه ورسره کیږي.

قال فی شرح التنویر وللحرة جمیع بدنها حتّٰی شعرها النازل فی الاصح خلا الوجه والیکفین فظهر الکف عورة علی المذهب والقدمین علی المعتمد. (رد المحتار ج۱، ص۴۰۶) وقال فی الشامیة (قوله لا یصف ما تحته) بأن لا یری منه لون البشرة احترازا عن الرقیق ونحو الزجاج. (ردالمحتار ج۱،ص۳۸۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ ربیع الاوّل ۱۳۸۷ھجری

## په تنګ او چُست لباس یا جامو کښې لمونځ مکروه دی

**سوال** : نن صبا مغرب وهلې ښځې داسې تنګې او چُستې جامې اغوندي چه د مخفي (پټ) اندامونو صورت او شکل ئې په جوته ښکاریږي. آیا ښځې ته د خپلو اندامونو دا ډول ښکارول جائز دي؟ او آیا د نورو خلکو ورته کتل جائز دي؟ او آیا په داسې جامو کښې د دوی لمونځونه کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داسې چُسته او تنګه جامه اغوستل چه د مخفي یا پټو اندامونو شکل ترې ښکاریږي حرام دي. په دې توګه د مخفي اندامونو ښکارول هم حرام او ورته کتل هم حرام دي اګر که بې له شهوته وي. داسې جامې که چیرته دومره ډبلې وې چه د بدن رنګ ترې نه ښکاریده نو اګر که د لمانځه فرض ئې ادا کیږي لیکن په حرامو جامو کښې لمونځ مکروه او بیرته را ګرځول به ئې واجب وي. د ښځو د جامو په نسبت د نارینه وو چُست او تنګ پتلون زیات خطرناک دی ځکه چه ښځې اکثره خپلې تنګې او چُستې جامې په ټیکري باندې پټوي او لمونځ کوي. نو په دې کښې کراهت نشته.

قال ابن عابدین رحمة الله علیه ولا یضر التصاقه ای بالألیة مثلاً وقوله وتشکله من عطف المسبب علی السبب و عبارة شرح المنیة اما لو کان غلیظاً لا یری منه لون البشرة الا انه التصق بالعضو وتشکل بشکله فصار شکل العضو مرئیاً فینبغی ان لا یمنع جواز الصلوة لحصول الستر اه. قال ط وانظر هل یحرم النظر الیٰ ذٰلك المتشکل مطلقاً او حیث وجدت الشهوة اه. قلت سنتکلّم علیٰ ذٰلك فی کتاب الحظر والذی یظهر من کلامهم هناك هو الاول. (ردالمحتار ج۱،ص۳۸۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲٤ صفر ۱۳۸۱ھجری

## د نارینه لپاره په لمانځه کښې د ښنګرو پټولو حکم

**سوال** : په لمانځه کښې که چیرته ښنګري پټ وي نو په دې سره په لمانځه باندې څه اثر لویږي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نارینه لپاره په لمانځه او بغیر له لمانځه ځخه په دوارو حالتونو کښې د ښنگرو پټولو ناجائز او گناه ده. په حدیث کښې په دې باندې د جهنم وعید راغلی دی په لمانځه کښې د ننه د گناه ارتکاب نوره هم بده ده. په لمانځه کښې د ښنگرې په پټولو سره اگر که لمونځ کیږي لیکن د متکبرینو د شعار والي له وجې مکروه دی. او لمونځ واجب الاعاده دی. **قال الطحطاوی رحمه الله فی المکروهات وکذا ماهو من عادة اهل التکبر.(طحطاوی علی المراقی ص۱۸۹)**

نبي کریم ﷺ د ښنگرو پټول، د ږیرې خریل او ساز او سروز د هغو بدو عملونو په فهرست کښې شمار کړي دی د کومو په وجه چه د لوط علیه السلام په قوم باندې عذاب راغی. (در منثور) **فقط والله تعالیٰ اعلم.** ۲۵ جمادی الاولیٰ ۹۶ھ هجری.

## په ناپاکه ځای باندې څادر غوړول او په هغه باندې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک په ناپاک ځای باندې څادر یا بل شی وغوړوي او لمونځ پرې وکړي نو آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ ئې کیږي خو په دې شرط چه څادر دومره ډبل وي لاندینی نجاست ترې ښکاره نه شي.

**قال ابن عابدین رحمه الله ولو کان رقیقا وبسطه علی موضع نجس ان صلح ساترا للعورة تجوز الصلوٰة کما فی البحر عن الخلاصة.(ردالمحتار ج۱ص۳۷۳)** **فقط والله تعالیٰ اعلم** ۲۷ شوال ۱۳۹۱ هجری

## په ناپاک ځای باندې د شیشې په غوړولو سره په هغې باندې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال**: په کوم ناپاک ځای باندې د شیشې غوړول او په هغې باندې د پاسه لمونځ کول صحیح دي او که نه؟ په داسې حال کښې چه تر شیشې لاندې ناپاکي ښکاریږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ کیږي. **قال العلامة ابن عابدین رحمه الله وفی القنیة لو صلی علی زجاج یصف ما تحته قالوا جمیعا یجوز. اه(ردالمحتار ج۱ص۳۷۳)**

**فقط والله تعالیٰ اعلم** ۱۷ ربیع الآخر ۱۳۹۷ هجری

## د وترو په دویم رکعت کښې سلام گرځول او د نفلو د نیت تړلو حکم

**سوال**: په هیره سره چا دوه رکعته وتر وکړل او سلام ئې واړاوه او د نفلو نیت ئې وتاړه. بیا ور

په زړه شو چه ما خو په دوه رکعته باندې سلام اړولی دی. فوراً ئې نیت مات کړ او ودریده او د یوه بل رکعت په ادا کولو سره ئې سجده سهو وکړه او لمونځ ئې پوره کړه. نو آیا ئې وتر ئې وشو او که نه؟ او که به ئې بیرته له سره ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د وترو له سره ادا کول واجب دي. البته که چیرته ئې د نفلو نیت نه وای تړلی او نور ئې هم کوم کار یا خبره د لمانځه فاسدوونکی نه وای کړی نو د سجدهٔ سهو په کولو سره به ئې لمونځ صحیح وای.

قال فی الهندیة ومن صلّٰی من المغرب رکعتین وقعد قدر التشهد وزعم انه اتمها فسلّم ثم قام فکبّر ونوی الدخول فی سنة المغرب وقد سجد للسنة او لا فصلوٰة المغرب فاسدة لانه صار منتقلاً من الفرض الی النفل قبل فراغه. اما اذا سلم وتذکر انه لم یتم فحسب ان صلوٰته فسدت فقام او کبر للمغرب ثانیاً وصلّٰی ثلاثاً ان صلّٰی رکعة وقعد قدر التشهد اجزأه المغرب والا فلا. (عالمگیریة ج۱، ص۱۰۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ ذیقعده ۱۳۸٦ هجری

## د فرضو په دریم رکعت د سلام اړولو حکم

**سوال** : زید په هیره سره د فرضو په دریم رکعت باندې سلام واړاوه او په دُعا کښې مشغول شو. اللّٰهم انت السلام - الخ ئې ویل ئې پای ته رسولی وو چه ور په زړه شو چه په دریم رکعت کښې مې سلام اړولی دی. فوراً ودریده او یو بل رکعت ئې ادا کړ بیا ئې سجدهٔ سهو وکړه او خپل لمونځ ئې پوره کړ. آیا لمونځ ئې وشو او که نه؟ په داسې حال کښې چه نه ئې له قبلې څخه سینه ګرځولې ده او نه ئې له چا سره خبرې کړې دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو! لمونځ ئې شوی دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ ذیقعده ٤٦ هجری

## یوې خوا ته تر سلام ګرځولو وروسته د لمونځ کوونکي تر مخ تیریدل جائز دي

**سوال** : زید یوې خوا ته سلام اړولی وو چه بکر ئې تر مخ تیر شو نو آیا بکر ګنهګاریږي او که نه؟ یو دیني عالم وائي چه دواړو خواوو ته سلام ګرځول واجب دي لهذا بکر ګنهګاریږي. نو آیا د نوموړي دا وینا صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې صورت کښې بکر نه ګنهګاریږي ځکه چه لمونځ په لومړي سلام سره پای ته رسیږي. بلکه د السلام د لفظ په ویلو سره یعنې د علیکم تر ویلو مخکښې څخه هم مخکښې لمونځ پای ته رسیږي. دواړه سلامونه واجب دي لیکن دویم سلام د لمانځه نه د باندې

واجب دی د دې لپاره که چیرته څوک د لومړي سلام تر السلام ویلو وروسته او تر علیکم مخکښې اقتداء وکړي نو اقتداء ئې صحیح نه ده.

کما فی الدر المختار ولفظ السلام مرتین فالثانی واجب علی الاصح. برهان، دون علیکم وتنقضی قدوة بالاول قبل علیکم علی المشهور عندنا وعلیه الشافعیة وفی الشامیة قوله (وتنقضی قدوة بالاول) ای بالسلام الاول قال فی التجنیس الامام اذا فرغ من صلوته فلما قال السلام جاء رجل واقتدی به قبل ان یقول علیکم لا یصیر داخلاً فی صلوته لان هذا سلام الا تری انه لو اراد ان یسلم علی احد فی صلوته ساهیاً فقال السلام ثم علم فسکت تفسد صلوته اه. رحمتی، (رد المحتار ج ۱، ص ۳۳۶) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ محرم ۱۳۸۷ هجری

## په لمانځه کښې د اسویلي راتللو حکم

**سوال**: د لمانځه په دوران کښې که چیرته چا ته اسویلی ورشي کوم چه آواز ترې پیدا شي نو آیا لمونځ ئې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ کیږي لیکن تر خپله وسه پورې آواز باید بند کړي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ شعبان ۱۳۹٤ هجری

## لستوني چه پورته وي لمونځ ورسره مکروه تحریمي دی

**سوال**: زید د اوداسه لپاره لستوني پورته کړي وو. اوس د رکعت د تیریدو له ویرې ئې په بیړه پرته د لستونو د کښته کولو په جماعت ځان شامل کړ، نو آیا لمونځ ئې مکروه کیږي او که نه؟ که چیرته مکروه وي نو مکروه تنزیهي دی او که تحریمي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بې له کومې وجې له پورته شویو لستونو سره لمونځ ادا کول مکروه تحریمي دي. او که چیرته د لمانځه نه مخکښې چا د کوم کار یا اوداسه لپاره لستوني پورته کړي وو او په همدې ډول ئې لمونځ شروع کړ یا ئې هیئت هم همداسې وو نو بیا ئې په کراهت کښې اختلاف دی. په هر صورت بهتره دا ده چه په لمانځه کښې په کم عمل سره لستوني کښته کړي

قال فی شرح التنویر وکره کفه ای رفعه ولو لتراب کمشمر کم او ذیل، وقال ابن عابدین رحمة الله علیه ای کما لو دخل فی الصلوة وهو مشمر کمه او ذیله واشار بذلك الی ان الکراهة لا تختص بالکف وهو فی الصلوة کما افاده فی شرح المنیة لکن قال فی القنیة واختلف فیمن صلّی وقد شمر کمیه لعمل کان یعمله قبل الصلوة او هیئته ذیلك اه. ومثله ف ما لو شمر للوضوء ثم عجل لادراك الرکعة مع الامام واذا دخل فی الصلوة کذلك وقلنا با لکراهة فهل الافضل ارخاء کمیه فیها بعمل قلیل او ترکهما لم اره والاظهر الاول بدلیل قوله الأتی ولو سقطت

قلنسوته فاعادتها افضل تأمل هذا و قید الکراهة فی الخلاصة و المنیة بان یکون رافعا کمیه الی المرفقین و ظاهره انه لا یکره الی ما دونهما قال فی البحر و الظاهر الاطلاق لصدق کف الثوب علی الکل آه. و کذا قال فی شرح المنیة الکبیر ان التقیید بالمرفقین اتفاقی قال و هذا لو شمرهما خارج الصلوة ثم شرع فیها کذلك اما لو شمر و هو فیها تفسد لانه عمل کثیر. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۹) و قال ایضاً تحت (قوله ای رفعه) و حرر الخیر الرملی ما یفید ان الکراهة فیه تحریمیة. (ج۱، ص۵۹۸) فقط والله تعالی اعلم ۱۹ محرم ۱۳۸۷ هجری

## سجدې ته د تلو په وخت د جامو را ټولول مکروه تحریمي دي

**سوال**: ځینې خلک د عادت له مخې سجدې ته د تلو په وخت کښې پرتوګ پورته کوي یا ئې را ټولوي آیا دا مکروه تنزیهي دی او که تحریمي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مکروه تحریمي دي.

قال فی العلائیة و کره کفه ای رفعه و لو لتراب کمشمر کم او ذیل و قال ابن عابدین رحمة الله علیه ای سواء کان من بین یدیه او من خلفه عند الانحطاط للسجود بحر و حرّر الخیر الرّملی ما یفید ان الکراهة فیه تحریمیة. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۸) فقط والله تعالی اعلم ۷ جمادی الأخر ۱۳۸۷ هجری

## د نیم لستوني لرونکي کمیس کښې لمونځ مکروه نه دی

**سوال**: د نیم لستوني لرونکي کمیس په اغوستو سره لمونځ ادا کول څنګه دي؟ د داسې خلکو د صف له منځ ځخه باید و ایستل شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نیم لستوني لرونکي کمیس په اغوستو سره لمونځ کولو کښې هیڅ کراهت نشته. البته که چیرته دا کمیس له ثیاب بذله (د کار او مزدوی جامه) ځخه وشمیرل شي او په عام مجلس کښې ئې اغوستل معیوب ګڼل کیده نو بیا مکروه دی. په هر صورت د داسې خلکو له صف ځخه ایستل جائز نه دي. فقط والله تعالی اعلم ۲۹ جمادی الأخر ۱۳۹۱ هجری

## رومال او عقال په سدل (زوړندیدلو) کښې داخل نه دي

**سوال**: په سر باندې رومال اچول او په عقال باندې ئې تړل لکه څرنګه چه د عربو طریقه ده آیا دا په سدل کښې شمارېږي او که نه؟ او همدارنګه په دې سره لمونځ مکروه کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سدل په باره کښې چه علامه شامي رحمة الله علیه کوم تفصیل لیکلی دی د هغه حاصل دا دی چه د کراهت ئې درې وجې دي:

۱ - له اهلِ کتاب سره تشبّه (مشابهت)
۲ - دعورت (ستر) د ښکاریدو ویره. او دا داسې کیدلی شي چه یواځې په سر باندې څادر واچوي او را وئې زړوي او پرتوګ او داسې نور نه وي.
۳ - لبس غیر معتاد (داسې شی اغوستل چه په خلکو کښې عام رواج نه وي)
رومال په سر باندې اچول او په عقال باندې ئې تړل دا معتاد اغوستل دي. په دې کښې د عورت د ښکاریدو هم ویره نشته او له اهل کتابو سره تشبّه هم پکښې نشته. د دې لپاره په دې کښې هیڅ کراهت نشته. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ جمادی الاٰخر ۱۳۹۱ هجری

## د لمونځ کوونکي په مخ کښې ناست سړی جګیدلی او تللی شي

**سوال**: که چیرته یو څوک د لمونځ کوونکي په مخ کښې ناست وي نو آیا هغه جګیدلی او تللی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! تللی شي. قال فی رد المحتار تحت عنوان (تتمة) عن القنیة اراد المرور بین یدی المصلّی فان کان معه شیء یضعه بین یدیه ثم یمرّ ویأخذه ولو مرّ اثنان یقوم احدهما امامه و یمرّ الأخر ویفعل الأخر هٰکذا و یمران. (ردالمحتار ج۱،ص۵۹۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ صفر ۱۳۸۶ هجری

## د لمونځ کوونکي له مخې په څومره فاصلې سره تیریدل جائز دي؟

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او مفتیان عظام د دې مسئلې په اړه چه د لمونځ کوونکي مخې ته د دریو یا څلورو صفونو په پریښودلو سره تیریدل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته په دومره کوچني جومات یا کوټه یا صحن (سرائے) کښې ئې لمونځ کاوه چه د هغه ټوله رقبه ۱۲۰۰ لاسه - ۳۳۴/۴۵۱ مربع متر څخه کمه وي نو د لمونځ کوونکي له مخې تیریدل په مطلقه توګه ناجائز دي که نژدې ورسره تیر شي یا لرې په هر حال کښې ئې ګناه شته. البته که چیرته په خلاصه فضاء یا له ۳۳۴/۴۵۱ مربع متره یا له دې څخه لوی جومات یا لویه کمره یا کوټه یا لوی صحن کښې لمونځ کوي نو د سجدې ځای ته په کتو سره مخته ترکومه ځایه پورې چه بالتبع نظر رسیږي تر هغه ځایه پورې تیریدل ناجائز دي. له دې اندازې څخه هغې خوا ته تیریدل جائز دي. بنده د دې اندازه لګولې ده نو د سجدې له ځای څخه د یوه صف په برابر راغلی. لهذا د لمونځ کوونکي د دریدو له ځایه د دوه صفونو په اندازه تقریبا اته فټه - ۲/۴۲ متره پریښودل او بیا تیریدل جائز دي.

قال شارح التنویر فی مفسدات الصلوٰة و مرور مار فی الصحراء او فی مسجد کبیر بموضع سجوده فی الاصح او

مروره بین یدیه الی حائط القبله فی بیت و مسجد صغیر فانّه کبقعة واحدة. وفی الشامیة (قوله فی الاصح) هو ما اختاره شمس الائمة و قاضی خان و صاحب الهدایة و استحسنه فی المحیط و صححه الزیلعی و مقابله ما صححه التمرتاشی و صاحب البدائع و اختاره فخر الاسلام ورجّحه فی النهایة والفتح انه قدر ما یقع بصره علی المار لو صلّی بخشوع ای رامیاً ببصره الی موضع سجوده وارجع فی العنایة الاوّل الی الثانی بحمل موضع السجود علی القریب منه و خالفه فی البحر و صحح الاوّل و تکبت فیما علقته علیه عن التجنیس ما یدل علی ما فی العنایة فراجعه. (قوله فی بیت) ظاهره ولو کبیراً وفی القهستانی و ینبغی ان یدخل فیه ای فی حکم المسجد الصغیر الدار والبیت (قوله و مسجد صغیر) هو اقل من ستین ذراعاً و قیل من اربعین و هو المختار کما اشار الیه فی الجواهر قهستانی. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۳) وقال الرافعی (قوله ظاهره ولو کبیراً الخ) لکن ینبغی تقییده بالصغیر کما تقدم فی الامامة تقیید الدار بالصغیرة حیث لم یجعل قدر الصفین مانعا من الاقتداء بخلاف الکبیرة وفی المتانة معزیا الجواهر الفتاوٰی سئل قاضی خان رحمه الله علیه عن الدار ان له حکم المسجد ام حکم الصحراء فی حکم اتحاد المکان و اختلافه قال اختلفوا فیه بعضهم قالوا ان کان ستین ذراعا فی ستین ذراعا بذراع الشاهجهان فهی کبیرة والا فصغیرة و بعضهم قالوا ان کان اربعین ذراعاً فی اربعین ذراعاً فهی کبیرة و الا فصغیرة هذا هو المختار هکذا افتاه. (المتانة فی مرمة الخزانة ص۱۹۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴ ذی قعده ۱۳۸۶ ه‍

## له رومال یا همسا څخه د سترې جوړولو حکم

**سوال**: که چیرته یو سړی د لمونځ کوونکي له مخې د تیریدو لپاره د هغه مخې ته خپل رومال را وزړوي یا خپله همسا ودروي او تیر شي نو آیا دا ورته جائز دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: علامه شامي رحمه الله علیه فرمائي چه ما ته په دې باره کښې کومه صریحه جزئیه لاس ته نه ده راغلې ونصه وذا کان معه عصا لا تقف علی الارض بنفسها فامسکها بیده و مرّ من خلفها هل یکفی ذٰلك لم اره. (ردالمحتار ج۱، ص۵۹۵) په ظاهره خو ئې له جواز څخه هیڅ مانع نشته. لهذا د ضرورت په وخت کښې ئې ګنجائش شته. با لخصوص په داسې حال کښې چه لرګی په زمکې باندې اچول یا خط ایستل هم د سترې لپاره کافي دي. برسیره پر دې په لوی جومات او بیابان کښې د سجدې له ځای سره د تیریدو د کراهت د تخصیص قول هم مصحح دی. د ضرورت په وخت کښې په دې باندې د عمل کولو ګنجائش شته. فقط والله تعالیٰ اعلم. ۲۹ رمضان ۹۸ هجری

## د ضرورت په وخت کښې د سترې مختلف صورتونه

**سوال**: که چیرته لمونځ کوونکی خپلې مخې ته خپل بیګ یا کومه جامه او داسې نور کښیږدي نو آیا په دې صورت کښې ئې له مخې تیریدل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ستره باید کم تر کمه یو لاس لوړه وي. له دې څخه د سترې په کم لوړوالي کښې اختلاف دی. راجح قول دا دی چه د ذراع (شرعي ګز یعنې یو لاس) په اندازه ستره پیدا نه شي نو کمه ستره هم کار ورکوي. د ضرورت په وخت کښې د سترې څو صورتونه دي مثلاً:

۱ - یو داسې شی چه لوړوالی ئې تر ذراع کم وي.

۲ - همسا او داسې نور زوړندول که چیرته و نه شي دریدلی

۳ - د لمانځه مخې ته د لیکې ایستل.

همسا او لیکه په اوږدوالي یعنې قبلې خوا ته کیښودل یا کش کول زیات بهتر دي. اګر که په ساره باندې هم جائز دي.

۴ - جائ نماز (مصلیٰ) غوړول او په هغې باندې لمونځ کول.

۵ - که چیرته دوه سړي تیریدل غواړي نو یو دې د لمونځ کوونکي مخې د شا په اړولو سره ودریږي او بل دې تیر شي. بیا دې دا بل د لمونځ کوونکي مخې ته د شا په اړولو سره ودریږي او هغه بل دې تیر شي.

۶ - یو مصحح قول دا هم دی چه ۳۶۰۰ مربع فټ - ۳۳۴/۴۵۱ مربع متر یا له دې څخه په لوی جومات یا بیابان کښې د سجدې له ځای څخه لرې مخکښې تیریدل بې له سترې څخه جائز دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ رمضان ۱۳۹۸ھ

## په مسجد حرام کښې د لمونځ کوونکي له مخې څخه د تیریدلو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام په دې مسئله کښې چه په مسجد حرام کښې د لمونځ کوونکي له مخې څخه تیریدل څنګه دي؟ آیا د دې حکم د نورو جوماتونو غوندې دی او که له نورو څخه مختلف دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې مسئله کښې مسجد حرام کوم تخصیص نه لري بلکه د نورو لویو لویو جوماتونو غوندې په دې کښې د لمونځ کوونکي د دریدو له ځایه د دوه صفونو په اندازه مسافه پریښودل او تیریدل جائز دي. په دې حد کښې د ننه تیریدل جائز نه دي لیکن طواف کوونکي د سجدې له ځای څخه لرې مخکښې تیریدلی شي.

قال في الشامية (تنبيه) ذكر في حاشية المدني لا يمنع المار داخل الكعبه وخلف المقام وحاشية المطاف

لما روى احمد وابو داؤد عن المطلّب بن ابي وداعة انه راى النبي ﷺ يصلّي مما يلي باب بني سهم والناس يمرّون بين يديه و ليس بينهما سترة وهو محمول على الطائفين فيما يظهر لانّ الطواف صلوة فصار كمن بين يديه صفوف من المصلّين انتهى ومثله في البحر العميق وحكاه عز الدين بن جماعة عن مشكلات الأثار للطحاوي و نقله المنلا رحمه الله في منسكه الكبير و نقله سنان افندي ايضاً في منسكه اه. و سيأتي انشاء الله تعالى تأييد ذلك في باب الاحرام من كتاب الحج. (رد المحتار ج۱،ص۵۹۳) و قال الرافعي رحمه الله (قوله لا يمنع المارّ داخل الكعبة الخ) المرور بين يدي المصلّي في موضع سجوده داخل الكعبة لاشك في كراهته وان وراءه اوخلف المقام او حاشية المطاف فلا تيوهم فيه الكراهة حيث كان لا في موضع السجود هذا معلوم من كلام المصنّف فان المسجد كبير ولاحاجة حينئذٍ الى حمل الوارد على الطائفين. (التحرير المختار ج۱،ص۸۳)

قلت حمل الوارد على الطائفين محمول على ان منع المرور غير مختص بموضع السجود بل هو قدر ما يقع بصره على المار لو صلى بخشوع اى رامياً ببصره الى موضع سجوده. فقط والله تعالى اعلم ۱۲محرم ۱۳۹۹ھ

## د اودس د ماتيدو له وجې د لمونځ کوونکو له مخې د تيريدلو حکم

**سوال**: زيد لومړى په جماعت کښې شريک وو چه باد ئې ووت. اوس د زيد لپاره د لمونځ کوونکو له مخې په تيريدو سره د اوداسه لپاره وتل جائز دي او که نه؟ په داسې حال کښې چه د صفونو له منځه وتل مشکل وي. بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! جائز دي. بلکه صف په منځ باندې د خيرلو په ځای د صف له مخې تيريدل اهوَن (سپک) او بهتر دي. فقط والله تعالى اعلم ۱۵رجب ۱۳۹۹ھ

## د جومات په بام باندې د لمونځ کولو حکم

**سوال**: د ګرمۍ له وجې د جومات په بام باندې لمونځ کول سره له دې چه لاندې ځای موجود وي جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: في الهندية في الباب الخامس من الكراهية الصعود على سطح المسجد مكروه ولهذا اذا اشتد الحر يكره ان يصلّوا بالجماعة فوقاً الا اذا ضاق المسجد فحينئذ لا يكره الصعود على سطحه للضرورة كذا في الغرائب اه. له دې څخه څرګنديږي چه د جومات په بام يا چت باندې لمونځ کول مکروه دي. ليکن د فقهې په نظر سره په دې کښې دا تفصيل شته چه کله پورته مسقف منزل (پوړ) نه وي نو بام ته ختل او لمونځ ادا کول په هر صورت کښې مکروه دي. او که چيرته پورته هم مسقف

منزل وي نو په دې يو اخې لمونځ کول بې له کراهته جائز دي او په کښتني منزل کښې د خای د شته والي په صورت کښې په پورته منزل کښې له جماعت سره لمونځ کول مکروه دي. هذا عندی ولعلّ عند غيری احسن منه. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ صفر ۸۸ هجری

## د لمونځ کوونکي عکس په آئينه يا هنداره کښې د ښکاريدلو حکم

**سوال**: د جومات مخې ته له ديوال سره الماری لګيدلي دي چه په هغو کښې د قرآنکريم نسخې کيښودل کيږي. او په الماريو کښې شيشې لګيدلي دي. کوم سړی چه په لومړي صف کښې دغو الماريو ته مخامخ ودريږي نو عکس ئې په شيشه کښې راځي. داسې عکس نه لکه څرنګه چه د مخ د کتو په آئينه کښې په نظر راځي بلکه داسې عکس دی لکه څرنګه چه په اوبو کښې سړي ته خپل عکس په نظر راځي. پوښتنه دا ده چه داسې عکس په لمانځه کښې کوم کراهت پيدا کوي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته په لمانځه کښې د هغه خوا ته توجه اوړي او په خشوع کښې خلل پيدا کوي نو داسې شيشه لګول مکروه دي. او که نه نو پخپله په دې کښې کوم کراهت نشته لکه څرنګه چه د لمونځ کوونکي سيوری د لمانځه په حالت کښې د هغه مخې ته راتلل د کراهت موجب نه دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ رجب ۱۳۸۷ هـ

## په وريښمينو جامو کښې لمونځ مکروه دی

**سوال**: که چيرته نارينه سره زر يا وريښم واغوندي او لمونځ وکړي نو آيا لمونځ ئې کيږي او که نه؟ د دار العلوم ديوبند د فتاوی په اووم او اتم جلد ص۲۳۵ کښې ليکلي دي چه "سره زر او وريښم اغوستل او لمونځ کول مکروه تحريمي دي او لمونځ را ګرځول واجب دي" په دې باره کښې ستاسو تحقيق څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ کيږي. قال فی الشامية وستر عورته ولو بما لا يحل لبسه کثوب حرير وان اثم بلا عذر کالصلوٰة فی الارض المغصوبة.(ردالمحتار ج۱،ص۲۷۵) ليکن د کبيره ګناه د ارتکاب په حالت کښې لمونځ ادا کول مکروه تحريمي دي. همدارنګه د کراهت وجه دا هم ده چه دا د متکبرينو او فاسقانو لباس دی. له دې امله د داسې لمانځه بيرته را ګرځول واجب دي

لما فی مکروهات الصلوٰة من الهداية والصلوٰة جائزة فی جميع ذٰلك لاستجماع شرائطها وتعاد علی وجه غير مکروه وهٰذا الحکم فی کل صلوٰة اديت مع الکراهة.(فتح القدير ج۱،ص۲۹۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ شوال ۱۳۸۷ هـ

## د اوږي يا پياز د خوړلو په صورت کښې په کور کښې هم لمونځ مکروه دی

**سوال** : د اوږي يا پياز په خوړلو سره که سړی پخپل کور کښې لمونځ ادا کړي نو آيا مکروه به وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د پياز يا اوږې تر خوړلو وروسته د خولې د بد بوئي له لرې کولو پرته په کور کښې هم لمونځ مکروه دی. ځکه چه دا د خدائي دربار د عظمت (لوئي) خلاف دی او له بد بوئي څخه ملائکو ته تکليف وي. د دې لپاره نبي کريم ﷺ د اوم پياز له خوړلو څخه منع فرمايلې ده.

عن علی رضی الله تعالیٰ عنه قال نهی رسول الله صلی الله علیه و سلم عن اکل الثوم الا مطبوخاً رواه الترمذی.(مشکوٰة ج۱،ص۳۶۷) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱٤ محرم ۱۳۸۸ھ

## د لمانځه په حالت کښې د سيګريټو او نسوارو په جيب کښې کيښودل جائز نه دي

**سوال** : په جومات کښې ځينې خلک سګريټ يا نسوار له خپل جيب څخه وباسي او په صحن کښې ئې ږدي، د دې شرعاً څه حکم دی؟ د بدبويه شيانو په جومات کښې کيښودل څنګه دي؟ يا په جيب کښې له داسې شيانو سره لمونځ کول څرنګه دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داسې بد بويه شيان جومات ته راوړل يا د لمانځه په حالت کښې په جيب کښې ساتل جائز نه دي. البته لمونځ ورسره کيږي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ رجب ۱۳۸۷ھ

## په لمانځه کښې د تګ کول حکم

**سوال** : په لمانځه کښې تګ کول په کوم صورت کښې مفسد دي؟ په تفصيل سره ئې وليکئ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قال فی شرح التنویر (فروع)مشی مستقبل القبلة هل تفسد ان قدر صف ثم وقف قدر رکن ثم مشی و وقف کذٰلك و هکذا لا تفسد وان کثر ما لم یختلف المکان و قیل لا تفسد حالة العذر ما لم یستدبر القبلة استحساناً ذکره القهستانی و فی الشامیة (قوله ما لم یختلف المکان) ای بأن خرج من المسجد او تجاوز الصفوف لو الصلوٰة فی الصحراء فحینئذٍ تفسد کما لو مشی قدر صفین دفعة واحدة. قال فی شرح المنیة و هذا بناء علی ان الفعل القلیل غیر مفسد ما لم یتکرر متوالیاً و علی ان اختلاف المکان مبطل ما لم یکن لاصلاحها و هذا اذا کان قدامه صفوف، و اما ان کان اماماً فجاوز موضع سجوده فان بقدر ما بینه و بین الصف الذی یلیه لا تفسد و ان کثر فسدت، وان منفرداً فالمعتبر موضع سجوده فان جاوزه فسدت و

الا فلا و البیت للمرأة کالمسجد عند ابی علی النسفی و کالصحراء عند غیره اه. و قال تحت (قوله و قیل لا تفسد حالة العذر) وذکر فی الحلیة ایضاً فی فصل المکروهات ان الذی تقتضیه القواعد المذهبیة المستندة الی الادلة الشرعیة ووقع به التصریح فی بعض الصور الجزئیة ان المشی لا یخلو اما ان یکون بلا عذر او بعذر فالاول ان کان کثیراً متوالیاً تفسد و ان لم یستدبر القبلة، و ان کان کثیراً غیر متوال بل تفرق فی رکعات او کان قلیلاً فان استدبرها فسدت صلوته للمنافی بلا ضرورة و الا فلا و کره لما عرف ان ما افسد کثیره کره قلیله بلا ضرورة و ان بعذر فان کان للطهارة عند سبق الحدث اوفی صلوة الخوف لم یفسدها ولم یکره قل او کثر استدبر اولا وان لغیر ما ذکر فان استدبر معه فسدت قل او کثر وان لم یستدبر فان قل لم یفسد ولم یکره اون کثیراً متلاحقاً افسد واما غیر متلاحق ففی کونه مفسداً او مکروهاً خلاف و تأمل اه. ملخصا قال فی هذا الباب والذی یظهر ان الکثیر الغیر المتلاحق غیر مفسد ولا مکروه اذا کان لعذر مطلقاً. (رد المحتار ج۱، ص۸۵۷) وفی باب الاستخلاف من العلائیة استخلف ما لم یجاوز الصفوف لو فی الصحراء ما لم یتقدم فحده السترة او موضع السجود علی المعتمد کالمنفرد وما لم یخرج من المسجد او الجبانة او الدار لو کان یصلّیه وفی الشامیة (قوله ما لم یتقدم الخ) تخصیص لما فی المتن کالهدایة وحاصله ان حده الصفوف ان ذهب یمنة او یسرة او خلفاً واما ان ذهب اماما فحده السترة او موضع السجود ان لم تکن سترة قال فی الفتح انه الاوجه وفی البدائع انه الصحیح قال فی البحر فما فی الهدایة من ان الامام اذا لم یکن بین یدیه سترة فالمعتبر مشیه مقدار الصفوف خلفه ضعیف اه. لکن قال الخیر الرملی ان اغلب الکتب علی اعتماد ما فی الهدایة فیکف یکون ضعیفاً (قوله کالمنفرد) فانّ المعتبر فیه موضع سجوده من الجوانب الاربع الّا اذا مشی امامه و بین یدیه سترة فیعطی لداخلها حکم المسجد بحر عن البدائع (قوله او الدار) کذا اطلقها فی الزیلعی والبحر و الظاهر ان المراد منها الصغیرة لما قدمناه فی موانع الاقتداء انّ الصغیرة کالمسجد و الکبیرة کالصحراء و انّ المختار فی تقدیر الکبیرة اربعون ذراعاً تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۳) و قال الرافعی رحمه الله (قوله هو اقل من ستین ذراعاً) و فی حاشیة عبد الحلیم الصغیر ما یکون اقل من جریب کما فی البرجندی اه. والجریب ستون ذراعاً فی ستین بذراع کسری سبع قبضات تأمل. (التحریر المختار ج۱، ص۸۳)

**د پورتني عباراتو خلاصه دا ده:**

۱- پرته له عذر څخه متوالي (پر له پسې) ډېر تګ کول مفسد دی.
۲- پرته له عذر څخه غیر متوالي (چه پرله پسې نه وي) تګ که کم وي یا زیات د لمانځه مفسد

نه دی، مکروه دی. البته اختلاف مکان (د ځای بدلول) مفسد دی.

۳ - د اوداسه د عذر له وجې او د خوف په لمانځه کښې تګ په هر صورت کښې نه مفسد دی او نه مکروه.

۴ - له مذکوره عذر پرته د کوم بل عذر له وجې ډیر متوالي تګ مفسد دی.

۵ - د عذر له وجې ډیر غیر متوالي تګ یا کم تګ نه مفس دی او نه مکروه.

۶ - له قبلې څخه انحراف د اوداسه د عذر او د خوف د لمانځه نه پرته په هر حال کښې د لمانځه مفسد دی.

۷ - د دوه صفونو په اندازه تګ مشيِ کثیر (ډیر تګ) دی او له دې څخه کم تګ مشيِ قلیل (کم تګ) دی.

۸ - د عدمِ اختلاف مکان (د ځای د نه بدلولو) څخه مراد دا دی چه له جومات یا ۹۰ مربع فټ-۸/۳۲ مربع متر څخه کوچني مکان څخه د باندې و نه ووځي. که چیرته تر دې په لوی ځای یا صحراء یعني بیابان کښې وي نو مقتدي دې د څلور واړو خواوو له صفونو څخه تجاوز نه کوي. که چیرته ستره نه وه د سجدې له ځای څخه دې مخته نه تیریږي. او د یوه قول مطابق د امام او د هغه شا ته صف تر منځ چه څومره مسافه وي امام دې دومره نه مخته کیږي. دریم قول دا دی چه د شا ته ټولو صفونو په اندازه دې مخته نه ځي. او منفرد دې څلورو خواوو ته د سجدې د ځای په برابر ځای څخه تجاوز نه کوي. البته که چیرته مخې ته سُتره وي نو د مخې خوا ته له سُترې څخه به مخته نه ځي.

د رافعي په عبارت کښې له ستون فی ستین څخه څرګندیږي چه له اربعون ذراعاً څخه هم اربعون فی اربعین مراد دی. لیکن د عامو کتابونو د عباراتو متبادر مفهوم څلویښت مربع لاسه دی.

۹ - له مشيِ غیر متوالي څخه مراد دا دی چه د زیاتې اندازې له تګ څخه مخکښې کم تر کمه د رکن په اندازه توقف وکړي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ ربیع الآخر ۸۹ هجری

## په لمانځه کښې بې له ضرورته ځان ګرول مکروه تحریمي دي

**سوال**: په لمانځه کښې د ځان د ګرولو څه حکم دی؟ آیا جائز دی او که مکروه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بې له ضرورته یو ځل ځان ګرول مکروه تحریمي دي او بیرته را ګرځول ئې واجب دي. که چیرته یو داسې ضرورت پیښ شي پرته د ځان له ګرولو په لمانځه کښې خشوع نه پیدا کیږي نو یو یا دوه ځلې ګرول بې له کراهته جائز دي او درې ځله د سبحان ربی الاعلی ویلو په اندازه وخت کښې درې ځله په ضرورت سره ګرول هم مفسد دی.

فی مکروهات الصلوٰة من العلائیة وعبثه به ای بثوبه و بجسده للنهی الا لحاجة و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله للنهی) و هو ما اخرجه القضاعی عنه ﷺ ان الله کره لکم ثلاثا العبث فی الصلوٰة و الرفث فی الصیام و الضحك فی المقابر و هی کراهة تحریم کما فی البحر (قوله الا لحاجة) کحك بدنه لشیء اکله و اضره وسلت العرق یؤلمه ویشغل قلبه وهٰذا لو بدون عمل کثیر.(رد المحتار ج۱،ص۵۹۹)وفی مکروهات المراقی کعبثه بثوبه وبدنه لانه ینافی الخشوع الذی هو روح الصلوٰة فکان مکروها. (الی قوله) و رای علیه الصلوٰة و السلام رجلاً یعبث بلحیته فی الصلوٰة فقال لو خشع قلبه لخشعت جوارحه وقال الطحطاوی رحمه الله (فکان مکروها) ای تحریماً افاده السید وغیره.(طحطاوی علی المراقی ص۱۸۹) وقال فی البدایة ویکره للمصلّی ان یعبث بثوبه او بجسده وفی الشرح و الصلوٰة جائزة فی جمیع ذٰلك لاستجماع شرائطها و تعاد علی وجه غیر مکروه وهٰذا الحکم فی کل صلوٰة ادیت مع الکراهة وقال ابن الهمام رحمه الله (قوله و تعاد) صرّح بلفظ الوجوب الشیخ قوام الدین الکاکی فی شرح المنار و لفظ الخبر المذکور تحریم فتجب الاعادة او تنزیه فتستحب.(فتح القدیر ج۱،ص۲۹۵) له مطلق کراهت څخه کراهت تحریمي مراد وي. پورته له شامي څخه په حواله او له طحطاوي څخه په حواله د سیّد او داسې نور د تحریمي کراهت تصریح تیر شو. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ رمضان المبارك ۱۳۸۷ هجری

## پرله پسې درې ځله ځان ګرول د لمانځه فاسدونکی دی

**سوال** : د فتاوی عالمګیري له عبارت څخه دا څرګندیږي چه په یوه رکن کښې درې ځله د ځان په ګرولو سره لمونځ فاسدیږي. که چیرته یو څوک د خارښ مرض ولري د هغه لپاره څه حکم دی؟ په داسې حال کښې چه پرته له ځان ګرولو طاقت نه ورځي څکه چه دی معذور دی. شرعاً د داسې سړي لپاره څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په مطلقه توګه درې ځله په ځان ګرولو سره لمونځ نه فاسدیږي بلکه دا هلته مفسد دی چه هر ځل لاس پورته کړي. که چیرته هر ځل جلا جلا لاس پورته نه کړي بلکه په یو ځل لاس پورته کولو سره درې ځله ځان وګروي نو لمونځ نه فاسدیږي. کذا ذکره ابن عابدین رحمه الله ونصه قال فی الفیض الحك بید واحدة فی رکن ثلاث مرات یفسد الصلوٰة ان رفع یده فی کل مرّة و فی الجوهرة عن الفتاوٰی اختلفوا فی الحك هل الذهاب والرجوع مرّة او الذهاب مرّة والرجوع اخرٰی.(رد المحتار ج۱،ص۵۹۹) همدارنګه که چیرته درې ځله ځان داسې وګروي چه د دریم لاس ښورولو څخه مخکښې د درې ځله سبحان ربی الاعلی د ویلو په اندازه وخت تیر شي نو په دې ډول سره درې ځله ګرول هم د لمانځه فاسدوونکی نه دی لان المفسد هو کون الحرکات الثلاث متوالیة کما فی الشامیة ج۱،ص۵۸۳

د زیاتې مجبورۍ په حالت کښې لمونځ په داسې توګه مختصر کیدلی شي چه یواځې فرائض او واجبات باندې اکتفاء وکړي او سنتونه او آداب پریږدي. په قیام کښې ثناء، تعوّذ او تسمیه پریږدي. سورۀ فاتحه او تر دې وروسته تر دیرشو حروفو پورې قرائت وکړي، رکوع او سجده یواځې د یو ځل تسبیح په اندازه ادا کړي او په آخري قعده کښې یواځې تشهّد او تر تشهّد وروسته اللّهم صل تر علی محمد پورې ولولي او سلام واړوي. د امام شافعي رحمه الله په نزد دومره اندازه درود شریف فرض دی. بهتره دا ده چه تر سلام اړولو مخکښې د رَبِّ اغْفِرْلِیْ غوندې لنډه دُعا هم ووائي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ شوال ۸۷ هجری

## د عملِ کثیر تعریف

**سوال**: د عملِ کثیر کوم چه د لمانځه فاسدوونکی دی د هغه تعریف څه دی؟ که چیرته ئې د مثال له مخې واضح کړئ نو په پوهیدو کښې به ئې آساني وي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د عملِ کثیر په تعریف کښې پنځه قولونه دي:

۱ - داسې عمل چه کوونکي ته له لرې څخه د کتونکي غالب ګومان دا وي چه دا سړی په لمانځه کښې نه دی. په کوم عمل سره چه په لمانځه کښې د نه مشغول والي غالب ګومان نه وي بلکه شبهه وي نو هغه عملِ قلیل دی.

۲ - کوم کار چه د عادت له مخې په دواړو لاسونو تر سره کیږي لکه د پرتوګ‌ابښ تړل او د پګړۍ تړل دا عملِ کثیر دی اګر که ئې څوک په یوه لاس سره هم تر سره کړي. او کوم عمل چه د عادت له مخې په یوه لاس تر سره کیږي که هغه په دواړو لاسونو هم تر سره کړي نو قلیل دی لکه د پرتوګ‌ابښ خلاصول او خولۍ له سره کښته کول.

۳ - د دریو پرله پسې حرکتونو یعنې د درې ځله سبحان ربی الاعلی د ویلو په اندازه په وخت کښې کوم کار وشي نو دا عمل کثیر دی او که نه نو قلیل دی.

۴ - داسې عمل کثیر دی کوم چه د کوونکي داسې مقصود وي چه دا په مستقل مجلس کښې تر سره کوم لکه د لمانځه په حالت کښې چه کوچنی د ښځې تی وروي.

۵ - د لمونځ کوونکي په رأیه پورې موقوفه ده. هغه چه کوم عمل کثیر وبولي هغه کثیر دی.

لومړني درې قولونه زیات مشهور دي او په حقیقت کښې د درې واړو حاصل یو دی. د دې لپاره په دویم او دریم قول کښې د مذکوره عمل کوونکي ته په کتو سره د کتونکي غالب ګومان کیږي چه په لمانځه کښې نه دی.

قال فی العلائیة ویفسدها کل عمل کثیر لیس فی اعمالها ولا لاصلاحها وفیه اقوال خمسة اصحها مالا یشك

يسبهه الناظر من بعيد فی فاعله انّه ليس فيها وان شك انه فيها ام لا فقليل، قال فی الشامية (قوله وفيه اقوال خمسة اصحها ما لا يشك الخ) صححه فی البدائع و تابعه الزيلعی و الولوالجی و فی المحيط انه الاحسن و قال الصدر الشهيد انه الصواب و فی الخانية و الخلاصة انه اختيار العامة و قال فی المحيط و غيره رواه الثلجی عن اصحابنا حلية. القول الثانی ان ما يعمل عادة باليدين كثير وان عمل بواحدة كالتعمم و شد السراويل وما عمل بواحدة قليل ون عمل بهما كحل السراويل و لبس القلنسوة و نزعهما الا اذا تكرر ثلاثا متوالية و ضعفه فی البحر بانه قاصر عن افادة ما لا يعمل باليد كالمضغ و التقبيل. الثالث الحركات الثلاث المتوالية كثير و الا فقليل. الرابع ما يكون مقصوداً للفاعل بان يفرد له مجلساً عليحدة قال فی التاتارخانية و هذا القائل يستدل بامرأة صلت فلمسها زوجها او قبلها بشوة او مص صبی ثديها و خرج اللبن تفسد صلاتها. الخامس التفويض الی رأی المصلّی فان استكثره فكثير و الا فقليل، قال القهستانی و هو شامل للكلّ و اقرب الی قول ابی حنيفة فانه لم يقدر فی مثله بل يفوض الی رأی المبتلی اه. قال فی شرح المنية ولكنه غير مضبوط و تفويض مثله الی رأی العوام مما لا ينبغی و اكثر الفروع او جميعها مفرع علی الاوّلين و الظاهر ان ثانيهما ليس خارجاً عن الاوّل لان ما يقام باليدين عادة يغلب ظن الناظر انّه ليس فی الصّلوة و كذا قول من اعتبر التكرار ثلاثاً متواليةً فانّه يغلب الظّن بذلك فلذا اختاره جمهور المشائخ اه. (ردالمحتار ج۱، ص۵۸۳)

**فائده**: په څينو عبارتونو کښې د ثلاث حرکات متوالية په ځای ثلاث حرکات فی رکن دی. په دې کښې له رکن څخه مراد مقدارِ رکن (د رکن اندازه) دی. يعنې په څومره وخت کښې چه درې ځله سبحان ربی الاعلی ويل کيدلی شي ظاهره ده چه په همدومره وخت کښې درې حرکتونه تر سره شي نو هغه به متواليه وي. داسې هم ويل کيدلی شي چه د رکن له يو والي سره توالي هم شرط دی. البته په کوم اوږده رکن کښې د دريو حرکتونو داسې واقع کيدل چه آخري حرکت د رکن په اندازه تر وخت وروسته وي فاسدوونکی نه دی. لومړنی قول کوم چه د ټولو اصل او تر ټولو صحيح دی د هغه په مطابق هم درې پرله پسې حرکتونه د لمانځه فاسدوونکی ذی. ځکه چه د دريو غير متواليه حرکتونو ليدونکي ته د دې غالب ګومان نه کيږي چه په لمانځه کښې نه دی. اګر که دا درې واړه حرکات په يوه رکن کښې هم وي. خصوصاً چه کله رکن اوږد وي او د حرکاتو تر منځ وقفه هم زياته وي.

فقط والله تعالیٰ اعلم
۱۶ جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ

## په لمانځه کښې په دواړو لاسونو سره د خولی په سرولو حکم

**سوال**: د لمانځه په دوران کښې که چيرته د سجدې په حالت کښې خولی له سره ولويږي نو په

دوارو لاسونو سره ئې بيرته په سرول لمونځ فاسدوي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته داسې خولی. وي چه عادةً په يوه لاس سره په سرول کيده نو لمونځ نه فاسديږي او که چيرته داسې خولی. وي چه عادةً په دوارو لاسونو سره په سرول کيده نو لمونځ فاسديږي ځکه چه دا عمل کثير دی.

قال فی العلائية ويفسدها کل عمل کثير ليس فی اعمالها ولا لاصلاحها وفيه اقوال خمسة اصحها ما لا يشك بسببه الناظر من بعيد فی فاعله انه ليس فيها و ان شك انه ليس فيها و فی الشامية القول الثانی ان ما يعمل عادة باليدين کثير اون عمل بواحدة کالتعمم و شد السراويل وما عمل بواحدة قليل و ان عمل بهما کحل السراويل ولبس القلنسوة ونزعها الا اذا تکرر ثلاثاً متوالية (وبعد اسطر) عن شرح المنية والظاهر ان ثانيهما ليس خارجاً عن الاول لان ما يقام باليدين عادة يغلب ظن الناظر انه ليس فی الصلوة. (رد المحتار ج۱، ص۵۸۴)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ صف ۱۳۹۰ هجری

## لمانځه په حالت کښې د مار د وژلو حکم

**سوال** : زيد د لمانځه په دوران کښې يو مار وواژه او خپله سينه ئې له قبلې و نه ګرځوله. د مار تر وژلو وروسته ئې خپل لمونځ پوره کړ. نو آيا لمونځ ئې وشو او که نه؟ په داسې حال کښې مار هم د قبلې خواته و تښتي، ديخوا اخوا نه وي ګرځيدلی. شرعاً د دې څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مار په وژلو کښې ئې که چيرته عملِ کثير تر سره کړی وي. يعنې له دوه ځخه زيات ګذارونه ئې کړي وي يا د قبلې خوا ته ئې دومره تګ کړی وي چه د سجدې له ځای ځخه مخکښې تير شوی وي نو لمونځ ئې فاسد شو او که داسې نه وي نو نه فاسديږي. که چيرته له مار ځخه د تکليف ويره وه نو په لمانځه کښې په عملِ قليل سره وژل بې له کراهته جائز دی او که نه نو مکروه دی. د تکليف د ويرې په حالت کښې که چيرته په عملِ قليل سره ئې وژل ممکن نه وي نو د لمانځه ماتول جائز دي. د سجدې له ځايه د تجاوز کولو مذکور حکم د منفرد (يواځې لمونځ کوونکي) لپاره دی. د مقتدي لمونځ هلته فاسديږي چه کله د مخې تر دوه صفونو پورې لاړ شي او د امام لمونځ هلته فاسديږي چه د ده او په ده پسې د اولني صف تر منځ د مسافې په اندازه تګ وکړي.

قال فی العلائية لا يکره قتل حية او عقرب ان خاف الاذی (الیٰ قوله) مطلقاً ولو بعمل کثير علی الاظهر لکن صحح الحلبی الفساد. وفی الشامية (قوله لکن صحح الحلبی الفساد) حيث قال تبعاً لابن الهمام فالحق فيما يظهر هو الفساد والامر بالقتل لا يستلزم صحة الصلوة مع وجوده کما فی صلوة الخوف بل الامر فی مثله لاباحة مباشرته

ان کان مفسداً للصلوٰۃ اھ و نقل کلام ابن الهمام فی الحلیة و البحر و النهر و اقروه علیه و قالوا ان ما ذکره السرخسی ردّه فی النهایة بانه مخالف لما علیه عامة رواة شروح الجامع الصغیر و مبسوط شیخ الاسلام من ان الکثیر لا یباح اھ. (ردالمحتار ج۱، ص۶۱۰)　　فقط والله تعالیٰ اعلم　　۲۵ ذی قعده ۱۳۵۹ھ

## په لمانځه کښې د لا حول ویلو حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک د عادت له وجې هر وخت لا حول و لا قوّة وائي داسې سړی که چیرته په لمانځه کښې هم په ناڅاپي توګه د کوم خیال له وجې لا حول ووائي نو لمونځ ئې ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د دُنیائي کارونو په اړه د کومې وسوسې د راتلو له وجې لا حول ووائي نو لمونځ ئې فاسدیږي او که د آخرت د کارونو په اړه ئې ووائي نو نه فاسدیږي. **قال فی العلائیة** ولو حوقل لدفع الوسوسة ان لامور الدنیا تفسد لا لامور الآخرة. (ردالمحتار ج۱، ص۵۸۱) له دې خبرې څرګنده شوه چه که چیرته پرته له نیت څخه هم له ژبې څخه نوموړي الفاظ ووځي نو لمونځ ماتیږي　　فقط والله تعالیٰ اعلم　　۱۹ شعبان ۱۳۸۸ھ

## د سینما په بام باندې د لمانځه ادا کول مکروه تحریمي دي

**سوال**: د سینما په بام یا چت باندې د لمانځه ادا کول څنګه دي؟ آیا لمونځ بې له کراهته پکښې ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هلته دغسې تلل هم حرام دي نو لمونځ خو په طریقهٔ اولی سره مکروه تحریمي دی د دې لپاره چه دا ځای د لهو او لعب او د شیطانانو د یو ځای کیدلو ځای دی. کما قالوا فی الصلوة فی معابد الیهود و النصارٰی که چیرته دا عمارت د سینما په روپو یا ګټې باندې یا له کوم بل ډول حرام باندې جوړ شوی وي نو د دې ځای د استعمالولو ګناه به هم وي او په لمانځه کښې به د نور کراهت باعث وي. د داسې لمانځه په هر حال بیرته را ګرځول واجب دي.

قال شارح الهدایة فی مکروهات الصلوة و الصلوة جائزة فی جمیع ذٰلك لاستجماع شرائطها و تعاد علی وجه غیر مکروه و هٰذا الحکم فی کل صلوة ادیت مع الکراهة. (فتح القدیر ج۱، ص۲۹۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم　　۲۷ شعبان ۱۳۸۸ هجری

## د مصلیٰ چه یو کونج مردار وي نو لمونځ پرې کیږي

**سوال**: د جای نماز یا مصلیٰ یو کونج مردار شو نو آیا د دې کونج په پریښودلو سره په نورو

ځايونو باندې يا ئې په دويم کونج باندې لمونځ کيږي او که نه؟ او که د دې کونج د ناپاک والي له وجې به ټول جاى نماز يا مصلىٰ ته ناپاکه وايو؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې صورت کښې لمونځ کيږي. يواځې د دواړو پښو، دواړو لاسونو، زنګنونو او سجدې د ځاى پاکوالى شرط دى.

في شروط الصلوٰة من التنوير هى طهارة بدنه من حدث و خبث و ثوبه و مكانه و فى الشرح اى موضع قدميه او احداهما ان رفع الاخرى و موضع سجودة اتفاقاً فى الاصح لا موضع يديه و ركبتيه على الظاهر الا اذا سجد على كفه و قال ابن عابدين رحمه الله فى شرح قول الشارح و كذا ما يتحرك بحركته اى شيء متصل به يتحرك بحركته (الى قوله) بخلاف مالم يتصل كبساط طرفه نجس و موضع الوقوف والجبهة طاهر فلا يمنع مطلقاً (قوله و مكانه) فلا تمنع النجاسة فى طرف البساط ولو صغيراً فى الاصح (قوله على الظاهر) اى ظاهر الرواية كما فى البحر لكن قال فى منية المصلى قال فى العيون هذه رواية شاذة اه. و فى البحر و اختار ابو الليث ان صلوته تفسد و صححه فى العيون اه. و فى النهر و هو المناسب لاطلاق عامة المتون و ايده بكلام الخانية قلت و صححه فى متن المواهب و نور الايضاح والمنية و غيرها فكان عليه المعول و قال فى شرح المنية و هو الصحيح لان اتصال العضو بالنجاسة بمنزلة حملها و ان كان وضع ذلك العضو ليس بفرض. (رد المحتار ج۱، ص۳۷۳)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۸ شوال ۱۳۸۸ هجرى

## په لمانځه کښې د خندلو حکم

**سوال** : يو سړى له جماعت سره لمونځ کوي، په ناڅاپه توګه ئې وخندل، غاښونه ئې ښکاره شول ليکن غږ ئې ورسره و نه ووت. په دې صورت کښې د نوموړي لمونځ شو او که فاسد شو؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته په خندا کښې يواځې غاښونه ښکاره شي او آواز يا لکل و نه ووځي نو نه اودس ماتيږي او نه لمونځ له منځه ځي. او که چيرته دومره آواز ترې ووځي چې پخپله يا يا لکل ور نږدې سړى ئې هم واوري نو لمونځ ئې ماتيږي، اودس ئې نه ماتيږي. او که چيرته دومره په زوره وخاندي چه د مجلس خلک ئې واوري نو اودس ئې هم ماتيږي په دې شرط چه بالغ وي د نابالغ اودس په خندا سره نه ماتيږي.

قال صاحب التنوير فى نواقض الوضوء و قهقهة بالغ. و فى الشامية و احترز به عن الضحك و هو لغة اعم من القهقهة و اصطلاحاً ما كان مسموعاً له فقط فلا ينقض الوضوء بل يبطل الصلوٰة و عن التبسم و هو ما لا صوت

فيه اصلا بل تبدو اسنانه فقط فلا يبطلهما وتمامه فى البحر ولم ار من ذر الجواز بشيء ومقتضى تعريف الضحك بما كان مسموعاً له فقط ان القهقهة ما يسمعها غيره من اهل مجلسه فهم جيرانه لاخصوص من عن يمينه او عن يساره لان كل ما ان مسموعاً له يسمعه من عن يمينه او يساره تأمل. (رد المحتار ج ۱، ص ۱۴۴)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ محرم ۱۳۸۹ھجری

## په داسې پلاستیک باندې د لمانځه حکم چه لاندینی طرف ئې مردار وي

**سوال**: د پلاستیک او نائلون په یو ځای کولو سره یو څادر چا تیار کړی دی کوم چه ښه پریړ یا ډبل هم دی او اوبو نه جذبوي. آیا داسې څادر که چیرته د لاندې له خوا څخه ناپاکه شي یا په ناپاک او شکمن ځای باندې وغوړول شي او لمونځ پرې ادا کړی شي نو جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هر هغه شی چه د هغه په یوې خوا باندې لګیدلی نجاست بلې خوا ته سرایت و نه کړي د هغه په پاک طرف باندې لمونځ صحیح دی همدارنګه په ناپاکې یا شکمنې زمکې باندې داسې پلاستیک غوړل او لمونځ پرې کول جائز دي بلکه په داسې شفاف پلاستیک باندې هم لمونځ جائز دی چه تر هغه لاندې نجاست ښکاریږي. کما قالوا فى الزجاج البته که چیرته جامه دومره باریکه یا نرۍ وي چه له هغې څخه د زمکې نجاست ښکاریده یا د نجاست بدبوئي محسوسیدله نو په هغې باندې لمونځ صحیح نه دی.

قال فى الشامية عن البدائع لو صلّى على حجر الرحى أو باب او بساط غليظ او مكعب اعلاه طاهر وباطنه نجس عند ابى يوسف لا يجوز نظراً الى اتحاد المحل فاستوى ظاهره وباطنه كالثوب الصفيق وعند محمد يجوز لانه صلى فى موضع طاهر كثوب طاهر تحته ثوب نجس بخلاف الثوب الصفيق لانّ الظاهر نفاذ الرطوبة الى الوجه الآخر اه وظاهره ترجيح قول محمد وهو الاشبه (وبعد سطر) وذكر فى المنية وشرحها اذا كانت النجاسة على باطن اللبنة او الآجرة وصلى على ظاهرها جاز وكذا الخشبة ان كانت غليظة بحيث يمكن ان تنشر نصفين فيما بين الوجه الذى فيه النجاسة والوجه الآخر والا فلا اه. وذكر فى الحلية ان مسألة اللبنة والآجرة على الاختلاف المار بينهما وانه فى الخانية جزم بالجواز وهو اشارة الى اختياره وهو حسن متجه وكذا مسألة الخشبة على الاختلاف وان الاشبه الجواز عليها مطلقاً ثم ايده باوجه فراجعه. وايضاً فيها تحت (قوله ومبسوط على نجس الخ) عن شرح المنية وكذا الثوب اذا فرش على النجاسة اليابسة فان كان رقيقاً يشف ما تحته او توجد منه رائحة النجاسة على تقدير ان لها رائحة لا تجوز الصلوة عليه وان كان غليظاً بحيث لا يكون كذلك جازت اه (رد المحتار ج ۱، ص ۵۸۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ ربیع الاول ۱۳۸۹ھجری

## د الله اکبر په ځای الله أکبَار د ویلو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام په دې مسئله کښې چه د یوه جومات امام الله اکبر داسې ادا کوي چه د بَر په ځای بار په ذهن کښې راځي. د ده خپل او د مقتدیانو د لمونځونو حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: علامه شامي رحمه الله له حلیه او داسې نورو څخه نقل کړی دی چه په تکبیر کښې د اسم ذات الله او د اکبر الف کشول یا پورته کول د لمانځه فاسدوونکی دی. او لام دومره کشول چه یو بل الف ترې پیدا شي مکروه دی. همدارنګه د هاء کشول مکروه دی. د باء د کشولو په مفسد والي کښې اختلاف دی. او په راء باندې د پیښ په کشولو سره لمونځ فاسدیږي.

لیکن د جهل او ناپوهی د غلبې له وجې د متاخرینو دا فیصله ده چه داعراب او مد غلطي د لمانځه مفسد نه دی. البته که چیرته یو څوک سره له خبرتیا داصلاح کوشش نه کوي نو د هغه لمونځ نه کیږي. او غلط ادا کوونکی امام جوړول په هر صورت ناجائز دی. پرته له داسې مجبورۍ څخه چه صحیح ادا کوونکی بل څوک موجود نه وي. دد ې تفصیل زما په رساله "الارشاد الی مخرج الضاد" کښې دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ رجب ۸۹ هجری

## د سلام علیکم د ویلو حکم

**سوال**: د یوه جومات امام د السلام علیکم په ځای سلام علیکم وائي، یعنې الف لام نه ادا کوي. د داسې امام په اړه د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: سلام علیکم له دې وجې چه د سنتو خلاف دی مکروه دی. امام باید پوه کړی شي چه د دې تصحیح وکړي.

قال فی الشامیة (قوله هو السنة) قال فی البحر و هو علی وجه الاکمل ان یقول السلام علیکم و رحمة الله مرتین فان قال السلام علیکم او السلام او سلام علیکم او علیکم السلام اجزأه و کان تارکاً للسّنة وصرّح فی السراج بکراهة الاخیر اه قلت تصریحه بذلك لا ینافی کراهة غیره ایضاً مما خالف السنة. (رد المحتار ج۱، ص۴۹۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ رجب ۱۳۸۹ هجری

## د سپي یا ښځې د لمانځه مخې ته په تیریدو سره لمونځ نه ماتیږي

**سوال**: یو مولوي صاحب وائي چه د لمونځ کوونکي مخې ته چه سپی یا خر یا ښځه راشي نو لمونځ فاسدیږي. او په دې باندې د مشکوة حواله ورکوي. د ده دا وینا صحیح ده او که نه؟ که چیرته دا حدیث صحیح وي نو مطلب ئې څه دی؟ او که دا حدیث جعلي، متروک یا ضعیف دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:**

۱.. عن عائشة ﷺ قالت اعدلتمونا بالكلب و الحمار لقد رأيتني مضطجعة على السرير فيجيء النبي ﷺ فيتوسط السرير فيصلّي فاكره ان اسنحه فانسل من قبل رجلي السرير حتى انسل من لحافي. (بخاری ج۱،ص۷۲)

۲.. عن أم سلمة رضی الله تعالى عنها قالت كان يفرش لی حيال مصلّی رسول الله ﷺ كان يصلّی وانی حياله. (طحاوی ج۱،ص۲۲۲)

۳.. عن ميمونة بنت الحارث ﷺ قالت كان فراشی حيال مصلّی النبی ﷺ فربما وقع ثوبه علیّ وانا على فراشی. (بخاری ج۱،ص۷۳)

۴.. عن عبد الله بن عباس رضی الله تعالى عنهما قال اقبلت راكباً على حمار اتان و انا يومئذ قد ناهزت الاحتلام ورسول الله ﷺ يصلّی بالناس بمنى الى غير جدار فمررت بين يدی بعض الصف فنزلت و ارسلت الاتان ترتع ودخلت فی الصف فلم ينكر ذٰلك علیّ احد. (بخاری ج۱،ص۷۱)

۵.. عن الفضل بن عباس رضی الله تعالى عنهما قال زار رسول الله ﷺ عباساً فی بادية لنا ولنا كليبة وحمارة ترعى فصلى النبی ﷺ العصر وهما بين يديه فلم يزجرا ولم يؤخرا. (نسائی ج۱،ص۷۷/ابو داؤد ج۱،ص۷۲)

په لومړيو دريو حديثونو کښې دي چه د حضرت عائشه. حضرت ام سلمه او حضرت ميمونه رضی الله تعالى عنهنّ بسترې به په مختلفو وختونو کښې د نبي کريم ﷺ د مصلیٰ مخې ته وې او ده ﷺ به د هغو خوا ته مخ اړاوه او لمونځ به ئې کاوه.

په څلورم حديث کښې دي چه د لمانځه په حالت کښې د نبي کريم ﷺ له مخې خره تيره شوه ليکن ده ﷺ په دې باندې هيڅ و نه ويل

په پنځم حديث کښې دي چه يو ځل نبي کريم ﷺ لمونځ کاوه او سپی او خره ئې مخې ته ولاړې وې

له دغو حديثونو څخه ثابته شوه چه د ښځې يا سپي يا خره مخې ته په راتلو سره لمونځ نه ماتيږي او په کوم حديث کښې چه د لمانځه د فساد حکم دی هغه منسوخ دی. ځکه چه تر دې حديث پورتني حديثونه وروسته دي. د تاخير دليل ئې دا دی چه لومړني درې حديثونه حضرت عائشه، حضرت امّ سلمه او حضرت ميمونه رضی الله تعالى عنهنّ د نبي کريم ﷺ تر وفات وروسته روايت کوي. له دې څخه ثابته شوه چه د دغو ازواج مطهراتو رضی الله عنهنّ په نزد د ښځې مخته راتلل د لمانځه مفسد نه دی. او له کوم حديث څخه چه د دې ثبوت لاس ته راځي هغه منسوخ دی. باقي پاتې شو د خره او سپي حکم نو د حديث د راوي حضرت ابن عباس رضی الله تعالى عنهما

فتوی دا ده چه د خره او سپي مخې ته راتلل د لمانځه مفسد نه دي. عن عکرمة قال ذکر عند ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما ما یقطع الصلوة قالوا الکلب والحمار فقال ابن عباس الیه یصعد الکلم الطیب و ما یقطع هذا ولکنه یکره. (طحاوی ج۱،ص۲۲۲) پخپله د حدیث د راوي د خپل روایت په خلاف فتوی ورکول د حدیث په نسخ باندې دلیل دی.

د نسخ د قول په ځای دا خواب هم ورکول کیږي چه دلمانځه له قطع څخه مراد دا دی چه دا شیان د توجه پرې کوونکي دي او په خشوع کښې خلل پیدا کوي. د دې لپاره د ښځې خوا ته طبعي میلان وي. او دخره او سپي د شرارت له وجې د هغو خوا ته توجه وي. د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما قول ولکنه یکره څخه هم همدغه ثابتیږي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ رجب ۸۹ هجری

## د عکسونو یا تصویرونو په ځای کښې لمونځ مکروه تحریمي او واجب الاعاده دی

**سوال**: په کوم کور کښې چه تصویر وي په هغه کښې لمونځ مکروه او واجب الاعاده دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په تصویر لرونکي ځای کښې لمونځ مکروه تحریمي دی او بیرته را گرځول ئې واجب دي.

فی مکروهات الصلوة من التنویر ولبس ثوب فیه تماثیل وان یکون فوق رأسه او بین یدیه او بحذائه تمثال واختلف فیما اذا کان خلفه والاظهر الکراهة. (رد المحتار ج۱،ص۶۰۶)

وفی قضاء الفوائت من الشامیة عن البحر ان من ترک واجباً من واجباتها او ارتکب مکروهاً تحریمیاً لزمه وجوباً ان یعید فی الوقت فان خرج اثم ولا یجب جبر النقصان بعده فلو فعل فهو افضل اهـ وبعد اسطر واما کونها واجبة فی الوقت مندوبة بعده کما فهمه فی البحر وتبعه الشارح فلا دلیل علیه وقد نقل الخیر الرملی فی حاشیة البحر عن خط العلامة المقدسی ان ما ذکره فی البحر یجب ان لا یعتمد علیه لاطلاق قولهم کل صلوة اذیت مع الکراهة سبیلها الاعادة اهـ. قلت ای لانه یشمل وجوبها فی الوقت وبعده ای بناءً علی ان الاعادة لا تختص بالوقت وظاهره ما قدمناه عن شرح التحریر ترجیحه وقد علمت ایضاً ترجیح القول بالوجوب فیکون المرجح وجوب الاعادة فی الوقت وبعده ویشیر الیه ما قدمناه عن المیزان من قوله یجب علیه الاعادة وهو اتیان مثل الاول ذاتاً مع صفة الکمال ای کمال ما نقصه منها وذلک یعم وجوب الاتیان بها کاملة فی الوقت وبعده کما مرّ ثم هذا حیث کان النقصان بکراهة تحریمیة لما فی مکروهات الصلوة من فتح القدیر ان الحق التفصیل بین کون

تلك الكراهة كراهة تحريم فتجب الاعادة او تنزيه فتستحب اه. اى تستحب فى الوقت وبعده ايضاً. (رد المحتار ج۱، ص۴۷۹) وفى الهداية فى مكروهات الصلوٰة ويكره ان يكون فوق رأسه فى السقف او بين يديه او بحذائه تصاوير او صورة معلقة (الى قوله) و الصلوٰة جائزة فى جميع ذٰلك لاستجماع شرائطها و تعاد على وجه غير مكروه و هٰذا الحكم فى كلّ صلوٰة اديت مع الكراهة وفى الفتح (قوله و تعاد) صرّح بلفظ الوجوب الشيخ قوام الدين الكاكى فى شرح المنار و لفظ الخبر المذكور اعنى قوله و تعاد يفيده ايضاً على ما عرف و الحق التفصيل بين كون تلك الكراهة كراهة تحريم فتجب الاعادة او تنزيه فتستحب فانّ كراهة التحريم فى رتبة الواجب فان الظنى ان افاد المنع مدلالة قطعيّة اعنى بطريق الحقيقة مجرد عن القرائن الصارفة عنه فالثابت كراهة التحريم و ان افاد الزام الفعل كذٰلك فالوجوب و ان افاد ندب المنع فتنزيهية او الفعل فالمندوب و لذا كان لازمهما معنًى واحدًا وهو ترتب الاثم بترك مقتضاهما. (فتح القدير ج۱، ص۲۹۶)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۳ ربيع الاول ۱۳۹۰ هجرى

## په مغصوبه زمکې باندې لمونځ مکروه تحريمي دی

**سوال:** ديوه غير مسلم (کافر) په زمکې باندې د هغه له اجازې پرته جومات جوړ شوی دی. په داسې جومات کښې لمونځ کول څنګه دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا ځای جومات نه دی. پرته د مالک له اجازې څخه په داسې ځای باندې لمونځ ادا کول مکروه تحريمي دي.

قال العلامة المرغينانى رحمة الله عليه فى مكروهات الصلوٰة من شرح البداية و الصلوٰة جائزة فى جميع ذٰلك لاستجماع شرائطها و تعاد على وجه غير مكروه وهٰذا الحكم فى كل صلوٰة اديت مع الكراهة. (فتح القدير ج۱، ص۲۹۵)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۴ صفر ۱۳۹۱ هجرى

## په لمانځه کښې د نارينه پښه د ښځې له سر سره د لګيدلو حکم

**سوال:** که چيرته د ښځې سر د نارينه له پښو سره د سجدې په وخت کښې ولګيږي او په نارينه يا ښځې يا دواړو کښې شهوت پيدا شي نوآيا د نارينه لمونځ يا دښځې لمونځ فاسديږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دښځې په سر باندې په لازمي توګه ټيکری وي، د نارينه پښه د ښځې په ټيکري باندې لګيږي. کوم چه په هيڅ حال کښې هم د لمانځه فاسدوونکی نه دی. البته که چيرته پرته له حائل څخه مسّ راشي نو د دې دا حکم دی چه که چيرته په نارينه کښې شهوت پيدا

شي نو د نارینه او ښځې دواړو لمونځ فاسدیږي او که چیرته یواځې په ښځې کښې شهوت پیدا شي نو د هیڅ یوه لمونځ هم نه فاسدیږي. د فقهې په کتابونو کښې په دې ځای باندې د بلا حائل قید نه دی تر سترګو شوی لیکن د حرمتِ مصاهرت او د رجعت په ثبوت کښې دا قید ښکاره دی. د دې لپاره دلته به هم د دې قید لحاظ کیږي. **لان العلّة کونه من دواعی الجماع** یو قول دا هم دی چه د نارینه بې له حائل څخه په شهوت سره مسّ هم د ښځې د لمانځه فاسدوونکی نه دی

**قال فی الدّر او مسّها بشهوة او قبلها بدونها فسدت لا لو قبلته ولم یشتهها والفرق ان فی تقبیله معنی الجماع وفی الشامیة عن البحر عن شرح الزاهدی انه لو قبل المصلّیة لا تفسد صلوتها ومثله فی الجوهرة وعلیه فلا فرق.**

**(ردالمحتار ج۱،ص۵۸۸)** **فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۶ شعبان ۱۳۹۲ هجری**

## له ټائي سره لمونځ مکروه تحریمي دی

**سوال**: ټائي او هر هغه شی چه د یهودو او نصاراوو مذهبي نښه وي مسلمان ته ئې اغوستل جائز اي او که نه؟ او چه څوک ئې وتړي نو لمونځ ئې ورسره کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مسلمان لپاره د نورو قومونو مخصوص لباس. طور طریقه غوره کول په هر حالت کښې ناجائز او حرام دي. د نبي کریمﷺ ارشاد دی چه **من تشبّه بقوم فهو منهم** په لمانځه کښې د داسې لباس اغوستل نور هم ډیر بد دی. په داسې لباس کښې لمونځ مکروه تحریمي او واجب الاعاده دی. **فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۳ ربیع الآخر ۱۳۹۲ هجری**

## په حرامو روپو سره اخیستل شوي جامو کښې لمونځ مکروه تحریمي دی

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیان عظام د لاندینی مسئلې په اړه چه زید د یوې دیني مدرسې زده کوونکی دی. هغه د لوی اختر په موقع باندې د مدرسې لپاره د قربانی د څرمنو کار کوي. په دې کښې چه کومه څرمن په رسید سره یا بې له رسیده لاس ته ورځي دی لږ زیات بدلون پکښې کوي او د خپلې اندازې مطابق پخپل جائز مصرف کښې ئې لګوي. مثلاً کالي یا څادر یا بل شی ځان ته پرې اخلي. اوس د پوښتنې وړ خبره دا ده چه له دغو شیانو سره د ده لمونځ به جائز وي او که نه؟ د دې ځای د علماوو په دې کښې اختلاف دی. د صحیح ځواب په راکولو سره ځان د اجرِ عظیم مستحق وګرځوئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې لباس استعمال د زید لپاره حرام دی. او په دې کښې ئې لمونځ د مکروه تحریمي کیدو له وجې واجب الاعاده دی

**فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۹ ذوالحجة ۱۳۹۲ هجری**

## په حرامو روپو سره په اخیستل شوې غالۍ یا قالینې باندې لمونځ مکروه تحریمي دی

**سوال**: له حرام مال لکه سودي کارو بار یا د شرابو کاروبار کوونکی که چیرته جومات ته قالینه یا غالۍ واخلي تر څو چه لمونځ پرې وشي نو آیا په داسې غالۍ باندې لمونځ جائز دی او که نه؟ په داسې حال کښې چه په واپس کولو کښې ئې د فتنې او فساد ویره وي. شرعاً په دې کښې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په داسې قالینې باندې لمونځ مکروه تحریمي او واجب الاعاده دی داسې قالینه دې کوم مسکین ته باید په صدقه کښې ورکړل شي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ صفر ۱۳۹۴ هجری

## د غلا په جامو کښې لمونځ مکروه تحریمي دی

**سوال**: زید یو رومال واخیست. زید ته دا معلومه نه وه چه دا د غلا مال دی. تر اخیستنې څو ورځې وروسته په ښکاره توګه څرګنده شوه چه دا رومال د غلا له مالونو څخه دی. زید په نوموړي رومال کښې تر اوسه یعنې تر معلومیدو وروسته هم لمونځ ورسره کوي. د شریعت له مخې به د زید لمونځ څنګه وي؟ بینوا بالدلیل توجروا عند الجلیل.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د غلا تر معلومیدو وروسته په دې رومال کښې لمونځ مکروه تحریمي دی او دا لمونځ واجب الاعاده دی. فقط والله تعالیٰ اعلم غرۀ محرم ۱۳۹۳ هجری

## په تندي باندې چه د پګړۍ ول یا بله کومه جامه پرته وي په داسې حالت کښې د سجدې حکم

**سوال**: د امام صاحب په تندي باندې پګړۍ دومره کښته راځي چه تندی ئې پکښې پټیږي او د تندي د پټیدو په صورت کښې سجده نه ادا کیږي. د داسې امام د امامت څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د تندي له پټوالي سره سجده ادا کیږي لیکن داسې کول مکروه تنزیهي دي البته که چیرته ئې د پګړۍ هغه برخه په زمکې پورې لګوله کومه چه تر تندي پورته په سر باندې وي او تندی په زمکې باندې و نه لګیږي نو سجده ئې نه ادا کیږي.

قال شارح التنویر یکره تنزیها بکور عمامته الا لعذر وان صح عندنا بشرط کونه علی جبهته کلها او بعضها کما مرّ اما اذا کان الکور علی رأسه فقط وسجد علیه مقتصراً ای ولم تصب الارض جبهته ولا انفه علی القول به

لایصح لعدم السجود علی محله.(رد المحتار ج۱،ص۳۶۸) فقط والله تعالی اعلم ۱۶ شوال ۱۳۹۳ هجری

## د قضاء حاجت د تقاضا په حالت کښې لمونځ مکروه تحریمي دی

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیانِ عظام په دې مسئله کښې چه یو چا ته د لمانځه په وخت کښې د غټې یا وړې متیازې ضرورت پیښ شي. اوس که چیرته هغه خپل حاجت پوره کوي نو د لمانځه د قضاء کیدو اندیښنه ده. یا کم تر کمه جماعت خو خامخا ترې تیریږي. نو آیا دا سړی باید څه وکړي؟ یعنې حاجت دې پوره کړي او که په بیړه سره دې او په بیړه د اوداسه په کولو سره لمونځ ادا کړي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د لمانځه د قضاء کیدو ویره وه نو لمونځ دې ادا کړي او که چیرته د قضاء کیدو ویره نه وي یواځې د جماعت د تیریدو ویره وه نو له قضاء حاجت ځخه دې ځان فارغ کړي او بیا دې لمونځ وکړي. په داسې حالت کښې لمونځ کول مکروه تحریمي دي او که ئې وکړي نو بیرته را گرځول ئې پرې واجب دي. که چیرته د لمانځه تر شروع کولو وروسته قضاء حاجت ورته پیدا شي نو بیا هم په دې حال کښې لمونځ کول مکروه تحریمي دي. په ده باندې واجب دي چه لمونځ دې مات کړي او له قضاء حاجت نه تر فراغت وروسته دې لمونځ وکړي

کما فی مکروهات الصلوٰة من التنویر وصلوته مع مدافعة الاخبثین وفی الشامیة قال فی الخزائن سواء کان بعد شروعه او قبله فان شغله قطعها ان لم یخف فوت الوقت وان اتمها اثم اه.(وبعد سارین) بقی ما اذا خشی فوت الجماعة ولا یجد جماعة غیرها فهل یقطعها کما یقطعها اذا رأی علی ثوبه نجاسة قدر الدرهم لیغسلها اولا کما اذا کانت النجاسة اقل من الدرهم و الصواب الاوّل.(رد المحتار ج۱،ص۶۰۰) قلت و الاقرب انه لا یجب غسل قدر الدرهم من النجاسة کما فی انجاس الشامیة فلا یحل قطع الصلوٰة لغسلها.

فقط والله تعالی اعلم ۲۷ ذیقعده ۱۳۹٤ هجری

## په لمانځه کښې د کوم بزرگ د قبر نقشه یا عکس د مخته راتللو حکم

**سوال**: که چیرته په کاغذ باندې د کوم ولي الله د قبر نقشه وي. دې کاغذ لره مخته کیښودل او لمونځ کول څنگه دي په داسې حال کښې چه نیت ئې ولی الله ته د تقرب «نزدیکت» نه وي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال ابن عابدین رحمه الله علیه قال فی الحلیة وتکره الصلوٰة علیه (ای علی القبر) و الیه لورود النهی عن ذلك.(رد المحتار ج۱،ص۸۳۶) وفی الدر اولغیر ذی روح لا یکره لانها لا تعبد وفی الشامیة

فان قیل عبد الشمس والقمر والکواکب والشجرة الخضراء قلنا عبد عینه لا تمثاله فعلی هذا ینبغی ان یکره استقبال عین هذه الاشیاء معراج ای لانها عین ما عبد بخلاف ما لو صوّرها واستقبل صورتها. (رد المحتار ج۱، ص۶۰۷)

له دغو عبارتونو څخه څرګنده شوه چه اګر که د قبر لمونځ کوونکي ته مخامخ کیدل مکروه دي لیکن د قبر د نقشې مخې ته راتلل تاوان نه رسوي. ځکه چه د قبر د نقشې هیڅوک عبادت نه کوي البته که چیرته په کوم قوم کښې د دې رواج وي نو په دې کښې هم کراهت ثابتیږي

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ ذی الحجة ۱۳۹٤ هجری

## په توشکې (نیالۍ) باندې د سجدې حکم

**سوال**: په شفاخانو کښې د کټونو په سر توشکې (نیالۍ) ډیرې ډبلې یا پریړې وي. آیا په هغو باندې د سجدې په کولو سره خو په لمانځه کښې کومه خرابي نه راځي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته نیالۍ د سر پوره وزن برداشت کړي نو په دې صورت کښې لمونځ صحیح کیږي او که چیرته ئې برداشت نه کړي بلکه دومره پوست وي چه سر کښته پکښې روان وي نو لمونځ نه صحیح کیږي.

قال فی شرح التنویر وان یجد حجم الارض وفی الشامیة تفسیره ان الساجد لو بالغ لا یتسفل رأسه ابلغ من ذلك. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲٤ محرم ۱۳۹۵ هجری

## په لمانځه کښې پرته له عربۍ ژبې په نورو ژبو سره دُعا کول مکروه دي

**سوال**: که چیرته یو چا په لمانځه کښې له عربي ژبې پرته په بلې ژبې باندې دُعا وکړه نو لمونځ ئې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې درې قولونه دي. حرام، مکروه تحریمي، مکروه تنزیهي د کراهت تحریمي قول راجح او اوسط دی. لهذا د داسې لمانځه بیرته را ګرځول واجب دي. قال شارح التنویر رحمة الله علیه ودعاء بالعربیة وحرم بغیرها، نهر. وقال ابن عابدین رحمة الله علیه بعد ذکر الاقوال ولا یبعد ان یکون الدّعاء بالفارسیة مکروها تحریما فی الصلوة وتنزیها خارجها فلیتأمل ولیراجع. (رد المحتار ج۱، ص۴۸۶) د لمانځه نه د باندې په بلې ژبې سره دعاء مکروه تنزیهي دی. دا په هغه صورت کښې چه د زړه په توجه کښې د عربي او غیر عربي دُعاء دواړه سره برابرې وي. که چیرته غیر عربي دُعا د زیاتې توجه سبب وي نو په هغې کښې هیڅ کراهیت نشته بلکه همدا افضله ده.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۱ ذی قعده ۱۳۹۵ هجری

## په لمانځه کښې بې له قصده د چا له خولې د کوم لفظ د راوتلو حکم

**سوال**: يو سړى په لمانځه کښې په حديث النفس باندې مبتلا شو. او په دې حالت کښې ئې له ژبې څخه د اردو، فارسي يا عربي ژبې کوم شعر يا نثر يواځې دوه يا درې لفظونه را ووتل. نو آيا لمونځ ئې وشو او که نه؟ که چيرته چا ته د جماعت په لمانځه کښې دا صورت پيښ شي نو څه به کوي؟ لومړى لمونځ به کالعدم ګڼي او له سره به نيت تړي او پاتې لمونځ به د امام له سلام ګرځولو وروسته پوره کوي او که له امام سره يو ځاى خپل لمونځ پوره کړي او بيا وروسته د فرض پوره لمونځ بې له جماعته يواځې ادا کړي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لمانځه کښې په اردو يا فارسي ژبې سره د دُعاء يا حمد او ثناء الفاظ ويل مکروه تحريمي دي. او دا لمونځ واجب الاعاده دى. له عربي دُعاء يا حمد او ثناء له بې ځايه الفاظو څخه بايد احتراز وشي. ليکن د نه احتراز په صورت کښې د لمانځه اعاده واجبه نه ده. له دعاء او حمد او ثناء څخه پرته کوم بل ټکى ويل کوم چه د کلام الناس (د خلکو د خبرو) له جملې څخه وي د لمانځه مفسد دى که په هرې ژبې سره هم وي.

د لمانځه د فساد په صورت کښې دې بيرته له سره له تکبير تحريمه څخه لمونځ شروع کړي او تير شوي رکعتونه دې د امام له فراغته وروسته ادا کړي. البته د کراهت تحريمي په صورت کښې دې دا لمونځ له امام سره پوره کړي بيا دې وروسته بيرته را وګرځوي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربيع الآخر ۱۳۹۹ هجرى

## په انفرادي (يواځې) لمانځه کښې هم د ښځې محاذات مکروه دى

**سوال**: که چيرته په جماعت کښې ښځه د نارينه بالکل مخې ته ښي. او کيني خوا ته لګيدلې و نه دريږي بلکه د يوه نارينه ځاى خالي وي هلته ودريږي نو آيا د نارينه لمونځ کيږي؟ بې له جماعته که چيرته يوه ښځه او نارينه په يوې کوټې کښې فرض لمونځونه کوي نو آيا بيا به هم د ښځې او نارينه تر منځ به د يوه سړي غوندې ځاى خالي پريښودل کيږي؟ که چيرته نارينه نفل لمونځ کوي او ښځه هم نفل لمونځ کوي نو محرم نارينه او ښځه بالکل څنګ په څنګ دريدلى شي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ ئې کيږي ليکن د ښځې او نارينه متصل (سره لګيدلي) دريدل مکروه دى.

قال في الدر فمحاذاة المصلّية لمصلّ ليس في صلوتها مكروهة لا مفسدة فتح. (ردالمحتار ج۱، ص۵۲۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ شعبان ۱۳۹۳ هجرى

## د بناء دصحت شرائط

**سوال** : که چیرته یو څوک د ماښام یا کوم بل وخت لمونځ کوي. دوه یا درې رکعتونه ئې کړي وي چه اودس ئې مات شي او د دوباره اوداسه لپاره لاړ شي نو پوره لمونځ به کوي او که دوه یا یو رکعت کوم چه ترې تیر شوي وي هغه به ادا کوي؟ په کومو کومو صورتونو کښې بناء جائزه ده؟ په تفصیل سره ئې بیان کړئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د بناء د جواز لپاره دیارلس (۱۳) شرطونه دي:

۱ - په بې اودسي یا د بې اودسي په سبب کښې د انسان کوم دخل نه وي. که چیرته ئې په قصد سره خپل اودس مات کړي یا چا زخمي کړ او وینه ئې و ایستله نو بناء نه شي کولی. ځکه چه په لومړي صورت کښې پخپله حدث او په دویم صورت کښې د حدث سبب یعنې زخم د انسان له خوا څخه دی. په توخي سره د باد وتل د بناء مانع دی. او د پرنجي له وجې د بادو وتل د بناء لپاره مانع کیدل مختلف فیه دی.

۲ - حدث د لمونځ کوونکي له بدن څخه وي. که چیرته له خارج څخه په ده باندې کوم نجاست ولوېږي نو بناء ئې صحیح نه ده.

۳ - حدث د غسل موجب نه دي. که چیرته په لمانځه کښې خوب ورشي او احتلام شي نو بناء ئې صحیح نه ده.

۴ - حدث نادر الوجود نه وي لکه قهقهه یا بیهوشي.

۵ - له حدث سره کوم رکن نه ادا کول. که چیرته د سجدې په حالت کښې بې اودسه شي نو او د سجدې د پوره کولو په نیت سره سر پورته کړي. یا اوداسه ته په تلو تلو کښې په قرائت کښې مشغوله پاتې شي نو بناء نه شي کولی.

۶ - د تګ په حالت کښې کوم رکن نه ادا کول. لکه تر اوداسه وروسته په را ګرځیدو کښې قرائت کول. البته په تګ او راتګ کښې تسبیح ویل د بناء مانع نه دی.

۷ - د لمانځه سره منافي (ټکر) کوم عمل نه کول. مثلاً تر قدرتي بې اودسي وروسته په قصد سره ځان بې اودسه کول یا خبرې کول یا له کوهي څخه اوبو را ایستل او داسې نور.

۸ - بې ضرورته کار نه کول. مثلاً د اوداسه لپاره نژدې ځای پرېښودل او تر دوه صفونو څخه زیات لرې تلل. البته که چیرته په نژدې ځای کښې ډیره ګڼه ګوڼه وه یا د نسیان له وجې لرې لاړ شي نو بیا پروا نه لري.

۹ - بې له ضرورته د درې ځله سبحان ربی الاعلی ویلو په اندازه ځنډ نه کول. د ګڼه ګوڼي له وجې یا له زخم او داسې نورو څخه د وینې د نه بندیدلو له وجې ځنډ تاوان نه کوي.

د اوداسه سنتونه دې هم په ځای کړي. که چیرته د اوداسه په یواځې ځلورو فرائضو اکتفاء

وکړي نو بناء جائزه نه ده.

۱۰ - د مخکښيني حدث نه ظاهريدل. مثلاً په موزو باندې د مسح د مودې پای ته رسيدل، د تيمم کوونکي اوبو ليدل، د مستحاضه د وخت خارجيدل.

۱۱ - د ترتيب خاوند ته د قضائي لمانځه نه ور په زړه کيدل. البته که چيرته د ور په زړه کيدو په صورت کښې ئې قضائي لمونځ و نه کړ بلکه په وختي لمانځه ئې بناء وکړه، بيا نور څلور يعنې ټول شپږ لمونځونه ئې قضاء شول نو په کوم لمانځه ئې چه بناء کړې وې هغه ئې صحيح کيږي.

۱۲ - که چيرته مقتدي يا امام بې اودسه شي او هغه خليفه ونيو او له اوداسه څخه تر فارغيدو پورې جماعت پای ته و نه رسيد او د اوداسه ځای په داسې ځای کښې وي چه له هغه ځايه اقتداء صحيح نه وي نو دا شرط دی چه دا امام يا مقتدي داسې ځای ته به راځي او بناء به کوي له کومه ځايه چه اقتداء صحيح کيږي. که چيرته د اوداسه ځای د اقتداء وړ وي، يا تر اوداسه مخکښې جماعت پای ته ورسيږي، يا منفرد بې اودسه شي نو په دغو دريواړو صورتونو کښې دوی ته اختيار دی چه د اوداسه په ځای کښې بناء کوي او که خپل مخکښيني ځای ته راځي. د اوداسه په ځای کښې بناء کول افضل دي.

۱۳ - که چيرته امام بې اودسه شي نو د داسې سړي خليفه نه جوړول ه د امامت صلاحيت و نه لري. دا هم د لمانځه په منافيو کښې داخل دی. چه بيان ئې په اووم نمبر شماره کښې تير شو. ليکن د خفاء له وجې دا مستقل ذکر شو. په حقيقت کښې شرائط دولس دي.

په مذکوره شرائطو سره بناء اگر که جائزه ده ليکن استيناف (له سره لمونځ کول) بهتر دی. البته که چيرته وخت تنگ وي نو بناء افضله ده بلکه که زيات تنگ وي نو بناء واجبه ده. د استيناف لپاره ضروري ده چه لومړنی لمونځ په سلام يا کوم بل منافي کار سره ختم کړي. بيا دې له سره نوی لمونځ شروع کړي. بې له سلام اړولو يا د لمانځه له کوم منافي کار کولو څخه استيناف صحيح نه دی.

فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۹ شعبان ۱۳۸۸ هجری

## د ويده سړې خوا ته د مخ په اړولو سره د لمونځ کولو حکم

**سوال**: يو سړی ويده دی، د هغه مخې ته پرته له ستړې درولو لمونځ جائز دی او که نه؟ که چيرته همداسې پروت وي او ويده نه وي نو بيا ئې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دواړو صورتونو کښې لمونځ جائز دی. البته که چيرته د لمانځه خوا ته په توجه کښې د خلل پيدا کيدو ويره وه نو بيا مکروه دی.

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۹ رمضان ۱۳۸۸ هجری

## په لمانځه کښې د ضرورت له وجې د کمیس صحیح کول مکروه نه دي

**سوال**: یو امام صاحب چه کله هم له سجدې څخه را ولاړیږي نو په یوه لاس یا دواړو لاسونو سره د شا له خوا لمن را نیسي او صحیح کوي ئې. آیا داسې کول صحیح دي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د کمیس د صحیح کولو ضرورت په عمومي توګه له دوو وجهو څخه پیښیږي. یو دا چه لمن له کمربند سره پورته بنده شي کوم چه د ځینو طبعیتونو لپاره د تشویش او په خشوع کښې د خلل سبب ګرځي. دویمه وجه دا وي چه د ځینو خلکو لمن د دوو کوناټیو تر منځ ننوځي او بنده شي. د کوم داسې ضرورت له وجې د لمن را نیول او صحیح کولو کښې کوم کراهت نشته. البته د دې لپاره یو لاس کافي دی. د دویم لاس استعمالول مکروه دی. او بې له ضرورته د یوه لاس استعمالول هم مکروه تحریمي دي. او د داسې لمانځه اعاده واجبه ده.

**قال فی التنویر و کره کفه و عبثه به و فی الشامیة (قوله و عبثه) هو فعل لغرض غیر صحیح ال فی النهایة و حاصله ان کل عمل هو مفید للمصلی فلا بأس به اصله ما روی النبی ﷺ عرق فی صلوته فسلت العرق عن جبینه ای مسحه لانه کان یؤذیه فکان مفیدا و فی زمن الصیف کان اذا قام من السجود نفض ثوبه یمنة او یسرة لانه کان مفیدا کی لا تبقی صورة فاما ما لیس بمفید فهو العبث اه. و قوله کی لا تبقی صورة یعنی حکایة صورة الالیة کما فی الحواشی السعدیة.** (ردالمحتار ج۱، ص۵۹۹) فقط والله تعالی اعلم ۱۶ جمادی الأخر ۱۳۹۹ هجری

## په لمانځه کښې له اوږې څخه د څادر د لویدلو حکم

**سوال**: د لمانځه په حالت کښې که چیرته څادر یا ټیکری له کینې اوږې څخه ولویږي نو آیا په ښي لاس سره ئې بیرته خپلې کینې اوږې باندې اچولی شي او که به ئې پخپل حالت پریږدي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: باید بیرته اوږې ته واچول شي. په لمانځه کښې د څادر یا جامو زوړندیدل د تشویش باعث دی. او د تشویش اچوونکي شي د لرې کولو لپاره یو ځل یا دوه ځلې لاس ښورول جائز دي. کحرکة الید لسلت العرق و تسویة الحصا للسجود. همدا رنګه د څادر زوړندوالی په سدل کښې د داخلیدو له وجې مکروه دی. او د مکروه اصلاح په عملِ قلیل سره مندوب دی. **کما قالوا فی** ارخاء الکمین المشمرتین. فقط والله تعالی اعلم. ۲۷ جمادی الاولی ۹۸ هجری

## په لمانځه کښې د پرتوګانې د سمولو حکم

**سوال**: که چیرته په لمانځه کښې د پرتوګانې د خلاصیدلو اندیښنه وي نو آیا په دواړو لاسونو سره ئې تړلی او تنګولی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : لومړی دې په یوه لاس سره یو طرف تنگ کړي. بیا دې د درې ځله سبحان ربی الاعلی د ویلو په اندازه تر توقف کولو وروسته دویم طرف په بل لاس صحیح کړي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ جمادی الاولی ۱۳۹۸ هجری

## په جومات کښې له مزریو جوړې شوې خولۍ کیښودل او په هغو کښې د لمونځ کولو حکم

**سوال** : څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیان عظام د دې مسئلې په باره کښې چه اکثره خلک د ثواب په نیت سره په جومات کښې د مزري توپۍ د لمونځ کوونکو د استعمال لپاره ږدي چه سر تور سر خلک ئې د لمانځه په وخت کښې په سروي. آیا دا کار شرعاً جائز دی او که نه؟ که چیرته جائز نه وي نو د مهربانۍ له مخې وجوه ئې ولیکئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مزریو خولۍ په جومات کښې کیښودل جائز نه دي. او له هغو سره لمونځ کول مکروه دي. د دې وجوهات په لاندې ډول دي:

۱ - داسې خولۍ په جومات کښې کیښودل د جومات د ادب او احترام خلاف دی. بالخصوص چه کله ئې تارونه را ووځي او په جومات کښې خواره شي. او په هغو تپلې خیره تر سترگو کیږي او د خولو او خیرو بدبوئي ترې راځي. آیا یو څوک دې ته تیار دی چه داسې خولۍ د خپل کور ښائست جوړ کړي؟ که چیرته نه دی نو د خدای د کور لپاره څنگه جائز گڼل کیدلی شي.

۲ - د دې ډول ضروریاتو په جومات کښې په کیښودلو سره د عوامو ذهن ته دا ورځي چه هغوی جوماتونه د عبادت گاه په ځای د خیراتي او رفاهي اداري گڼي. او دا د جومات د مقصد په خلاف دی. او په دې کښې د جومات توهین دی.

۳ - د کوم لباس په اغوستو سره چه انسان کوم مجلس ته په ورتگ شرمیږي نو په داسې لباس کښې لمونځ کول مکروه تنزیهي دی او په دې باندې دوام او همیشوالی مکروه تحریمي ته نژدې دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳۰ جمادی الاٰخر ۱۳۹۸ هجری

## د باران له وجې د لمانځه د ماتولو حکم

**سوال** : د جومات په صحن کښې مو د باندې د جماعت لمونځ ادا کاوه چه ډیر تیز باران شروع شو نو آیا د لمانځه په ماتولو سره د ننه په جومات کښې د لمانځه ادا کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د باران له وجې د لمانځه ماتول جائز نه دي. البته له باران څخه که چیرته د کوم مرض ویره وي. یا د لمدوالي له وجې د درې نیمو ماشو (۳/۴۰۲ گرامه) سپینو زرو د

قیمت په برابر مالي نقصان وو نو داسې سړی لمونځ ماتولی شي.

فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۲۶ رجب ۱۳۹۸ھ هجری

## په لمانځه کښې د غاړې د تازه کولو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دې علماء کرام په دې مسئله کښې چه تنحنح بعني د غاړې تازه کول د لمانځه مفسد دی او که نه؟ که چیرته نه دی نو آیا مطلقاً مفسد نه دی او که څه تفصیل پکښې شته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د طبعي ضرورت له وجې بې له اختیاره توخی راشي یا د کوم صحیح مقصد له وجې غاړې تازه کړي مثلاً د قرائت لپاره د غږ صافول، یا امام ته تنبیه ورکول. یا چا ته د دې اطلاع ورکول مقصود وي چه زه په لمانځه باندې یم نو لمونځ نه فاسدیږي.

قال العلاء رحمه الله تعالیٰ فی مفسدات الصلوٰة والتنحنح بحرفین بلا عذر اما به بأن نشأ من طبعه فلا او بلا غرض صحیح فلو لتحسین صوته او لیهتدی امامه او للاعلام انه فی الصلوٰة فلا فساد علی الصحیح. و قال ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ (قوله بحرفین) یعلم حکم الزائد علیهما بالاولی لکن یوهم ان الزائد لو کان بعذر یفسد و یخالفه ظاهر ما فی النهایة عن المحیط من انه ان لم یکن مدفوعاً الیه بل لاصلاح الحلق لیتمکن من القراءة ان ظهر له حروف نحو قوله اُح اُح و تکلّف لذلک کان الفقیه اسمٰعیل الزاهد یقول یقطع الصلوٰة عندهما لانها حروف مهجاة اداء والصحیح خلافه کما یأتی (قوله بأن نشأ من طبعه) ای بأن کان مدفوعاً الیه. (رد المحتار ج۱، ص۵۸۹)

فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۱۰ محرم ۱۳۹۹ھ هجری

## په سهو سره سلام ګرځول او د بل لمانځه نیت تړل

**سوال**: زید مسبوق له امام سره یو ځای سلام واړاوه په داسې حال کښې چه زید درې رکعتونه کړي وو. تر دعاء وروسته زید سنتونه شروع کړل. د سنتو تر تکبیر تحریمه ور یاد شو چه ما له امام سره په دریو رکعتونو باندې سلام اړولی دی زید یو بل رکعت ادا کړ او سجدهٔ سهو ئې وکړه نو آیا لمونځ ئې صحیح شو او که بیرته را ګرځول ئې پرې واجب دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سنتو د تکبیر تحریمه په ویلو سره د فرضو تحریمه باطله شوه. د دې لپاره دا لمونځ صحیح نه شو. بیرته را ګرځول ئې فرض دي.

قال فی العلائیة و لا تبطل بنیة القطع ما لم یکبر بنیة مغایرة. و قال ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ و کذا بنیة الانتقال الی غیرها ط (قوله ما لم یکبر بنیة مغایرة) ان یکبر ناویاً بالنفل بعد شروع الفرض و عکسه او الفائتة

بعد الوقتیة وعکسه او الاقتداء بعد الانفراد وعکسه واما اذا کبر بنیة موافقة کأن نوی الظهر بعد رکعة الظهر من غیر تلفظ بالنیة فان النیة الاولیٰ لا تبطل ویبنی علیها ولو بنی علی الثانیة فسدت الصلوة. (رد المحتار ج۱، ص۴۱۰) وفی العلائیة ویفسدها انتقاله من صلوة الی مغایرتها ولو من وجه حتی لو کان منفرداً فکبر ینوی الاقتداء او عکسه صار مستأنفاً بخلاف نیة الظهر بعد رکعة الظهر الا اذا تلفظ بالنیة فیصیر مستأنفاً مطلقاً، و قال ابن عابدین رحمة الله علیه (قوله ویفسدها انتقاله الخ) ای بان ینوی بقلبه مع التکبیرة الانتقال المذکور قال فی النهر بان صلّی رکعة من الظهر مثلاً ثم افتتح العصر او التطوع بتکبیرة فان کان صاحب الترتیب کان شارعاً فی التطوع عندهما، خلافاً لمحمد او لم یکن بان سقط للضیق او للکثرة صح شروعه فی العصر لانه نوی تحصیل ما لیس بحاصل فخرج عن الاول فمناط الخروج عن الاوّل صحة الشروع فی المغایر ولو من وجه فلذا لو کان منفرداً فکبّر ینوی الاقتداء او عکسه او امامة النساء فسد الاوّل وکان شارعاً فی الثانی وکذا لو نوی نفلاً او واجباً او شرع فی جنازة فجیٔ باخری فکبر ینویهما او الثانیة یصیر مستأنفاً علی الثانیة کذا فی فتح القدیر اھ. (قوله او عکسه) بالنصب عطفاً علی منفرداً ح (قوله بخلاف نیة الظهر الخ) ای نیته مع التکبیرة کما مر قال فی البحر یعنی لو صلّی رکعة من الظهر فکبر ینوی الاستئناف للظهر بعینها لا یفسد ما اداه ویحتسب بتلك الرکعة حتی لو صلّی ثلاث رکعات بعدها ولم یقعد فی اٰخرها حتی صلّی رابعة فسدت الصلوة ولغت النیة الثانیة. (قوله مطلقاً) ای سواء انتقل الی المغایرة او المتحدة لان التلفظ بالنیة کلام مفسد للصلوة الاولیٰ فصح الشروع الثانی. (رد المحتار ج۱، ص۵۸۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ صفر ۱۳۹۹ هجری

## له لمانځه خخه تر فارغیدو وروسته په اوداسه کښې د شک حکم

**سوال**: که چیرته یوه سړي ته تر لمانځه وروسته شک ور ولویږي چه زما اودس وو او که نه وو نودداسې سړي په حق کښې څه حکم دی؟ لمونځ ئې شوی دی او که بیابه ئې کرځوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې اړه کومه صریحه جزئیه مې له نظره نه ده تیره شوې. د الیقین لا یزول الا بالیقین مقتضیٰ خو دا ده چه اودس ئې نشته څکه ئې لمونځ صحیح نه دی. لیکن له لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته دا د وقوع الشك فی ارکان الصلوة بعد الفراغ غوندې شو کوم چه معتبر نه دی. له دې څخه څرګنده شوه چه دا لمونځ صحیح دی. سره له دې بیرته را ګرځول ئې احوط دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ جمادی الآخر ۱۳۹۹ هجری

## د سرې په ورکړل شوي وښو باندې د لمانځه حکم

**سوال** زما د کلي د جومات په صحن کښې کوم چه له جومات سره لګیدلی دی. د جومات موجوده منتظمینو د پخولو په خای د انسان یا حیواناتو د مرادریو سره اچوه او وابنه پرې را شنه کوي او ظاهره خبره ده چه د وښو د تازه ساتلو لپاره هر وخت اوبو ورکوي. آیا دا خای د لمانځه لپاره صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې وښو باندې د دوو صورتونو له مخې لمونځ صحیح کیدلی شي یو دا چه سره با لکل خاوره وګرځي او د څانته وجود ئې با لکل په نظر را نه شي دویم صورت دا چه دا وابنه دومره ګڼ او لوی لوی وي تر سرې پورې د لمونځ کوونکي د لمانځه کوم غړی یا اندام و نه رسیږي په سرې سره نجسې شوې اوبو چه کله په وښو لګیدلې وي هغه اوبو چه کله له وښو څخه وچې شي نو وابنه پاکیږي فقط والله تعالی اعلم ۱۵ شوال ۱۳۹۹ھجری

## د باد بندولو په صورت کښې د لمانځه حکم

**سوال** په ګیډه کښې د خرابی له وجې که چیرته د بادو په ذریعې سره بار بار اودس مات شي نو د دې بادو د بندولو په صورت کښې څوک د فرضو یا تراویحو لمونځ ورکولی شي؟ او آیا په همدې حالت کښې خپل لمونځ کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته په بل وخت کښې په اطمینان سره د لمونځ کولو موقع تر لاسه کیږي نو د بادو په بندولو سره لمونځ کول مکروه تحریمي دي. که چیرته منفرداً په لنډه توګه په اطمینان سره لمونځ کولی شي نو بیا دې له جماعت سره دې نه کوي.

فقط والله تعالی اعلم ۸ رمضان المبارک ۱٤۰۰ھ

## چه پاکې جامې نه وي نو په ناپاکو جامو کښې دې لمونځ وکړي

**سوال** د زید جامې ناپاکې شوې او د لمانځه وخت راغی. او اوبو نشته چه پرې ئې مینځي آیا لمونځ دې قضاء کړي او که له ناپاکو جامو سره دې لمونځ وکړي شرعاً د دې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په اوس وخت کښې دې لمونځ په ناپاکو جامو کښې ادا کړي لیکن تردې وروسته که چیرته د بل لمانځه د وخت په منځ کښې د جامو د لاس ته راتلو غالب ګومان وي نو دا وخت لمونځ ادا کول فرض نه دي سره له دې بهتره دا ده چه اوس دې هم لمونځ وکړي او وروسته دې قضائي هم راوړي کما قالوا في العاجز عن القیام ویغلب علی ظنه القدرة بعده.

فقط والله تعالی اعلم ۲۱ ذیقعده ۱٤۰۰ھ

## په لمانځه کښې په پرنجي باندې د الحمد لله ویلو حکم

**سوال** : یو چا ته په لمانځه کښې پرنجی وراغی او هغه په قصد سره یا بې له قصده الحمد لله ووایه نو آیا دا جائز دی او که مکروه او که لمونځ پرې فاسدیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : تر پرنجیدو وروسته په الحمد لله ویلو سره لمونځ نه فاسدیږي لیکن قصداً دې باید سرې نه وائي.

قال فی الہدایۃ ومن عطس فقال لہ اٰخر یرحمك اللہ وهو فی الصلوۃ فسدت صلوته. وفی الشرح لانه یجری فی مخاطبات الناس فکان من کلامهم بخلاف ما اذا قال العاطس او السامع الحمد للہ علی ما قالوا لانه لم یتعارف جواباً.(شرح الہدایۃ ج۱،ص۱۳۶) فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۲۵ صفر ۱۴۰۱ھ

## د چا په پرنجیدو سره په لمانځه کښې د یرحمک الله د ویلو حکم

**سوال** : زید لمونځ کاوه او د کوم لمونځ کوونکي یا نه لمونځ کوونکي پرنجی ئې واورید او یرحمک الله ئې په قصد سره یا بې له قصده وویل. پرنجیدونکي سړي که الحمد لله ویلي وي یا ئې نه وي ویلي. په دغو ټولو صورتونو کښې څه حکم دی؟ آیا یرحمک الله ویل جائز دي او که مکروه او که مفسد؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دغو ټولو صورتونو کښې د یرحمک الله د ویونکي لمونځ فاسدیږي.

قال العلائی رحمہ اللہ علیہ فی مفسدات الصلوۃ و تشمیت عاطس بیرحمك اللہ و لو من العاطس لنفسه لا. (رد المحتار ج۱،ص۵۸۰) فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۲۵ صفر ۱۴۰۱ھ

# د زلة القاري مسائل

## د دوه رکعتونو د قرائت تر منځ د یوه واړه سورت پرېښودل مکروه دي

**سوال**: په لومړي رکعت کښې چه کوم سورت ویل شوی وي تر هغه وروسته په دویم رکعت کښې به سړی متصل سورت وائي او که یو یا دوه سورتونه په منځ کښې پرېښودلی هم شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته په لومړي رکعت کښې تر ویل شوي سورت وروسته یې سورت دومره اوږد وي چه څومره اوږدوالی د دویم رکعت لپاره مکروه دی. نو د هغه پرېښودل بې له کراهته جائز دی. اوکه نه نو د یوه سورت په منځ کښې پرېښودل مکروه دي. د دوه یا زیاتو سورتونو په پرېښودلو کښې کوم کراهت نشته.

قال شارح التنویر رحمه الله ویکره الفصل بسورة قصیرة وقال ابن عابدین رحمه الله اما بسورة طویلة بحیث یلزم منه اطالة الرکعة الثانیة اطالة کثیرة فلا یکره شرح المنیة کما اذا کانت سورتان قصیرتان. (ردالمحتار ج۱،ص۵۱۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۴ رمضان ۱۳۹۸ھ

## په لومړي رکعت کښې د سورة الناس ویل

**سوال**: یوه سړي په غلطۍ سره په لومړي رکعت کښې سورۀ ناس ووایه نو اوس به په دویم رکعت کښې څه وائي؟ له دې څخه د مخکښیني سورت ویل خو مکروه دي او د یوه سورت تکرار هم مکروه دی. په داسې مجبورۍ کښې به سړی څه کوي؟ په دویم رکعت کښې به سورۀ فلق وائي او که په دې کښې به هم سورۀ ناس وائي؟ په دې باره کښې شرعي حکم صادر کړئ. بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دویم رکعت کښې به هم سورۀ ناس وائي. د سهو په حالت کښې د سورت تکرار مکروه نه دی.

قال في الفتح قرأ في الاولى بقل اعوذ برب الناس يقرأ في الثانية هذه السورة ايضاً. (فتح القدير ج۱،ص۳۳۳) و في شرح التنوير لا بأس ان يقرأ سورة ويعيدها في الثانية، وفي الشامية افاد انه يكره تنزيها وعليه يحمل جزم القنية بالكراهة ويحمل فعله عليه الصلوة والسلام لذلك على بيان الجواز. هذا اذا لم يضطر فان اضطر بان قرأ في الاولى قل اعوذ برب الناس اعادها في الثانية ان لم يختم نهر لان التكرار اهون من القراءة منكوساً بزازية و اما لو ختم القرآن في ركعة فيأتي قريباً انه يقرأ من البقرة. (ردالمحتار ج۱،ص۵۱۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ شعبان ۱۳۷۴ھ

## په لومړي رکعت کښې د سورهٔ الناس شروع کولو او بيرته پريښودل ئې مکروه دي

**سوال** : امام په غلطۍ سره په لومړي رکعت کښې سورهٔ ناس شروع کړ ليکن فوراً ئې بيرته پريښود او سورهٔ فلق ئې ووايه. آيا په دې صورت کښې کوم کراهت شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د سورهٔ ناس تر شروع کولو وروسته ئې بيرته پريښودل مکروه دي. سورهٔ ناس دې پوره کړي او په دويم رکعت کښې به هم بايد همدغه سورت ووائي

قال فى الفتح ولو قصد سورة و افتتح غيرها فاراد تركها الى المقصود كره ذٰلك ولو كان حرفاً واحداً. (فتح القدير ج۱،ص۲۴۳)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۵ شعبان ۱۳۷٤ھ

## په دويم رکعت کښې د مخکښيني سورت تر شروع کولو وروسته پريښودل مکروه دي

**سوال** : امام صاحب په لومړي رکعت کښې سورهٔ تبت ووايه او په دويم کښې ئې اذا جآء سورت شروع کړ ليکن يو آيت ئې لا نه وو پوره کړی چه بيرته ئې پريښود او سورهٔ اخلاص ئې ووايه. د دې شرعي څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دويم رکعت کښې ئې بايد هم هغه سورهٔ اذا جآء پوره کړی وای. د هغه بيرته پريښودل او سورهٔ اخلاص شروع کول مکروه دي.

فى شرح التنوير عن القنية قرأ فى الاولىٰ الكافرون وفى الثانية الم تر او تبّت ثم ذكر يتم وقيل يقطع ويبدأ و فى الشامية افادان التنكيس او الفصل بالقصيرة انما يكره اذا كان عن قصد فلو سهوا فلا كما فى شرح المنية و اذا انتفت الكراهة فاعراضه عن التى شرع فيها لا ينبغى و فى الخلاصة افتتح سورة و قصد سورة اخرىٰ فلما قرأ اٰية او اٰيتين اراد ان يترك تلك السورة و يفتتح التى ارادها يكره اه. و فى الفتح و لو كان اى المقروء حرفاً واحداً. (ردالمحتار ج۱،ص۵۱۰)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۵ شعبان ۱۳۷٤ھ

## له يوه سورت څخه بل سورت ته د تللو حکم

**سوال** د يوه سورت پريښودل او د بل سورت ته په تلو سره لمونځ صحيح کيږي او که نه؟ او په دې کښې فرض او نفل څه فرق سره لري او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : لمونځ کيږي ليکن په قصد سره داسې کول مکروه دي. د فرائضو

او نوافلو په دې کښې یو حکم دی.

قال ابن الهمام رحمه الله قال فی الخلاصة هذا کله فی الفرائض اما فی النوافل فلا یکره، وعندی فی الکلیة نظر فانه ﷺ نهی بلالاً عن الانتقال من سورة الی سورة و قال له اذا ابتدأت بسورة فاتمها علی نحوها حین سمعه ینتقل من سورة الی سورة فی التهجد. (فتح القدیر ج۱، ص۳۳۳) فقط والله تعالی اعلم ۲۵ شعبان ۱۳۷٤ هجری

## په لمانځه کښې د ترتیب په خلاف قرائت مکروه دی

**سوال**: په لمانځه کښې د پای له خوا د قرآن مجید په ویلو سره سجدهٔ سهو لازمیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: سجدهٔ سهو نه لازمیږي. البته په قصد سره داسې کول مکروه دي. سهواً مکروه نه دي. که چیرته په یوه رکعت کښې په قصد سره داسې وکړي نو په فرضو او نفلو دواړو کښې مکروه دي. او که چیرته په دویم رکعت کښې مخکښنیې سورت ووائي نو بیا یواځې په فرضو کښې مکروه دی او په نفلو کښې نه دی.

قال فی الهندیة و اذا قرأ فی رکعة سورة و فی الرکعة الاخری او فی تلک الرکعة سورة فوق تلک السورة یکره و کذا اذا قرأ فی رکعة اٰیة ثم قرأ فی الرکعة الاخری او فی تلک الرکعة اٰیة اخری فوق تلک الاٰیة (الی قوله) هذا کله فی الفرائض اما فی السنن فلا یکره. (عالمگیریة ج۱، ص۴۰) و فی الشامیة ان التنکیس او الفصل بالقصیرة انما یکره اذا کان عن قصد فلو سهوا فلا و ایضاً فیها تحت (قوله ولا یکره فی النفل شیء من ذلك) و اعترض ح ایضاً بانهم نصوا بان القراءة علی الترتیب من واجبات القراءة فلو عکسهٔ خارج الصلوة یکره فکیف لا یکره فی النفل تأمل و اجاب ط بان النفل لاتساع بابه نزلت کل رکعة منه فعلا مستقلاً فیکون کما لو قرأ انسان سورة ثم سکت ثم قرأ ما فوقها فلا کراهة فیه. (ردالمحتار ج۱، ص۵۱۱) فقط والله تعالی اعلم ۲۵ شعبان ۱۳۷٤ ه

## قرآنکریم ته په کتو سره قرائت د لمانځه فاسدونکې دې

**سوال**: په لمانځه کښې چه د قرآنکریم له مخې په قرائت کولو سره لمونځ فاسدیږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه پاڼې ئې وا نهړوي. که چیرته فاسدیږي نو وجه به ئې څه وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لمانځه کښې د قرآنکریم له مخې په تلاوت کولو سره لمونځ فاسدیږي اگر که پاڼې ئې وا نه ړوي. ځکه چه دا له خارج (له لمانځه څخه د باندې) څخه تلقن دی کوم چه مفسد دی. لکه څرنگه چه له خارج سړي څخه د فتحې اخیستل د لمانځه مفسد دی.

فی مفسدات الصلوة من شرح التنویر و قراءته من مصحف ای ما فیه قراٰن مطلقاً لانه تعلم اه و قال ابن

عابدین رحمة الله علیه انه تلقن من المصحف فصار کما اذا تلقن من غیره. (رد المحتار ج۱، ص۵۸۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ جمادی الآخره ۱۳۸۷ ھ

## په قرائت کښې د فاحشې غلطۍ او بیرته ئې د صحیح کولو حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک په غلطۍ سره ووائي لیکن بیا ئې فوراً بیرته صحیح کړي نو آیا ئې لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! لمونځ ئې کیږي

فی الهندیة: ذکر فی الفوائد لو قرأ فی الصلوٰة بخطأ فاحش ثم رجع و قرأ صحیحاً قال عندی صلوته جائزة.

(عالمگیریة ج۱، ص۸۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ شعبان ۱۳۸۷ ھ

## د سورت په مینځ کښې د یوه ایت د پاتې کیدلو حکم

**سوال**: امام صاحب د ماسخوتن د لمانځه په لومړي رکعت کښې لَمْ یَكُنِ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَالْمُشْرِكِیْنَ مُنْفَكِّیْنَ حَتّٰی تَاْتِیَهُمُ الْبَیِّنَةُ ووایه له رَسُوْلٌ مِّنَ اللّٰهِ یَتْلُوْا څخه ئې تر قَیِّمَة پورې و نه وایه او له وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِیْنَ څخه ئې د سورت تر آخره پورې نور ټول ووایه تر لمانځه وروسته یوه ښاغلي ورته وویل چه لمونځ دې بیرته را وګرځول شي ځکه چه په پیل کښې د درې آیتونو په اندازه قرائت نه دی شوی امام صاحب وویل چه ما یواځې یو آیت پریښی دی پاتې سورت مې ټول ووایه او لمونځ کیږي په دې باره کښې څه فتوی ده چه آیا لمونځ به بیرته را ګرځول کیږي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ شوی دی د بیرته را ګرځولو ضرورت ئې نشته بې له عذره داسې کول مکروه دي

قال فی الشامیة انتقل فی الرکعة الواحدة من آیة الی آیة یکره و ان کان بینهما آیات بلا ضرورة فان سها ثم تذکر یعود مراعاة الترتیب الآیات. شرح المنیة (رد المحتار ج۱، ص۵۱۰) دا حکم هلته دی چه کله د دویم آیت له مخکښیني آیت سره د لګولو په صورت کښې معنی فاسده نه شي لکه څرنګه چه د سوال په صورت کښې دی. که چیرته ئې معنی فاسده شي نو په دې کښې دا تفصیل دی چه په لومړي آیت باندې د وقف د کولو په صورت کښې لمونځ کیږي او که چیرته ئې پرته له وقف څخه دویم آیت ورسره ولګاوه نو لمونځ نه کیږي فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ ذی الحجة ۱۳۸۹ ھ

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال** امام صاحب سوره غاشيه شروع کړ د (تُسْقٰى مِنْ عَيْنٍ اٰنِيَةٍ) څخه وروسته ئې څو آيتونه پريښودل او له (فِيْهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ) څخه ولوست آيا په دې صورت کښې لمونځ کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چيرته په اٰنِيَةٌ باندې بې له وقف څخه مخکښې (فِيْهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ) ووايه نو د معنى د فساد له وجې لمونځ فاسد شو. که وقف وکړي نو لمونځ صحيح دی. د يوه آيت په ځای د بل آيت په ويلو کښې دا تفصيل دی چه په معنى کښې فساد را نه شي نو په اتفاق سره لمونځ صحيح دی او که چيرته په معنى کښې فساد راشي نو په لومړي آيت باندې د وقف د کولو په صورت کښې په اتفاق سره لمونځ کيږي او که وقف و نه کړي نو په دې کښې اختلاف دی صحيح خبره دا ده چه لمونځ فاسديږي

قال في الخانية وان ذكر اٰية مكان اٰية ان وقف على الاولى وقفاً تامّا وابتدأ بالثانية لا تفسد صلوته كما لو قرأ (وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ) ووقف ثم ابتدأ (لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْ كَبَدٍ) لا تفسد صلوته وكذا لو قرأ (اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ) ووقف ثم قرأ (اُولٰٓئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ) وان لم يقف وقرأ موصولا ان لم تتغير الاولى بالثانية كما لو قرأ (اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ جَزَآءَ نِ الْحُسْنٰى) او قرأ (وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ) (اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا) لا تفسد صلوته وان تغير المعنى بأن قرأ (اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ جَحِيْمٍ وَّاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ) او قرأ (اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ) او قرأ (وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا) تفسد صلوته لانه اخبر بخلاف ما اخبر الله تعالى به وقال بعضهم لا تفسد صلوته لعموم البلوى والاول اصح. (وقال قبيل هذا) وعن ابي يوسف رحمه الله عليه فيه روايتان والصحيح هو الفساد لانه اخبر بخلاف ما اخبر الله تعالى به. (خانية على هامش الهندية ج ۱ ص ۱۵۳)

وفيها (وَيَتَجَنَّبُهَا الْاَشْقَى) قرأ (الْاَتْقَى) بالتاء وقال ان وصل به (الَّذِيْ يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى) تفسد صلوته وان لم يصل ل وقف ثم ابتدأ با (لَّذِيْ يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى) لا تفسد صلوته وكذا لو قرأ (وَسَيُجَنَّبُهَا الْاَتْقَى الَّذِيْ)، (سَيُجَنَّبُهَا الْاَشْقَى الَّذِيْ) ان وصل به (الَّذِيْ يُؤْتِيْ مَالَهٗ يَتَزَكّٰى) تفسد صلوته والا فلا. (خانية على هامش الهندية ج ۱ ص ۱۳۶)

وفي العلائية وصحح الباقاني الفساد ان غيّر المعنى نحو (رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ) للاضافة كما لو بدل كلمة بكلمة وغير

المعلی نحو (اِنَّ الْفُجَّارَ لَفِیْ جَنّٰتٍ) وقال ابن عابدین رحمة الله علیه وقید الفساد فی الفتح وغیره بما اذا لم یقف وقفاً تاماً اما لو وقف ثم قال لَفِیْ جَنّٰتٍ فلا تفسد الخ. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الثانی ۱۳۹۹ هجری

## د (أشقٰی) په ځای د (أتقٰی) د ویلو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیان کرام په دې مسئله کښې چه یوه سړي د جُمعې لمونځ وکاوه او په اول رکعت کښې ئې سورۂ اعلی ووایه او د هغه د آیت (سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى وَيَتَجَنَّبُهَا الْاَشْقَى الَّذِىْ يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى) په ځای (وَيَتَجَنَّبُهَا الْاَتْقَى الَّذِىْ يُؤْتِىْ مَالَهٗ يَتَزَكّٰى وَمَا لِاَحَدٍ عِنْدَهٗ مِنْ نِّعْمَةٍ تُجْزٰى – الی اخر سوة اللیل) ووایه. بیا ئې پرته له دې چه صحیح ئې کړي رکوع ته لاړ. آیا لمونځ ئې صحیح شو او که نه. او آیا د بیرته را ګرځولو ضرورت ئې شته او که نه؟ له حوالې سره ځواب راکړئ.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ئي په یَخْشٰی باندې وقف کړی وي نو لمونځ شوی دی او که وقف ئي نه وي کړی نو نه دی شوی.

وفی العلائیة وصحح الباقانی الفساد ان غیّر المعنی نحو رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ للاضافة کما لو بدل کلمة بکلمة وغیر المعنی نحو اِنَّ الْفُجَّارَ لَفِیْ جَنّٰتٍ وقال ابن عابدین رحمة الله علیه وقید الفساد فی الفتح وغیره بما اذا لم یقف وقفاً تاماً اما لو وقف ثم قال لَفِیْ جَنّٰتٍ فلا تفسد الخ. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۳)

## د دویم رکعت د مکروه اوږدوالي اندازه

**سوال**: په دویم رکعت کښې له لومړي رکعت څخه اوږد سورت ویل مکروه دي. د دې زیاتوالي اندازه څه ده؟ څومره آیتونه چه زیات وي نو لمونځ مکروه کیږي؟ همدارنګه دا کراهت په نوافلو کښې هم شته او که یواځې په فرائضو کښې دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په فرائضو کښې په اتفاق سره او په نوافلو کښې د راجح روایت له مخې د دویم رکعت اوږدوالی مکروه تنزیهي دی. د اطالې (اوږدوالي) په اندازه کښې تر ټولو راجح او آسانه قول دا دی چه په دواړو سورتونو کښې فرق بیّن او ښکاره وي.

قال فی العلائیة واطالة الثانیة علی الاولیٰ یکره تنزیهاً اجماعاً ان بثلاث اٰیات ان تقاربت طولاً وقصراً والا اعتبر الحروف والکلمات واعتبر الحلبی فحش الطول لا عدد الاٰیات واستثنی فی البحر ما وردت به السنّة واظهر فی النفل عدم الکراهة مطلقاً و ان باقل لا یکره لانه عَلَیْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام صلّٰی بالمعوذتین و قال ابن

عابدین رحمه الله بعد نقل کلام الحلبی و الذی تحصل من مجموع کلامه و کلام القنیة ان اطلاق کراهة اطالة الثانیة بثلاث اٰیات مقید بالسور القصیرة المتقاربة الاٰیات لظهور الاطالة حینئذٍ فیها اما السور الطویلة او القصیرة المتفاوتة فلا یعتبر العدد فیهما بل یعتبر ظهور الاطالة من حیث الکلمات و ان اتحدت اٰیات السورتین عدداً هٰذا ما فهمته و الله تعالیٰ اعلم. (قوله و استثنٰی فی البحر ما وردت به السنة) ای کقراءته عَلَیْهِ الصَّلاة وَالسَّلام فی الجمعة والعیدین فی الاولیٰ بالاَعْلیٰ فی الثانیة بالغَاشِیَة فانه ثبت فی الصحیحین مع انّ الاولیٰ تسع عشرة اٰیة و الثانیة ستة و عشرون و علی ما مرّ عن شرح المنیة لا حاجة الی الاستثناء لان هاتین السورتین طویلتان و لا تفاوت ظاهر بینهما من حیث الکلمات و الحروف بل هما متقاربان، و قال تحت (قوله مطلقاً) و الاصحّ کراهة اطالة الثانیة علی الاولیٰ فی النفل ایضاً الحاقا ه بالفرض فیما لم یرد به تخصیص من التوسة کجوازه قاعداً بلا عذر و نحوه و اما اطالة الثالثة علی الثانیة و الاولیٰ فلا تکره لما انه شفع اٰخر اه. (رد المحتار ج۱، ص۵۰۶)

د علامه ابن عابدین رحمه الله په سورهٔ اعلی او سورهٔ غاشیه کښې د حروفو او کلماتو په اعتبار سره تفاوت لره غیر ظاهر ګڼل غیر ظاهر دی. ظاهره دا ده چه د حلبي رحمه الله د تقریر مطابق په اوږدو سورتونو کښې دومره اندازه تفاوت غیر ظاهر دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ رمضان ۱۳۹۸ھ

# باب الوتر و النوافل

## په وترو کښې د دُعاء قنوت په ځای د بلې دُعا د ویلو حکم

**سوال**: یو سړی وائي چه په وترو کښې د دُعا قنوت ویل ضروري نه دي او نه د دعاء قنوت زده کول ضروري دي له دُعاء قنوت پرته هم لمونځ کیږي آیا دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د وترو په دریم رکعت کښې تر سورت وروسته یوه دُعاء واجبه ده که چیرته هیڅ یوه دُعاء هم و نه وائي نو د لمانځه بیرته را ګرځول واجب دي چه هره یوه دُعاء یعنې (ربّنا اٰتنا - الخ) یا کومه بله دُعاء ووائي نو لمونځ صحیح کیږي. البته مشهوره دُعاء یعنې (اللّٰهُمّ انّا نستعینك - الخ) ویل مسنون دي. د مسنونې دُعا نه زده کول یا سره له یادولو ئې په قصد سره پریښودل ګناه ده.

قال شارح التنویر رحمه الله علیه فی واجبات الصلٰوة و قراءة قنوت الوتر و هو مطلق الدعاء و فی الشامیة ای القنوت الواجب یحصل بای دعاء کان، قال فی النهر واما خصوص اللّٰهُمّ انا نستعینُك فسنة فقط حتی لو اتی بغیره جاز اجماعاً (ردالمحتار ج۱،ص۳۳۷) وایضاً فی باب الوتر من شرح التنویر و قنت فیه ویسن الدعاء المشهور، وفی الشامیة و من لا یحسن القنوت یقول ربّنا اٰتنا فی الدنیا حسنة الاٰیة و قال ابو اللیث یقول اللّٰهمّ اغفر لی یکررها ثلاثاً وقیل یقول یارب ثلاثاً ذکره فی الذخیرة اه.(ردالمحتار ج۱،ص۶۲۴)

فقط والله تعالٰی اعلم ۳۰ جمادی الثانی ۱۳۷۵ هجری

## د قنوت د تکبیر د پاتې کیدلو حکم

**سوال**: په وترو کښې که چیرته د قنوت تکبیر پاتې شي نو سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې په وجوب کښې اختلاف دی. په شامیه کښې ئې عدم وجوب ته ترجیح ورکړې دی. سره له دې د سجدهٔ سهو په کولو کښې احتیاط دی اودنه کولو ګنجائش شته.

(قوله و کذا تکبیر قنوته) ای الوتر قال فی البحر فی باب سجود السهو مما الحق به ای بالقنوت تکبیره و جزم الزیلعی بوجوب السجود بترکه وذکر فی الظهیریة انه لو ترك لا روایة فیه و قیل یجب السجود اعتباراً بتکبیرات العید و قیل لا اه و ینبغی ترجیح عدم الوجوب لانه الاصل و لا دلیل علیه بخلاف تکبیرات العید اه. (رد المحتار ج۱،ص۳۳۷)

فقط والله تعالٰی اعلم ۲۰ صفر ۱۳۷۶ هجری

## د دُعاء قنوت تکرار

**سوال**: په وترو کښې د دُعاء قنوت د دوه ځلې په ویلو سره سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په وترو کښې یوه غیر معینه دُعاء وجبه ده. او کومه ماثوره دُعاء چه په عامه توګه په وترو کښې لوستل کیږي سنت ده. له دې پرته نورې دُعاګانې هم له نبي کریمﷺ څخه ثابتې دي. لهذا په دې موقع باندې چه څومره دُعاء ګانې ولوستل شي یا ئې تکرار وشي نو په هر صورت سجدهٔ سهو نه واجبیږي فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ربیع الاول ۱۳۸۹هجری

## له دُعاء قنوت څخه د څه برخې د پریښودلو یا د هغې د تکرار حکم

**سوال**: که چیرته په وترو کښې دُعاء قنوت نیمه ولوستل شي یا تر هیریدو وروسته بیا له سره شروع شي او پوره ولوستل شي نو آیا په دغو دواړو صورتونو کښې سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له قنوت څخه کومه مختصره برخه یا ټوله اوږده ولوستل شي نو واجب ادا کیږي. معروفه دُعاء پوره لوستل سنت دي. واجب نه دي. لهذا د دې دُعاء د کومې برخې پریښودل یا د ټولې دُعاء په دوباره لوستلو سره سجدهٔ سهو نه واجبیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹محرم ۱۳۹۰هجری

## په پنځه وخته لمونځونو کښې ټول سنتونه له نبي کریمﷺ څخه ثابت دي

**سوال**: یو سړی پنځه وخته لمونځونه کوي او تهجد هم ادا کوي. لیکن سنتونه نه کوي او وائي چه له نبي کریمﷺ څخه د سنتونو د کولو یا حکم ورکولو هیڅ ثبوت نشته. هیڅ عالِم ئې نه شي ثابتولی. د نوموړي د شریعت له مخې څه حکم لري؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: کوم سړی چه وائي چه نبي کریمﷺ سنتونه نه دي کړي هغه جاهل دی. له نبي کریمﷺ څخه د سنتونو د ادا کولو او امت ته د ترغیب ورکولو او د ځینو سنتونو په پریښودلو باندې وعید له صریحو او صحیحو احادیثو څخه ثابت دي

۱..عن عائشة رضي الله عنها كان النبي ﷺ يصلي قبل الظهر اربعاً وبعدها ركعتين وبعد المغرب ثنتين وبعد العشاء ركعتين وقبل الفجر ركعتين. (رواه مسلم وابو داؤد وابن حنبل)

۲..عن ابي ايوب رضي الله عنه كان يصلي النبي ﷺ بعد الزوال اربع ركعات فقلت ما هذه الصلوة التي تداوم عليها فقال هذه ساعة تفتح ابواب السماء فيها فاحب ان يصعد لي فيها عمل صالح فقلت افي كلهن قراءة قال نعم

فقلت بتسليمة واحدة ام بتسليمتين فقال بتسليمة واحدة. (رواه الطحاوی وابی داؤد والترمذی وابن ماجة)

قال فی الشامية رووه من غير فصل بين الجمعة والظهر فيكون سنة كل واحدة منها اربعاً.

۳.. روی ابن ماجة رحمة الله عليه باسناده عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما كان النبی ﷺ يركع قبل الجمعة اربعا لا يفصل فی شیء منهن. (ابن ماجة)

۴.. عن ابی هريرة رضی الله عنه انه ﷺ قال من كان منكم مصلّيا بعد الجمعة فليصلّ اربعاً. (رواه مسلم)

۵.. عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ من صابر علی اثنتی عشرة من السنة بنی الله له بيتاً فی الجنة اربع ركعات قبل الظهر وركعتين بعدها وركعتين بعد المغرب وركعتين بعد العشاء وركعتين قبل الفجر. (رواه الترمذی وابن ماجة)

۶.. روی الجماعة الّا البخاری رحمة الله عليه من حديث امّ حبيبة رضی الله عنها انها سمعت رسول الله ﷺ يقول ما من عبد مسلم يصلّی فی كل يوم اثنتی عشرة ركعة تطوّعا من غير الفريضة الا بنی الله له بيتاً فی الجنة. زاد النسائی و الترمذی اربعاً قبل الظهر وركعتين بعدها وركعتين بعد المغرب وركعتين بعد العشاء وركعتين قبل صلٰوة الغداة.

۷.. لا تدعوا ركعتی الفجر ولو طردتكم الخيل. (رواه ابو داؤد)

۸.. ركعتا الفجر خير من الدنيا وما فيها. (رواه مسلم)

۹.. لم يكن النبی ﷺ علی شیء من النوافل اشد تعاهداً منه علی ركعتی الفجر. (رواه البخاری)

۱۰.. قال عليه الصلٰوة والسلام من ترك اربعاً قبل الظهر لم تنله شفاعتی. (شامية ج۱)

۱۱.. واما الاربع قبل العشاء فاخرج ابن عابدين رحمة الله عليه فی حاشيته علی البحر المسماة بمنحة الخالق فيها حديثاً وايضا يستدل عليها بعموم قوله عليه السلام بين كل اذانين صلٰوة بين كل اذانين صلٰوة بين كل اذانين صلٰوة لمن شاء. (رواه الجماعة) واما كونها اربعاً فيتمشی علی قول ابی حنيفة رحمة الله عليه حيث قال ان الافضل فی صلٰوة الليل كونها اربع ركعات او بالقياس علی صلٰوة الظهر والعصر والوجه ظاهر.

فقط والله تعالی اعلم ۱۹ صفر ۱۳۷۵ هجری

## مؤكد سنتونه او نفل په يوه سلام سره د ادا كولو حكم

**سوال:** د لاندينی فتوی په باره كښې خپل تحقيق او څېړنه وليكئ:

كه څېرته يو څوك د ماسپښين يا ماښام تر فرضو وروسته دوه ركعته سنت له دوه ركعته نفلو سره يو ځای كړي او په يوې تحريمې او يوه سلام سره ئې ادا كړي نو آيا جائز دي او كه نه؟ بېنوا

توجروا.

**جواب**: هو! صحيح دي كه نيت دې سنتو وكړي يا د نفلو. يا د مطلق لمانځه نيت وكړي. سنت ئې هم ادا كيږي او نفل ئې هم. د دې تحقيق له تفصيل سره په غنية المستملي شرح د منية المصلي كښې دى. همدارنګه په رد المحتار او داسې نورو كښې هم شته.

**قال في الدر المختار وست بعد المغرب ليكتب من الاوابين (الى قوله) وهل تحسب المؤكدة من المستحب ويؤدى الكل بتسليمة واحدة اختار الكمال نعم وفي رد المحتار بعد ذكر الاختلاف واختار هو انه اذا صلى اربعاً بتسليمة او تسليمتين وقع على السنة والمندوب وحقق ذلك بما لا مزيد عليه واقره في شرح المنية و البحر والنهر. انتهى.**

**د پورتني تحقيق په اړه ستاسو څه رايه ده؟ بينوا بياناً شافياً**

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: پورتنى تحقيق صحيح دى. لېكن له اختلاف څخه د وتو په خاطر جلا جلا ادا كول ئې بهتر دي. د يو ځاى كولو د عدمِ جواز په صورت باندې دى د دُر مختار په دې جزئي سره دې تاسو ته شبهه نه در لويږي چه **صلى اربعا فوقع ركعتان بعد طلوعه (اى الفجر) لا تجزيه عن ركعتيها على الاصح تجنيس، لان السنة ما واظب عليه الرسول ﷺ بتحريمة مبتدأة. و كذا في الشامية ايضاً ورجحه.** (ردالمحتار ج۱، ص۶۳۲) څكه چه د سهار په سنتو كښې مواظبت بتحريمة مبتدأة ثابت دى او په صورت مسئوله كښې مواظبت على عدم الضم ثابت نه دى. **(بعد الظهر ركعتين واربع ركعات)**. دواړه قسمه روايتونه دي. په څلور ركعتيزه روايت كښې د **(بتسليمتين)** تصريح نشته او متبادر **(بتسليمة واحدة)** دى.

## په دوه ركعته نفلو كښې تر قعدې وروسته سهواً د دريدلو حكم

**سوال**: د دوه ركعته نفلو نيت ئې وتاړه او تر قعدې وروسته په سهو سره ودېده او د دريم ركعت سجده ئې لا نه وه كړې چه وريادشو نو بيرته راګرځېدل بهتر دي او كه څلور ركعته به پوره كوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: د دويمې شفعې پوره كول بهتر دي. د دې لپاره چه بيرته راګرځېدو كښې د دويمې شفعې باطلوالى لازميږي. سره له دې د دويمې شفعې پوره كول ضروري نه دي. څكه چه د اتمام وجوب مقيد دى په قصداً شروع كولو سره. او په صورت مسئوله كښې په قصد سره شروع وجود نه لري. **(لزم نفل شرع فيه قصداً)**. (شرح التنوير باب النوافل) زياتى دلائل او تفصيل په **(باب الصلوة وما يتعلق بها)** كښې د "فساد د توهم پربناء" تر عنوان لاندې ئې ملاحظه كړئ.

(مرتب) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ رجب ۱۳۷۵ هجری

## د وترو له قنوت سره د قنوت نازله د یو ځای کولو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام په دې مسئله کښې چه که چیرته یو څوک په وترو کښې د دُعاء قنوت سره قنوت نازله هم ووائي نو لمونځ ئې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په وترو کښې (اللّٰهم انانستعینك ـ الخ) او (اللّٰهم اهدنا ـ الخ) ویل ماثور دي. له دغو دواړو سره نوره دُعاء که هم وغواړي نو یو ځای کولی ئې شي.

قال ابن عابدین رحمة الله علیه قال فی شرح المنیة و الصحیح ان عدم التوقیت فیما عدا المأثور لان الصحابة رضی الله عنهم اتفقوا علیه و لانه ربما یجری علی اللسان ما یشبه کلام الناس اذا لم یوقت ثم ذکر اختلاف الالفاظ الواردة فی اللّٰهم انانستعینك الخ ثم ذکر ان الاولیٰ ان یضم الیه اللّٰهمّ اهدنی الخ وان ما عدا هذین فلا توقیت فیه و منه ما عن ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما انه کان یقول بعد عذابك الجد بالکفار ملحق اللّٰهم اغفر للمؤمنین والمؤمنات و المسلمین و المسلمات و الّف بین قلوبهم و اصلح ذات بینهم و انصرهم علیٰ عدوّك وعدوّهم اللّٰهُمّ العن کفرة الکتاب الذین یکذبون رسلك و یقاتلون اولیآئك اللّٰهُمّ خالف بین کلمتهم وزلزل اقدامهم وانزل علیهم بأسك الذی لا یردّ عن القوم المجرمین. (ردالمحتار ج۱، ص۶۲۴)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ شوال ۱۳۸۶ هجری

## په وترو کښې د دوه تشهّدونو ثبوت

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام په دې مسئله کښې چه د وترو درې رکعتونه که چیرته په یوه سلام سره ادا شي نو د وترو به یواځې په آخري رکعت کښې تشهّد ویل کیږي ایا که په دویم رکعت کښې هم باید وویل شي لکه څرنګه چه د ماښام د درې رکعته فرض لمانځه کښې چه په دویم او دریم رکعت کښې تشهّد ویل کیږي.

زید وائي چه په دریو رکعته وترو کښې یواځې په آخري رکعت کښې یو ځل د تشهّد ویل له نبي کریم ﷺ (فداه ابي و امي) څخه ثابت دی. د پوښتنې وړ خبره دا ده چه یو داسې صحیح حدیث چه پکښې دوه ځلې تشهّد ثابت وي یعنې دا چه رسول الله ﷺ به چه کله وتر ادا کاوه نو په دویم او دریم رکعت دواړو کښې د تشهّد ویل ترې ثابت وي. ولیکئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لاندیني حدیثونو کښې د دوه ځلې تشهّد ویلو صراحت شته.

۱.. عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ الوتر ثلاث کثلاث المغرب. رواه الطبرانی فی الاوسط.

۲۔۔ عن الفضل بن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما قال قال رسول الله ﷺ الصلوة مثنیٰ مثنیٰ تشهد فی کل رکعتین. الحدیث (مشکوٰة ص۷۷) دا حدیث اگر که د نوافلو په باره کښې دی لیکن په هرو دوه رکعتونو کښې د تشهّد ویلو عموم وتر ته هم شامل دی.

۳۔۔ عن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قال الوتر ثلاث کوتر النهار صلوٰة المغرب. (رواه الطحاوی) فیه دلالة علی ان الوتر ثلاث رکعات وتشبیهه بصلوٰة المغرب یفید وجوب القعدة علی الرکعتین ایضاً کما فی المشبّه به و یشعر بمنع نقصه عن الثلٰث ایضاً کما فی المغرب وهٰذا اثر صحیح موصول.

۴۔۔ عن حفص بن سلیمان عن ابان بن ابی عیاش عن ابراهیم عن علقمة عن عبدالله رضی الله تعالیٰ عنه قال ارسلت امی لیلة لتبیت عند النبی ﷺ فتنظر کیف یوتر فصلّی ما شاء الله ان یصلی حتی اذا کان اٰخر اللیل واراد الوتر قرأ بسبّح اسم ربك الاعلیٰ فی الرکعة الاولیٰ و قرأ فی الثانیة قل یاایّها الکٰفرون ثم قعد ثم قام ولم یفصل بینهما بالسلام ثم قرأ بقل هُوَ الله احد حتّٰی اذا فرغ کبر ثم قنت فدعا بما شاء الله ان یدعو ثم کبر و رکع اھ. اخرجه الحافظ ابن عبدالبر فی الاستیعاب له ولم یتکلم علیه بشیء. (اعلاء السنن ج۶، ص۵۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ رمضان ۱۳۸۶ هجری

## د وترو جماعت د رمضان له میاشتې سره تخصیص

**سوال**: له رمضان څخه پرته په ټول کال کښې د وترو جماعت ولې نه کیږي. د دې څه علّت دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د وترو جماعت د تراویحو د جماعت تابع دی. د دې لپاره دا له رمضان سره مخصوص دی.

قال ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ الذی یظهر ان جماعة الوتر تبع لجماعة التراویح وان کان الوتر نفسه اصلا فی ذاته لان سنة الجماعة فی الوتر انما عرفت بالاثر تابعةً للتراویح. (ردالمحتار ج۱، ص۶۶۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ رمضان ۱۳۸۶ هجری

## د سنتو او نوافلو لپاره د مطلق لمونځ نیت کافي دی

**سوال**: د جُمعې تر فرضو وروسته د سنتو او نوافلو په نیت کښې دا ویل مستحب دي چه تر جُمعې وروسته سنت ادا کوم یا د همدې وخت نوم واخلي. مثلاً په دې توګه چه "څلور رکعته تر جمعې وروسته سنت ادا کوم مخ مې د قبلې په لور الله اکبر" او په زړه کښې به څه اراده کوي. تر جمعې د وروسته وخت او که د همدې وخت؟ او د جُمعې تر فرضو مخکښې په سنتو کښې به جُمعه

یادوي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په سنتو او نوافلو کښې مطلق د لمانځه نیت کافي دی. که هغه د جُمعې سنت وي یا د نورو وختونو سنت. یواځې په زړه کښې نیت کافي دی. په ژبې سره څه ویل ضروري نه دي. که ئې څوک ووائي نو بهتر دي.

قال فی التنویر والمعتبر فیها عمل القلب اللّازم للارادة وهو ان یعلم بداهة ای صلوٰة یصلّی والتلفظ بها مستحب وقیل سنة (الی قوله) وکفی مطلق نیة الصلوٰة لنفل وسنة وتراویح وفی الشرح علی المعتمد اذ تعیینها بوقوعها وقت الشروع والتعیین احوط. (ردالمحتار ج۱، ص۳۸۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ ربیع الاول ۱۳۸۸ هجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: له زید څخه د ماسپښین تر فرضو مخکښې څلور سنتونه پاتې شول. د جماعت تر پای ته رسیدو وروسته زید د دوه رکعته سنتو نیت وکړ او په لمانځه ئې شروع وکړه. تر قعدې وروسته سهواً ودریده او د څلورو رکعتو نیت ئې وکړ. نو آیا دا د څلورو مخکښینیو سنتونو په ځای دریږي او که د دوو وروستنیو؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په سنتو او نفلو کښې پرته د رکعتونو له تعین څخه د مطلق لمانځه نیت کافي دی. لهذا څلور مخکښیني سنتونه ادا شول. دوه وروستني دې بیا وکړي.

قال فی التنویر وکفی مطلق نیة الصلوٰة لنفل وسنة وتراویح. وفی الشامیة بأن یقصد الصلوٰة بلا قید نفل او سنة او عدد. (ردالمحتار ج۱، ص۳۸۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۰ هجری

## که چیرته د ماسپښین څلور مخکښیني سنتونه پاتې شي نو د وخت په دننه کښې ئې بیرته راګرځول سنت مؤکد دي

**سوال**: د جُمعې او ماسپښین څلور مخکښیني مؤکد سنتونه که چیرته له چا څخه پاتې شي نو تر فرضو وروسته ادا کول به ئې سنتِ مؤکد وي او که به نفل وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر فرائضو وروسته ادا کول ئې هم سنتِ مؤکد دي.

قال ابن عابدین رحمة الله علیه (قوله علی انها سنة) ای اتفاقاً وما فی الخانیة وغیرها من انها نفل عنه سنة عندهما فهو من تصرف المصنفین لان المذکور فی المسألة الاختلاف فی تقدیمها او تأخیرها والاتفاق علیٰ قضائها وهو اتفاق علیٰ وقوعها سنة کما حققه فی الفتح وتبعه فی البحر والنهر وشرح المنیة. (ردالمحتار ج۱، ص۶۶۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۴ شوال ۱۳۸٦ هجری

## چه تر وترو وروسته د فرض لمانځه فساد معلوم شي نو د وترو بیا اعاده نشته

**سوال**: زید د ماسخوتن تر سنتو وروسته څلور رکعته فرض یواځې ادا کړ لیکن په هیره سره ئې د څلورو په ځای دوه رکعته وکړل او د سنتو او وترو تر ادا کولو وروسته ور په زړه شو چه فرض خو مې دوه رکعته ادا کړي دي. نو اوس د سنتو او وترو هم بیرته را ګرځول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: وتر د فرضو تابع نه دي لیکن دوه رکعته مؤکد سنت د فرضو تابع دي لهذا د فرضو د نه صحیح والي له وجې د وترو بیرته را ګرځول لازم نه دي. او دوه رکعته سنت به را ګرځوي.

قال فی الشامیة عن ح لو صلّی العشاء بلا وضوء والوتر والسنة به یعید العشاء والسنة لا الوتر. (ردالمحتار ج۱،ص۶۸۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ صفر ۱۳۸۸ هجری

## تر وترو وروسته معلومه شوه چه په فرض لمانځه کښې ئې سجدهٔ سهو نه ده کړې

**سوال**: زید لمونځ ورکړ او سجدهٔ سهو پرې واجبه شوې وه. لیکن د ناپوهي له وجې ئې سجدهٔ سهو و نه کړه. چه کله مقتدیان له سنتو. نفلو او وترو څخه فارغ شول نو ښاغلي زید صاحب پوه شو چه په ما باندې خو سجدهٔ سهو واجبه وه، بیا هغه دویم جماعت ورکړ. نو د پوښتنې وړ خبره دا ده چه مقتدیانو چه کوم سنت او داسې نور ادا کړي دي آیا هغه به هم اوس له فرضو سره بیرته را ګرځوي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دوه رکعته سنتِ مؤکد دې دوباره ادا کړي. وتر چونکه مستقل لمونځ دی د دې لپاره دې هغه نه را ګرځوي.

قال فی الشامیة لو صلّی العشاء بلا وضوء والوتر والسنة به یعید العشاء والسنة لا الوتر لانه اداه ناسیاً ان العشاء فی ذمته فسقط الترتیب افاده ح. (ردالمحتار ج۱،ص۶۸۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ ربیع الاول ۱۳۹۰ هجری

## چه فرض صحیح شوی نه وي اداء شوې نو وروستني سنت دې دوباره ادا کړي

**سوال**: د چا د ماسخوتن فرض صحیح نه شو. مثلاً سجدهٔ سهو پرې واجبه وه او هیره ئې وه او تر سلام وروسته تر نور لمانځه یعنې سنت، نوافل او وترو وروسته ور په زړه شو نو د فرضو تر ګرځولو وروسته د سنتونو. نوافلو او وترو اعاده هم لازمه ده او که نه؟ همدارنګه که چیرته وتر په

غلطی سره دوه رکعته ادا کړي او وروسته ئې نفل هم کړی وي او تر نفلو وروسته ور په زړه شي چه وتر خو مې دوه رکعته کړي. نو آیا د نفلو اعاده هم واجبه ده او که یواځې به وتر بیرته را ګرځوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : تر فرضو وروسته سنتونه د فرضو تابع دي لهذا د دغو سنتونو اعاده ضروري ده. د وترو او نوافلو اعاده ضروري نه ده.

قال فی الشامیة لو صلّی الوتر ناسیاً انه لم یصل العشاء ثم صلّاها لا یعید الوتر لقولهم انه لو صلّی العشاء بلا وضوء والوتر والسّنة به یعید العشاء والسنة لا الوتر لانه اداه ناسیاً ان العشاء فی ذمته فسقط الترتیب افاده ح.(ردالمحتار ج۱،ص۶۸۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ ربیع الاول ۱۳۸۹ هجری

## د فرضو یا تراویحو د یواځې ادا کوونکي لپاره د وترو په جماعت کښې د شریکیدو حکم

**سوال** : که چیرته یو څوک د فرضو د جماعت تر پای ته رسیدو وروسته راشي او فرض یواځې ادا کړي او په تراویحو کښې شریک شي. نو د وتر له جماعت سره ادا کولی شي او که نه؟ همدارنګه که چیرته د تراویحو جماعت هم ترې تیر شوی وي نو د وترو په جماعت کښې شریکیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د شامي د تحریر مطابق که چیرته فرض او تراویح یا ئې صرف فرض منفرداً ادا کړی وي نو د وترو په جماعت کښې شرکت مکروه دی. او که چیرته ئې فرض په جماعت سره کړی وي لیکن تراویح ئې یواځې کړي وي نو وتر له جماعت سره ادا کولی شي.

قال فی العلائیة ولو لم یصلّها ای التراویح بالامام او صلّاها مع غیره له ان یصلی الوتر معه بقی لو ترکها الکل هل یصلّون الوتر بجماعة فلیراجع وقال ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ تحت (قوله ولو لم یصلها الخ) رأیت القهستانی ذکر تصحیح ما ذکره المصنّف ثم قال لکنه اذا لم یصل الفرض معه لا یتبعه فی الوتر اه.فقوله ولو لم یصلّها ای و قد صلّی الفرض معه لکن ینبغی ان یکون قول القهستانی معه احترازاً عن صلوتها[1] منفرداً اما لو صلّاها جماعة مع غیره ثم صلّی الوتر معه لا کراهة تأمل. (قوله بقی الخ) الذی یظهر ان جماعة الوتر تبع لجماعة التراویح وان کان الوتر نفسه اصلا فی ذاته لان سنّة الجماعة فی الوتر انما عرفت بالاثر تابعه للتراویح علی انهم اختلفوا فی افضلیة صلاتها بالجماعة بعد التراویح کما یأتی.(ردالمحتار ج۱،ص۶۶۳)

---

۱ - الضمیر عائد الی الفرض فکان ینبغی تذ کیره و کذا فی قوله صلّاها والله اعلم. ۱۲ رشید احمد

وقال الرافعی رحمه الله (قوله الذی یظهر ان جماعة الوتر تبع لجماعة التراویح) الذی یظهر ان جماعته تبع لجماعة الفرض لا التراویح فان المفهوم من قول المصنف ولا یصلی الوتر الخ انه یصلی جماعة فی رمضان فیحمل بعمومه حتی یوجد ما یقتضی تخصیصه بما اذا صلی التراویح جماعة نعم التقیید بما اذا صلّی الفرض جماعة نقله القهستانی.(التحریر المختار ج۱،ص۹۳)

لیکن د علامه حلبي رحمه الله تحقیق دا دی چه په هر صورت کښې د وترو په جماعت کښې شاملیدلی شي. البته که چیرته یو څوک فرض هم په جماعت سره ادا نه کړي نو دا هغه دې تراویح او وتر له جماعت سره نه کوي. په دې صورت کښې د تراویحو له جماعت څخه ممانعت مصرّح دی. د وترو صراحت نه دی تر سترګو شوی. لیکن ظاهره خبره ده چه د دې هم همدغه حکم دی. ځکه چه د وترو جماعت د فرضو او تراویحو د جماعت تابع دی.

قال الحلبی رحمه الله فی شرح المنیة الصغیر فاتته ترویحة او ترویحتان وقام الامام الی الوتر یوتر مع الامام ثم یقضی ما فاته واذا لم یصل الفرض مع الامام قیل لا یتبعه فی التراویح ولا فی الوتر وکذا اذا لم یصل معه التراوح لا یتبعه فی الوتر والصحیح انه یجوز ان یتبعه فی ذٰلك کله حتی لو دخل بعد ما صلی الامام الفرض وشرع فی التراویح فانه یصلی الفرض اولاً وحده ثم یتابعه فی التراویح.وفی القنیة لو ترکوا الجماعة فی الفرض لیس لهم ان یصلّوا التراویح جماعة.(صغیری ص۲۱۰) وفی الدر فمصلیه وحده یصلیها معه وفی الشامیة اما لو صلیت بجماعة الفرض وکان رجل قد صلی الفرض وحده فله ان یصلیها مع ذٰلك الامام لان جماعتهم مشروعة فله الدخول فیها معهم لعدم المحذور.(ردالمحتار ج۱،ص۶۶۳) د علائیه او شامي له دغو عبارتونو څخه ثابته شوه چه چا فرض له جماعت سره نه وي ادا کړی نو تراویح له جماعت سره ادا کولئ شي. د دې مقتضیٰ هم همدغه ده چه په دې صورت کښې چه وتر دې له جماعت سره جائز شي ځکه چه تراویح د فرضو تابع دي او وتر ځانته مستقل لمونځ دی. قال العلامة الطحطاوی رحمه الله (قوله فلیراجع) قضیة التعلیل فی المسألة السابقة لقولهم لانها تبع ان صلّی الوتر بجماعة فی هٰذه الصورة لانه لیس بتبع للتراویح ولا للعشاء عند الامام رحمه الله.(طحطاوی علی الدر ج۱،ص۲۹۷) چه کله د فرضو د جماعت پرینښوونکی د تراویح په جماعت کښې شریکیدلی شي نو د مستقل لمانځه یعنې وترو په جماعت کښې خو په طریقهٔ اولی سره شرکت جائز دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳رجب ۱۳۸۶ هجری

## که د فرضو او وترو جلا جلا امامان وي نو کراهت نه لري

**سوال**: چه یو امام فرض لمونځ ورکړي او بل امام د وترو لمونځ ورکړي نو آیا داسې کول څه

حکم لري؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : بې له کراهته جائز دي. لما نقلنا فی المسألة السابقة عن الشامية ينبغی ان يکون قول القهستانی معه احترازاً عن صلوتها منفرداً اما لو صلّاها جماعة مع غيره ثم صلّى الوتر معه لا کراهة تأمل. (ردالمحتار ج۱، ص۶۶۳) فقط والله تعالٰی اعلم ۲ رجب ۱۳۸۶ هجری

## د سهار د جماعت په وخت کښې د سنتو ادا کول

**سوال** : چه کله د سهار جماعت ودريږي نو آيا سنت څوک ادا کولی شي او که نه؟ که ئې ادا کولی شي نو په کوم صورت کښې به ئې ادا کوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : چه له امام سره په تشهّد کښې د شريکيدو هيله ئې وي نو سُنت دې ادا کړي. څومره چه کيدلی شي د جماعت له ځای څخه دې جلا او ګوښی ادا کړي. که چيرته له جومات څخه د باندې کوم ځای نه وي نو د کوم ديوال يا ستنې شا ته دې ادا کړي. د صف شا ته ئې پرته له کوم حائل څخه ادا کول مکروه تحريمي دي. البته که جومات دوه برخې وي نو په دويمې برخې کښې ئې د ادا کولو ګنجائش شته.

قال فی شرح التنوير واذا خاف فوت رکعتی الفجر لاشتغاله بسنتها ترکها لکون الجماعة اکمل والا بان رجا ادراك رکعة فی ظاهر المذهب وقيل التشهّد واعتمده المصنّف والشرنبلالی تبعاً للبحر لکن ضعفه فی النهر، لا يترکها بل يصليها عند باب المسجد ان وجد مکانا والا ترکها لان ترك المکروه مقدم علی السنّة، وفی الشامية (قوله لکن ضعفه فی النهر) قلت لکن قواه فی فتح القدير (الٰی قوله) لان المدار هنا علی ادراك فضل الجماعة وقد اتفقوا علی ادراکه بادراك التشهد فيأتی بالسنة اتفاقاً کما اوضحه فی الشرنبلالية ايضاً واقره فی شرح المنية و شرح نظم الکنز وحاشية الدرر لنوح اُفندی وشرحها للشيخ اسمٰعيل ونحوه فی القهستانی وجزم به الشارح فی مواقيت الصلوٰة (قوله عند باب المسجد) ای خارج المسجد کما صرّح به القهستانی وقال فی العناية لانه لو صلّاها فی المسجد کان متنفلاً فيه عند اشتغال الامام بالفريضة وهو مکروه فان لم يکن علی باب المسجد موضع للصلوٰة يصليها فی المسجد خلف سارية من سواری المسجد واشدها کراهة ان يصليها مخالطاً للصّف مخالفاً للجماعة والذی يلی ذٰلك خلف الصف من غير حائل اھ ومثله فی النهاية والمعراج وقال تحت (قوله والا ترکها) اذا کان للمسجد موضعان والامام فی احدهما ذکر فی المحيط انه قيل لا يکره لعدم مخالفة القوم وقيل

یکرہ لانهما کمکان واحد قال فاذا اختلف المشائخ فیه فالافضل ان لا یفعل قال فی النهر و فیه افادة انها تنزیهیة الخ لکن فی الحلیة قلت وعدم الکراهة اوجه للآثار التی ذکرناها اھ.(ردالمحتار ج۱،ص۲۱۶)

فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۱۱ رمضان المبارک ۱۳۹۳ھـ هجری

## د سهار د سنتو په داسې ځای کښې ادا کول چه د امام قرائت اوریدل کیږي

**سوال**: که چیرته داسې جومات وي چه بله برخه و نه لري او په هغه کښې د سهار جماعت ولاړ وي نو د سهار سنت به سړی چیرته ادا کوي؟ که چیرته د صف شا ته ادا شي نو قرائت اوریدل کیږي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سهار سنت باید په کور کښې ادا شي او بیا جومات ته لاړ شي. خصوصاً په داسې حال کښې د جماعت د دریدو وخت پوره شوی وي. که چیرته ئې په کور کښې ادا نه کړي نو له جومات څخه دې د باندې ادا کړي. که چیرته د باندې هم ځای نه وي نو په جومات کښې دې د کوم دیوال یا ستنې شا ته ادا کړي. د امام د قرائت په اوریدلو کښې کوم حرج نشته. د صف شا ته پرته له کوم حائل څخه د سنتو ادا کول مکروه تحریمي دي.

فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۱۶ رمضان المبارک ۱۳۹۳ھـ هجری

## د نفلو په دویم رکعت کښې د قعدې د هیریدلو حکم

**سوال**: له زید څخه د نفلو آخري قعده پاتې شوه او د دریم رکعت تر سجدې وروسته ور په زړه شو. آیا د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ کیږي او که نه؟ او که به بیرته را ګرځول ئې پرې واجب دي؟ که چیرته آخره قعده وکړي او بیا سهواً ودریږي او دریم رکعت هم ادا کړي او بیا ور په زړه شي نو څه حکم به ئې وي آیا په دې صورت کښې هم په سجدهٔ سهو سره ئې لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لومړي صورت کښې که چیرته د دریم رکعت تر سجدې مخکښې ور یاد شي نو قعدې ته بیرته را وګرځي. او که چیرته د دریم رکعت تر سجدې وروسته ور په زړه شي نو یو بل رکعت دې هم ور سره یو ځای کړي او څلور دې پوره کړي. په آخر کښې دې سجدهٔ سهو وکړي. که چیرته په همدې دریم رکعت باندې سجدهٔ سهو وکړي او سلام وګرځوي نو لمونځ فاسدیږي. دوه رکعته بیرته ادا کول پرې واجب دي.

په دویم صورت کښې په سجدهٔ سهو سره دوه رکعتونه صحیح کیږي. چونکه د دریم رکعت خوا ته په سهو سره تللی دی د دې لپاره د هغه په ماتولو سره د دویمې شفعې قضاء پرې نه واجبیږي. په

دې صورت کښې بهتره دا ده چه څلور رکعته پوره کړي د څلورو رکعتونو د پوره کولو په صورت کښې سجدهٔ سهو واجبه نه ده.

قال في التنوير وقضى ركعتين لو نوى اربعا ونقض في الشفع الاوّل او الثاني وفي العلائية اى وتشهد للاوّل و الا يفسد الكل اتفاقاً، والاصل ان كل شفع صلوة الا بعارض اقتداء لو نذر او ترك قعود اول، وفي الشامية (قوله او الثاني) اى وكذا يقضي ركعتين لو اتم الشفع الاول بقعدته ثم شرع في الثاني فنقضه في خلاله قبل القعدة فيقضي الثاني فقط لتمام الاول لكن ينبغي وجوب اعادة الاوّل لترك واجب السلام مع عدم انجباره بسجود سهو كما هو الحكم في كل صلوة اديت مع ترك واجب (قوله او ترك قعود اول) لان كون كل شفع صلوة على حدة يقتضي افتراض القعدة عقيبه فيفسد بتركها كما هو قول محمّد وهو القياس لكن عندهما لمّا قام الى الثالثة قبل القعدة فقد جعل الكل صلوة واحدة شبيهة بالفرض وصارت القعدة الاخيرة هي الفرض وهو الاستحسان و عليه فلو تطوّع بثلاث بقعدة واحدة كان ينبغي الجواز اعتبارا بصلوة المغرب لكن الاصح عدمه لانه قد فسد ما اتصلت به القعدة وهو الركعة الاخيرة لان التنفل بالركعة الواحدة غير مشروع فيفسد ما قبلها. (رد المحتار ج۱، ص۶۴۸) فقط والله تعالى اعلم ۱۳ شوال ۱۳۹۹ هجری

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال**: که چیرته یو څوک د نفلو په دویم رکعت باندې قعده و نه کړي او سهواً ودریږي او د دریم رکعت تر سجدې وروسته ور یاد شي او څلورم رکعت ورسره یو ځای کړي په آخر کښې سجدهٔ سهو وکړي نو آیا د ده دوه رکعتونه شول او که څلور؟ د نفلو په هرو دوه رکعتونو باندې قعده فرض ده. له دې څخه معلومیږي چه په دې صورت کښې دوه رکعتونه ئې صحیح کیږي. آیا دا صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قیاس مقتضٰی خو دا ده چه ټول لمونځ دې فاسد شي. اوله شفع د فرض قعدې د پریښودو له وجې او دویمه شفع د دې لپاره چه هغه په اولې شفع باندې مبني ده. **و المبنى على فاسد فاسد**. لیکن د استحسان له مخې څلور واړه رکعتونه صحیح دي. د دې لپاره چه د دویمې شفع په شروع کولو سره له فرائضو سره د تشبّه له وجې د نوافلو د اولې قعدې فرضیت په وجوب باندې تبدیل شو او د واجبو د نقصان پوره والی په سجدهٔ سهو سره وشو.

چونکه فرائض تر څلورو زیات نه دي. د دې لپاره په نوموړي صورت کښې استحساناً صحت یواځې له څلورو رکعتونو سره مخصوص دی. له څلورو څخه د زیاتو رکعتونو د ادا کولو په صورت کښې لمونځ فاسدیږي. همدارنګه د دریو رکعتونو په ادا کولو سره هم لمونځ فاسدیږي

ځکه چه په دې کښې اګر که د مابنام له لمانځه سره تشبّه شته لیکن د نفلو یو رکعت غیر مشروع دی. او دا یو رکعت ما قبل لره هم فاسدوي.

والاصل ان کل شفع صلٰوة الا بعارض اقتداء لو نذر او ترك قعود اول، وفی الشامیة (قوله او ترك قعود اول) لان کون کل شفع صلٰوة علی حدة یقتضی افتراض القعدة عقیبه فیفسد بترکها کما هو قول محمّد وهو القیاس لکن عندهما لمّا قام الی الثالثة قبل القعدة فقد جعل الکل صلٰوة واحدة شبیهة بالفرض وصارت القعدة الاخیرة هی الفرض وهو الاستحسان وعلیه فلو تطوّع بثلاث بقعدة واحدة کان ینبغی الجواز اعتبارا بصلٰوة المغرب لکن الاصح عدمه لانه قد فسد ما اتصلت به القعدة وهو الرکعة الاخیرة لان التنفل بالرکعة الواحدة غیر مشروع فیفسد ما قبلها. ولو تطوع بست رکعات بقعدة واحدة قیل یجوز والاصح لا، فان الاستحسان جواز الاربع بقعدة اعتباراً بالفرض ولیس فی الفرض ست رکعات تؤدّی بقعدة فیعود الامر الی اصل القیاس کما فی البدائع. (ردالمحتار ج۱، ص۶۴۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ ذیقعده ۱۳۹۹ هجری

## د وترو د آخري قعدې د هیریدلو حکم

**سوال**: که چیرته د وترو آخري قعده و نه کړي او څلورم رکعت هم ادا کړي. بیا ور یاد شي نو د سجدهٔ سهو تر کولو وروسته وتر وشول او که دوباره ادا کول ئې واجب دي؟ او که چیرته آخري قعده وکړي او څلورم رکعت ته ودریږي او تر سجدې وروسته ور په زړه شي نو آیا بیا هم د سجدهٔ سهوې په کولو سره ئې وتر ادا کیږي او که نه؟ په دواړو صورتونو کښې سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته په وترو کښې آخره قعده و نه کړي او څلورم رکعت ادا کړي نو وتر ئې نه ادا کیږي. بلکه دا رکعتونه نفل ګرځي، د سجدهٔ سهو ضرورت نشته او د وترو له سره ادا کول واجب دي. لکه څرنګه چه د فرضو آخره قعده څوک و نه کړي او پنځم رکعت ادا کړي نو د دې رکعت له ضائع کیدو څخه د ساتنې لپاره شپږم رکعت هم ورسره یو ځای کیږي. او دا ټول رکعتونه نفل ګرځي.

قال فی التنویر ولو سها عن القعود الاخیر عاد ما لم یقیدها بسجدة وان قیدها تحول فرضه نفلاً برفعه وضم سادسة ان شاء ولا یسجد للسهو علی الاصح. (ردالمحتار ج۱، ص۶۹۸)

او که چیرته د وترو تر آخرې قعدې وروسته ئې څلورم رکعت ادا کړ نو وتر ئې صحیح شول بهتره دا ده چه یو بل رکعت هم ورسره یو ځای کړي تر څو چه دوه رکعته ئې نفل شي. کما فی التنویر و

ان قعد فی الرابعة ثم قام عاد وسلم وان سجد للخامسة سلموا وضم الیها سادسة لتصیر الرکعتان نفلاً وسجد للسهو. (ردالمحتار ج۱، ص۷۰۰)

په دواړو صورتونو کښې وتر په فرضو باندې قیاس کیږي ځکه چه وتر هم عملاً فرض دي. کما قال صاحب التنویر هو فرض عملاً. (ردالمحتار ج۱، ص۶۲۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ شوال ۱۳۸۷ هجری

## د سهار سنتونه څلور رکعته ادا کول

**سوال**: یو چا د سهار د سنتو آخره قعده و نه کړه و د دریم رکعت تر ادا کولو وروسته ور یاد شو او څلورم رکعت ئې هم ورسره یو ځای کړ او سجدهٔ سهو ئې وکړه خپل لمونځ ئې پای ته ورساوه. نو آیا سنت ئې وشول او که نه؟ یعنې دوه رکعته سنت او دوه رکعته نفل او که څلور واړه نفل وګرځیدل او سنت به بیا له سره ادا کوي؟ شرعاً د دې په حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې دوه رکعته سنت شول او دوه رکعته نفل شول. چونکه دا نفل قصداً نه دي ادا شوي نو د دې لپاره په مکروه وخت کښې ئې راتلل څه پروا نه لري.

**فائده**: په نوموړي صورت کښې څلورم رکعت یو ځای کول واجب دي. ځکه چه په دریم رکعت باندې په سلام ګرځولو سره لمونځ فاسدیږي او اوله شفع څرنګه چه په قصد سره شروع شوې ده د دې لپار د هغې پوره کول واجب دي. فاسدول ئې جائز نه دي. البته که چیرته د سهار په فرضو کښې دا صورت پیښ شیو نو بهتره دا ده چه په دریم رکعت باندې سلام وګرځول شي او څلورم ورسره یو ځای نه کړي ځکه چه د قعدې په پریښودو سره لمونځ نفل شو نو د نفلو اوله شفع په قصد سره نه ده شروع شوې. لهذا پوره کول ئې واجب نه دي. او په مکروه وخت کښې اګر که د داسې نوافلو پوره کول جائز دي لیکن ترک ئې بهتر دي.

که چیرته د مازدیګر د لمانځه آخره قعده پاتې شي او د پنځم رکعت سجده وکړي نو شپږم رکعت ورسره یو ځای کول واجب نه دي. په پنځم رکعت باندې په سلام ګرځولو سره لمونځ فاسدیږي او دا فاسدول جائز دي. لما ذکرنا فی صلوٰة الفجر. البته په مازدیګر کښې د شپږم رکعت یو ځای کول بهتر دي ځکه چه د آخرې قعدې په پریښودو سره فرض په نفلو بدل شول. نو دا په مکروه وخت کښې را نه غلل. ځکه چه کراهت خو د مازدیګر تر فرضو وروسته وي. او په نوموړي صورت کښې خو تر اوسه فرض نه دی ادا شوی. له دې امله پوره کول ئې اولی یعنې بهتر دي. کذا فی الشامیة وغیرها.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ ذی الحجة ۸۸ هجری

## د اشراق، څاښت او اوّابينو رکعتونه

**سوال**: د اشراق، څاښت او اوّابينو کم تر کمه او له زيات نه زيات څو څو رکعتونه دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اشراق او څاښت کم تر کمه دوه دوه رکعته دي. اشراق له زيات څخه زيات څلور رکعته دی او څاښت له زيات نه زيات دولس رکعته. اوّابين سره له مؤکدو سنتو کم تر کمه شپږ او له زيات نه زيات شل رکعته دی.

عن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من صلّی الفجر فی جماعة ثم قعد يذکر الله حتّی تطلع الشمس ثم صلی رکعتين کانت له کاجر حجة و عمرة. قال قال رسول الله ﷺ تامة تامة تامة.(ترمذی ج١، ص١٠٩) عن نعيم بن عمار رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول يقول الله عز وجل يا ابن ادم لا تعجزنی من اربع رکعات فی اول نهارك اکفك اٰخره. (ابو داؤد ج١، ص١٢٩) و فی العلائية عن المنية اقلها (صلوٰة الضحٰی) رکعتان و اکثرها اثنا عشر و اوسطها ثمان و هو افضلها کما فی الذخائر الاشرفية لثبوته بفعله و قوله عليه السلام و اما اکثرها بقوله فقط. و فی الشامية (قوله و اکثرها اثنا عشر) لما رواه الترمذی و النسائی بسند فيه ضعف انه ﷺ قال من صلی الضحٰی ثنتی عشرة رکعة بنی الله له قصراً من ذهب فی الجنّة و قد تقرر ان الحديث الضعيف يجوز العمل به فی الفضائل. شرح المنية. (رد المحتار ج١، ص٦٣٩) عن محمد بن عمار بن ياسر قال رأيت عمار بن ياسر رضي الله عنه يصلی بعد المغرب ست رکعات و قال رأيت حبيبی ﷺ يصلّی بعد المغرب ست رکعات و قال من صلّی بعد المغرب ست رکعات غفرت له ذنوبه و ان کانت مثل زبد البحر. للطبرانی. (جمع الفوائد ج١، ص٢٠١) عن عائشة رضي الله عنها عن النبی ﷺ قال من صلّی بعد المغرب عشرين رکعة بنی الله له بيتا فی الجنة. (ترمذی ج١، ص٩٠/ ابن ماجة ص٩٨)

فقط والله تعالیٰ اعلم ٢ محرم ١٣٨٨ هجری

## دوه رکعته مؤکد سنتونه په اوّابينو کښې داخل دي

**سوال**: د اوّابينو نوافل له کم نه کم او له زيات نه زيات څو رکعته دي؟ په بهشتي زيور کښې ليکلي دي چه "د ماښام له فرضو او سنتو نه وروسته له کم نه کم شپږ رکعته او له زيات نه زيات شل رکعته چه ادا شي نو دې ته اوّابين ويل کيږي" او په حاشيه باندې ئې دا عبارت ليکلی دی چه "يستحب ست بعد المغرب- الخ (شرح التنوير ج١، ص٥٠٥) په عامه توګه دا مشهوره ده چه د ماښام له دوه سنتو څخه پرته د اوابينو نوافل کم تر کمه شپږ رکعته دي. او دبهشتي زيور له پورتني ذکر شوې عبارت څخه هم همدا څرګنديږي. ليکن د ځينو حضراتو علماوو دا خيال دی چه د ماښام د دوه

رکعته سنتو څخه پرته د اوابينو نوافل يواځې څلور رکعته دي. شپږ نوافل چه کو مشهور دي په هغو کښې دوه رکعته د ماښام سنت هم شامل دي. يعنې د ماښام له فرضو او سنتو څخه علاوه د اوابينو کم تر کمه څلور رکعته نوافل ادا کول کافي دي. آيا دا خيال صحيح دی؟ په دې ډول سره د اوابينو کم تر کمه تعداد شپږ رکعته جوړيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : عن ابی هريرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من صلّی بعد المغرب ست رکعات لم يتکلّم فيما بينهن بسوء عدلن له بعبادة ثنتی عشرة سنة. (رواه الترمذی ج۱،ص۹۰) وعن عائشة رضی الله عنها عن النبی صلی الله علیه وسلم قال من صلّی بعد المغرب عشرين رکعة بنی الله له بيتاً فی الجنة. (رواه الترمذی ج۱،ص۹۰) قال علی القاری رحمه الله علیه المفهوم ان الرکعتين الراتبتين داخلتان فی الست و کذا فی العشرين المذکورة فی الحديث الأتی. قاله الطيبی. (مرقاة ج۳،ص۱۱۴) و فی شرح التنوير و ست بعد المغرب ليکتب من الاوّابين بتسليمة او ثنتين او ثلاث والاوّل ادوم واشق و هل تحسب المؤکدة من المستحب و يؤدی الکل بتسليمة واحدة ختار الکمال نعم، و فی الشامية (قوله اختار الکمال) ذکر الکمال فی فتح القدير انه وقع اختلاف بين اهل عصره فی ان الاربع المستحبة هل هی اربع مستقلة غير رکعتی الراتبة او اربع بهما و علی الثانی هل تؤدی معهما بتسليمة واحدة اولا فقال جماعة لا واختار هو انه اذا صلّی اربعاً بتسليمة او تسليمتين وقع عن السنّة والمندوب، وحقق ذٰلك بما لا مزيد عليه واقره فی شرح المنية والبحر والنهر. (رد المحتار ج۱،ص۶۳۱)

د پورتني حديثونو او شامي له عبارت څخه ثابته شوه چه د اوابينو تعداد کم تر کمه شپږ او له زيات نه زيات شل رکعته دي. او د ماښام دوه رکعته سنت په اوابينو کښې داخل دي. د بهشتي زيور په حاشيه کښې له ليکل شوې عبارت څخه هم همدغه ثابتيږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۴ شوال ۱۳۸۸ هجری

## د اشراق، څاښت او تهجد وختونه

**سوال** : د لانديني نوافلو وختونه په وضاحت سره وښايئ:

۱ - د اشراق وخت د لمر تر ختلو څو دقيقې وروسته شروع کيږي؟ او آخري وخت ئې د لمر تر ختلو څو ساعته وروسته پوره دی؟

۲ - د څاښت وخت د لمر تر ختلو څو ساعته وروسته شروع کيږي او آخري وخت تر څو ساعته وروسته پوره وي؟

۳ - د تهجد وخت د لمر تر ډوبيدو څو ساعته وروسته شروع کيږي او د لمر تر ختلو څو ساعته مخکښې پوره پاتې وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** ۱ - تر لمر ختلو وروسته چه کله په لمر کښې دومره تیزوالی راشي چه تر ډیره پورې کتل ورته سخت شي نو د اشراق وخت له همدې ځایه شروع کیږي. د دې اندازه په هرځای او هرموسم کښې مختلف وي. ما پخپل کتاب "صبح صادق" کښې د اشراق د وختونو نقشه هم لیکلې ده. دا کتاب ځانته هم شائع شوی دی او د "احسن الفتاوی" په دویم جلد کښې هم شته.
د اشراق وخت تر نصف النهاره پورې وي. لیکن په ابتداء کښې ئې ادا کول بهتر دي.

۲ - د څاښت وخت د اشراق تر لمانځه وروسته متصل شروع کیږي او تر نصف النهاره پورې پاتې وي او د څاښت تر ټولو بهترین وخت د ورځې د څلورمې برخې تر تیریدو وروسته دی.

**قال فی العلائیة وندب اربع فصاعداً فی الضحی علی الصحیح من بعد الطلوع الی الزوال ووقتها المختار بعد ربع النهار.(ردالمحتار ج۱،ص۶۳۹)**

۳ - د تهجد وخت د ماسخوتن تر لمانځه وروسته تر صبح صادق پورې دی. د لمر له ډوبیدو څخه د ماسخوتن د وخت شروع او له صبح صادق څخه تر لمر ختلو پورې د وخت په ساعتونو سره تعین نه شي کیدلی ځکه چه دا وخت په هر ځای او هر موسم کښې مختلف وي. البته له یوه ساعت څخه هیڅکله نه کمیږي. د مختلفو ځایونو د ماسخوتن او د صبح صادق د ختونو نقشه زما په کتاب "صبح صادق" کښې ملاحظه کړئ.

کو سړی چه د شپې په یوه دریمه کښې په تهجدو باندې مشغول والی غواړي نو د هغه لپاره بهتره دا ده چه شپه په دریو برخو وویشي په منځنۍ برخه کښې تهجد وکړي او په اولې او دریمې برخې کښې آرام وکړي. او که وغواړي چه نیمه شپه تهجد وکړي نو د هغه لپاره دویمه نیمائي بهتره ده.

که چیرته د تهجد لپاره د نه را ویښیدلو ویره وه نو د ماسخوتن تر لمانځه وروسته او له وترو څخه مخکښې دوه رکعته د تهجدو په نیت وکړي او ویده شي او د بیا جګیدلو او تهجدو د ادا کولو ارداه دې هم لري. که چیرته ویښ هم نه شو نو د تهجدو ثواب ورکول کیږي.

**لحدیث ثوبان رضی اللہ عنہ مولی رسو الله ﷺ قال کنّا فی سفر فقال ان هٰذا السفر جهد و ثقل فاذا اوتر احد کم فلیرکع رکعتین فان استیقظ والا کانتا له.(شرح معانی الأثار ج۱،ص۱۶۸)**

فقط والله تعالی اعلم ۱۵ ربیع الثانی ۱۳۹۶ هجری

## د نوافلو جماعت په رمضان شریف کښې هم مکروه دی

**سوال** : عموماً زمونږ مشران علماء کرام له شبینه څخه خلک منع کوي او د کراهت په وجوهاتو کښې یوه وجه دا هم بیانوي چه د نوافلو جماعت مکروه دی. لیکن یو عالِم فرمائي چه د نوافلو

جماعت له رمضان څخه پرته په بل وخت کښې مکروه دی. په رمضان شریف کښې مکروه نه دی. د هغه لیکنه مې در ولیږله. هیله ده چه ډاډ بخښونکی ځواب را ته ولیکئ.

فی الدر ولا یصلی الوتر ولا التطوع بجماعة خارج رمضان ای یکره ذٰلك لو علی التداعی بان یقتدی اربعة بواحد. وفی الرد عن البدائع ان الجماعة فی التطوع لیست بسنة الا فی قیام رمضان (وبعد اسطر) والنفل بالجماعة غیر مستحب لانه لم تفعله الصحابة فی غیر رمضان. (رد المحتار ج۱،ص۶۶۴) وفی الفتح عن کافی الحاکم ویکره صلٰوة التطوع جماعة ما خلا قیام رمضان. (فتح القدیر ج۱،ص۳۳۸) وفی الموطاء للامام محمد قال محمد وبهذا نأخذ لا بأس بالصلٰوة فی شهر رمضان ان یصلی الناس بامام تطوعاً لان المسلمین قد اجمعوا علی ذٰلك. (موطاء امام محمد ص۱۱۱)

په پورتنیو عبارتونو کښې د تطوع، نفل او قیامِ رمضان الفاظ دي. د هغو له جملې څخه د تطوّع او نفلو عموم ظاهر دی. همدارنگه قیامِ رمضان هم له تراویحو سره مخصوص نه دی بلکه نفل هم پکښې شامل دي.

قال الحافظ العینی ومعنی من قام رمضان من قام بالطاعة فی لیالی رمضان ویقال یرید صلٰوة التراویح وقال بعضهم لا یختص ذٰلك بصلٰوة التراویح بل فی ایّ وقت صلی تطوعاً حصل له ذٰلك الفضل. (عمدة القاری ج۱، ص۲۳۳) وقال ایضاً فی باب فضل من قام رمضان قال الکرمانی اتفقوا علی ان المراد بقیامه صلٰوة التراویح. قلت قال النووی المراد بقیام رمضان صلٰوة التراویح ولکن الاتفاق من این اخذه بل المراد من قیام اللیل ما یحصل به مطلق القیام سواء کان قلیلاً او کثیراً. (عمدة القاری ج۱۱،ص۱۲۴) وقال الحافظ العسقلانی والمراد من قیام اللیل ما یحصل به مطلق القیام کما قدمناه فی التهجد سواء وذکر النووی ان المراد بقیام رمضان صلٰوة التراویح یعنی انه یحصل بها المطلوب من القیام لا ان قیام رمضان لا یکون الا بها واغرب الکرمانی فقال اتفقوا علی ان المراد بقیام رمضان صلٰوة التراویح. (فتح الباری ج۴،ص۲۱۷)

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې لیکنه کښې د ځینو اکابرو د یوه زاړه تحریر مضمون را نقل شوی دی. چه ځواب ئې د هم هغه وخت مختلفو علماوو لیکلی وو. په حنفي مذهب کښې له امام نه بغیر چه څلور مقتدیان وي نو دا جماعت په اتفاق سره مکروه دی. او مقتدیان چه درې وي نو په کراهت کښې ئې اختلاف دی. له یوه یا دوو مقتدیانو سره جماعت اگر که بې له کراهته جائز دی لیکن په دې کښې هم د جماعت بهتري او ثواب نشته.

قال فی العلائیة یکره ذٰلك لو علی سبیل التداعی بأن یقتدی اربعة بواحد کما فی الدر و قال ابن

عابدین رحمہ اللہ علیہ اما اقتداء واحد بواحد او اثنین بواحد فلا یکرہ و ثلاثۃ بواحد فیہ خلاف بحر عن الکافی وھل یحصل بھذا الاقتداء فضیلۃ الجماعۃ ظاھر ما قدمناہ من ان الجماعۃ فی التطوع لیست بسنۃ یفید عدمہ تأمل.

(ردالمحتار ج۱،۶۶۳)

و قال الطحطاوی و التداعی سببہ الاجتماع لان اجتماعھم علی ذلک یدعو من یراھم الی الدخول معھم.

(طحطاوی علی الدر المختار ج۱،ص۲۹۷)

دا حکم د رمضان او غیر رمضان دواړه لپاره عام دی. قال ابن عابدین رحمہ اللہ علیہ فی "مطلب فی احیاء لیالی العیدین والنصف من شعبان وعشر ذی الحجۃ و رمضان" وفی الامداد ویحصل القیام بالصلوۃ نفلاً فرادیٰ من غیر عدد مخصوص وبقراءۃ القرآن والاحادیث وسماعھا وبالتسبیح والثناء والصلوۃ والسلام علی النبی ﷺ ثم قال (تتمۃ) اشار بقولہ فرادیٰ الی ما ذکرہ بعد فی متنہ من قولہ ویکرہ الاجتماع علی احیاء لیلۃ من ھذہ اللیالی فی المساجد وتمامہ فی شرحہ وصرّح بکراھۃ ذلک فی الحاوی القدسی وقال ما روی عن الصلوات فی ھذہ الاوقات یصلی فرادیٰ غیر التراویح. (ردالمحتار ج۱،ص۶۴۲)

و قال الحلبی رحمہ اللہ علیہ و اعلم ان النفل بالجماعۃ علی سبیل التداعی مکروہ علی ما تقدم ما عدا التراویح و صلوۃ الکسوف و الاستسقاء فعلم ان کلا من صلوۃ الرغائب لیلۃ اول جمعۃ من رجب و صلوۃ البراءۃ لیلۃ النصف من شعبان وصلوۃ القدر لیلۃ السابع والعشرین من رمضان بالجماعۃ بدعۃ مکروۃ و قال حافظ الدین البزازی شرعا فی نفل فافسداہ واقتدی احدھما بالآخر فی القضاء لا یجوز لاختلاف السبب و کذا اقتداء الناذر لا یجوز و عن ھذا کرہ الاقتداء فی صلوۃ الرغائب وصلوۃ البراءۃ ولیلۃ القدر. (شرح المنیۃ ص۴۱۱) په دغو عبارتونو کښې په رمضان او غیر رمضان دواړو کښې د نوافلو د جماعت کراهت مصرّح دی

و قال الامام الکاسانی رحمہ اللہ علیہ اذا صلّوا التراویح ثم ارادوا ان یصلوھا ثانیاً یصلّون فرادیٰ لا بجماعۃ لان الثانیۃ تطوع مطلق والتطوع المطلق بجماعۃ مکروہ. (بدائع الصنائع ج۱،ص۲۹۰)

و نقل ابن نجیم رحمہ اللہ علیہ عن الخلاصۃ و لو صلوا التراویح ثم ارادوا ان یصلوا ثانیاً یصلون فرادیٰ. (البحر الرائق ج۲،ص۶۸) و قال ایضاً و انما لم یذکرھا (التراویح) مع السنن المؤکدۃ قبل النوافل المطلقۃ لکثرۃ شعبھا ولاختصاصھا بحکم من بین سائر السنن و النوافل وھو اداء الجماعۃ. (البحر الرائق ج۲،ص۶۱) و قال ایضاً فی الاشباہ یکرہ الاقتداء فی صلوۃ الرغائب وصلوۃ البراءۃ ولیلۃ القدر. (الاشباہ والنظائر ج۱،ص۲۱۹)

و قال الشیخ الحموی اداء النفل بجماعۃ علی سبیل التداعی مکروہ الا ما استثنی کصلوۃ التراویح. (الاشباہ

ج۱،ص۲۱۹)

و قال العلامة البابرتی رحمة الله علیه ذکر التراویح فی فصل علی حدة لاختصاصها بما لیس لمطلق النوافل من الجماعة.(عنایة علی هامش الفتح ج۱،ص۳۳۳)

وفی الهندیة: ولو صلی التراویح ثم ارادوا ان یصلوها ثانیاً یصلون فرادی کذا فی التاتارخانیة.(عالمگیریة ج۱،ص۱۱۶)

و فی البزازیة صلوها بجماعة ثم ارادوا اعادتها با لجماعة یکره بل یصلون فرادی لان النفل بجماعة علی التداعی یکره الا بالنص.(بزازیة علی هامش الهندیة ج۴،ص۲۹)

و قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاری و لو زاد علی العشرین بالجماعة یکره عندنا بناءً علی ان صلوة التطوع بالجماعة مکروه.(خلاصة الفتاوی ج۱،ص۶۳)

و قال العلامة الطحطاوی رحمة الله علیه و هی (الجماعة) سنة عین الا فی التراویح فانها فیها سنة کفایة ووتر رمضان فانها فیه مستحبة و اما وتر غیره و تطوعه فمکروهة فیهما علی سبیل التداعی. (طحطاوی علی المراقی ص۱۵۶)

و فی شرح التنویر و لا تقضی اذا فاتت اصلا و لو وحده فی الاصح و قال الطحطاوی و قیل یقضیها منفرداً. (طحطاوی علی الدر المختار ج۱،ص۲۹۶)

وفی شرح التنویر لو ترکوا الجماعة فی الفرض لم یصلّوا التراویح جماعة لانها تبع و قال ابن عابدین رحمة الله علیه ای لان جماعتها تبع لجماعة الفرض فانها لم تقم الا بجماعة الفرض فلو اقیمت بجماعة وحدها کانت مخالفة للوارد فیها فلم تکن مشروعة.(ردالمحتار ج۱،ص۶۶۳)

وفی شرح التنویر بقی لو ترکها الکل هل یصلون الوتر بجماعة فلیراجع و قال ابن عابدین رحمة الله علیه الذی یظهر ان جماعة الوتر تبع لجماعة التراویح وان کان الوتر نفسه اصلا فی ذاته لان سنة الجماعة فی الوتر انما عرفت بالاثر تابعة للتراویح.(ردالمحتار ج۱،ص۶۶۳)

له دي څخه ثابته شوه چه د تراویحو او وترو جماعت هم با لتبع د فرضو د متابعت له وجې مشروع دی. مطلقاً نه دی نو د نوافلو جماعت خو به په طریقهٔ اولی سره روا نه وي لانها ادنی حالا منهما بلکه نوافل په څوک په نذر سره هم په ځان واجب کړي نو بیا ئي جماعت روا نه دی بلکه تر دي هم پورته خبره دا ده چه د نوافلو ئي په جماعت سره په ځان نذر کړی وي نو بیا هم له کراهت

څخه خالي نه دی.

قال فی شرح التنویر و فی الاشباه عن البزازیة یکره الاقتداء فی صلوة رغائب و براءة و قدر الا اذا قال نذرت کذا رکعة بهذا الامام جماعة اه. قلت و تتمة عبارة البزازیة من الامامة و لا ینبغی ان یتکلف کل هذا التکلّف لامر مکروه. و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله قلت الخ) لم ینقل عبارة البزازیة بتمامها و نصها و لا ینبغی ان یتکلّف لالتزام ما لم یکن فی الصدر الاوّل کل هذا التکلّف لاقامة امر مکروه و هو اداء النفل با لجماعة علی سبیل التداعی فلو ترك امثال هذه الصّلوات تارك لیعلم الناس انه لیس من الشعار فحسن اه و ظاهره انه با لنذر لم یخرج عن کونه اداء النفل با لجماعة. (رد المحتار ج۱، ص۶۶۳) و قال الرافعی (قوله لم ینقل عبارة البزازیة بتمامها الخ) و صدرها و عن هذا کره الاقتداء فی صلوة الرغائب و صلوة البراءة و لیلة القدر و لو بعد النذر الا اذا قال نذرت کذا رکعة بهذا الامام با لجماعة لعدم امکان الخروج عن العهدة الا با لجماعة و لا ینبغی الخ. (التحریر المختار ج۱، ص۹۳) و قال الطحطاوی (قوله لامر مکروه) فیه منافاة للاستثناء فان مقتضاه عدم الکراهة الاقتداء فلا منافاة. (طحطاوی علی الدر ج۱، ص۲۹۷)

قال ابن عابدین رحمه الله شکو اهل صلوا تسع تسلیمات او عشراً یصلون تسلیمة اخرٰی فراذی فی الاصح للاحتیاط فی اکمال التراویح و الاحتراز عن التنفل با لجماعة. (رد المحتار ج۱، ص۶۶۱)

و قال الشیخ عبد الحق الدهلوی رحمه الله اذا فاتت التراویح هل تقضی بعد وقتها با لجماعة او بغیر الجماعة فا لجواب لا تقضی بجماعة (ما ثبت با لسنة ص۹۳) و قال ایضاً اذا شکوا انهم صلوا تسلیمات او عشراً اختلف المشائخ فیه (الی قوله) و الصحیح انهم یصلون تسلیمة اخرٰی فراذی حتی یقع الاحیاط فی السنة باتمامها و یقع الاحتراز عن اداء النافلة بجماعة غیر التراویح (ما ثبت بالسنة اٰخر الفصل الاوّل من بیان شهر رمضان) و قال ایضاً و قال مالك و یروی عن الشافعی ایضاً انها ست و ثلاثون او تسع و ثلاثون مع الوتر فهو عمل اهل المدینة خاصة و کان سبب ذٰلك ان اهل مکة یطوفون با لبیت اسبوعاً و یصلون رکعتی الطواف بین ترویحتین و اهل المدینة لما ارادوا ادراك هذه الفضیلة صلوا بین ذٰلك اربع رکعات و یسمّونها الستة عشریة و استمر عادتهم علی ذٰلك الی الاٰن و قد یروی ذٰلك عن عمر و علی رضی الله تعالیٰ عنهما لکنه غیر مشهور عنهما فان صلّی غیرهم ایضاً لا بأس و یستوی فیه الامام و غیره و ینبغی ان یصلّوا فراذی لان التنفل بجماعة فی غیر التراویح مکروه عندنا لکن اهل المدینة یصلونها بجماعة و التنفل بجماعة لا یکره عندهم قال الشیخ القاسم الحنفی من متأخری علماء مصر التنفل بجماعة مکروه لانه لو کان مستحباً لکانت افضل کالمکتوبات و لو کانت افضل

لكان المتهجدون القائمون بالليل يجتمعون فيصلّون جماعة طلباً للفضيلة فلمّا لم يرو ذٰلك عن رسول الله ﷺ والصحابة رضوان الله عليهم اجمعين علم انه لا فضل فى ذٰلك (ما ثبت بالسنة ص۸۸)

وقال الامام السرخسى رحمه الله فانها عشرون ركعة سوى الوتر عندنا وقال مالك السنة فيها ست وثلاثون قيل من اراد ان يعمل بقول مالك ويسلك مسلكه ينبغى ان يفعل كما قال ابو حنيفة رحمه الله يصلّى عشرين ركعة كما هو السنة ويصلى الباقى فرادى كل تسليمتين اربع ركعات وهذا مذهبنا. وقال الشافعى لا بأس باداء الكل بجماعة كما قال مالك بناء على ان النوافل بجماعة مستحبة عنده وهو مكروه عندنا. والشافعى قال النفل بالفرض لانه تبع له فيجرى مجرى الفرض فيعطى حكمه ولنا ان الاصل فى النوافل الاخفاء فيجب صيانتها من الاشتهار ما امكن وفيما قاله الخصم الاشتهار فلا يعمل به بخلاف الفرائض لان مبناها على الاعلان والاشتهار وفى الجماعة اشتهار فكان احق، ويوضح ما قلنا ان الجماعة لو كانت مستحبة فى حق النوافل لفعله المتهجدون القائمون بالليل لان كل صلوٰة جوزت بالانفراد وبالجماعة كانت الجماعة فيها افضل ولم ينقل اداءها بالجماعة فى عصره ﷺ ولا فى زمن الصحابة رضى الله تعالىٰ عنهم ولا فى زمن غيرهم من التابعين رحمهم الله تعالىٰ فالقول بها مخالفة لامة اجمع وهذا باطل. (مبسوط ج۲، ص۱۴۴)

وفى شرح التنوير والافضل فى النفل غير التراويح المنزل الا لخوف شغل عنها وقال ابن عابدين رحمه الله (قوله غير التراويح) اى لانها تقام بالجماعة ومحلها المسجد واستثنٰى فى شرح المنية ايضاً تحية المسجد وهو ظاهر واقول ويستثنٰى ايضاً ركعتا الاحرام والطواف فان الاولىٰ تصلى فى مسجد عند الميقات ان كان كما فى اللباب والثانية عند المقام وكذا ركعتا القدوم من السفر بخلاف انشائه فانها تصلّى فى البيت كما يأتى وكذا نفل المعتكف وكذا ما يخاف فوتها بالتأخير وكذا صلوٰة الكسوف لانها تصلّى بجماعة، وعلى هامش الشامية قوله وكذا صلوٰة الكسوف لانها تصلّى بجماعة وجد هنا فى نسخة المؤلف لكن بغير خطه ما نصه وكذا سنة الجمعة القبلية لان الافضل فى الجمعة التبكير قبل الوقت فيلزم وقوع سنتها فى المسجد فصارت جملة المستثنيات تسعة. (رد المحتار ج۱، ص۶۳۸) وفى شرح التنوير وكل ما شرع بجماعة فالمسجد فيه افضل قاله الحلبى. (رد المحتار ج۱، ص۶۶۰)

له دغو صريحو او ډيرو نصوصو څخه ثابته شوه چه په کومو عبارتونو کښې چه په رمضان شريف کښې له جماعت سره د تطوّع. نفل او قيام رمضان الفاظ راغلي دي له هغو څخه تراويح مراد دي بالخصوص په داسې حال کښې چه په کومو کتابونو کښې چه دا الفاظ راغلي دي پخپله

په همدغو کتابونو کښې په رمضان کښې هم د نوافلو د جماعت کراهت صراحت شته برسیره پر دې په دغو عبارتونو کښې (لانه لم تفعله الصحابة ﷺ فی غیر رمضان" او "لان المسلمین قد اجمعوا علی ذٰلك) هم مستقل دلیل دی چه دلته له نفل او تطوع څخه مراد تراویح دي. د دې لپاره پرته له تراویحو څخه د نورو نوافلو جماعت په رمضان کښې له حضراتو صحابهٔ کرامو ﷺ او تابعینو او د دین له امامانو رحمهم الله تعالی څخه ثابت نه دي بلکه د دې په خلاف د جماعت په نه کولو باندې اجماع ده.

**کما قدمنا نص الشیخ الدهلوی و الامام السرخسی رحمهما الله تعالی و قال الشاه ولی الله رحمه الله تعالی و زادت الصحابة و من بعدهم فی قیام رمضان ثلاثة اشیاء، (۱) الاجتماع له فی مساجدهم و ذٰلك لانه یفید التیسیر علی خاصتهم و عامتهم. (۲) و اداءه فی اول اللیل مع القول بان الصلوٰة اٰخر اللیل مشهودة و هی افضل کما نبه عمر ﷺ لهٰذا التیسیر الذی اشرنا الیه. (۳) و عدده عشرون رکعة. (حجة الله البالغة ج۲، ص۱۸)** له اول اللیل او عشرون رکعة څخه ثابته شوه چه په جومات کښې به اجتماع (د خلکو سره یو ځای کیدل) به یواځې د تراویحو لپاره وه.

**وقال الامام الطحاوی رحمه الله حدثنا روح بن الفرج قال حدثنا یوسف ابن الفرج قال حدثنا یوسف بن عدی قال حدثنا ابو الاحرص عن مغیرة عن ابراهیم قال کان المتهجدون یصلون فی ناحیة المسجد و الامام یصلی بالناس فی رمضان. (شرح معانی الاٰثار ج۱، ص۱۴۲) و نقل الحافظ العینی رحمه الله عن البیهقی عن السائب بن یزید الصحابی ﷺ قال کانوا یقومون علی عهد عمر رضی الله تعالی عنه بعشرین رکعة و علی عهد عثمان و علی رضی الله تعالی عنهما مثله. (عمدة القاری ج۵، ص۲۶۷)**

باقي پاتې شو د قیام رمضان په اړه د حافظ عیني او حافظ عسقلاني تحقیق. البته دا تر بحث لاندې مسئلې پورې هیڅ اړه نه لري. ځکه چه له دې تحقیق څخه مقصود دا دی چه په حدیث کښې د قیام لیل چه کوم فضیلت راغلی دی هغه له تراویحو سره مخصوص نه دی. بلکه عام دی. لیکن د فقهاؤ رحمهم الله په عباراتو کښې په کوم ځای کښې چه په رمضان کښې له جماعت سره قیام مذکور دی هلته یواځې او یواځې تراویح متعین دي او دا تعین پخپله د همدغو فقهاؤ له عباراتو څخه ثابتیږي کمامر.

له دې څخه هم پورته خبره دا ده چه فقهاؤ رحمهم الله تعالی په دې باندې تنصیص فرمایلی دی چه قیام لیل او تراویح دواړه مترادف لفظونه دي لکه څرنګه چه د فقهي کتابونه هدایه. فتح القدیر. عنایه. خانیه. مبسوط. بدائع الصنائع او داسې نورو له تتبع څخه دا ښکاریږي. د

اورېدوالي له ویرې دا نصوص نه را نقل کيږي ومن شاء فليراجع. بلکه د حضراتو محدثينو اکثريت هم له قيام ليل څخه تراويح مراد اخلي. با لخصوص په قيام با لجماعت کښې خو ټول د تراويحو په مراد اخيستلو باندې متفق دي. چنانچه علامه عيني رحمه الله د قيام په بهتري کښې خو مطلق قيام ته ترجيح ورکړې دی. کما مرّ نصه ليکن له قيام با لجماعة څخه هغه هم تراويح مراد اخلي. چنانچه د (صلّوا ايّها الناس فی بيوتکم فان افضل الصلوٰة صلوٰة المرء فی بيته الا الصلوٰة المکتوبة) لاندې فرمائي:

و استثنٰی من عموم الحديث عدة من النوافل ففعلها فی غير البيت اکمل و هی ما تشرع فيها الجماعة کا لعيدين والاستسقاء والکسوف. (وبعد اسطر) قال الامام حميد الدين الضرير نفس التراويح سنّة اما ادائها با لجماعة فمستحب (و بعد اسطر) و فی جوامع الفقه التراويح سنّة مؤکدة و الجماعة فيها واجبة و فی الروضة لاصحابنا انّ الجماعة فضيلة و فی الذخيرة و فی الذخيرة لاصحابنا عن اکثر المشائخ ان اقامتها با لجماعة سنة علی الکفاية. (عمدة القاری ج۵، ص۲۶۷)

د موطاء امام مالک رحمه الله د عبارت (لا بأس فی شهر رمضان ان يصلّی الناس تطوّعا بامام لان المسلمين قد اجمعوا علی ذٰلك ورأوه حسنا) په تشريح کښې مولانا عبد الحی لکهنوي رحمه الله فرمائي:

(قوله تطوعاً) اطلاق التطوع علی التراويح باعتبار انها زائدة علی الفرائض الخ (قوله علی ذٰلك) ای علی صلوتهم بامامهم فی ليالی رمضان فی زمان الخلفاء عمر و عثمان و علی فمن بعدهم الی يومنا هٰذا (قوله و رأوه حسناً) لما يدل عليه قول عمر نعمت البدعة. (التعليق الممجد ص۱۴۰)

لنډه دا چه د فقهاؤ په عباراتو کښې په رمضان شريف کښې له جماعتِ تطوّع څخه د تراويحو جماعت مراد دی.

قال الشاه انور رحمه الله قال الفقهاء انّ الجماعة فی النوافل مکروهة الا فی رمضان مع ان مرادهم التراويح لا غير فافهم فان العلم لا يتحصّل الا بعد السير. (فيض الباری ج۲، ص۴۲۳)

په آخر کښې د نوافلو په جماعت سره د ادا کولو د بدعت په اړه حضرت مجدّد الف ثاني رحمه الله شکايت ملاحظه کړئ.

(افسوس هزار افسوس! بعضی از بدعتها که در سلاسل ديگر اصلاً موجود نيست، درين طريقۀ علّيه احداث نموده اند و نمازِ تهجّد را بجماعت می گذارند از اطراف و جوانب دران وقت مردم از برای نمازِ تهجد جمع می گردند و بجمعيت تمام ادا می نمايند و اين عمل مکروه هست بکراهتِ تحريمه، جمعی از فقهاء که تداعی شرط کراهت داشته اند جواز جماعت نفل را مقيد بناحيۀ مسجد ساخته زياده از سه کس را با لاتفاق مکروه گفته اند. (مکتوبات نمبر ۱۳۱، ص ۲۳۷، دفتر اول)

مخدوما، مکرما! احداث و ابداع را درین طریقۂ علیہ بحیثیتی رواج دادہ اند کہ اگر مخالفان گویند کہ درین طریقۂ التزام بدعت است و اجتناب از سنت ہم گنجائش دارد، نمازِ تہجد را بجمعیت تمام ادا می نمایند و این بدعت را در رنگِ سنت تراویح در مسجد رواج و رونق می بخشند، و این عمل را نیك می دانند، و مردم را بران ترغیب می کنند، و حال آنکہ اداء نوافل را بجماعت فقہاء شکر اللہ تعالیٰ سعیہم مکروہ گفتہ اند اشد کراہت، و جمعی از فقہاء کہ تداعی شرطِ کراہت در جماعت نفل داشتہ اند جواز جماعت نفل را مقیّد بناحیۂ مسجد ساختہ اند و زیادہ از سہ کس را باتفاق مکروہ گفتہ اند. (مکتوبات نمبر ۱۶۸، ص ۲۸۰، دفتر اول)

فقط واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم ۲۸ ذیقعدہ ۱۳۸۵ ہجری

## د سهار د سنتو قضائي

**سوال**: که چیرته یواځې د سهار سنت له چا څخه پاتې شي نو د لمر تر ختلو مخکښې ئې ادا کول بې له کراهته جائز دي او که نه؟ د ناجائز والي په باره کښې خو ئې چه کوم حدیث را نقل کړئ نو ډیره مهرباني به مو وي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لمر تر ختلو مخکښې ئې ادا کول جائز نه دي. عن ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما قال سمعت غیر واحد من اصحاب النبی ﷺ منهم عمر بن الخطاب رضی الله عنه و کان من احبّهم الیّ انّ رسول الله ﷺ نهی عن الصلوٰة بعد الفجر حتیٰ تطلع الشمس و عن الصلوٰة بعد العصر حتیٰ تغرب الشمس. (ترمذی ج۱، ص۵۳) په صحیح البخاري کښې هم د دې مضمون حدیث له حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی. (بخاري ج۱. ص۸۲)

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: سهار مې د جنابت غسل هیر شو اود سهار لمونځ مې ادا کړ. د لمانځ تر ادا کولو وروسته را یاد شو نو اوس د دې لمانځه قضائي را باندې لازمه ده؟ که لازمه وي نو آیا یواځې به فرض را ګرځوم او که سنت هم؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته دې د لمرتر ختلو مخکښې په بیره د غسل کولو په صورت کښې سنت او فرض دواړه ادا کولی شوای نو دواړه ادا کړئ او که نه نو یواځې فرض ادا کړئ او سنت پریږدئ. که چیرته وخت زیات تنګ وي نو په فرض لمانځه کښې دننه سنت او مستحبات هم پریږدئ. که چیرته قضاء شي نو په دې صورت کښې که مو په همدې ورځ تر ماسپښین مخکښې قضائي را ګرځوله نو سنت هم را وګرځوئ او که نه نو یواځې د فرضو قضائي را وګرځوئ. که چیرته تنها سنت قضاء شي تر فرض وروسته او د لمر تر ختلو مخکښې ئې ادا کول

جائز نه دي له طلوع څخه وروسته تر زوال پورې ادا کول ئې بهتر دي ليکن ضروري نه دي

قال في الدر نسي المضمضة او جزءاً من بدنه فصلّى ثم تذكر فلو نفلاً لم يعد لعدم صحة شروعه. وفي الشامية. (قوله لعدم صحة شروعه) اى و النفل انما تلزم اعادته بعد صحة الشروع فيه قصداً و سكت عن الفرض لظهور انه يلزمه الاتيان به مطلقاً. (ردالمحتار ج١، ص١٣٣) وقال في شرح التنوير ولا يقضيها الا بطريق التبعية لقضاء فرضها قبل الزوال لا بعده في الاصح لورود الخبر بقضائها في الوقت المهمل بخلاف القياس فغيره عليه لا يقاس، وفي الشامية (قوله ولا يقضيها الّا بطريق التبعية) اى لا يقضى سنّة الفجر الّا اذا فاتت مع الفجر فيقضيها تبعاً لقضائه لو قبل الزوال و اما اذا فاتت وحدها فلا تقضى قبل طلوع الشمس بالاجماع لكراهة النفل بعد الصّبح و اما بعد طلوع الشمس فكذلك عندهما و قال محمد احبّ الىّ ان يقضيها الى الزوال كما في الدرر (قوله لورود الخبر) وهو ما روى انه ﷺ قضاها مع الفرض غداة ليلة التعريس بعد ارتفاع الشمس كما رواه مسلم في حديث طويل. (ردالمحتار ج١، ص٦٦٣) فقط والله تعالى اعلم ٢٩ ذيقعده ١٣٨٨ هجرى

## د استخارې حقيقت

**سوال**: په بهشتي زيور کښې د استخارې د لمانځه دا طريقه ليکل شوې ده چه لومړی دوه رکعته نفل بايد وشي او بيا د زړه په ښې توجه سره دا دُعاء ووائي چه (**اللّٰهم انّي استخيرك بعلمك ـ الخ**) او چه کله (**هذا الامر**) ته را ورسيږي نو د هغه کار د کوم کار لپاره چه استخاره کوي خيال دې په زړه کښې راولي. تر دې وروسته دې په پاکې او صافې بسترې باندې په ښي اړخ چه مخ ئې قبلې خوا ته وي په اوداسه سره څملي. چه کله را ويښ شي نو چه کومه خبره ئې په زړه کښې مضبوطه راشي نو هم هغه بهتره ده او بايد و ئې کړي. که چيرته په يوه ورځ کښې څه ور ښکاره نه شي او د زړه خلجان او تردّد له منځه لاړ نه شي نو دويمه ورځ دې هم همداسې وکړي په همدې ډول تر اوه ورځو پورې وکړي انشاء الله خامخا د دې کار ښه والی او بد والی به ور معلوم شي.

په معلم الحجاج کښې مفتي سعيد احمد صاحب د استخارې طريقه دا ليکلې ده چه دوه رکعته لمونځ وکړئ په اول رکعت کښې سورۀ الکافرون او په دويم رکعت کښې سورۀ اخلاص او تر سلام وروسته د حق تعالی حمد او ثناء وکړئ. درود شريف ووايئ او دا دُعاء په ډيرې عاجزۍ خشوع او خضوع سره ووايئ. (**اللهم انى استخيرك بعلمك ـ الخ**) او چه کله (**هذا الامر**) ته ورسيږئ نو د هغه شي خيال په زړه کښې راولئ د کوم شي لپاره چه استخاره کوئ تر دې وروسته چه په کوم طرف باندې د زړه ميلان وو هغه کار بهتر دی د هغه موافق عمل بايد وکړئ که چيرته په يو ځل مو

تسلي و نه شي نو بيا تر اوه ځله پورې همداسې وکړئ انشاء الله رجحان او تسلي به در حاصله شي
په استخاره کښې اصل شی همدا دی چه تردَد (شک اوشبهه) رفع شي او يوې خوا ته ترجيح حاصل
شي د خوب ليدل او داسې نور ضروري شيان نه دي.

په مناجات مقبول کښې چه چيرته د استخاره دُعاء ليکل شوې ده دا ئې ليکلي دي چه کله د
کوم اراده وکړئ نو بايد چه دوه رکعته نفل ادا کړئ، بيا دا دُعاء ووايئ چه (**اللّٰهم انی استخيرك بعلمك۔الخ**).

مرشدي و سيدي حضرت حکيم الامت قدس الله سرّه العزيز وروسته ليکلي دي چه له استخاره
څخه مقصود يواځې د خير غوښتنه ده نه استخبار (د ښه يا بد کار د څرګندولو خبر). و ئې فرمايل
چي د استخارې حقيقت دا دی چه استخاره يوه دُعاء ده چه له هغې څخه مقصود يواځې په خير
باندې د اعانت طلب دی. يعنې د استخارې په ذريعې سره بنده خدای تعالی ته دا دُعاء کوي چه زه
څه کوم په هغه کښې خير راپيښ کړه. او کوم کار چه زما لپاره خير نه وي له هغه څخه مې وساته.
پس چه کله څوک استخاره وکړي نو د دې ضرورت نشته چه دا فکر وکړي چه زما د زړه زيات
ميلان کومې خوا ته دی، بيا چه د کوم کار خوا ته ميلان وي په هغه عمل وکړي او په هغه کښې د
ځان لپاره خير مقدر وګڼي. بلکه دی اختيار لري چه د نورو صالحو پر بناء چه په کوم کار کښې
ترجيح (غوره والی) ووينې په هغه دې عمل وکړي او په هغه کښې دې خپل خير وګڼي. ځکه چه په
لومړي صورت کښې الهام لره شرعي حجت ګڼل لازميږي او لازم صحيح نه دی له دې امله ملزوم هم
صحيح نه دی. پس حاصل دا شو چه له استخارې څخه مقصود يواځې د خير غوښتنه ده نه
استخبار. (بوادر النوادر ج۲، ص۴۲۴. انفاس عيسٰی حصه دويم ص۲۵۳. ۵۰۱).

**د پوښتنې وړ امور دا دي چه**:

۱ - آيا استخاره لکه څرنګه چه د ځينو حضراتو معمول ده په همدې ډول کول ئې ضروري دي
چه تر ماسخوتن وروسته دوه رکعته نفل ادا شي او د استخارې دُعاء وويل شي او په پاکې بسترې
باندې په اوداسه سره څملي او که په شپه يا ورځ کښې چه کله ئې خوښه وي استخاره کولی شي؟

۲ - چه کله د حضرت حکيم الامت د تحقيق مطابق استخاره يواځې د خير غوښتنه ده نه د خبر
غوښتنه (استخبار) او نه په استخاره کښې خوب ليدل يا د تردّد رفع کيدل او يوې خوا ته ترجيح
ورکول ضروري دي نو آيا په دې صورت کښې هم د استخارې د لمانځه او دُعاء نه وروسته په
پاکې بسترې باندې قبلې ته مخامخ ويده کيدل شته؟ آيا دا کافي نه ده چه په شپه يا ورځ کښې چه
کله څوک وغواړي (په دې شرط چه مکروه وخت نه وي) دوه رکعته نفل ادا کړي او له خشوع او
خضوع سره په عربي يا په کومې بلې ژبې سره د استخارې دُعاء وکړي او که څنګه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د صحاح په حدیث کښې یواځې تر دوه رکعته نفلو وروسته د دُعاء حکم دی. البته د ابن السني په روایت کښې د قلبي وارد (زړه ته د څه شي د ور لویدلو) اعتبار هم مذکور دی. نور تفصیلات د علماؤ له خانه بیانونه دي د هغو رعایت ضروري نه دی. دُعاء په عربۍ کښې باید وشي که چا ته سخته وي نو پخپله ژبه دې دُعاء وکړي

د حضرت تهانو رحمه الله تحقیق صحیح دی په زړه کښې په وارد شوي کار باندې عمل کول ضروري نه دي. بلکه په اسبابو او موانعو دې هم نظر ساتي که چیرته په زړه کښې د ورود روایت صحیح تسلیم شي نو هغه به د سبب په درجه کښې اعتبار لري نه د لزوم په درجه کښې

قال ابن عابدین رحمه الله (قوله ومنها رکعتا الاستخارة) عن جابر بن عبد الله رضي الله عنه قال کان رسول الله ﷺ یعلّمنا الاستخارة فی الامور کلها کما یعلمنا السورة من القرآن یقول اذا هم احدکم بالامر فلیرکع رکعتین من غیر الفریضة ثم لیقل اللّٰهم انّي استخیرُكَ بعلمك الخ رواه الجماعة الا مسلماً شرح المنیة. (وبعد اسطر) وفی الحلیة ویستحب افتتاح هذا الدعاء وختمه بالحمد له والصلوٰة وفی الاذکار انه یقرأ فی الرکعة الاولیٰ الکافرون وفی الثانیة الاخلاص اھ. وعن بعض السلف انه یزید فی الاولیٰ وربّك یخلق ما یشاء و یختار الیٰ قوله یعلنون وفی الثانیة وما کان لمؤمن ولا مؤمنة الآیة وینبغی ان یکررها سبعاً لما روی ابن السنی یا انس اذا هممت بأمر فاستخر ربّك فیه سبع مرّات ثم انظر الی الذی سبق الیٰ قلبك فان الخیر فیه ولو تعذرت علیه الصلوٰة استخار بالدعاء الخ ملخصاً وفی شرح الشرعة المسموع من المشائخ انه ینبغی ان ینام علی طهارة مستقبل القبلة بعد قراءة الدعاء المذکور فان رأیٰ فی منامه بیاضاً او خضرة فذٰلك الامر خیر و ان رأیٰ فیه سواد او حمرة فهو شر ینبغی ان یجتنب اھ. (ردالمحتار ج۱، ص۶۶۳)      فقط والله تعالیٰ اعلم      ۲۵ ذیقعده ۱۳۸۸ هجری

## د کسوف لمونځ تر مازدیګر وروسته مکروه دی

**سوال**: د کسوف لمونځ یعنې د لمر د نیولو لمونځ تر مازدیګر وروسته ادا کول څرنګه دي په داسې حال کښې چه کسوف تر مازدیګر وروسته شروع شي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د کسوف، خسوف او داسې نور لمونځونه په مکروه وخت کښې ادا کول جائز نه دي. که چیرته په مکروه وختونو کښې کسوف یا خسوف واقع شي نو د لمانځه په ځای باید په دُعاء ګانو خلک مشغول شي.

قال فی الدر فی غیر وقت مکروه. و قال ابن عابدین رحمه الله لان النوافل لا تصلی فی الاوقات المنهی عن الصلوٰة فیها وهذه نافلة جوهرة وما مر عن الاسبیجابی من جعله الوقت مستحباً قال فی البحر لا یصح قال طوئی

الحموی عن البرجندی عن الملتقط اذا انکسفت بعد العصر او نصف النهار دعوا و لم یصلّوا. (رد المحتار ج۱، ص۶۸۹)

فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۳۰ محرم ۱۳۸۹ھ ہجری

## د ماښام تر لمانځه مخکښې د تحية الوضوء او تحية المسجد د لمونځونو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دين علماء کرام او د شرع متين مفتيان عظام د لاندينی مسئلې په باره کښې چه تحية الوضوء او تحية المسجد د ماښام تر آذانه پنځه دقيقې مخکښې ادا کول بې له کراهته جائز دي او که نه؟ او په همدغو دواړو لمونځونو کښې د کوم سورت تخصيص شته او که نه؟ مثلاً ځينې خلک تر سورهٔ فاتحه وروسته سورهٔ اخلاص درې درې ځله لولي. آيا د دې څه اصل شته؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر مازديګر وروسته تر لمر ډوبيدو پورې د نفل لمانځه ادا کول جائز نه دي البته د لمر تر ډوبيدو وروسته د ماښام تر لمانځه مخکښې په لنډه توګه دوه رکعته نفل جائز دي ليکن بهتره دا ده چه د ماښام تر لمانځه مخکښې نفل و نه کړي او که ئې وکړي نو د کوم سورت تخصيص پکښې نشته.

قال ابن عابدین رحمۃ اللہ علیہ و افاد فی الفتح و اقرہ فی الحلیۃ و البحر ان صلوٰۃ رکعتین اذا تجوز فیہما لا تزید علی الیسیر فیباح فعلہما و قد اطال فی تحقیق ذٰلک فی الفتح فی باب الوتر و النوافل. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۹)

فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۲۴ صفر ۱۳۸۹ھ ہجری

## تر صبح صادق وروسته تحية الوضوء او تحية المسجد جائز نه دي

**سوال**: څه فرمائي علماء کرام او مفتيان شرع متين په دې مسئله کښې چه د صبح صادق په وخت کښې د سهار تر آذان وروسته تحية المسجد او تحية الوضوء د سهارله دوه رکعته مؤکدو سنتو نه مخکښې جائز دي او که مکروه تحريمي يا مکروه تنزيهي دي؟ ځينې علماء وائي چه د صبح صادو په وخت کښې تر آذان وروسته دوه رکعته تحية المسجد او تحية الوضوء ادا کولی شي دا خبره تر کومه خايه صحيح ده؟ د کرم او مهربانی له مخې زر تر زره ځواب راکړئ.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر صبح صادق وروسته د تحية المسجد او تحية الوضوء ادا کول جائز نه دي له دوه رکعته مؤکدو سنتو نه بغير هر ډول نوافل مکروه دي. په مکروه وختونو کښې په جومات کښې کښيناستل او د ذکر په کولو سره د تحية المسجد ثواب ورکول کيږي.

نقل ابن عابدین رحمۃ اللہ علیہ عن القهستانی و رکعتان او اربع و هی افضل لتحیۃ المسجد الّا اذا دخل فیہ بعد الفجر او العصر فانہ یسبّح و یہلّل و یصلّی علی النبی ﷺ فانہ حینئذٍ یؤدی حق المسجد کما اذا دخل للمکتوبۃ

فانه غیر مامور بها حینئذٍ کما فی التمر تاشی آه. (رد المحتار ج۱، ص۶۳۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ جمادی الاخره ۱۳۸۹ هجری

## د تحیة الوضوء او تحیة المسجد د لمونځونو تفصیل

**سوال**: چه کله یو څوک جومات ته داخل شي او اودس هم د جومات د اوداسه په ځای کښې وکړي نو آیا لومړی به تحیة الوضوء ادا کوي او که تحیة المسجد په داسې حال کښې د دواړه د ادا کولو اراده ئې کړې وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جومات ته په داخلیدو سره دې دوه رکعته لمونځ وکړي نو هغه د تحیة الوضوء او تحیة المسجد د دواړو قائم مقام ګرځي. بلکه جومات ته په داخلیدو سره چه سړی کوم لمونځ هم وکړي نو تحیة المسجد ئې په ضمن کښې ادا کیږي. همدارنګه د اوداسه د لمدوالي تر وچیدو مخکښې چه کوم لمونځ سړی ادا کړي نو تحیة الوضوء ئې هم ادا کیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ جمادی الاولیٰ ۱۳۸۹ هجری

## د پورتني سوال په اړه یو بل سوال

**سوال**: تاسو لیکلي دي چه جومات ته تر داخلیدو وروسته چه څوک فرض لمونځ وکړي نو دا د تحیة المسجد قائم مقام ګرځي. یو عالِم فرمائي چه که چیرته په دې لمانځه کښې د تحیة المسجد نیت وشي نو تحیة المسجد ئې ادا کیږي او که نیت و نه کړي نو نه ادا کیږي. آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: علامه شامي رحمه الله په دې باندې تر مفصل کلام نه وروسته لیکي چه د جومات د تعظیم طلب بې له نیت څخه هم ساقطیږي. البته ثواب په نیت پورې موقوف وي لیکن د بنده په خیال کښې راجحه خبره دا ده چه د جومات د تعظیم نیت وکړي، د تحیة المسجد سنتو نیت دې نه کوي. ځکه چه په دې صورت کښې بیا د لمانځه په صحت کښې اختلاف دی

فقط والله تعالیٰ اعلم یوم العرفه ۱۴۰۰ هجری

## د تحیة الوضوء وخت د اندامونو تر وچیدلو مخکښې دی

**سوال**: که چیرته یو څوک په کور کښې اودس وکړي او جومات ته لاړ شي نو تحیة الوضوء ادا کولی شي او که نه؟ مشهوره ده چه کله اندامونه وچ شي نو تحیة الوضوء نه شي ادا کیدلی. د دې شرعاً څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د تحیة الوضوء وخت د اندامونو تر وچیدلو مخکښې دی

قال فی شرح التنویر و ندب رکعتان بعد الوضوء یعنی قبل الجفاف کما فی الشرنبلالیة عن المواهب. (رد المحتار ج۱، ص۶۳۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ محرم ۱۳۹۵ هجری

## په کښیناستو سره تحیة المسجد نه ساقطیږي

**سوال**: زید جومات ته لاړ او په دې خیال سره کښیناست چه د جماعت وخت نږدې دی. لیکن وروسته څرګنده شوه چه څه وخت لا پاتې دی. د دې لپاره ئې دوه رکعته نفل لمونځ ادا کړ. آیا تحیة المسجد ئې ادا شو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر کښیناستلو مخکښې تحیة المسجد ادا کول بهتر دي. لیکن په کښیناستو سره تحیة المسجد نه ساقطیږي. د دې لپاره که چیرته تر کښیناستو وروسته زر تر زره جماعت ودریږي نو دا فرض د تحیة المسجد قائم مقام ګرځي. او که چیرته جماعت ته څه وخت پاتې وو نو بیرته دې ودریږي او تحیة المسجد دې ادا کړي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی الحجة ۱۳۹۹ هجری

## تحیة المسجد د وخت له لمونځونو سره مخصوص نه دی

**سوال**: آیا تحیة المسجد یواځې په داسې وخت کښې مسنون دی چه کله سړی د پنځه وخته لمونځونو لپاره جومات ته ځي او که هر کله چه د کوم کار لپاره سړی جومات ته ځي نو په هر حال کښې به تحیة المسجد ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له مکروه وختونو نه بغیر چه کله هم سړی جومات ته داخلیږي نو تحیة المسجد به ادا کوي. دا لمونځ د وخت له لمونځونو سره تعلق نه لري. بلکه د پنځه وخته لمونځونو لپاره خو جومات ته په داخلیدو سره تر کښیناستو مخکښې یا تر کښیناستو وروسته زر تر زره که د وخت فرض یا سنت شروع کړي نو دا لمونځ د تحیة المسجد قائم مقام ګرځي. د مستقل تحیة المسجد حکم یواځې په هغه صورت کښې دی چه کله جومات ته پرته د لمانځه له نیت څخه داخلیږي. البته که چیرته د لمانځه په نیت سره داخل شي لیکن په جماعت کښې ځنډ وي او د سنتو او داسې نورو هم د زر ادا کولو قصد و نه لري نو تحیة المسجد دې مستقل ادا کړي

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی الحجة ۱۳۹۹ هجری

## په ورځ کښې یو ځل تحیة المسجد سنت مؤکد دی

**سوال**: که چیرته د کوم کار له وجې سړی بار بار جومات ته داخلیږي نو آیا هر ځل تحیة المسجد ورته مسنون دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ورځ کښې یو ځل د تحیة المسجد ادا کول سنت مؤکد دی. که ئې په ټولو مرو ځل داخلیدو کښې ادا کوي یا په آخر کښې، که چیرته په همدې ورځ په جومات کښې هر یو لمونځ ادا کړي نو د تحیة المسجد سنت ادا کیږي.

قال فی التنویر و یسنّ تحیة المسجد و فی الشامیة کتب الشارح فی هامش الخزائن ان هٰذا رد علی صاحب الخلاصة حیث ذکر انها مستحبة و فی العلائیة و تکفیه لکل یوم مرّة. قال ابن عابدین رحمه الله ای اذا تکرر دخوله لعذر وظاهر اطلاقه انه مخیر بین ان یؤدیها فی اوّل المرات او اٰخرها. (ردالمحتار ج۱،ص۶۳۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی الحجة ۱۳۹۹ هجری

## د تحیة المسجد قائم مقام تسبیحات

**سوال**: زید د ضروري کار له مخې جومات ته ځي، دومره فرصت نه لري چه اودس وکړي او تحیة المسجد ادا کړي نو آیا د څه ذکر په کولو سره د تحیة المسجد ثواب ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د با لکل محروم او بې برخې را وتلو په ځای باید یو څه خو وکړي اګر که څو ځله (سبحان الله والحمد لله ولا اله الّا الله والله اکبر) هم ووائي.

نقل فی الشامیة عن الضیاء و قال بعضهم من دخل المسجد ولم یتمکن من تحیة المسجد اما لحدث او لشغل او نحوه یستحبّ له ان یقول سبحان الله و الحمد لله و لا إلٰه الا الله و الله اکبر، قاله ابو طالب المکی فی قوت القلوب اھ. وقدمنا نحوه عن القهستانی. (ردالمحتار ج۱،ص۶۳۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی الحجة ۱۳۹۹ هجری

## څلور رکعته نفل لمونځ په دریم رکعت کښې د ماتولو حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک څلور رکعته نفل شروع کړي او بیا ئې په دریم یا څلورم رکعت کښې مات کړي نو آیا د څلور رکعتونو قضائي به را ګرځوي او که یوازې د دوه رکعتونو؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د څلوروارو رکعتونو قضائي پرې واجبه ده. دویمه شفع د فاسدولو له وجې او اوله شفع د ترکِ سلام د جبرِ نقصان لپاره.

قال فی الدر وقضی رکعتین لو نوی اربعاً غیر مؤکدة علی اختیار الحلبی وغیره ونقض فی خلال الشفع الاول او الثانی ای وتشهد للاوّل والّا یفسد الکل اتفاقاً والاصل ان کل شفع صلٰوة و فی الشامیة. (قوله او الثانی) ای و کذا یقضی رکعتین لو اتم الشفع الاوّل بقعدته ثم شرع فی الثانی فنقضه فی خلاله قبل القعدة فیقضی الثانی

فقط لعمام الاوّل لکن ينبغي وجوب اعادة الاوّل لترك واجب السلام مع عدم الجهارة بسجود سهو كما هو الحكم في كل صلوٰة اديت مع ترك واجب ولا يخالف ذٰلك كلامهم هنا لان كلامهم في لزوم القضاء وعدمه بناء على الفساد وعدمه والاعادة فعل ما اذي صحيحاً مع الكراهة مرّة ثانية بلا كراهة. (ردالمحتار ج۱،ص۴۲۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ جمادی الاولیٰ ۱۳۸۹ هجری

## مخکښيني سنت چه پاتې شي نو تر وروستني سنتو دې وروسته ادا کړي

**سوال**: که چيرته له چا څخه د ماسپښين څلور رکعته مخکښيني سنت پاتې شي نو تر فرضو وروسته چه کوم دوه رکعت نور سنت دي آيا تر دغو سنتو به ئې مخکښې ادا کوي او که وروسته؟ بله پوښتنه دا ده چه اوس په داسې حال کښې چه له خپله ځايه خو بې ځايه شوي دي نو آيا حيثيت به ئې د سنتِ مؤکدو وي او که د نفلو؟ او دا هم واضحه کړی چه آيا اوس دا سنت اداء ګڼل کيږي او که قضاء؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له فرضو وروسته دې لومړی دوه رکعته سنت ادا کړي بيا دې د څلورو مخکښينيو سنتو قضائي را وګرځوي. د خپل اصل ځای څخه د بې ځايه کيدو تر څنګ د وخت په دننه کښې د هغو قضاء سنتِ مؤکده ده.

قال في الدر بخلاف سنة الظهر و كذا الجمعة فانه ان خاف فوت ركعة يتركها و يقتدي ثم يأتي بها على انها سنة في وقته اي الظهر قبل شفعه عند محمد رحمه الله وبه يفتي جوهرة. وفي الشامية (قوله وبه يفتي) اقول وعليه المتون لكن رجح في الفتح تقديم الركعتين قال في الامداد وفي فتاوى العتابي انه المختار وفي مبسوط شيخ الاسلام كان اذا فاتته الاربع قبل الظهر يصليهن بعد الركعتين و هو قول ابي حنيفة رحمه الله و كذا في جامع قاضي خان اه. (ردالمحتار ج۱،ص۶۶۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ رجب ۱۳۸۹ هجری

## که چيرته د جُمعې مؤکد سنتونه پاتې شي نو کله به ئې ادا کوي؟

**سوال**: د جُمعې تر لمانځه مخکښې څلور رکعته سنت که چيرته تر خطبې مخکښې ادا نه شي کړی نو تر فرضو وروسته به لومړی د همدغو څلورو سنتونو قضائي را ګرځوي او که تر جُمعې وروسته سنتونه به يو ځل ادا کوي او بيا به همدغه څلور سنتونه را ګرځوي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سنتو او نفلو په لمانځه کښې د وخت د تعين نيت ضروري نه دی د دې لپاره تر فرضو وروسته مطلقاً اته رکعته سنت ادا کول کافي دي. د مخکښينيو او وروستنيو د تعين حاجت نشته. که چيرته څوک تعين وکړي نو بيا دې لومړی تر فرضو وروسته سنتونه ادا

کړي او بیا دې مخکښې پاتې شوي سنت اداکړي فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ رجب ۱۳۹۷ هجری

## د جُمعې تر لمانځه وروسته د رکعتونو تعداد

**سوال** : د جُمعې تر فرضو وروسته څه کوم شپږ رکعته سنت ادا کیږي د هغو په باره کښې ځینې علماء دا خبره کوي چه وروستني دوه رکعته مستحب دي. دا خبره تر کومه ځایه صحیح ده؟ د حنفي کتابونو له مخې رڼا پرې واچوئ. برسیره پر دې چه آیا نبي کریم ﷺ او صحابهٔ کرامو ﷺ د جُمعې تر لمانځه وروسته شپږ رکعته سنتونه کړي دي او که څلور؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د جُمعې تر لمانځه وروسته په مرفوع حدیث کښې څلور رکعته راغلي دي او له حضرت علي ﷺ څخه شپږ رکعته مروي دي. لهذا شپږ ادا کول افضل دي. لومړی څلور مؤکد سنتونه او بیا دوه رکعته غیر مؤکد.

قال العلاء رحمۃ اللہ علیہ وسن مؤکداً اربع قبل الظهر واربع قبل الجمعة واربع بعدها بتسليمة. (رد المحتار ج۱، ص۶۳۰) و قال ابن نجيم رحمۃ اللہ علیہ والدليل على استنان الاربع بعدها ما فى صحيح مسلم عن ابى هريرة ﷺ مرفوعاً اذا صلّى احدكم الجمعة فليصل بعدها اربعا وفى رواية اذا صليتم بعد الجمعة فصلوا اربعا وذكر فى البدائع انه ظاهر الرواية وعن ابى يوسف رحمۃ اللہ علیہ انه ينبغى ان يصلى اربعاً ثم ركعتين وذكر محمد رحمۃ اللہ علیہ فى كتاب الاعتكاف ان المعتكف يمكث فى المسجد الجامع مقدار ما يصلى اربعاً او ستاً اه. وفى الذخيرة والتجنيس و كثير من مشائخنا على قول ابى يوسف رحمۃ اللہ علیہ فى منية المصلّى والافضل عندنا ان يصلى اربعاً ثم ركعتين. و قال ابن عابدين رحمۃ اللہ علیہ فى منحة الخالق قال فى الذخيرة وعن على ﷺ انه يصلّى ستاً ركعتين ثم اربعاً وعنه رواية اخرى انه يصلى بعدها ستا اربعا ثم ركعتين وبه اخذ ابو يوسف والطحاوى و كثير من المشائخ رحمهم الله تعالىٰ وعلى هذا قال شمس الائمة الحلوانى رحمۃ اللہ علیہ وبين تقديم المثنى ولكن الافضل تقديم الاربع كيلا يصير متطوعاً بعد الفرض مثلها اه. (البحر الرائق ج۲، ص۴۹) و قال الحلبى رحمۃ اللہ علیہ و عند ابى يوسف رحمۃ اللہ علیہ السنة بعد الجمعة ست ركعات و هو مروى عن على ﷺ والافضل ان يصلى اربعا ثم ركعتين للخروج عن الخلاف. (غنية ص۳۶۳) فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۲ جمادى الاخره ۱۳۸۹ هجرى

## نوافل په کور کښې اداکول بهتر دي

**سوال** : د جومات په دننه کښې د فرض تر اداکولو وروسته د مدرسې په صحن کښې کوم چه له جومات سره لګیدلی دی د سنتونو او نوافلو په اداکولو کښې له جومات څخه زیات ثواب ورکول کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نوافل او سنتونه په کور کښې ادا کول بهتر دي په دې شرط چه په لاره کښې د کوم مشغولیت ویره نه وي. که چیرته په کور کښې کوم کار د خشوع او خضوع په مخ کښې خنډ وو نو بیا په جومات کښې ئې ادا کول بهتر دي.

قال فی شرح التنویر و الافضل فی النفل غیر التراویح المنزل الا لخوف شغل عنها و الاصح افضلیة ما کان اخشع واخلص، وفی الشامیة (قوله و الافضل فی النفل الخ) شمل ما بعد الفریضة و ما قبلها لحدیث الصحیحین علیکم بالصلوٰة فی بیوتکم فان خیر صلوٰة المرء فی بیته الّا المکتوبة و اخرج ابو داؤد و صلوٰة المرء فی بیته افضل من صلوٰته فی مسجدی هٰذا الا المکتوبة و تمامه فی شرح المنیة وحیث کان هٰذا افضل یراعی مالم یلزم منه خوف شغل عنها لو ذهب لبیته او کان فی بیته ما یشغل باله ویقلّل خشوعه فیصلیها حینئذٍ فی المسجد لان اعتبار الخشوع ارجح. (ردالمحتار ج۱، ص۶۳۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ رجب ۱۳۸۹ هجری

## د جُمعې د سنتونو نیت

**سوال**: تر جُمعې مخکښې او وروستنې سنتونو په نیت کښې به جُمعه ویل کیږي او که ماسپښین؟ زید کوم چه یو عالِم دی وائي چه دا سنتونه د ماسپښین دي، د جُمعې یواځې دوه فرض دي. شرعاً د زید قول صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جُمعې و ماسپښین جلا جلا سنتونه مذکور دي قال فی العلائیة و سن مؤکدا اربع قبل الظهر و اربع قبل الجمعة و اربع بعدها بتسلیمة. (ردالمحتار ج۱، ص۶۳۰) البته په نیت کښې ئې د ماسپښین یا جُمعې ذکر کول ضروري نه دي. د ټولو سنتونو او نفلونو همدا قاعده ده چه په هغو کښې د وخت نیت ضروري نه دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ربیع الاول ۱۳۹۱ هجری

## پخپلې ذمې باندې د جُرمانې په توګه نفل واجبول

**سوال**: بکر پخپل ځان باندې د جُرمانې په توګه وویل چه که چیرته فلانی کار وکړم نو د جُرمانې په توګه به سل رکعته نفل وکړم. او خیال ئې هم دا و چه دا سل رکعته را باندې واجبیږي آیا د بکر په دې خیال سره دا سل رکعته نفل پرې واجب شول او که څنګه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هر هغه لفظ چه پخپل ځان باندې وجوب او الزام ثابتوي له هغه څخه نذر منعقد کیږي او په هغه باندې وفا کول واجب ګرځي. د "جُرمانې په توګه" لفظ له همدې جُملې څخه دی. د جُرمانې واجب الاداء والی ښکاره دی. د دې لپاره سل رکعته نفل پرې واجب شوي دي که ئې د وجوب خیال وو یا نه وو. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ ذیقعده ۱۳۹۱ هجری

## د قنوت تکبیر واجب نه دی

**سوال**: آیا په وترو کښې دُعاء قنوت ویل واجب دی او که یواځې تکبیر ئې واجب دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په وترو کښې تر تکبیر وروسته د کومې دُعا ویل واجب دي او مشهوره دعاء قنوت سنت دی. تر قنوت مخکښې تکبیر واجب نه دی بلکه سنت دی.

فی واجبات العلائیة و قراءة قنوت الوتر و هو مطلق الدعاء و کذا تکبیر قنوته. و فی الشامیة (قوله و هو مطلق الدعاء) ای القنوت الواجب یحصل بای دعاء کان. قال فی النهر و اما خصوص اللّٰهم انا نستعینک فسنة فقط حتی لو اتی بغیره جاز اجماعاً (قوله و کذا تکبیر قنوته) ای الوتر قال فی البحر فی باب سجود السهو و مما الحق به ای بالقنوت تکبیره و جزم الزیلعی بوجوب السجود بترکه و ذکر فی الظهیریة انه لو ترکه لا روایة فیه و قیل یجب السجود اعتباراً بتکبیرات العید و قیل لا اه. و ینبغی ترجیح عدم الوجوب لانه الاصل و لا دلیل علیه بخلاف تکبیرات العید اه. (رد المحتار ج۱، ص۴۳۷) فقط والله تعالی اعلم ۲۶ جمادی الاخرہ ۱۳۹۲ھ ہجری

## د قنوت په تکبیر کښې د لاسونو د پورته کولو ثبوت

**سوال**: د وترو په لمانځه کښې په آخري رکعت کښې چه کوم لاسونه پورته کیږي د دې په اړه دا ولیکئ چه دا په کوم حدیث سره ثابت دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له حضرت عمرو عبد الله بن مسعود رضی الله عنهما څخه ثابت دي. او د غیر مدرک با لقیاس کیدو له وجې د مرفوع حدیث په حکم کښې دی. برسیره پر دې له ابن عمر رضی الله عنهما څخه حقیقةً مرفوع حدیث هم راغلی دی.

عن الاسود عن عبد الله ﷺ انه کان یقرأ فی اٰخر رکعة من الوتر قُل هُو الله احد ثم یرفع یدیه فیقنت قبل الرکعة رواه الامام البخاری فی جزء رفع الیدین و قال صحیح. (اعلاء السنن ج۶، ص۵۳) عن ابی عثمان کان عمر ﷺ یرفع یدیه فی القنوت اخرجه البخاری ایضاً فی الجزء المذکور و صححه و عنه ایضاً باسناد صحیح قال کنا و عمر ﷺ یوم الناس ثم یقنت بنا عند الرکوع یرفع یدیه حتی یبدو کفاه و یخرج ضبعیه اخرجه البخاری ایضاً فی الجزء المذکور. (اعلاء السنن ج۶، ص۵۳)

عن ابن عمر رضی الله تعالی عنهما قال ارأیتم قیامکم عند فراغ الامام من السورة هٰذا القنوت و الله انه لبدعة ما فعله رسول الله ﷺ غیر شهر ثم ترکه. ارأیتم رفعکم ایدیکم فی الصلوٰة و الله انه لبدعة ما زاد رسول الله ﷺ علی هٰذا قط فرفع یدیه حیال منکبیه رواه الطبرانی فی الکبیر و فیه بشر ابن حرب ضعفه احمد و

ابن معین و ابو زرعة و ابو حاتم و النسائی و وثقه ایوب و ابن عدی. (مجمع الزوائد) قلت فالحدیث حسن. (اعلاء السنن ج۲، ص۵۷)

له آخري حدیث څخه دا هم ثابته شوه چه په قنوت کښې د دُعاء په توګه د لاسونو پورته کول هم نشته. قال فی الاعلاء و اما قوله أرأیتم رفعکم ایدیکم فی الصلوٰة و الله انه لبدعة ففیه دلیل علی کراهة اطالة رفع الیدین فی القنوت کما ترفعان فی الدعاء خارج الصلوٰة و لیس معناه ان مطلق رفع الیدین للقنوت بدعة لان قوله ما زاد رسول الله ﷺ علی هذا قط فرفع یدیه حیال منکبیه یفید سنیة رفعهما له فی الجملة و لا بد من التغایر فی الرفع الذی جعله بدعة و الذی اثبته فالظاهر انه کره اطالة رفعهما کما ترفعان فی الدعاء خارج الصلوٰة و اثبت رفعهما حیال المنکبین سنة لیس هو الا الرفع القصیر الذی یکون قبل القنوت فان الرفع الطویل فی الدعاء لا یکون بحیال المنکبین بل انما هو بحذاء الوجه او الصدر کما مرّ فی بابه هذا و قد تقدم ان نفس رفع الیدین للقنوت ثابت عن ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما جعله بدعة فالظاهر انه اراد ما قلنا ان اطالة الرفع بدعة و الحدیث یفید بمفهومه ثبوت رفع الیدین للقنوت عن النبی ﷺ مرفوعاً و الله تعالیٰ اعلم. (اعلاء السنن ج۲، ص۵۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ رجب ۱۳۹۲ هجری

## په غیر مؤکد سنتونو کښې په لومړی قعده کښې درود، دُعاء او په دریم رکعت کښې ثناء لوستل بهتر دي

**سوال** : چه کله یو څوک د مؤکدو سنتو یا غیرِ مؤکدو څلور رکعته نیت وتړي نو آیا په اولې قعدې کښې به درود شریف او دُعاء وائي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په غیر مؤکدو سنتو کښې په دویم رکعت باندې درود شریف او دُعاء لوستل او د دریم رکعت په شروع کښې د ثناء ویل افضل دي په مؤکدو سنتونو کښې به درود شریف نه وائي که چیرته ئې سهواً ووائي نو سجدهٔ سهو واجبیږي البته د جُمعې[1] تر فرضو وروسته چه کوم سنت دي د هغو په اولې قعدې کښې د درود شریف لوستل جائز دي په دې سره سجده سهو نه واجبیږي د دې لپاره اګر که دا څلور رکعته مؤکد دي لیکن څلور واړه په یوه سلام سره ادا کړل مؤکد نه دي.

قال فی شرح التنویر و لا یصلی علی النبی ﷺ فی القعدة الاولی فی الاربع قبل الظهر و الجمعة و بعدها و لو صلی

---

۱ - د جُمعې د ورستنیو سنتونو حکم هم د مخکښنیو سنتونو غوندې دی تفصیل په تتمه کښې دی

ناسيا فعليه السهو وقيل لا. شمنى ولا يستفتح اذا قام الى الثالثة منها انها لتأكيدها اشبهت الفريضة وفى البواقى من ذوات الاربع يصلى على النبى ﷺ ويستفتح ويتعوذ ولو نذراً لان كل شفع صلوة وقيل لا يأتى فى الكل وصححه فى القنية. وفى الشامية (قوله ولا يصلى الخ) اقول قال فى البحر فى باب صفة الصلوة ان ما ذكر مسلم فيما قبل الظهر لما صرحوا به من انه لا تبطل شفعة الشفيع بالانتقال الى الشفع الثانى منها ولو افسدها قضيا اربعاً والاربع قبل الجمعة بمنزلتها واما الاربع بعد الجمعة فغير مسلم فانها كغيرها من السنن فانهم لم يثبتوا لها تلك الاحكام المذكورة اه ومثله فى الحلية وهذا مؤيد لما بحثه الشرنبلالى من جوازها بتسليمتين لعذر. (قوله وقيل لا الخ) قال فى البحر ولا يخفى ما فيه والظاهر الاول زاد فى المنح ومن ثم عولنا عليه وحكينا ما فى القنية بقيل. (ردالمحتار ج۱، ص۶۳۳) فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۸ ذيقعده ۱۳۹۶ هجرى

## د سنتو او فرضو تر منځ د فصل (جلاوالي) حکم

**سوال**: که چيرته يو څوک د ماسپښين مخکښيني سنتونه وکړي او جومات ته لاړ شي او جماعت ته وخت پاتې وي نو آيا تحية المسجد يا نور نوافل ادا کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مخکښينيو سنتونو او فرضو تر منځ نفل کولی شي، البته د سنتو او فرضو تر منځ بې له عذره داسې کار کول چه د تحريمه خلاف وي د ثواب کموونکی دی. ځينو خو د سنتو ساقطوونکی بللی دی. ليکن دا خبره صحيح نه ده. د وروستني سنتونو هم همدغه حکم دی. والتفصيل فى العلائية والشامية ج۱، ص۶۳۶. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۱ جمادى الاولى ۱۳۹۷ هجرى

## په صلوة التسبيح کښې په دويم او څلورم رکعت کښې قيام ته د تلو په وخت کښې د تکبير حکم

**سوال**: په صلوة التسبيح کښې خلک د لومړي او دريم رکعت تر دواړو سجدو وروسته د الله اکبر په ويلو سره کښيني او تسبيحات وائي. تر دغو رکعتونو وروسته د دويم او څلورم رکعت لپاره د پورته کيدو په وخت کښې به هم تکبير وائي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې وخت کښې تکبير ويل ثابت نه دي. همدارنګه د سجدې او قيام تر منځ ناسته شرعاً معتبره نه ده. **کجلسة الاستراحة**. لهذا له سجدې څخه تر قيامه پورې انتقال د حکم له مخې يو دی. د دې لپاره د قاعدې مطابق د يوه انتقال لپاره به يو تکبير ويل کيږي. د تکبير تکرار روا نه دی. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۵ رمضان ۱۳۹۸ هجرى

## د صلوة التسبيح په قومه کښې د لاسونو تړل مسنون دي

**سوال**: يو عالِم فرمائي چه په صلوة التسبيح کښې تر رکوع وروسته چه کله څوک په ولاړې تسبيحات وائي نو په دې حالت کښې دې بايد لاسونه تر نامه لاندې وتړي آيا دا خبره صحيح ده. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په هر اوږد قيام کښې د لاسونو تر نامه لاندې تړل مسنون دي. د دې کليې لاندې د صلوة التسبيح په قومه کښې به هم د لاسونو تړل مسنون وي

قال العلائی رحمة الله عليه لا يسن (الوضع) فی قيام بين رکوع وسجود لعدم القرار ولا بين تکبيرات العيد لعدم الذکر ما لم يطل القيام فيضع، سراجية. و قال ابن عابدين رحمة الله عليه (قوله لعدم القرار) ليس علی اطلاقه لقولهم ان مصلی النافلة ولو سنة يسن له ان يأتی بعد التحميد بالادعية الواردة نحو ملء السموٰت والارض الخ واللّٰهم اغفر لی وارحمنی بين السجدتين نهر. ومقتضاه انه يعتمد بيديه فی النافلة ولم ار من صرح به تأمل لکنه مقتضی اطلاق الاصلين المارين ومقتضاه انه يعتمد ايضاً فی صلوة التسابيح ثم رأيته ذکره ط. والرحمتی والسائحانی بحثا. (قوله ما لم يطل القيام فيضع) ای فان اطاله لکثرة القوم فانه يضع. (رد المحتار ج۱، ص۴۵۵)

وقال الطحطاوی رحمة الله عليه وظاهره يعم ای قيام طال وعليه فيضع فی قيام صلوة التسابيح الذی بين الرکوع والسجود. (طحطاوی علی الدر ج۱، ص۲۱۸) فقط والله تعالی اعلم ۲۸ رجب ۱۳۸۹ هجری

## د نفلو د ادا کولو په حالت کښې د سهار کيدلو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دين علماء کرام په دې مسئله کښې چه يو سړی په نفلو باندې ولاړ وو چه سهار شو نو آيا دا نفل ئې صحيح شو او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سهار تر ختلو وروسته پرته د سهار له سنتو څخه نور نوافل او واجب لغيره مکروه دي. البته که چيرته يو څوک په نفلو ولاړ وي او سهار شي نو دا نفل صحيح دي او پوره کول ئې افضل دي

قال فی الشامية (قوله قصداً) احترز به عما لو صلی تطوعًا فی اٰخر الليل فلمّا صلّی رکعة طلع الفجر فان الافضل اتمامها لان وقوعه فی التطوع بعد الفجر لا عن قصد ولا ينوبان عن سنة الفجر علی الاصح. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۸) فقط والله تعالی اعلم ۲ شعبان ۱۳۹۷ هجری

## په مکروه وخت کښې د شروع شوي نفلو حکم

**سوال**: يو چا په مکروه وخت کښې نفل شروع کړل. وروسته ورمعلومه شوه چه د مکروه وخت

دی. نو آيا دا نفل به پوره کوي او که ماتوي به ئې؟ که چيرته ئې مات کړي نو آيا قضائي به ئې واجبه وي او که نه؟ او که چيرته ئې په همدې وخت کښې پوره کړي نو په بل وخت کښې به ئې بيا هم قضاء واجبه وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په مکروه وخت کښې نفل په شروع کولو سره واجبيږي. ليکن په دې وخت کښې ئې ماتول واجب دي او په بل وخت کښې به ئې قضائي را ګرځوي. که چيرته ئې په همدې وخت کښې پوره کړي او مات ئې نه کړي نو ګنهګار به وي. ليکن واجب ئې ادا شول او قضاء پرې لازمه نه ده.

قال فی التنویر ولزم نفل شرع فیه قصداً ولو عند غروب وطلوع واستواء فان افسده حرم الا بعذر ووج قضائه وقال ابن عابدین رحمة الله علیه (قوله الا بعذر) استثناء من قوله حرم ای انه عند العذر لا یحرم افساده بل قد یباح ویستحب ویجب کما قدمه فی اٰخر مکروهات الصلٰوة ومن العذر اذا کان شروعه فی وقت مکروه ففی البدائع الافضل عندنا ان یقطعها وان اتم فقد اساء ولا قضاء علیه لانه اداها کما وجبت فاذا قطعها لزمه القضاء قال فی البحر وینبغی ان یکون القطع واجباً خروجاً عن المکروه تحریماً ولیس بابطال للعمل لانه ابطال لیؤدیه علی وجه اکمل فلا یعد ابطالاً.(ردالمحتار ج۱،ص۶۳۶) فقط والله تعالٰی اعلم ۱۷ محرم ۱۳۹۸ هجری

## د دوه یا دریو کسانو د نفلو جماعت شروع کول او وروسته د زیاتو خلکو شریکېدل

**سوال** : یو یا دوه کسان له امام سره د نوافلو په جماعت کښې شریک وو لیکن وروسته څه نور خلک هم شریک شول نو آیا دا جماعت مکروه شو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کوم مقتدیان چه له شروع څخه وو په هغوی باندې هیڅ کراهت نشته. وروسته چه له څلورو څخه زیات چه کوم خلک شریک شي نو کراهت به په هغوی باندې وي.

قال ابن عابدین رحمة الله علیه لو اقتدٰی به واحد او اثنان ثم جاءت جماعة اقتدوا به قال الرحمتی ینبغی ان تکون الکراهة علی المتأخرین اه.(ردالمحتار ج۱،ص۶۶۴) فقط والله تعالٰی اعلم ۲۶ شوال ۱۳۹۸ هجری

## تر تهجدو مخکښې ویده کېدل ضروري نه دي

**سوال** : آیا د تهجدو د لمانځه لپاره د ماسخوتن تر لمانځه وروسته ویده کېدل شرط دي؟ که چیرته یو څوک ټوله شپه په وینښه تیروي یاد شپې اکثره برخې په وینښه تیروي لکه څرنګه چه په عامه توګه د علم طالبان دشپې تر ډېره پورې کښیني او مطالعې کوي. که چیرته هغوی د شپې په

آخري برخه کښې لمونځ وکړي نو آیا تهجد به ورته ویل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر تهجدو مخکښې ویده کیدل ضروري نه دي. پرته له ویده کیدل هم د تهجدو لمونځ کیږي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ محرم ۱۳۹۹ هجری

## د وترو په رکعتونو کښې د شک په صورت کښې د دُعاء قنوت دوه ځلې د ویلو حکم

**سوال**: عمرو ته په وترو کښې شک ور ولویده چه دا دویم رکعت دی او که دریم. د دې لپاره ئې په دې رکعت کښې هم قنوت وواېه او کښیناست. تر دې وروسته ئې یو بل رکعت هم ورسره یو ځای کړ او په دې کښې ئې هم قنوت وواېه. په آخر کښې ئې سجدهٔ سهو وکړه نو آیا لمونځ ئې وشو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ ئې صحیح شو. د قنوت تکرار صحیح دی.

قال فی العلائیة قنت فی اولی الوتر او ثانیته سهواً لم یقنت ثالثته اما لو شك انه فی ثانیته او ثالثته کرره مع القعود فی الاصح و الفرق ان الساهی قنت علی انه موضع القنوت فلا یتکرر بخلاف الشاك و رجح الحلبی تکراره لهما. وقال ابن عابدین رحمه الله علیه (قوله ورجح الحلبی تکراره لهما) حیث قال الا ان هذا الفرق غیر مفید اذ لا عبرة بالظن الذی ظهر خطؤه و اذ کان الشاك یعید لاحتمال ان الواجب لم یقع فی موضعه فکیف لا یعید الساهی بعد ما تیقن ذٰلك وقد صرح فی الخلاصة عن الصدر الشهید بأن الساهی یقنت ثانیاً فان کان ما مرّ روایة فهی غیر موافقة للدرایة اه. قلت و کذا رجحه فی الحلیة و البحر بنحو ما مرّ. (رد المحتار ج۱، ص۶۲۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ محرم ۱۳۹۹ هجری

## د اشراق د لمانځه ثبوت

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیانِ عظام د لاندینی مسئلې په باره کښې چه اشراق او څاښت دواړه د یوه لمانځه نومونه دي او که جلا جلا لمونځونه دي؟ د فقهې په عامو کتابونو کښې د صلوٰة الضحٰی ذکر دی لیکن د اشراق د لمانځه په یوه کتاب کښې هم کومه یادونه نه تر لاسه کیږي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اشراق او څاښت دواړه جلا جلا لمونځونه دي. د هر یوه ثبوت په احادیثو کښې موجود دی. په الکوکب الدرري کښې دي چه:

قوله باب ما جاء فی صلوٰة الضحٰی، وقت الضحٰی من وقت ارتفاع الشمس الی الزوال و هو نصفان، الضحوة

الکبریٰ والضحوة الصغریٰ، فالاولیٰ الاخر منه والثانیة الاول منه واکثر اطلاق الضحیٰ علی الاول، والغرض من وضع الباب الرّد علی من لم یره ثابتاً بالسّنة و قال ان صلوٰة الضحیٰ بدعة لکن لا اختلاف فی صلوٰة الضحوة الصغریٰ التی نسمیها صلوٰة الاشراق بل الاختلاف فی الاخریٰ. (الکوکب الدری ج۱، ص۱۹۲)

په لامع الدراري کښې تر دې هم زيات تفصيل موجود دی. د فقهې د کتابونو نه جملې څخه هم په حاشية الطحطاوي علي الدر کښې د اشراق د لمانځه ذکر موجود دی.

ونصه (قوله وندب اربعاً) هو المعتمد وقیل لا تندب ومن ثمراتها انّها تقوم مقام صلوٰة اللّیل وتورث الغنیٰ والبرکة فی الرزق ویؤدی بها صدقات مفاصل الانسان المأمور بها فی حدیث کل سلامی من الناس علیه صدقة والمستحب ان یقرأ فی الاولیٰ والشمس وضحٰها وفی الثانیة والضحیٰ کما ورد فی الحدیث وهی غیر صلوٰة الاشراق وهی رکعتان کما ورد فی بعض الأثار. (طحطاوی علی العلائیة ج۱، ص۱۸۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ ربیع الاول ۱۳۹۹ هجری

## د څلور رکعته نفل لمانځه د نيت په ترلو سره دوه رکعته واجبيږي

**سوال**: که چيرته يو څوک د څلور رکعته نفلو نيت وتړي بيا په دوه رکعتونو باندې سلام واړوي. آيا پاتې دوه رکعتونه ئې په ذمې باندې واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د څلور رکعته نفلو د نيت په ترلو سره يواځې دوه رکعته واجبيږي د دې لپاره په دوه رکعتونو باندې سلام اړول جائز دي. پاتې دوه رکعتونه پرې واجب نه دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ رجب ۱۳۹۹ هجری

## د دُعاء قنوت د ثبوت حواله

**سوال**: په وترو کښې د مروّج دُعاء قنوت ثبوت د احنافو په نزد له حوالې سره ضرورت دی. ډيره مهربانه به مو وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: المدونة الکبریٰ ج۱، ص۱۰۰، الاعتبار للحازمی معزیاً الیٰ مراسیل ابوداؤد ص۹۰، اعلاء السنن ج۶، ص۶۸، طحاوی ج۱، ص۱۲۲.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ رجب ۱۳۹۹ هجری

## په نفلو کښې چه سجدهٔ سهو و نه کړي نو بيرته راګرځول ئې واجب دي

**سوال**: په نفل لمانځه کښې په چا سجدهٔ سهو واجبه وه ليکن ترې هيره شوه او و نې نه کړه. بل وخت ور ياد شو نو آيا د هغو نفلونو قضائي پرې واجبه ده او که نه؟ ځينې خلک وائي چه د نفلو قضائي خو نشته ليکن کله چه شروع پرې وشي نو بيا ئې پوره کول واجب دي شرعاً د دې څه حکم

دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا نفل واجب الاعاده دی. یعنې بیرته را گرځول ئې واجب دي.

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ رجب ۱۳۸۹ هجری**

## د وترو فدیه هم واجبه ده

**سوال**: آیا د وترو فدیه به هم ورکول کیږي په داسې حال کښې چه مړي د فرض لمونځونو د فدیه ورکولو وصیت کړی وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! د وترو فدیه هم واجبه ده.

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی الحجة ۱۳۹۹ هجری**

## تر قنوت وروسته درود شریف لوستل افضل دي

**سوال**: د وترو په لمانځه کښې تر قنوت وروسته درود شریف باید وویل شي او که نه؟ په فتاوی هندیه ص ۱۱۱ **الباب الثامن فی صلوٰة الوتر** کښې لیکلي دي چه **ولا یصلی علی النبی ﷺ فی القنوت وهو اختیار مشائخنا کذا فی الظهیریة**. در مختار او شرح طحطاوي په قنوت کښې درود ویلو ته ترجیح ورکړی دی او لیکلي ئې دي چه تر قنوت وروسته درود شریف ویل مستحب دي. راجح قول ولیکئ. انشاء الله عند الله به ماجور وگرځئ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د استحباب قول راجح او مفتی به دی. **کما صرّح به فی العلائية.**

**فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ محرم ۱٤۰۰ هجری**

## په ناپاکو جامو سره د ادا شوي نفلونو اعاده واجبه نه ده

**سوال**: په ناپاکو جامو کښې د ادا شویو نفلونو اعاده واجبه ده او که نه؟ که چیرته واجبه وي نو آیا په همدې صورت کښې د فرائضو او واجباتو اعاده هم شته او د نوافلو هم شته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د فرائضو او واجباتو اعاده په هر صورت کښې فرض او واجبه ده. د مؤکدو سنتو د وخت په دننه کښې ضروري ده لیکن وروسته نه. او د نفلو اعاده په وخت کښې د ننه هم ضروري نه ده ځکه چه نوافل تر شروع کیدو وروسته واجبیږي او په صورت مسئوله کښې د نوافلو له سره شروع صحیح نه ده.

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ ذی الحجة ۱۳۹۰ هجری**

## وتر که چیرته تر تراویحو مخکښې ادا شي نو اعاده ئې واجبه نه ده

**سوال**: د رؤیت هلال د اطلاع په نه حاصلیدو باندې له ۲۹ شعبان نه وروسته په راتلونکي شپه

کښې د ماسخوتن لمونځ او وتر د معمول مطابق خلکو ادا کړل وروسته خبر راغی چه د رمضان شریف میاشت ولیدل شوه. د دې لپاره تراویح ادا کړئ نو په داسې صورت کښې به آیا تاریته وتر په جماعت سره دوباره ادا کوي او ښځې به ئې په کور کښې له سره ادا کوي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې صورت کښې د وترو اعاده نشته. قال فی التنویر ووقتهما بعد صلوٰۃ العشاء قبل الوتر وبعده. (ردالمحتار ج۱،ص۶۵۹) فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۶ شوال ۱۳۹۷ هجری

## په فرضو باندې د نفلو بناء مکروه ده

**سوال** : زید فرض پوره کړل او په آخر کښې سلام و نه ګرځاوه بلکه په همدې حال کښې ئې د سنتو یا نفلو په نیت سره نور دوه رکعته ادا کړل او په آخر کښې ئې سلام وګرځاوه. نو آیا د ده فرض لمونځ او د سنتو یا نفلو دوه رکعته ادا شول او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په فرضو باندې د نفلو بناء مکروه ده. همدارنګه په دې کښې په قصد سره د سلام په ځنډولو سره د فرضو بیرته راګرځول واجب دي. د نفلو دوه رکعته وشول لیکن مؤکد سنت ادا نه شو.

لانها شرعت بتحریمة مبتدئة. قال فی الشامیة ان بناء النفل علی النفل یصیره صلوٰۃ واحدة بخلاف بناء النفل علی الفرض ولذا کان البناء فیه مکروها لان النفل صلوٰۃ اخریٰ غیر الفرض (وبعد سطر) لما بنی النفل عمداً صار مؤخراً للسلام عن محله عمداً والعمد لا یجبره سجود السهو بل تلزمه الاعادة. (ردالمحتار ج۱،ص۶۹۲)

فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۲۰ رمضان المبارک ۹۷ هجری

## د فرضو او سنتو تر منځ د وعظ او تبلیغ حکم

**سوال** : څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیانِ عظام د دې مسئلې په باره کښې چه زمونږ په جومات کښې دا رواج دی چه هره ورځ د ماسپښین د فرضو تر ادا کولو فوراً وروسته امام صاحب د ریاض الصالحین یو حدیث شریف سره له لنډ تشریح د پنځو دقیقو په اندازه بیانوي لکه څرنګه چه که چیرته یو سړی هغه ټولې ماثوره دعاګانې کومې چه په حدیث سره ثابتې دي تر فرضو وروسته د فرضو او سنتو تر منځ ووائي نو په هغو باندې هم پنځه دقیقې لګیږي یا لکه څرنګه چه یو سړی د خپل معمول اوراد او وظائف د فرضو او سنتو تر منځ وائي نو بیا هم پنځه دقیقې لګیږي. نو مونږ خلک (د همدې جومات منتظمین) د ماثوره دعاګانو او مخصوصه اورادو په ځای د فرضو او سنتو تر منځ پنځه دقیقې د دینِ متین د تبلیغ او د مسلمانو عوامو د نفعې

لپاره لګوو څکه له سنتو او نفلو نه وروسته هیڅوک نه پاتې کیږي. نو ځینې خلکو اعتراض کوي چه دا طریقه د سنتو د تاخیر له وجې ناجائزه ده او کوم خلک چه په دې درس کښې شرکت نه کوي د هغو په لمانځه کښې خلل پیدا کیږي. په داسې حال کښې چه د لمونځ کوونکو خلکو څنګ ته په جهر سره د تلاوت اجازه نشته. **فهذا الدرس اولیٰ ان یترك بعد الفرض.** یعنې دا درس خو په طریقهٔ اولیٰ سره تر فرضو وروسته باید ترک شي.

ستاسو له حضور څخه هیله ده چه په دې مسئله کښې زمونږ لارښوونه وکړئ چه مونږ تر فرضو وروسته او تر سنتو مخکښې دې تبلیغ ته دوام ورکړو او که و ئې دروو؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اورادو او ماثوره تسبیحاتو وخت ترسنتو وروسته دی. تر فرائضو وروسته ډیرې لنډې دعاوې ماثورې دي. همدارنګه په دې وخت کښې د ماثوره دعاګانو په ځای کوم بل عمل احداث فی الدین (په دین کښې د نوي شي پیدا کول) دی. برسیره پر دې تر فرائضو متصل وروسته د کتاب په اورولو کښې دا قباحت (بدي) هم شته چه دمسبوقینو په لمانځه کښې خلل پیدا کیږي. لهذا د تبلیغ دا سلسله د مازدیګر یا سهار تر لمانځه وروسته باید وي.

فقط، والله تعالیٰ اعلم ۱۳/رجب، سنه ۹۸هـ:

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

اجعلوا اٰخر صلٰوتكم بالليل وترًا (رواه البخاری)

# اعدل الانظار فی الشفع بعد الایتار

## تر وترو وروسته د دوه رکعته نفلو حکم

**سوال**: کوم نوافل چه تر وترو وروسته ادا کیږي آیا هغه په حدیثو سره ثابت دي؟ او آیا دا په ناستې سره ادا کول مسنون او افضل دي او که په ولاړې؟ په دې باره کښې د ائمه وو مذهب څه دی او د احنافو په نزد مفتیٰ به قول کوم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له ډیرو صریحو او مشهورو قوله او فعلي حدیثونو څخه دا ثابته ده چه د وتر لمونځ د شپې تر ټولو لمونځونو باید مؤخر شي. څو حدیثونه ملاحظه کړئ.

۱.. عن عائشة رضی الله تعالٰی عنها قالت کان رسول الله ﷺ یصلی من الّلیل حتّٰی یکون اٰخر صلٰوته الوتر، قال النووی فی شرحه فیه دلیل لما قدمناه من ان السّنة جعل اٰخر صلٰوة اللیل وترا وبه قال العلماء کافةً وسبق تأویل الرکعتین جالساً. (مسلم ج۱، ص۲۵۵)

۲.. عن نافع عن ابن عمر رضی الله تعالٰی عنهما عن النبی ﷺ اجعلوا اٰخر صلٰوتکم بالّلیل وتراً. (مسلم ج۱، ص۲۵۷) واخرج السیوطی عن ابن عمر رضی الله تعالٰی عنهما معزیا الی الصحیحین و ابی داؤد برمز صحیح اجعلوا اٰخر صلٰوتکم باللیل وتراً. (الجامع الصغیر ج۱، ص۹) واخرج مثله المناوی معزیا الی الشیخین (کنوز الحقائق علی هامش الجامع الصغیر ج۱، ص۸)

۳.. عن نافع عن ابن عمر رضی الله تعالٰی عنهما ان رجلاً سأل النبی ﷺ عن صلٰوة اللیل فقال مثنٰی مثنٰی فاذا خشیت الصبح صل رکعة توتر صلاتك. (طحاوی ج۱، ص۱۳۶)

۴.. روی الامام احمد فی مسنده عن ابن عمر رضی الله تعالٰی عنهما انهٗ کان اذا سئل عن الوتر قال امّا انا فلو اوترت قبل ان انام ثم اردت ان اصلی باللیل شفعت بواحدة ما مضی من وتری ثم صلیت مثنٰی مثنٰی فاذا قضیت صلٰوتی اوترت بواحدة لان رسول الله ﷺ امرنا ان نجعل اٰخر صلٰوة اللیل الوتر قال فی مجمع الزوائد فیه ابن اسحٰق وهو مدلس وهو ثقة وبقیة رجاله رجال الصحیح اھ. (نیل الاوطار ج۳، ص۵۳) واخرج الطحاوی مثله

في شرح معاني الأثار ج۱،ص۱٦٧.

۵..وفي الصحيح لمسلم عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما قال من صلى من الليل فليجعل آخر صلوته وتراً فان رسول الله ﷺ كان يأمر بذلك.(مسلم ج۱،ص۲۵۷)

له ابن عمر څخه همدا روايت په صحيح مسلم کښې په څو نورو طريقو او الفاظو سره هم مروي دى **من شاء فليراجع.** وتر لره بالكل په آخر کښې د ادا کولو روايتونه دومره ډير دي چه د هغو په يو خاى کولو سره د طوالت او اوږدوالي ويره مانع ده. دې کثرت ته کتو سره د تواتر شبهه لويږي د دغو روايتونو د صحت، شهرت او قوت پر بناء باندې د ځينو حضراتو حتى چه د ځينو صحابهٔ کرامو ﷺ هم دا مسلک پاتې شوى دى چه تر وترو وروسته نفل اداکول د وترو ماتوونکى دى او په دې صورت کښې د وترو اعاده واجبه ده. چنانچه امام طحاوي رحمه الله فرمائي:

قال ابو جعفر فذهب قوم الى ان الوقت الذى ينبغى ان يجعل فيه الوتر هو السحر وانه لا يتطوع بعده وان من تطوع بعده فقد نقضه وعلى ان يعيد وتراً آخر واحتجوا فى ذلك بتأخير رسول الله ﷺ الوتر الى آخر الليل وبما روى عن جماعة من اصحابه من بعده انهم كانوا يرون ان من تطوع بعد وتره فقد نقضه.(شرح معاني الأثار ج۱،ص۱٦٧)

د حضرت ابن عمر رضى الله عنهما مذهب مونږ وروسته ذکر کړى دى چه هغه د وترو د ماتوالي قائل وو اگر که قوي مسلک دا دى چه تر وترو وروسته د نفلونو ادا کول د وترو ناقض نه دى ليکن که چيرته د وترو د تاخير لپاره کوم صريح روايت هم نه وي نو بيا به هم دومره علماء په ځانگړې توگه حضرت ابن عمررضى الله تعالى عنهما د وترو د ماتوالي مسلک لره اختيارول د وترو د تاخير اهميت او د دې د شهرت د اثبات لپاره کافي وزن لري دا خو پريږده چه په دې باندې صريح روايتونه هم موجود دي

په لاندينى روايتونو کښې تر وترو وروسته د رکعتينو (دوه رکعتونو) ذکر دى ځينو محدثينو په هغو باندې د "رکعتين بعد الوتر" عنوان قائم کړى دى.

۱..عن ابى سلمة قال سألت عائشة رضى الله تعالى عنها عن صلوة رسول الله ﷺ فقالت كان يصلى ثمان ركعات ثم يوتر ثم يصلى ركعتين و هو جالس فاذا اراد ان يركع قام فركع ثم يصلّى ركعتين بين النداء و الاقامة من صلوة الصبح.(صحيح مسلم ج۱،ص۲۵۴) وذكر نحوه الامام النسائى فى باب اباحة الصلوة بين الوتر وبين ركعتى الفجر.(نسائى ج۱،ص۱۸۰)

۲..عن ابى سلمة قال حدّثنى عائشة رضى الله عنها قالت كان رسول الله ﷺ يوتر بواحدة ثم يركع ركعتين يقرأ فيهما وهو جالس فاذا اراد ان يركع قام فركع.(ابن ماجة ص۸۳)

۳.. وفي حديث طويل عن زرارة رضي الله تعالى عنه ثم يصلي ركعتين بعد ما يسلم (اي عن صلوة الوتر) وهو قاعد. (صحيح مسلم ج۱، ص۲۵٦)

۴.. عن ام سلمة رضي الله عنها ان النبي ﷺ كان يصلي بعد الوتر ركعتين وقد روي نحو هذا عن ابي امامة وعائشة وغير واحد عن النبي ﷺ. (ترمذي ج۱، ص۳۹)

۵.. عن ام سلمة رضي الله تعالى عنها ان النبي ﷺ كان يصلي بعد الوتر ركعتين خفيفتين وهو جالس. (ابن ماجة ص۸۳)

٦.. وقد عقد الامام ابو جعفر الطحاوي باباً في التطوع بعد الوتر ذكر فيه اختلاف العلماء واخرج احاديث منها حديث ثوبان مولى رسول الله ﷺ قال كنا في سفر فقال ان هذا السفر جهد وثقل فاذا اوتر احدكم فليركع ركعتين فان استيقظ والا كانتا له. (شرح معاني الأثار ج۱، ص۱٦۸)

پورته چه ځومره روایتونه نقل شوي دي اګر که له هغو څخه په رکعتین بعدالوتر باندې استدلال شوی دی لیکن حقیقت دا دی چه د هغو له جملې څخه پرته له لومړي حدیث څخه بل له یوه څخه استدلال تام نه دی ځکه چه په دغو کښې دا قوي احتمال موجود دی چه دا دوه رکعتونه دې د سهار سنتونه وي. د دې احتمال په موجودوالي کښې له دغو حدیثونو څخه د وترو او د سهار د سنتو تر منځ په دوه رکعتونو باندې استدلال صحیح نه دی. **لانه اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال.**

او په شپږم حدیث کښې **(فاذا اوتر)** کښې د **(اراد ان يوتر)** تاویل کیدلی شي کما فی قوله تعالی **(اذا قمتم الى الصلوة فاغسلوا وجوهكم۔ الخ)** د وترو د تاخیر په اړه د ډیرو او مشهورو حدیثو وجود په دې تاویل باندې قوي قرینه ده. حکیم الامت حضرت تهانوي قدّس سرّه د داسې کسانو لپاره کوم چه د شپې په آخره برخه کښې د نه را ویښیدلو شکایت کاوه د ماسخوتن تر لمانځه وروسته تر وترو مخکښې د تهجد لاربنوونه کوله. وعظ کساء النسآء او ملفوظات کمالات اشرفیه اول باب ص۲۴۲، ملفوظ ۱۰۲۰ ملاحظه کړئ له دې څخه ثابته شوه چه حضرت تهانوي قدس سرّه هم په حدیث کښې **(اذا اوتر)** لفظ لره د **(اراد ان يوتر)** په معنٰی سره ګڼلی دی.

په ناستې سره د ادا کولو روایتونو لره په وتر علی الدابة غوندې قبل التاکد یا په سفر او داسې نورو عذرونو باندې محمول کیدلی شي. البته صرف یو حدیث د عائشې رضي الله عنها کوم چه په اوله شمیره کښې ذکر ده په دې کښې د سهار د سنتو مراد اخیستلو احتمال نشته. د دې لپاره د دغو نوافل ثبوت خو شته. لیکن خبره دا ده چه نبي کریم ﷺ دا په کومې اندازې سره ادا کړي دي. په دې باره کښې تر ټولو مخکښې د غور وړ خبره دا ده چه لکه څرنګه چه تر نورو لمونځونو مخکښې یا وروسته ده نور نوافل ادا کړي دي دا دوه نفلونه ئې په هغه ډول نه دي ادا کړي. د علامه

نووي رحمه الله د تصریح مطابق ده ﷺ دا نفل یواځې دوه یا درې ځلې ادا کړي دي. **ولم یواظب علیها بل فعله مرة او مرتین او مرات قلیلة.(مسلم مع نووی ج۱،ص۲۵۴)**

په اصل کښې دا نوافل تر وترو وروسته کله کله ده د جواز د بیانولولپاره ادا کړي دي. اګر که بهتره او اولی دا ده چه تر وترو وروسته نفل و نه شي. د وترو دتاخیر روایتونه. خصوصاً هغه روایتونه چه په هغو کښې د وترو د تاخیر امر موجود دی مثلاً **(اجعلوا اٰخر صلاتکم من اللیل وترا)** او داسې نورو ځخه په صحابهٔکرامو کښې دا غلط فهمي کیدلی شي چه وتر لره تر ټولو لمونځونو آخر ګرځول واجب دي. **(کما هو مقتضی الامر)** د دې غلط فهمی د لرې کولو لپاره محسن اعظم ﷺ عملي سبق ورکړ او دا ئې خلکو ته وښودله چه دلته خبره د اولویّت او استحباب ده نه د وجوب. په دې باندې دا شبهه کیدلی شي چه د **(کان یصلّی)** الفاظ په دوام او عادت یا کم تر کمه په ډیروالي باندې دلالت کوي. علامه نووي ددې ځواب ورکړی دی چه له دې ځخه په دوام او تکرار باندې استدلال صحیح نه دی.

**و نصه قلت و الصّواب ان هاتین الرکعتین فعلهما ﷺ بعد الوتر جالساً لبیان جواز الصلٰوة بعد الوتر و بیان جواز النفل جالساً و لم یواظب علی ذٰلك بل فعله مرة او مرتین او مرات قلیلة و لا تغتر بقولها کان یصلّی فان المختار الذی علیه الاکثرون و المحققون من الاصولیین ان لفظة کان لا یلزم منها الدوام و لا التکرار و انما هی فعل ماض یدل علی وقوعه مرة فان دل دلیل علی التکرار عمل به و الا فلا یقتضیه بوضعها و قد قالت عائشة رضی الله عنها کنت اطیب رسول الله ﷺ لحله قبل ان یطوف و معلوم انه ﷺ لم یحج بعد ان صحبته عائشة رضی الله عنها الا حجة واحدة و هی حجة الوداع فاستعملت کان فی مرة واحدة الخ.(مسلم ج۱،ص۲۵۴)**

## مذاهب الائمة رحمهم الله تعالی:

قاضي عیاض د امام اوزاعي او امام احمد مذهب دا نقل کړی دی چه هغوی د حضرت عائشې رضی الله عنها د حدیث پر بناء وروسته تر وترو دوه رکعته نفل مباح ګڼلي دي لیکن د امام احمد دویم قول کوم چه زیات مشهور دی هغه دا دی چه **(لا افعله و لا امنع عنه)** امام مالک به له دغو نوافلو ځخه انکار کاوه.

**قال النووی هٰذا الحدیث اخذ بظاهره الاوزاعی و احمد فیما حکاه القاضی عنهما فاباحا رکعتین بعد الوتر جالساً و قال احمد لا افعله و لا امنع عنه قال (القاضی) و انکره مالك.** او پخپله قاضي عیاض د مهشورو روایتونو پر بناء د رکعتین بعد الوتر روایت تردید به ئې کاوه.

**قال النووی و اما ما اشار الیه القاضی عیاض من ترجیح الاحادیث المشهورة ورد روایة الرکعتین جالساً فلیس بصواب الخ.** (مسلم ج۱، ص۲۵۴)

عامو محدثینو او د حدیثو شراحانو د امام مالک رحمه الله مذهب همدا بیان کړی دی چه هغه به د "رکعتین بعد الوتر" د جواز منکرو وو لیکن د مالکي فقهې کتاب "الشرح الصغیر" کښې علامه دردیر له دوه شرطونو سره دمالکیه وو د مذهب جواز را نقل کړی دی. یو شرط دا چه د وترو تر شروع کولو مخکښې د دغو نوافلو د ادا کولو نیت و نه لري. دویم دا چه هغه به وتر پسې متصل ادا نه کړي.

**قال (وجاز) من صلی الوتر اوّل اللیل او اٰخره (نفل بعده) اذا لم یوصله به (الی ان قال) (ان لم ینوه) ای النفل (قبل الشروع فیه) (ثم قال بعد اسطر) فالحاصل ان جواز النفل بعد صلٰوة الوتر مقید بقیدین ان لا ینوی قبل شروعه فیه النفل بعده وان لا یوصله به.** (الشرح الصغیر ج۱، ص۴۱۳)

د امام شافعي رحمه الله مسلک معلوم نه شو. البته په التعلیق الممجد ص۱۴۴ کښې د ابن عبد البر په حواله د عدمِ نقض الوتر با لنوافل بعده په مسئله کښې امام شافعي، امام مالک، اوزاعي، امام احمد، ابو ثور، علقمه، ابو مجلز، طاؤس او نخعي رحمهم الله تعالی مسلک د امام ابو حنیفه د مسلک موافق بیان کړی دی. له دې څخه څرګندیږي چه د دوی مسلک د امام صاحب رحمه الله مسلک ته ور نژدې دی.

امام محمد رحمه الله د امام اعظم مسلک دا بیان کړی دی چه با لخصوص تر وترو وروسته د دوه رکعتونو هیڅ ثبوت نشته. داسې خو تر وترو وروسته چه څومره نوافل څوک غواړي کوي دې. په دې سره په وترو هیڅ اثر نه لویږي. **قال امامنا محمد لا نری ان یشفع الی الوتر بعد الفراغ من صلٰوة الوتر ولکنه یصلی بعد وتره ما احب ولا ینقض وتره وهو قول ابی حنیفة رحمه الله.** (موطاء للامام محمد ص۱۴۴)

امام طحاوي د "التطوع بعد الوتر" عنوان قائم کړی عدمِ نقض الوتر ئې ثابت کړی او په آخر کښې فرمائي: **و هذا القول الذی بیّنا قول ابی حنیفة و ابی یوسف و محمد رحمهم الله تعالٰی.** (شرح معانی الآثار ج۱، ص۱۶۲)

له دې څخه ثابته شوه چه زمونږ د درې ګونو امامانو مختار هم همدغه دی چه تر وترو وروسته نوافل ادا نه شي. د دې لپاره د فقهې او فتاواوو په هیڅ یوه کتاب کښې هم ددغو نوافلو ذکر نشته. دا خبره مقلدینو په خصوصي توګه د توجه وړ ده ځکه چه د مقلد لپاره د امام قول حجت دی. د حدیثو بحث مونږ محض تبرعاً ولیکه او که نه نو د مقلدینو لپاره همدا حجت کافي دی چه د مذهب په کتابونو کښې د دغو نوافلو هیڅ ذکر نه تر سترګو کیږي.

## صنیع المحدّثین رحمهم الله تعالی

د حضراتو محدثینو رحمهم الله صنیع (احسان او ښه کار کردګي) هم کله کله د لویو او اهمو مسائلو غوټې خلاصوي د دې لپاره مذکوره مسئله په دې لحاظ سره هم د توجه وړ ده.

د رکعتین بعدالوتر د صریحو او محتملو روایتونو په ذکر کولو کښې حضرات محدثین دوه ډلې دي. یوه ډله هغه خلک دي کوم چه د رکعتین بعد الوتر باب ئې قائم کړی او تر هغه لاندې ئې دا حدیثونه ذکر کړي دي لکه اماما بو جعفر الطحاوي په شرح معانی الآثار کښې د التطوع بعد الوتر عنوان لګولی دی او امام نسائي د **(باب اباحة الصلوٰة بین الوتر و بین رکعتی الفجر)** عنوان قائم کړی دی. او د محدثینو بلې ډلې د نقض الوتر با لنوافل بعده یا د بل کوم عنوان لاندې دا احادیث ذکر کړي دي. په دې ټولو طریقو سره په بحث کښې اګر که د حدیثو امامانو مختلف دي لیکن د بحث په مدار کښې سره متفق دي، چنانچه ځینو تر وترو وروسته د نوافلو سنیت یا استحباب والی مدار جوړ کړی او بحث ئې نه دی کړی بلکه نقض الوتر با لنوافل بعده او عدمه لره ئې مدار جوړ کړی او بحث ئې کړی دی. له دې څخه هم دا معلومیږي چه د محدثینو په نزد هم د دغو نوافلو حیثیت یواځې د جواز او عدم نقض وتر دی. د استحباب ئې هیڅوک قائل نه دي.

جمهورو محدثینو د وترو د تاخیر د مشهورو روایتونو په مقابله کښې د رکعتین بعد الوتر روایت لره د ردّولو په ځاے د تطبیق صورت اختیار کړی دی **(و هو الطریق الاوّل عند التعارض)** چنانچه د تطبیق لاندیني صورتونه ئې بیان کړي دي.

۱ - دا نوافل تر وترو وروسته د جواز د بیان لپاره ادا شوي دي او دا ضرورت د **(امرنا ان نجعل اٰخر صلوٰة اللیل الوتر)** غوندې روایتونو کښې د امر د صیغې پر بناء مخته راغی. نبي کریم ﷺ له خپل عمل څخه وښوده چه د وترو د تاخیر امر د استحباب لپاره دی نه د وجوب لپاره.

۲ - د ثوبان رضی الله عنه د حدیث له مخې د ځینو علماوو دا خیال دی چه کوم حضرات د سفر یا کوم بل عذر له وجې د سهار په وخت کښې د تهجد لپاره نه شي جګیدلی هغه دې د شپې په اوّله برخه کښې تر وترو وروسته دوه رکعته ادا کړي. بیا که چیرته د تهجدو لپاره ویښ شو نو ښه تر ښه او که نه نو دا دوه رکعته به د ده لپاره د تهجدو قائم مقام وګرځي. لیکن په دې تطبیق کښې د اوّل اللیل او آخر اللیل تر منځ د فرق وجه ظاهره ده او په دې حدیث کښې د **(فاذا اوتر)** تاویل په **(اراد ان یوتر)** سره او د دې صورت په اړوند د حضرت تهانوي قدس سرّه ارشاد پوره لیکل شوی دی.

۳ - په اعلاء السنن کښې ئې یوه بله لطیفه توجیه بیان کړې ده: **حیث قال قال العبد الضعیف معناه اوتروا باللیل مرّة لا مرّتین لتکون اٰخر صلوٰتکم باللیل وترًا فان من اوتر مرتین فقد جعل اٰخر صلوٰتها**

لليل شفعا يؤيده ما اخرجه الطحاوي رحمه الله ان اباهريرة رضى الله عنه قال لو جئت بثلاثة ابعرة فانختها ثم جئت ببعيرين فانختهما اليس كان يكون ذلك وترا قال وكان يضرب به مثلا لنقض الوتر. (اعلاء السنن ج۶،ص۸۰)

۴ قال في الفتح الملهم قال الشيخ الانور والوجه فيهما انه ﷺ انما صلاهما جالساً ليبقى اخرية الوتر لصلوة الليل صورة عند هذا ايضاً (كأن هذا الجلوس اعلام بانتهاء قيام الليل) وليدل على ان من اسقطها فذلك اليه اه. (فتح الملهم ج۲،ص۲۹۳)

د تطبيق دغو دواړو آخري صورتونو لره د (فاذا خشيت الصبح فصل ركعة توتر لك صلاتك). (طحاوي ج۱،ص۱۳۶) ردوي. لهذا د تطبيق صحيح صورت صرف دا دی چه د جواز د بيان لپاره کله کله ده مبارک دا نفل ادا کړي دي او اصل قاعده دا ده چه وتر په آخر کښې ادا شي.

## د بحث خلاصه

مستحبه او افضله طريقه دا ده چه څومره نوافل ادا کول وغواړي له وترو څخه دې مخکښې ادا کړي او وتر په آخر کښې ادا کړي او تر وترو وروسته نوافل ادا نه کړي. که چيرته ئې ادا کړي نو مباح دي ليکن نه د دوه رکعتونو کوم تخصيص شته او نه دا نوافل له وترو سره کوم تعلق لري بلکه د عامو مباحو وختونو غوندې چه څومره نوافل وغواړي ادا دې کړي. كما مرّ عن الامام محمد عن امامنا الاعظم رحمهما الله تعالى.

له پورتني ذکر شوي تفصيل څخه څرګنده شوه چه د ځينو علماء کرامو له دې بحث څخه چه دا نوافل په ولاړې ادا کول بهتر دي او که په ناستې. دا نتيجه اخيستل صحيح نه دي چه هغوی د دې د استحباب قائل دي بلکه د دوی د بحث مقصد دا دی چه که چيرته څوک په خلاف اولی باندې عمل وکړي او دا نوافل ادا کړي نو هغه دې په ولاړې وکړي او که په ناستې؟

دناستې په اړه ذکرشوي حديثونه په دوه ډوله دي. يو هغه ډول چه په هغه کښې د پوره لمانځه په ولاړې د ادا کولو ذکر دی. دويم هغه چه په هغو کښې لومړی په ناستې سره د شروع کولو او بيا دريدل او رکوع ته د تللو بيان دی ليکن دا احاديث فعلي دي. بلې خوا ته هغه قولي حديثونه دي چه په هغو کښې ناست لپاره دولاړ سړي دنيم اجر ورکولو تصريح دی له هغو څخه څو حديثونه ذکر کيږي

۱.. عن عمران بن حصين رضى الله تعالى عنه قال سألت رسول الله ﷺ عن صلوة الرجل وهو قاعد فقال من صلى قائما فهو افضل ومن صلاها قاعداً فله نصف اجر القائم. (ترمذی ج۱،ص۸۰)

۲.. عن عمران بن حصين رضى الله تعالى عنه وكان مبسوراً قال سألت رسول الله ﷺ عن صلوة الرجل قاعداً فقال ان صلى قائماً فهو افضل و من صلى قاعداً فله نصف اجر القائم و من صلّى نائما فله نصف اجر

القاعد. رواه البخاری (اعلاء السنن ج۷، ص۳۳)

۳. اخرج النسائی رحمه الله فی باب فضل صلوة القائم علی صلوة القاعد عن عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما قال رأیت النبی ﷺ یصلی جالساً فقلت حدثت انک قلت ان صلوة القاعد علی النصف من صلوة القائم وانت تصلی قاعداً قال اجل ولکنی لست کاحد منکم. (نسائی ج۱، ص۱۶۲)

دا مبارک حدیثونه یوه کلي قاعده بیانوي لهذا د ترجیح د اصولو مطابق دې قاعدې لره به په جزئي واقعې باندې ترجیح وي. همدارنګه دا احادیث قولي دي او د قولي حدیث په فعلي حدیث باندې ترجیح منل شوی او مسلّم دی. لهذا په دوی کښې د تخصیص په ځای دا زیات بهتر دی چه فعلي احادیث د جواز په بیان باندې محمول کړی شي. با لخصوص په داسې حال کښې چه په آخري حدیث کښې دا تصریح دی چه په قعود کښې هم پوره ثواب د نبي کریم ﷺ خصوصیت وو. د امت لپاره هغه قاعدهٔ کلیه ده چه (للقاعد نصف اجر القائم) د امام العصر حضرت ګنګوهي او حکیم الامت حضرت تهانوي قدس سرّهما هم همدا فتوٰی ده. (فتاوٰی رشیدیه ص۳۰۱. امداد الفتاوٰی ج۱، ص۳۰۳. ۳۰۵) د حضرت مولانا محمد اسحٰق هم همدا خوښ وو کما فی ناشئة اللیل (حاشیة فتاوٰی رشیدیه ص۳۰۱) فقط وهذا ما اظهر لفکیر السّقیم وفوق کلّ ذی علم علیم.

## الحاق

۱ - بنده د (اوتر) معنٰی (اراد ان یوتر) لیکلې. بحمد الله تعالی وروسته له متقدمینو څخه هم د دې ثبوت لاس ته راغی. (السنن الکبرٰی للبیهقي ج۳. ص۳۳. مرقاة ج۳. ص۱۷۷. کشف الستر للعلامة انور شاه)

۲ - بنده رکعتین جالساً د سهار په سنتو باندې محمول کړی دی. بحمد الله وروسته په حدیث کښې هم د سهار د سنتو جالساً تصریح لاس ته راغی. جالساً بین الاذانین. (ابو داؤد ج۱، ص۱۳۶)

۳ - د اول نمبر حدیث درې خوابونه ورکړل شوي دي: (۱) منسوخ دی. (بیهقي ج۳. ص۳۴. مرقاة ج۳. ص۱۷۷) (۲) قاضي عیاض فرمائي چه د وترو د تاخیر د حدیثونو په مقابله کښې دا حدیث غیر مقبول دی. (نووي ج۱، ص۲۵۴) (۳) د جواز د بیان لپاره کله کله د دې وقوع شوی دی. وهو الصحیح کما قدمنا واختاره ائمة الحدیث والفقه.

۴ - امام ابن همام رحمه الله تصریح کړې ده چه تر وترو وروسته نفل ادا کول د استحبابو خلاف دی (فتح القدیر ج۱. ص۳۱۲. آخر باب صلوة الوتر)

# فصل في التراويح

## په تراويحو کښې په سورۀ بقره باندې د ختم کولو حکم

**سوال**: چه کله منکوساً (د پاى له خوا) د قرآنکريم لوستل مکروه دى نو په تراويحو کښې ختم ولې په سورۀ بقره باندې کيږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا جزئيه له قاعدې څخه مستثنىٰ ده لکه څرنګه چه په لومړي رکعت کښې سورۀ اعلى او په دويم کښې د سورۀ غاشيه لوستل د ماثور والي له وجې بې له کراهت څخه جائز دي حالانکه د سورۀ غاشيه آيتونه زيات دي.

**قال فی شرح التنوير و يکره الفصل بسورة قصيرة و ان يقرأ منکوساً الا اذا ختم فيقرأ من البقرة و فی الشامية عن شرح المنية عن الولوالجية من يختم القرآن فی الصلوٰة اذا فرغ من المعوذتين فی الرکعة الاولیٰ يرکع ثم يقرأ فی الثانية بالفاتحة و شیء من سورة البقرة لان النبی ﷺ قال خير الناس الحال المرتحل ای الخاتم المفتتح اه.(ردالمحتار ج۱،ص۵۱۰)**

همدارنګه تنکيس (د پاى له خوا د قرآن لوستل) په فرائضو کښې مکروه دى، په نوافلو کښې نه دى. **کما صرح به فی الهندية** په دې بناء باندې د شارح التنوير د استثناء **(الا اذا ختم)** محمل به دا وي چه په فرائضو کښې ئې قرآن کريم ختم کړى وي. يا دا چه تراويحو ته **(من حيث الجماعة)** له فرائضو سره مشابهت دى. د عالمګيري په **(واذا کرر آية واحدة مراراً فان کان فی التطوع الذی يصلی وحدهٗ فذٰلك غير مکروه)** کښې د **وحدهٗ** لفظ په دې باندې دلالت کوي چه تراويح د جماعت له حيثيته د فرضو په حکم کښې دى. فقط و الله تعالىٰ اعلم

(له دې څخه د رجوع تفصيل په تتمه کښې دى)

۲۵ شعبان ۷٤ هجرى

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال**: په تراويحو کښې يوه حافظ په اتلسو رکعتونو کښې د قرآنکريم ختم وکړ په نولسم رکعت کښې ئې يوه رکوع د سورۀ بقره تلاوت کړ، په شلم رکعت کښې ئې ئې بيا له **(الٓمّٓ)** څخه په **(هم المفلحون)** باندې قرآنکريم ختم کړ. يا ئې په شلم رکعت کښې د سورۀ بقره آخري رکوع تلاوت کړ آيا په تراويحو کښې د قرآنکريم داسې ختم کول خو به د سنتو خلاف نه وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا طریقه د سنتو خلاف ده مسنونه طریقه دا ده چه په نولسم رکعت کښې تر سورهٔ و الناس پورې ووائي او په شلم رکعت کښې د سورهٔ بقره له شروع څخه برخه ولولي.

نقل ابن عابدین رحمة الله علیه عن شرح المنیة عن الولوالجیة من یختم القرآن فی الصلوٰة اذا فرغ من المعوذتین فی الرکعة الاولیٰ یرکع ثم یقرأ فی الثانیة بالفاتحة وشیء من سورة البقرة لان النبی ﷺ قال خیر الناس الحال المرتحل ای الخاتم المفتتح اهـ (ردالمحتار ج ۱، ص ۵۱۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ ذی قعده ۱۳۹۸ هجری

(له دې څخه د رجوع تفصیل په تتمه کښې دی)

## په تراویحو کښې د سورهٔ اخلاص تکرار

**سوال**: په تراویحو کښې نن صبا د قل هو الله احد درې ځله تکرار مروّج شوی دی. آیا داسې کول جائز دي او که ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په فرائضو کښې د سورت تکرار مکروه تنزیهي دی لیکن په نوافلو کښې مکروه نه دی.

قال فی الشامیة افاد انه یکره تنزیها (ج ۱، ص ۵۱۰) وقال فی شرح المنیة قراءة قل هو الله احد ثلث مرات عند ختم القرآن لم یستحسنها بعض المشائخ وقال الفقیه ابو اللیث هٰذا شیء استحسنه اهل القرآن و ائمة الامصار فلا بأس به الا ان یکون الختم فی المکتوبة فلا یزیده علی مرّة. وایضاً فیه ویکره تکرار قراءة السورة فی الفرض و لا یکره تکرار السورة فی التطوع لان باب النفل اوسع. لیکن له لاندیني عبارتونو څخه څرګندیږي چه په دې باره کښې تراویح هم د جماعت له وجې د فرائضو په حکم کښې دی.

قال فی الهندیة واذا کرر اٰیة واحدة مرارا فان کان فی التطوع الذی یصلی وحده فذٰلك غیر مکروه وان کان فی الصلوٰة المفروضة فهو مکروه. له دې څخه څرګنده شوه چه کله نفل یواځې ادا کیږي په هغه کښې تکرار مکروه نه دی.

وقال فی شرح التنویر ویکره الفصل بسورة قصیرة وان یقرأ منکوساً الا اذا ختم فیقرأ من البقرة (الی قوله) ولا یکره فی النفل شیء من ذٰلك. په آخر کښې د نوافلو د حکم د مصرح والي تر څنګ په (الا اذا ختم) سره استثناء د دې دلالت کوي چه تراویح د فرضو په حکم کښې دی.

پس د شرح المنیة په عبارت کښې له تطوع څخه مراد منفرداً اخیستل کیږي. لیکن داسې تطبیق هم کیدلی شي چه په شرح التنویر کښې په (الا اذا ختم) سره ختم فی الفرض مراد وي، او په

عالمګیري کښې د (فی التطوع الذی یصلی وحدہ) قید احترازي نه وي بلکه واقعي وي ځکه چه عموماً نوافل منفرداً ادا کیږي. لنده دا چه د تکرار ثبوت له قرون مشهود لها با لخیر څخه قطعاً نشته او په کراهت او عدم کراهت کښې شک او تردّد دی. ددې لپاره د دې ترک یعنې نه کول بهتر دي. خصوصاً چه کله ئې التزام کیږي نو کراهت ئې یقیني او ترک ئې لازم دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ شعبان ۱۳۷۴ هجری

## په څلورو رکعتونو تراویحو کښې چه اوله قعده پاتې شي نو دوه رکعته وشول

**سوال** : ولو صلی اربعاً بتسلیمة ولم یقعد فی الثانیة ففی الاستحسان لا تفسد وهو اظهر الروایتین عن ابی حنیفة و ابی یوسف رحمهما الله تعالیٰ و اذا لم تفسد قال محمد بن الفضل تنوب الاربع عن تسلیمة واحدة وهو الصحیح کذا فی السراج الوهاج وهٰکذا فی فتاوٰی قاضیخان وعن ابی بکر الاسکاف انه سئل عن رجل قام الی الثالثة فی التراویح ولم یقعد فی الثانیة قال ان تذکر فی القیام ینبغی ان یعود ویقعد ویسلم وان تذکر بعد ما سجد للثالثة فان اضاف الیها رکعة اخرٰی کانت هٰذه الاربعة عن تسلیمة واحدة و ان قعد فی الثانیة قدر التشهد اختلفوا فیه فعلی قول العامة یجوز عن تسلیمتین وهو الصحیح هٰکذا فی فتاوٰی قاضیخان. (عالمګیریة ج۱، ص۱۱۸)

په دې باندې د قیاس په کولو سره څرګندیږي چه که چیرته د سهار په لمانځه کښې قعده هیره شي او د دریم رکعت سجده وشي نو د څلورم رکعت په یو ځای کولو سره نفل څلور رکعته نه شول بلکه دوه رکعته شول. همدارنګه په ماسپښین کښې له پنځم رکعت سره د شپږم رکعت په یو ځای کولو سره د شپږو رکعتونو په ځای څلور رکعته نفل شول. حالانکه په عامو کتابونو کښې په سهار کښې د څلورو او په ماسپښین کښې د شپږو نفلو کیدل مذکور دي. په دې باره کښې چه کوم تحقیق وي له هغه څخه مو خبر کړئ. والاجر عندالله الکریم.

**الجواب ومنه الصدق و الصواب** : د فتاوٰی عالمګیري جزئیه په نورو کتابونو کښې هم راغلې ده چه مطلب ئې دا نه دی چه دوه رکعته صحیح شوه او دوه رکعته فاسد شول بلکه مطلب ئې دا دی چه دوه رکعته تراویح (سنتِ مؤکده) شول او دوه رکعته نفل شول له دې وجې ئې (تنوب الاربع عن تسلیمة واحدة) وویل او که نه نو باید چه (صحت الرکعتان) ئې ویلي وای.

و من الدلیل علی صحة الاربعة ما فی شرح التنویر ان کل شفع صلوٰة الا بعارض اقتداء او نذر او ترک قعود اول. (ردالمحتار ج۱، ص۶۳۸)

فان قلت ان هٰذا اذا کان نوی اربعاً لما فی الشامیة (بعد ذکر الخلاف فی العود و عدمه بترک القعود الاو من

النفل) والخلاف فيما اذا احرم بنية الاربع فان نوى ثنتين عاد اتفاقاً. (ج۱، ص ۴۰۱)

فالجواب انهم وان اتفقوا على الحكم بالعود ولكنهم لم يصرحوا بالفساد في صورة عدم العود بل عدم الفساد مصرح في الجزئية المذكورة في السؤال اي قوله انه سئل عن رجل الخ.

**الحاصل** : مقصد دا دی چه دا د څلورو تراویحو قائم نه ګرځي بلکه د دوه تراویحو قائم مقام ګرځي لکه څرنګه چه د ماسپښین په لمانځه کښې پنځم او شپږم رکعت د دوه رکعته وروستنيو مؤکدو سنتونو قائم مقام نه ګرځي. دا مطلب نه دی چه د هغو نفلیت له منځه تللی دی حالانکه په دې صورت کښې ئې آخره قعده کړې ده او دریدلی دی چه څلور فرض ئې هم صحیح شول او دوه نفل ئې هم صحیح شول لیکن چونکه د وروستنيو دوه سنتونو په مستقل تکبیر تحریمه سره ادا کول سنت دي د دې لپاره دا دوه رکعته دهغو قائم مقام نه ګرځي.

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال** : په تراویحو کښې په دویم رکعت باندې چه قعده هیره شي او سهواً دریم او څلورم رکعت هم ادا کړي نو لمونځ ئې صحیح شو او که نه؟ که چیرته صحیح شوی وي نو څلور شول او که دوه؟ که چیرته دوه صحیح وي نو لومړني دوه صحیح دي او که وروستني؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب** : دویمه شفع تراویح شوه او اوله شفع نفل شوه او په تراویحو کښې نه شماریږي.

قال الامام قاضيخان رحمه الله اذا صلى الامام اربع ركعات بتسليمة واحدة ولم يقعد في الثانية في القياس تفسد صلوته وهو قول محمد وزفر رحمهما الله تعالى وفي الاستحسان وهو اظهر الروايتين عن ابي حنيفة وابي يوسف رحمهما الله تعالى انها تنوب عن تسليمة او تسليمتين، قال الفقيه ابو الليث رحمه الله تنوب عن تسليمتين لان الاربع لما جاز وجب ان ينوب عن تسليمتين كمن اوجب على نفسه ان يصلي اربع ركعات بتسليمتين فصلى اربعاً بتسليمة واحدة ذكر في الامالي عن ابي يوسف رحمه الله انه يجوز فكذا هذا وكذا لو صلى الاربع قبل الظهر ولم يقعد على رأس الركعتين جاز استحساناً وقال الفقيه ابو جعفر والشيخ الامام ابو بكر محمد بن الفضل رحمهم الله تعالى في التراويح تنوب الاربع عن تسليمة واحدة وهو الصحيح لان القعدة على رأس الثانية فرض في التطوع فاذا تركها كان ينبغي ان تفسد صلوته اصلاً كما هو وجه القياس وانما جاز استحساناً فاخذنا بالقياس قلنا بفساد الشفع الاول واخذنا بالاستحسان في حق بقاء التحريمة واذا بقيت التحريمة صح شروعه في الشفع الثاني وقد اتمها بالقعدة فجاز عن تسليمة واحدة وعن ابي بكر الاسكاف رحمه الله انه سئل عن

رجل قام الی الثالثة فی التراویح و لم یقعد فی الثانیة (الی قوله) فان هٰذه الاربعة عن ترویحة واحدة یعنی عن الرکعتین. (خانیة بهامش الهندیة ج۱،ص۲۴۰) وقال العلامة الکاسانی رحمة الله علیه فاما اذا لم یقعد فسدت صلوته عند محمد رحمة الله علیه وعند ابی حنیفة و ابی یوسف رحمهما الله تعالیٰ جوز و اصل المسألة یصلی التطوع اربع رکعات اذا لم یقعد فی الثانیة قدر التشهد وقام واتم صلوته انه یجوز استحسانا عندهما ولا یجوز عند محمد قیاساً ثم اذا جاز عندهما فهل یجوز عن تسلیمتین او لا یجوز الا عن تسلیمة واحدة الاصح انه لا یجوز الا عن تسلیمة واحدة لان السنة ان یکون الشفع الاول کاملا و کماله بالقعدة ولم توجد والکامل لا یتأدی بالناقص. (بدائع الصنائع ج۱،ص۲۸۹)

په خانیه کښې د اولې شفع له فساد څخه د تراویحو د وقوع فساد مراد دی. مطلقاً د لمانځه فساد ترې مراد نه دی. پخپله په خانیه کښې له فقیه ابو جعفر او امام ابو بکر محمد بن الفضل رحمهما الله څخه (تنوب الاربع عن تسلیمة واحدة) او له ابو بکر الاسکاف رحمه الله له دې جُملې (فان هٰذه الاربعة عن ترویحة واحدة) څخه ثابتیږي چه څلور واړه رکعتونه صحیح دي لیکن له تراویحو څخه یواځې دوه شمیرل کیږي او په بدائع الصنائع کښې د اولې شفع د کمال له نفی څخه هم ثابته شوه چه اوله شفع فاسده نه ده بلکه ناقصه ده د دې لپاره په تراویحو کښې نه شماریږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ صفر ۷۶ھ هجری

## تراویح په سهو سره څلور رکعته ادا کول

**سوال**: زید د تراویحو په دوه رکعتونو باندې کښیناست او سهواً ودریده او څلور رکعته ئې پوره کړل نو آیا تراویح ئې څلور رکعته شول او که دوه؟ او سجدهٔ سهو پرې واجبه ده او که نه؟ که چیرته په دوه رکعتونو باندې ناست نه وای نو بیا به ئې څه حکم وو؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته په دوه رکعتونو باندې تر کښیناستو وروسته دریدلی وي نو تراویح ئې څلور رکعته شول. د سجدهٔ سهو ضرورت نشته او که چیرته تر دوه رکعتونو وروسته نه وي کښیناستلی نو دوه رکعته وشول. په دې صورت کښې سجدهٔ سهو واجبه ده. لومړي دوه رکعتونه به را ګرځوي او تلاوت شوی قرآنکریم به هم له سره را ګرځوي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ شوال ۱۳۸۷ھ هجری

## په یوې قعدې سره د درې رکعته تراویحو حکم

**سوال**: امام د تراویحو په دویم رکعت باندې پرته د قعدې له کولو څخه سهواً ودریده، درې

رکعتونه ئې ادا کړل او سجدهٔ سهو ئې وکړه نو آیا دوه رکعتونه ئې صحیح شول او که نه؟ تاسو ویلي وو چه دوه رکعتونه و نه شول لیکن په یوه کتاب کښې د عالمگیري په حوالې سره لیکلي دي چه په دې صورت کښې دوه رکعته کیږي. په دې باندې د غور په کولو سره څه لیکنه وکړئ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : اګر که یو قول د جواز هم شته لیکن د عدم جواز قول ارجح دی. د عالمگیري د باب النوافل په آخر کښې دواړه قولونه راغلي دي لیکن د همدې باب په شروع کښې ئې عدم جواز ته ترجیح ورکړی دی.

**ونصها ولو صلی التطوع ثلاث رکعات ولم یقعد علی رأس الرکعتین الاصح انه تفسد صلوته.(عالمگیریة ج۱،ص۱۱۳)** همدارنګه په شامیه او خانیه او داسې نور کښې ئې د فساد لوری راجح ګڼلی دی. **قال فی الشامیة تحت (قوله او ترك قعود اول) فلو تطوع بثلاث بقعدة واحدة کان ینبغی الجواز اعتبارا بصلوة المغرب لکن الاصح عدمه لانه قد فسد ما اتصلت به القعدة وهو الرکعة الاخیرة لان التنفل بالرکعة الواحدة غیر مشروع فیفسد ما قبلها.(ردالمحتار ج۱،ص۶۴۸)**

پورتني عبارتونه اګر که په نوافلو پورې اړه لري لیکن د تراویحو هم همدا حکم دی. چنانچه له څلورو څخه زیات رکعتونه په یوې قاعدې سره د ادا کولو په صورت کښې علامه شامي رحمه الله یوه جزئیه د نوافلو په اړه او بله جزئیه د دې په خلاف د تراویحو په اړه نقل کړی دی او دې لره د تصحیح په اختلاف باندې محمول کړی دی.

**ونصه (قوله فاکثر) هذا خلاف الاصح کما قدمناه عن البدائع والخلاصه وفی التاتارخانیة لو صلی التطوع ثلاثا ولم یقعد علی الرکعتین فالاصح انه یفسد ولو ستا او ثمانیا بقعدة واحدة اختلفوا فیه والاصح انه یفسد استحسانا وقیاسا اھ لکن صححوا فی التراویح انه لو صلاها کلها بقعدة واحدة وتسلیمة انها تجزء عن رکعتین فقد اختلف التصحیح.(ردالمحتار ج۱،ص۶۵۲) وقال ایضاً فی شرح قول العلائی والانابت عن شفع واحد به یفتی، لم ار من صرح بهذا اللفظ هنا وانما صرح به فی النهر عن الزاهدی فیما لو صلی اربعا بتسلیمة وقعدة واحدة واما اذا صلی العشرین جملة کذلك فقد قاسه علیه فی البحر نعم صرح فی الخانیة وغیرها بانه الصحیح مع انا قدمنا عن البدائع والخلاصة والتاتارخانیة انه لو صلی التطوع ثلاثا او ستا او ثمانیا بقعدة واحدة فالاصح انه یفسد استحسانا وقیاسا وقدمنا وجهه فقد اختلف التصحیح فی الزائد علی الاربعة بتسلیمة وقعدة واحدة هل یصح عن شفع واحد او یفسد فلیتنبه.(ردالمحتار ج۱،ص۶۶۱)**

او علامه قاضي خان رحمه الله خو صراحةً د تراویحو او نفلو دواړو په اړه د عدم جواز ترجیح را

نقل کړی دی چنانچه د تراویحو په بیان کښې فرمائي: وان صلی ثلاث رکعات بتسلیمة واحدة فهو علی وجهین اما ان قعد فی الثانیة اولم یقعد (الی قوله) وان لم یقعد فی الثانیة ساهیا او عامدا لاشك ان فی القیاس وهو قول محمد وزفر رحمهما الله تعالی واحدی الروایتین عن ابی حنیفة رحمه الله تفسد صلوته ویلزمه قضاء رکعتین لاغیر واما فی الاستحسان هل تفسد صلوته فی قول ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالی اختلفوا فیه قال بعضهم تفسد ولا یجزء عن شیء وقال بعضهم تجزء عن تسلیمة واحدة وعلی هذا الخلاف اذا تنفل بثلاث رکعات ولم یقعد فی الثانیة علی قول الفریق الاول لا یجزیه. وجه قول الفریق الثانی ان التطوع معتبر بالمکتوبة ولوصلی المغرب ثلاث رکعات ولم یقعد فی الثانیة یجوز فکذا التطوع یجوز عن تسلیمة لانه لم یضم الرابعة الی الثالثة. وجه من قال انه لا یجوز عن شیء وهو الصحیح انه ترك القعدة المشروعة وهو القعدة علی رأس الثانیة والقعدة علی رأس الثالثة غیر مشروعة فی التطوع فصار کأنه لم یقعد اصلا فلا یجوز بخلاف ما اذا صلی اربعاً ولم یقعد علی رأس الثانیة لان القعدة علی رأس الرابعة مشروعة فجازت. (خانیة علی هامش العالمگیریة ج۱،ص۲۴۱) فقط والله تعالی اعلم ۱۷ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## قاري او سامع (فاتح) ته څه ورکول او څه اخیستل حرام او په داسې قاري پسې تراویح ناجائز دي

**سوال**: په رمضان شریف کښې د قرآنکریم په ختم باندې قاري او سامع د څه معاوضې یادونه و نه کړي. د کلي او جومات خلک همداسې د دوی څه خدمت وکړي یا د جامو څه جوړي ورکړي. آیا دا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د خدمت تر نامه لاندې د نقدو روپو یا جامو او داسې نور ورکول هم معاوضه ده او د اجرت د معلومولو په نسبت نوره هم بده ده. ځکه چه په دې کښې دوه ګناهونه دي. یو د قرآن د اورولو په سر د اُجرت اخیستلو ګناه او بل د اُجرت د جهالت ګناه.

ځینې خلک وائي چه قاري او سامع هم د خدای لپاره کار کوي او مونږ هم د الله لپاره د دوی خدمت کوو، معاوضه مو مقصود نه دی. د داسې حیله ګرو د نیتونو د معلومولو لپاره حضراتو فقهاوو دا امتحان لګولی دی چه که چیرته قاري او سامع ته هیڅ هم ور نه کړل شي نو هغه په راتلونکي کښې هم په همدې جوماتي کښې به د خدمت لپاره تیار وي او که نه وي؟ او د کلیوالو لپاره دا امتحان دی چه که چیرته دا قاري او سامع جومات ته را هم نه شي نو بیا هم دا خلک د هغوی خدمت کوي او که نه؟ اوس د دې زمانې خلک تاسو په دې نقشې کښې راولئ. قاري او

سامع ته که چیرته له جوماتِ ځخه څه په لاس ور نه شي نو په راتلونکي د هغه جومات خوا ته مخ هم نه اړوي. او د جوماتوالو دا حال دی چه کوم قاري یا سامع د دوی په جومات کښې کار نه کوي هغوی که هر څومره محتاج وي نو د دوی د هغوی په بد حالي باندې هیڅ رحم نه راځي. له دې ځخه ثابته شوه چه د جانبینو نیت د معاوضې (اجرت) دی او د خدای پاري دعوې دروغ دي. لهذا دا ډول اوریدونکي او اوروونکي ټول سخت ګنهګار او فاسق دي او د داسې قاري امامت مکروه تحریمي دی.

په فرائضو کښې د فاسق د امامت دا حکم دی چه که چیرته صالح امام میسّر نه شي یا د فاسق امام د لرې کولو قدرت نه وي نو د هغه په اقتداء کښې باید لمونځ وشي او د جماعت پریښودل جائز نه دي لیکن د تراویحو دا حکم دی چه په هیڅ حال کښې هم د فاسق په اقتداء کښې تراویح جائز نه دي. که چیرته صالح او نیک حافظ پیدا نه شي نو په واړه سورتونو باندې تراویح باید وشي. که چیرته د کلي په جومات کښې داسې حافظ تراویح ورکوي نو فرض په جومات کښې په جماعت سره ادا کړئ او تراویح په ګوښي ځای کښې له ځان سره ادا کړئ.

با لفرض که چیرته د کوم قاري مقصود معاوضه او اجرت نه وي نو بیا هم د لین دین او عرف و رواج له وجې د هغه څه نا څه توقع وي او چه څه پیدا نه کړي نو افسوس ورځي. دا د نفس اشراف دي کوم چه دا هم حرام دي.

که چیرته کوم قاري د نفس له اشرافو ځخه هم پاک تصوّر شي نو بیا هم په دې لین دین کښې عام رواج شوی فعل له حرامو سره مشابهت او د هغه تائید کیږي. بر سیره پر دې د دیني غیرت خلاف هم دی. د دې لپاره په هر صورت له دې ځخه په بشپړه توګه اجتناب (ځان ساتنه) واجب دی.

فقط والله الموفق ۲۳شوال ۱۲۸٦ هجری

## د قرآنکریم د ختم په وخت کښې امام او مؤذن ته د څه ورکولو حکم

**سوال**: په عامو جوماتونو کښې دا دستور دی چه په رمضان شریف کښې د قرآن د ختم په موقع کښې له خلکو ځخه چنده را ټولیږي او بیا په هغې باندې مټائي یا نور خواړه تقسیمیږي او امام او مؤذن ته د امداد په توګه څه تحفه ورکول کیږي. آیا امام او مؤذن ته داسې روپۍ اخیستل جائز دي؟ او که چیرته د چندې په ځای په بلې کومې ذریعې سره ورکړل شي نو بیا ئې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لاندیني وجوهاتو پر بناء د امام او مؤذن لپاره دا عطیات که د نقدو په شکل کښې وي یا د جامو او داسې نور په شکل کښې وي جائز نه دي.

۱ - په عمومي توګه د چندې په وصولولو کښې داسې طریقې غوره کیږي چه انسان د څه نا څه

په ورکولو مجبوره کیږي. د دې لپاره دا وصولې شوې روپۍ حرامې دي تر څو پورې چه د ورکوونکي د طیبِ خاطر یقین نه وي له هغه څخه ځه اخیستل جائز نه دي

۲ - په چنده ورکوونکو کښې د بانکونو او بیمه ملازمین (نوکران) او په نورو حرامو ذریعو سره د ګټې لاس ته راوړونکي ډیر وي.

۳ - دا رسم د عام والي له وجې یو ډول معاوضه ګرځیدلې وي چه تفصیل ئې د مخکښینې سوال په ځواب کښې لیکل شوی دی. د امام او مؤذن لپاره اګر که تنخواه اخیستل جائز دي لیکن د دې روپو مقدار مجهول دی د دې لپاره دا راکړه ورکړه ناجائزه ده.

۴ - که چیرته امام په واقعي توګه دا روپۍ معاوضه نه بولي. نو امتحان کول ئې د مخکښینې سوال په ځواب کښې لیکل شوی دی نو بیا د اشراف نفس له وجې حرامې دي.

۵ - که چیرته با لفرض اشراف نفس هم نه وي نو بیا په دې سره د غلط رسم او ناجائزې معاملې تائید کیږي. د دې لپاره ناجائزه ده.

که چیرته دا عطیه له چندې څخه نو بیا هم د دریو وروستنیو وجوهاتو پر بناء ناجائزه ده.

که چیرته د کلي یا جومات خلک په رښتیا هم د امام او مؤذن امداد کول غواړي نو جائز صورت ئې دا دی چه د هغوی ټاکلې تنخواوې دې زیاتې کړي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ شوال ۱۳۸۶ هجری

## د سامع یا فاتح اُجرت

**سوال**: سامع ته اجرت اخیستل جائز دي او که نه؟ زید وائي چه جائز دي او د امداد الفتاویٰ د اول جلد حواله پرې ورکوي. شرعاً د دې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: امداد الفتاویٰ دا کار تعلیم ګڼلی دی او په دې باندې د اجرت جواز لیکلی دی لیکن صحیح دا ده چه دا تعلیم نه دی بلکه تذکیر دی. دویم که چیرته تعلیم هم ومنل شي نو دا په هغه ضروري تعلیم کښې نه راځي په کوم باندې چه د اُجرت د جواز فتویٰ ده. چه کله په تراویحو کښې پخپله د قرآنکریم ختم ضروري نه دی. د دې لپاره په دې باندې اجرت اخیستل هم جائز نه دي. نو قاري ته تعلیم یا تذکیر ورکول دومره ضروري څنګه کیدلی شي چه په هغه باندې اجرت اخیستل جائز شي. له دې امله د قاري غوندې سامع ته هم د اجرت اخیستل جائز نه دي. که اجرت ئې ټاکلی وي او که نه وي ټاکلی یا د امداد او خدمت تر نامه لاندې وي په هر حال ناجائز دي بلکه په نه ټاکلو کښې نور قباحت دا دی چه په دې کښې اجرت مجهول دی د دې لپاره دا نوره هم زیاته سخته ګناه ده.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ رمضان المبارک ۱۳۹۲ هجری

## نابالغ سامع لره په لومړي صف کښې د درولو حکم

**سوال** : د تراویحو په جماعت کښې په ځینو ځایونو کښې سامع نابالغه هلک وي او د سامع په لومړي صف کښې درول ضروري وي. آیا په دې صورت کښې نابالغ هلک په لومړي صف کښې درول به جائز وي او که کوم کراهت پکښې شته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نابالغ بې له ضرورته هم د بالغانو په صف کښې دریدلی شي او د ضرورت له مخې خو په طریقهٔ اولی سره جائز دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ رجب ۱۳۸۷ هجری

## د فرضو له ادا کولو پرته د وترو په جماعت کښې شریکیدل صحیح نه دي

**سوال** : زید په داسې وخت کښې راغی چه د وترو جماعت ولاړ وو نو آیا زید د اوداسه په کولو سره د وترو په جماعت کښې شامل شي او که د ماسخوتن فرض او تراویح ادا کړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : لومړی دې فرض ادا کړي بیا دې د وترو په جماعت کښې شامل شي او تر دې وروسته دې بیا تراویح ادا کړي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ شوال ۱۳۸۷ هجری

## د تراویحو له ادا کولو پرته د وترو په جماعت کښې شریکیدل

**سوال** : بکر داسې وخت راغی چه د تراویحو جماعت په ختمیدو وو. بکر د اوداسه په کولو سره د ماسخوتن فرض لمونځ او سنت مؤکده ادا کړل نو د تراویحو جماعت پای ته ورسیده او د وترو جماعت ودریده. نو آیا بکر د تراویحو له ادا کولو بغیر د وترو په جماعت کښې شریک شي او که خپلې تراویح دې وکړي؟ که چیرته څه تراویح پاتې شي او بیا د وترو جماعت ودریږي نو په جماعت کښې به شریکیږي او که خپلې پاتې تراویح به له ځان سره ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د وترو په جماعت کښې دې شریک شي او تر وترو وروسته دې تراویح ادا کړي که چیرته څه تراویح ئې پاتې وي نو هغه دې هم د وترو تر جماعت وروسته وکړي.

قال فی الدر ووقتها بعد صلوٰة العشاء الی الفجر قبل الوتر وبعده فی الاصح فلو فاته بعضها وقام الامام الی الوتر اوتر معه ثم صلی مافاته وفی الشامیة ای علی وجه الافضلیة. (ردالمحتار ج۱، ص۶۵۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ شوال ۱۳۸۷ هجری

## د ږیرې د لنډوونکي پسې د تراویحو حکم

**سوال** : زید د یوه جومات امام دی هغه خپله ږیره کله کله په ماشین سره او کله په بیاتي سره کموي او برابروي یعنې ږیره ئې له یوه موټي څخه کمه ده. که چیرته څوک پوښتنه ترې وکړي چه تاسو خپله ږیره د یوه موټي په اندازه یا له موټي څخه زیاته ولې نه پریږدئ نو په ځواب کښې وائي

چه د ږیرې یواځې په مخ باندې ښکاریدل ضروري دي. یو موټی یا له موټې څخه د زیاتې ږیرې پرېښودل ضروري نه دي. د مسمی زید د دې خواب شرعي حیثیت څه دی او آیا په داسې امام پسې لمونځ جائز دی او که نه؟

بکر هم د قرآن حافظ او ډیر خوږ آواز ئې دی او دی هم خپله ږیره کموي او د زید غونډې دی په صورت او سیرت کښې د شریعت تابع حافظان ډیر پیدا کیږي لیکن که چیرته د کوم جومات د انتظامیې څو غړي بکر لره په تراویحو کښې د قرآنکریم د اورولو لپاره وټاکي نو آیا په نوموړې پسې لمونځ جائز دی او که نه؟ څوک چه د جومات د انتظامیې یا کمیټې د صدر یا غړیتوب له وجې د شریعت د تابع حفاظو په ځای د بکر غونډې حافظ وټاکي په داسې حال کښې چه هغه ته مسئله هم ور ښوول شوې وي، د کمیټې دْ داسې غړو څه حکم دی؟ داسې حفاظ یا امامان کوم چه ږیرې له یوه موټې څخه کموي او په تراویحو یا پنځه ګوني لمونځونو کښې امام جوړیږي د هغو لپاره د مقدس شریعت څه حکم دی؟ آیا د جوماتونو یا عربي مدارسو د انتظامي کمیټې د مشر یا متولي یا مهتمم په صورت او سیرت کښې تر خپله وسه د شریعت تابع والی ضروري دی او که نه؟د (وَمَا كَانُوْٓا اَوْلِيَآءَهٗ اِنْ اَوْلِيَآؤُهٗٓ اِلَّا الْمُتَّقُوْنَ) (پ۹،سورة انفال) مفهوم به څه وي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ږیره له یوه موټې څخه کمول په اتفاق سره حرام دي بلکه د شریعت د ښکاره بغاوت له وجې له نورو کبیره ګناهونو څخه هم سخته ګناه ده. **قال فی شرح التنویر واما الاخذ منها وهی دون ذٰلك (القبضة) كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال فلم يبحه احد.(رد المحتار ج۲،ص۱۲۳)**
لهذا زید فاسق دی او په ده پسې لمونځ مکروه تحریمي دی. چه د شریعت تابع حافظ هم پیدا نه شي نو بیا هم فاسق لره په تراویحو کښې امام جوړول جائز نه دي. په فرائضو کښې چه صالح امام پیدا نه شي نو جماعت به نه پرېږدئ بلکه په همدې فاسق پسې لمونځ ادا کړئ لیکن په تراویحو کښې د فاسق اقتداء په هیڅ صورت کښې هم جائزه نه ده. د صالح حافظ د نه پیدا کیدو په صورت کښې تراویح په وړو سورتونو سره ادا کړئ. که چیرته د جومات منتظمین د ږیرې لنډوونکی هم وټاکي نو بیا هم د داسې سړي په اقتداء کښې تراویح ادا کول جائز نه دي. داسې غړي کوم چه په مسئلې باندې د پوهیدلو تر څنګ هم د فاسق امام په ټاکل کیدو باندې ټینګار کوي نو هغه خپله هم فاسقان دي. د جومات یا کلي په خلکو باندې فرض دي چه داسې بې دینه غړي د جومات د منتظمینو له مجلس څخه فوراً برطرفه کړي. دا خلک د دې منصب اهل نه دي. که چیرته کلیوال په دې باندې قدرت و نه لري نو په حکومت باندې فرض دي چه داسې خلک له داسې مقدس منصب څخه برطرفه کړي او مناسبه سزا ورکړي.

د جوماتونو او عربي مدارسو غړیو ته په پټه او ښکاره کښې د شریعت تابع والی ضروري دی

که چیرته کوم غړی د شریعت تابع نه وي هغه واجب العزل دی

## تر تراویحو وروسته د دُعاء حکم

**سوال**: د تراویحو په پای ته رسیدو باندې له وترو څخه مخکښې د اجتماعي دُعاء په صورت کښې د لاسونو پورته کول څنګه دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې اړه کومه صریحه جزئیه نشته. البته د دُعاء بعد الصلوٰة په کلیه کښې داخله ده. ځکه چه تراویح مستقل لمونځ دی. لهذا د انفراداً دُعاء ګنجائش شته. له امام سره د اجتماعي په صورت کښې دُعاء بدعت ده. چه په لوړ آواز سره وي نو بل بدعت دی. او که په التزام سره وي نو د دریو بدعتونو مجموعه ده. له دې څخه ځان لازمه ده.

والله تعالیٰ اعلم ۲۶ شوال ۱۳۸۸ هجری

## د دوو سورتونو تر مینځ د بسم الله حکم

**سوال**: پوره کلام پاک چه کله په تراویحو کښې ویل کیږي نو د دوو سورتونو تر منځ د بسم الله الرحمٰن الرحیم څه حکم دی؟ آیا جهراً به ویل کیږي او که سراً. او که با لکل ویل کیږي نه لکه څرنګه چه ځیني خلک ئې نه وائي او همدارنګه په فرائضو کښې د دوو سورتونو تر منځ د تسمیه حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په فرائضو و تراویحو دواړو کښې د دوه سورتونو تر منځ بسم الله ویل افضل دي. لیکن که قرائت جهریه وي یا سرّیه په هر صورت کښې به بسم الله په پټه وائي. په دې کښې جهر د سنتو خلاف دی. البته په تراویحو کښې یو ځل په جهر سره ویل ئې ضروري دي تر څو چه د مقتدیانو قرآنکریم هم مکمل شي.

قال فی الشامیة (قوله ولا تکره اتفاقاً) ولهذا صرح فی الذخیرة والمجتبی بأنه ان سمی بین الفاتحة والسورة المقروءة سراً او جهراً کان حسناً عند ابی حنیفة رحمه الله علیه و رجحه المحقق ابن الهمام و تلمیذه الحلبی لشبهة الاختلاف فی کونها آیة من کل سورة بحر. (ردالمحتار ج۱، ص۴۵۸)

ځینو ته اشکال ور لویدلی دی چه بسم الله لکه څرنګه چه څو څو ځله دی نو دا ګڼ شمیر آیتونه شول لکه څرنګه چه (فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ . وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ . إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ . وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ . وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ) وغیرها. لهذا ترهر سورت مخکښې تسمیه په جهر سره باید وویل شي او که نه نو بیا د مقتدیانو قرآن نه مکمل کیږي

د دې ځواب دا دی چه د نزول تکرار د تعدد مستلزم نه دی لکه څرنګه چه د یوه قول مطابق

سورهٔ فاتحه دوه ځلې نازله شوې ده. سره له دې د دې آيتونه اوه دي او څوارلس نه دي. **قال في العلائية وهى اٰية واحدة من القراٰن كله.(ردالمحتار ج۱،ص۳۵۸)**

که چیرته وویل شي چه د امام شافعي رحمه الله په نزد بسم الله د هر سورت يو جزء دی له دې امله په تراويحو کښې تر هر سورت مخکښې په جهر سره ويل ئې بايد افضل وي تر څو چه د مقتديانو د قرآن په تکميل کښې د اختلاف شبهه پاتې نه شي نو د دې ځواب دا دی چه دلته په سنتو کښې د مذهب رعايت غير مستلزم دی پخپل مذهب کښې د سنتو ترک لره. ځکه چه په حنفي مذهب کښې اخفاء سنت ده. فقط والله تعالىٰ اعلم ۹ ذی الحجة ۱۳۸۸ هجری

## له جومات څخه د باندې د تراويحو حکم

**سوال**: آیا د تراويحو لمونځ له جومات څخه د باندې په کور يا کوم بل ځای کښې د حافظ په ټاکلو سره ادا کول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چه فرض لمونځ په جومات له جماعت سره ادا شي نو بیا ځې د تراويحو جماعت په کوم بل ځای کښې جائز دی خو په دې شرط چه د کلي په يوه نه يو جومات کښې د تراويحو جماعت وشي. که چیرته د کلي په يوه جومات کښې هم د تراويحو جماعت نه کيده نو د کلي ټول خلک به ګنهګار وي. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۱ رمضان ۱۳۹۱ هجری

## د قضائي لمونځونو لپاره د تراويحو پريښودل جائز نه دي

**سوال**: يو سړی شکمن غوندې مزاج لري او ډير قضائي لمونځونه ئې په غاړې پاتې دي. د نوموړي مرض له وجې قضائي لمونځونه لړ لړ را ګرځوي. که چيرته نوموړی د ماسخوتن جماعت هم پريږدي او تراويح هم پريږدي او قضائي لمونځونه را وګرځوي نو آيا دا به ورته جائز وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قضائي لمونځونو په خاطر د ماسخوتن جماعت او د تراويحو لمانځه پريښودل جائز نه دي. فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۹ رمضان المبارك ۱۳۹۱ هجری

## بې له سامع يا فاتح څخه د قران د اورولو حکم

**سوال**: آيا په تراويحو کښې په حافظ پسې د سامع يا فاتح دريدل ضروري دي؟ بغير له سامع څخه هم د ټول قرآنکريم ثواب حاصليږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته د قاري حفظ پوخ وي نو سامع يا فاتح ضروري نه دی. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۷ شوال ۱۳۹۱ هجری

## د شبينې حكم

**سوال**: له تيرو څو كلونو څخه دا طريقه رائجه ده چه د تراويحو وركوونكى حافظ تر دولسو ركعتونو وروسته مصلى پريږدي او پاتې اته ركعته امام صاحب وركوي. مقتديان هم له حافظ سره يو ځاى تراويح پريږدي او د وترو تر جماعت وروسته حافظ صاحب خپل پاتې اته ركعته تراويح شروع كوي نو ډير مقتديان هم له هغه سره د نوافلو په نيت سره په لمانځه كښې شريكيږي. شبينه تقريباً د شپې تر دوه يا دوه نيمو بجو پورې وي د دې لپاره د لاسپيكر خاص انتظام وي. ځينو حضراتو ته وويل شول چه د صرف د څو كسانو لپاره د لاسپيكر استعمال بې له نمائش او ځان ښوونې څخه نور څه نه دي نو هغو په ځواب كښې وويل چه ساز او سروز عام دى په هر هر ځاى كښې ئې غږ تر غوږو كيږي نو مونږ به ولې لاسپيكر نه استعمالوو. د دې شرعاً څه حكم دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې ډول مشهورې شوې شبينې كښې څو قبائح (بدى) دي لكه:

۱ - د نوافلو جماعت وان مال ابن عابدين رحمه الله الى جواز اقتداء المتنفلين بمن يصلى التراويح ولكن لى فيه نظر[۱]

۲ - د لاسپيكر له وجې د كلي د خلكو په كار، آرام او عباداتو كښې خلل.

۳ - نوم او نشان.

۴ - د ځينو خلكو په جماعت كښې شريكيدل او ځينې همداسې كښيناستل كوم چه د جماعت او د قرآنكريم د احترام خلاف دى.

۵ - له ضرورت څخه د زياتو رڼاگانو، متاپانو او داسې نورو التزام

۶ - د داسې خرافاتو لپاره د چندې كول

دا ډول نورې خرابى هم دي چه د هغو پر بناء مروّجې شبينې جائزې نه دي

فقط والله تعالى اعلم ۱٤ شوال ۱۳۹۶ هجرى

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال**: حافظ چه پخپلو پاتې شويو تراويحو كښې شبينه ووائي او مقتدي څه تراويح او څه نوافل وروسته وكړي نو آيا داسې كول جائز دي او كه نه؟ په داسې حال كښې چه شل پنځه ويشت مقتديان شا ته ولاړ وي كه چيرته ټول مقتديان په نوافلو كښې شبينه واوري او حافظ پخپلو پاتې شويو تراويحو كښې شبينه ووائي نو بيا هم جائز دي او كه څنگه؟ بينوا توجروا.

---

[۱] - د نظر وجه په راتلونكي سوال او ځواب كښې ملاحظه كړئ ۱۲

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته په جماعت کښې اکثره خلک تراویح کوي او لږ غونډې خلک نفل کوي نو دا صورت جائز دی لیکن په متعارفې شبینې کښې په هر حال نور قبائح وي لهذا له دې ځخه هم احتراز لازم دی.

**قال ابن عابدین رحمه الله (قوله ثم اقتدی متنفلاً) ای ان شاء و هو افضل امدادو اوردان التنفل بجماعة مکروه خارج رمضان و اجیب بنعم اذا کان الامام و القوم متطوعین اما اذا ادی الامام الفرض و القوم النفل فلا لقوله علیه الصلوة و السلام للرجلین اذا صلیتما فی رحالکما ثم اتیتما صلوة قوم فصلیا معهم و اجعلا صلوتکما معهم سبحة ای نافلة کذا فی الکافی بحر.(رد المحتار ج۱،ص۲۶۸)**

له دې جزئیې ځخه ځرګندیږي چه په د تراویحو په دا کوونکي امام پسې د نفل کوونکو اقتداء مکروه نه ده لیکن په حدیث سره استدلال د تأمل ځای دی ځکه چه په دې کښې یواځې د دوه مقتدیانو د تنفل حکم دی له دې ځخه د ټولو مقتدیانو د تنفل په عدم کراهت باندې استدلال تام نه دی. د قاعدې مقتضی دا ده چه د مقتدیانو اکثریت ته باید اعتبار ورکړل شي.

## د مسافر، مریض او ښځې لپاره د تراویحو حکم

**سوال**: په کومو خلکو باندې چه د تراویحو لمونځ واجب نه دی لکه مسافر، مریض، ښځه او غلام. که چیرته دوی تراویح ادا کړي نو مکروه خو به نه وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تراویح د نارینه وو او ښځو دواړو لپاره سنت مؤکد دي. مسافر او مریض ته که چیرته د تراویحو په ادا کولو کښې کوم تکلیف او پریشاني نه وي نو ادا کول ئې ورته بهتر دي.

**قال فی العلائیة التراویح سنة مؤکدة لمواظبة الخلفاء الراشدین للرجال و النساء اجماعاً (رد المحتار ج۱، ص۶۵۹) و ایضاً فیها و یأتی المسافر بالسنن ان کان فی حال امن و قرار الا بان کان فی خوف و فرار لا یأتی بها هو المختار لانه ترك للعذر تجنیس.(رد المحتار ج۱،ص۷۴۲) فقط والله تعالی اعلم ۳ جمادی الاولی ۱۳۹۲ هجری**

## د یوه امام لپاره دوه ځایه د تراویح ورکولو حکم

**سوال**: زید په یو جومات کښې د قرآنکریم یوه سیپاره واوروله. بیا ئې په بل جومات کښې هم همدغه سیپاره واوروله. نو آیا یو حافظ په دوه جوماتونو کښې په دې ډول سره قرآنکریم ور اورولی شي او په دې ډول سره سُنت ادا کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته امام په دواړو جوماتونو کښې تراویح وکړي مثلاً په یوه جومات کښې په لسو رکعتونو تراویحو کښې یوه سیپاره ووائي بیا په بل جومات کښې په لسو

رکعتونو کښې همدغه سیپاره ووائي، یا یوه ورځ په یوه جومات کښې او بله ورځ په بل جومات کښې تراویح ورکړي نو په دې کښې کوم قباحت نشته او د قرآن د ختم سنت هم ادا کیږي. او که چیرته په یو جومات کښې شل رکعته تراویح پوره کړي په همدې شپه کښې په بل جومات کښې هم د تراویحو امامت وکړي نو د امام لپاره داسې کول ناجائز دي لیکن د مقتدیانو تراویح صحیح دي ځکه چه په تراویحو کښې په نفل کوونکي پسې اقتداء جائزه ده.

**نقل ابن نجیم رحمه الله علیه عن الخلاصة امام یصلی التراویح فی مسجدین کل مسجد علی وجه الکمال لا یجوز لانه لا یتکرر. (بحر ج۲، ص۶۸) و فی امامة الشامیة تحت (قوله فی الصحیح خانیة) یصح الاقتداء فی التراویح و غیرها بمفترض و غیره و مثلها سائر السنن الرواتب کما تفیده عبارة الخانیة، تؤمل. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۲) و فی التراویح منها. (قوله و فی التاتارخانیة الخ) عبارتها نقلا عن المحیط و ذکر القاضی الامام ابو علی النسفی فیمن صلی العشاء و التراویح و الوتر فی منزله ثم امّ قوماً اٰخرین فی التراویح و نوی الامامة کره له ذٰلك و لا یکره للمأمومین و لو لم ینو الامامة و شرع فی الصلوٰة فاقتدی الناس به لم یکره لواحد منهما اه. (رد المحتار ج۱، ص۶۶۳)**

**فقط والله تعالیٰ اعلم** — **۷ رمضان ۱۳۹۲ هجری**

## د سامع یا فاتح لپاره د ځای د تعین حکم

**سوال:** په تراویحو کښې د سامع لپاره د جای نماز په غوړولو سره په ځای باندې باندې قبضه جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه د اصلاح لپاره د دې ضرورت دی نو ځکه داسې کول ورته جائز دي.

**فقط والله تعالیٰ اعلم** — **۱۶ شوال ۱۳۹۲ هجری**

## قرآنکریم ته په کتو سره فتحه ورکول د لمانځه لپاره مفسد دی

**سوال:** قرآنکریم ته په کتو سره حافظ ته فتحه ورکول په تراویحو کښې جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قرآنکریم ته په کتو سره د فتحه ورکوونکي لمونځ فاسدیږي او که چیرته امام دا فتحه واخلي نو د ټولو لمونځ ورسره له منځه ځي **لانه عمل کثیر و تلقن من الخارج. فقط والله تعالیٰ اعلم**

**۲۴ شوال ۹۳ هجری**

## د تراویحو جماعت په جومات کښې سنت مؤکد دی

**سوال:** یو جومات ډیر تنګ دی، صحن ئې هم ډیر کوچنی دی لیکن له جومات سره لګیدلی

ځای خالي دی، که چیرته د ګرمی له وجې د جومات په ځای په دې خالي ځای کښې د تراویحو جماعت سر ته ورسیږي نو څه پروا لري او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له هر کلي څخه په یوه جومات کښې د تراویحو جماعت سنتِ مؤکد دی. لهذا که چیرته د همدې کلي په بل کوم جومات کښې د تراویحو جماعت کیده نو له جومات څخه د باندې د تراویحو د جماعت ګنجائش شته لیکن د فرائضو جماعت په هر صورت کښې په جومات کښې ضروري دی.

قال ابن عابدین رحمه الله تحت قوله صاحب التنویر (والجماعة فیها سنة علی الکفایة) وهل المراد انها سنة کفایة لاهل کل مسجد من البلدة او مسجد واحد منها او من المحلة. ظاهر کلام الشارح الاول واستظهر ط الثانی ویظهر لی الثالث لقول المنیة حتی لو ترک اهل محلة کلهم الجماعة فقد ترکوا السنة واساءوا اه وظاهر کلامهم هنا ان المسنون کفایة اقامتها بالجماعة فی المسجد حتی لو اقاموها جماعة فی بیوتهم ولم تقم فی المسجد اثم الکل. (ردالمحتار ج۱، ص۶۶۰) فقط والله تعالی اعلم ۲۵ محرم ۱۴۰۰ هجری

## چا چه فرض یواځې ادا کړی وي هغه دې د تراویحو امامت نه کوي

**سوال**: د حافظ صاحب د ناوخته راتلو له وجې د فرضو جماعت وشو او تر دې وروسته حافظ صاحب هم راغی. هغه له ځان سره یواځې فرض ادا کړ او تراویح ئې خلکو ته ورکړل. آیا په داسې کولو کښې څه حرج شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لاندینی جزئیې له مخې په دې صورت کښې کراهت څرګندیږي.

لو صلیت بجماعة الفرض وکان رجل قد صلی الفرض وحده له ان یصلیها مع ذلک الامام لان جماعتهم مشروعة فله الدخول فیها معهم لعدم المحذور. (ردالمحتار ج۱، ص۶۶۳) له دې څخه ثابته شوه چه مقتدي فرض یواځې ادا کړی وي نو هغه د تراویحو په جماعت کښې ځکه شریکیدلی شي چه هغه تابع دی. امام چونکه په جماعت کښې اصل دی نو ځکه د ده لپاره مکروه دی. د دې تائید له دې څخه هم کیږي چه پ فرضو کوونکو پسې د نفل کوونکو جماعت لره علامه ابن عابدین رحمه الله جائز ګڼلی دی اګر که مقتدیان له څلورو څخه زیات وي. د ابن عابدین په دې تحقیق کښې اګر که بنده څه اشکال[1] لري لیکن له دې څخه خو دومره خامخا ثابته شوه چه د امام حالت ډیر د لحاظ وړ دی. البته دا کراهت به یواځې په امام باندې وي په مقتدیانو باندې نه دی.

قال ابن عابدین رحمه الله (قوله وفی التاتارخانیة الخ) عبارتها نقلاً عن المحیط وذکر القاضی الامام ابو علی

[1] - د اشکال وجه د شبیني د حکم لاندې ملاحظه کړئ ۱۲

النسفی فیمن صلی العشاء والتراویح والوتر فی منزله ثم ام قوماً اٰخرین فی التراویح ونوی الامامة کره له ذلك ولا یکره للمأمومین ولو لم ینو الامامة وشرع فی الصلوٰة فاقتدی به الناس به لم یکره لواحد منهما اهـ. (رد المحتار ج۱، ص۶۶۴) فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ ذیقعده ۱۳۹۸هجری

## د ښځو لپاره هم شل رکعته تراویح سنت مؤکد دي

**سوال**: د ښځو لپاره په رمضان المبارک کښې کم تر کمه څو رکعته تراویح جائزې دي؟ ځینې علماء کرام فرمائي چه ښځې به هم پوره شل رکعته ادا کوي او که نه وي نو با لکل دې نه کوي آیا دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ښځو باندې هم شل رکعته تراویح سنتِ مؤکد دي. که چیرته وس و نه لري نو په ناستې دې وکړي. که چیرته د دې هم قدرت و نه لري نو بیا چه څومره رکعته کولی شي هغومره دې ادا کړي.

قال فی العلائیة التراویح سنة مؤکدة لمواظبة الخلفاء الراشدین للرجال و النساء اجماعاً. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ شعبان ۱۳۹۷هجری

## په تراویحو کښې د نابالغ هلک د اقتداء حکم

**سوال**: نابالغ حافظ لره په تراویحو کښې دامام جوړول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نابالغ په اقتداء کښې تراویح صحیح نه دي.

قال فی العلائیة ولا یصح اقتداء رجل بامرأة وخنثی و صبی مطلقاً ولو فی جنازةٍ ونفلٍ علی الاصح وقال ابن عابدین رحمة الله علیه (قوله ونفل علی الاصح) قال فی الهدایة وفی التراویح والسنن المطلقة جوزه مشائخ بلخ ولم یجوزه مشائخنا و منهم من حقق الخلاف فی النفل المطلق بین ابی یوسف و محمد رحمهما الله و المختار انه لا یجوز فی الصلوات کلها. (رد المحتار ج۱، ص۵۴۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ رمضان ۱۳۹۹هجری

## په ناستې سره د تراویحو د ادا کولو حکم

**سوال**: زید په تراویحو کښې د اوږد قرائت له وجې په ولاړې لمونځ نه شي ادا کولی آیا هغه له جماعت سره په ناستې سره تراویح ادا کولی شي او که له ځان سره به نې په ولاړې ادا کوي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ناستې سره دې له جماعت سره تراویح ادا کړي ځکه چه په تراویحو کښې قیام فرض نه دی. هو! بې له عذره په ناستې سره تراویح ادا کول د استحباب خلاف

دی.

قال فی البزازیة و اداءها قاعداً یجوز فی المختار ولو بلا عذر لکن لا یستحب بخلاف سنة الفجر فانه لا یجوز قاعداً (بزازیة علی هامش العالمگیریة ج۲، ص۳۰) و فی الخانیة (فصل فی اداء التراویح قاعداً) اختلفوا فی الجواز قال بعضهم لا یجوز بغیر عذر واستدلوا بما روی الحسن عن ابی حنیفة رحمه الله علیه انه لو صلی سنة الفجر قاعداً بغیر عذر لا یجوز فکذا التراویح اذ کل واحد منهما سنة مؤکدة و قال بعضهم یجوز اداء التراویح قاعداً بغیر عذر و فرقوا بین التراویح وبین سنة الفجر وهو الصحیح الا ان ثوابه یکون علی النصف من صلوة القائم ووجه الفرق ان سنة الفجر سنة مؤکدة لا خلاف فیها والتراویح فی التاکید دونها فلا یجوز التسویة دونها. (خانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۲۴۳) و اقرّه ابن امیر الحاج فی شرح المنیة و مثله فی الظهیریة و غیرها و فی فتاوی قاسم بن قطلوبغا ناقلاً عن الامام حسام الدین الشهید اجمعوا علی ان رکعتی الفجر قاعداً من غیر عذر لا تجوز لانها سنة شابهت الفرض واما التراویح فالصحیح انها تجوز قاعداً بغیر عذر ولکن لا تستحب.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ رمضان ۱۴۰۰ هجری

## په یو جومات کښې د تراویحو ګڼ شمیر جماعتونه

**سوال**: په دوه پوړي (دوه منزله) جومات کښې په هر یوه پوړ کښې جلا جلا جماعت کول جائز دي او که نه؟ او په همدې یوه منزل کښې په څه فاصله کښې د دویم جماعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په یوه جومات کښې د جماعت تعدد مکروه دی. او د دې عموم د تراویحو جماعت ته هم شامل دی له دې امله دا هم مکروه دی. که په یوه وخت کښې د تراویحو ګڼ شمیر جماعتونه وي او که په مختلفو وختونو کښې، د دواړو حکم یو دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ محرم ۱۴۰۱ هجری

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

انّ رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم

کان یصلّی فی رمضان عشرین رکعۃ والوتر

# لمعات المصابيح

# في ركعات التراويح

**«له حضور صلى الله عليه وسلم نه د شلو ركعتونو تراويحو ثبوت او په هغې باندې د صحابه كرامو رضى الله تعالى عنهم اجمعين اوائمه كرامو رحمهم الله اجماع»**

## د تراويحو په تعداد باندې مفصل بحث

**سوال**: يو عالِم وائي چه تراويح صرف اته ركعته سنت دي. او وائي چه له نبي كريم ﷺ څخه شل ركعته ثابت نه دي بلكه نبي كريم ﷺ يواځې اته ركعته ادا كړي دي. په دليل كښې د بخاري، مسلم او ابن خزيمه روايتونه وړاندې كوي. **صلی النبی ﷺ فی رمضان ثمان رکعات ثم اوتر.** او وائي چه پخپله د فقهې په كتابونو كښې ليكلي دي چه شل ركعتونه له نبي كريم ﷺ څخه ثابت نه دي. د كنز په شرح فتح المبين كښې دي چه تراويح سره له وترو يوولس ركعته دي. **ما روی کان یصلی فی رمضان عشرین سوی الوتر ضعیف.** او په موطاء امام مالک او ابن شيبه كښې دي چه حضرت عمر ﷺ د خپل خلافت په دوره كښې د يوولسو ركعتونو حكم وركړى دى.

بل عالِم د اتو ركعتونو قائل ته ملعون او كافر وائي ځكه چه شل ركعته په اجماع سره سنت مؤكد دي. اوس پوښتنه داده چه آيا په رښتيا هم لومړنى عالِم كافر دى؟ آيا شل ركعته له اجماع څخه ثابت دي. داجماع تعريف څه دى؟ بينوا بياناً شافياً. توجروا اجراً وافياً.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: اهلِ حديث له لاندينيو روايتونو څخه استدلال كوي:

۱.. عن ابی سلمة بن عبد الرحمٰن انه سأل عائشة رضی اللہ تعالٰی عنہما کیف کان صلوٰة رسول اللہ ﷺ فی رمضان فقالت ما کان رسول اللہ ﷺ یزید فی رمضان ولا فی غیرہ علی احدی عشرة رکعة یصلی اربعا فلا تسأل عن حسنهن وطولهن ثم یصلی اربعا فلا تسأل عن حسنهن وطولهن ثم یصلی ثلاثا قالت عائشة فقلت یارسول اللہ اتنام قبل ان توتر فقال یا عائشة ان عینیّ تنامان ولا ینام قلبی. (بخاری ج۱، ص۱۵۴)

۲.. حدثنا محمد بن حميد الرازي ثنا يعقوب بن عبد الله ثنا عيسى بن جارية عن جابر ﷺ قال صلى رسول الله ﷺ في رمضان ليلة ثمان ركعات والوتر فلما كان من القابلة اجتمعنا في المسجد ورجونا ان يخرج الينا فلم نزل فيه حتى اصبحنا قال اني كرهت وخشيت ان يكتب عليكم الوتر. (قيام الليل للامام ابن نصر المروزي ص۹۰)

۳.. وبه عن جابر ﷺ جاء ابي بن كعب في رمضان فقال يا رسول الله كان مني ليلة شيء قال وما ذلك يا ابي قال نسوة داري قلن انا لا نقرأ القران فنصلي خلفك بصلوتك فصليت بهن ثمان ركعات والوتر فسكت عنه وكان شبه الرضاء. (قيام الليل ص۹۰)

۴.. مالك عن محمد بن يوسف عن السائب بن يزيد انه قال امر عمر بن الخطاب ﷺ ابي بن كعب و تميما الداري رضي الله تعالى عنهما ان يقوما للناس باحدى عشرة ركعة. (موطاء مالك ص۹۸)

## د لومړي حديث ځوابونه:

۱ - په دې حديث کښې د اضطراب له وجې له دې څخه استدلال تام نه دی. قال القرطبي شكلت روايات عائشة ﷺ على كثير من اهل العلم حتى نسب بعضهم حديثها الى الاضطراب. (فتح الباري ج۳،ص۱۷)

۲ - پخپله له حضرت عائشه ﷺ څخه د ډيرلسو رکعتونو روايت هم په صحيح سند سره موجود دی. چنانچه حافظ رحمه الله د اضطراب د رفع کولو دا صورت بيانوي. والصواب ان كل شيء ذكرته من ذلك محمول على اوقات متعددة واحوال مختلفة. (فتح الباري ج۳،ص۱۷) له دې څخه د غير مقلدينو په اتو رکعتونو کښې انحصار او له دې څخه د زياتو رکعتونو د عدمِ ثبوت دعوىٰ باطله شوه. پخپله يو اهلِ حديث عالِم مولانا عبد الرحمٰن مبارک پوري صاحب فرمائي: انه قد ثبت ان رسول الله ﷺ كان قد يصلي ثلاث عشرة ركعة سوى ركعتي الفجر. (تحفة الاحوذي ج۲،ص۳)

لنډه دا چه په دې حديث کښې له اضطراب يا په اتو رکعتونو باندې له عدمِ انحصار څخه يو خوبه خامخا منل کيږي.

۳ - له دې حديث څخه ثابته شوه نبي کريم ﷺ په يوه سلام سره څلور څلور رکعته او په آخر کښې په يوه سلام سره درې رکعته وتر ادا کړي دي حالانکه دغير مقلدينو عمل د دې په خلاف دی. هغوی تراويح دوه دوه رکعته اداکوي او وتر يو رکعت يا درې رکعتونه په دوه سلامونو سره ادا کوي. لهذا کوم حديث چه پخپله د مستدل په نزد متروک العمل دی له هغه څخه استدلال صحيح نه دی.

۴ - حقيقت دا دی چه دا حديث د تهجدو په اړه دی په دې کښې د تراويحو بيان نشته. لاندې په

دې باندې څو قرينې ذکر کيږي:

## په حديث کښې د تهجدو په بيان باندې شواهد

۱ - د حديث دا الفاظ (**ما كان رسول الله ﷺ يزيد فى رمضان ولا فى غيره**) دا بيانوي چه پوښتنه هم د داسې لمانځه په اړه وه چه ټول کال ادا کيده. په سوال کښې خاص د رمضان د يادونې دا وجه ده چه له نورو روايتونو څخه ثابتيږي چه نبي کريم ﷺ په رمضان شريف کښې زيات لمونځونه کول. **كما سيأتى ان شاء الله تعالى**. د دې لپاره د سائل خيال داشو چه ښائي په رمضان شريف کښې به د تهجدو رکعتونه هم زيات ادا کول.

۲ - پخپله له حضرت عائشه ﷺ څخه د ګڼو صحيحو روايتونو څخه ثابته ده چه نبي کريم ﷺ به د غير رمضان په نسبت په رمضان شريف کښې زيات لمونځونه کول. **كما سنذكرها ان شاء الله تعالى**. له دې څخه ثابته شوه چه د بحث لاندې حديث کښې يوازې د تهجد د رکعتونو بيان دی.

۳ - د دې حديث په آخر کښې دا الفاظ دي: **فقالت عائشة ﷺ فقلت يا رسول الله اتنام قبل ان توتر - الخ**. په تراويحو کښې دا لږ خبره ده چه نبي کريم ﷺ له وترو څخه مخکښې ويده کيده او صحابهٔ کرام ﷺ به په انتظار باندې ناست وو. که چيرته دا تسليم هم شي نو دا علم نارينه وو ته بايد زيات وای **لتقدم صفوفهم** د دې برعکس د تهجد لمونځ په کور کښې ادا کيږي. په دې کښې به کله کله نبي کريم ﷺ له وترو څخه مخکښې ويده کيده.

۴ - محدثينو رحمهم الله دا حديث د تراويحو په باب کښې نه دی ذکر کړی. چنانچه امام محمد بن نصر المروزي پخپل کتاب قيام الليل کښې د (**عدد الركعات التى يقوم بها الامام للناس فى رمضان**) تر باب لاندې ډير روايتونه راوړي دي ليکن د حضرت عائشه ﷺ دا حديث ئې د اصح ما فى الباب کيدو له وجې ذکر کړی نه دی بلکه د دې خوا ته يوه اشاره هم نه ده کړې.

۵ - محدثين رحمهم الله دې حديث لره د تراويحو د رکعتونو د تعداد په ځای د تهجدو په اړونده بابونو کښې ذکرکوي. مثلاً په صحيح البخاري کښې په لاندينيو بابونو کښې دی.

**باب ما جاء فى الوتر** (ج ۱، ص ۱۳۵)

**باب قيام النبى ﷺ بالليل فى رمضان وغيره** (ج ۱، ص ۱۵۴)

**باب فضل من قام رمضان** (ج ۱، ص ۲۶۹)

**باب كان النبى ﷺ تنام عينه ولا ينام قلبه**. (ج ۱، ص ۵۰۳)

په لومړي ځای کښې دا الفاظ هم شته چه **كان يصلى احدى عشرة ركعةً كانت تلك صلوته تعنى بالليل**

**فیسجد السجدة من ذٰلك قدر ما یقرأ احدکم خمسین آیة.** دا الفاظ خومره د تهجد د لمانځه وضاحت کوي همدارنګه له دې باب څخه د وترو د دریو رکعتونو ثبوت مقصود دی نه د تراویحو د رکعتونو تعداد.

په دویم باب کښې د قیام اللیل في رمضان الفاظ دي او قیام اللیل تهجدو ته هم ویل کیږي بیا له رمضانسره د **(وغیره)** زیاتوالی نور وضاحت وکړ چه له دې څخه خاص تهجد مراد دي.

په دریم باب کښې هم د رکعتونو د تعداد بیان مقصود نه دی بلکه د فضل بیان مقصود دی.

په څلورم باب کښې تر وترو مخکښې د خوب بیان مقصود دی نه د رکعتونو تعداد. همدارنګه تر وترو مخکښې خوب مستقل دلیل دی چه دلته د تهجدو لمونځ ترې مراد دی. کمامرّ.

۲ - **قال الحافظ رحمة الله علیه تحت الحدیث المذکور و ظهر لی ان الحکمة فی عدم الزیادة علی احدی عشرة ان التهجد و الوتر مختص بصلوٰة اللیل و فرائض النهار الظهر و هی اربع و العصر و هی اربع و المغرب و هی ثلاث وتر النهار فناسب ان تکون صلوٰة اللیل کصلوٰة النهار فی العدد جملةً و تفصیلاً و اما مناسبة ثلاث عشرة فبضم صلوٰة اصبح لکونها نهاریة الی ما بعدها. (فتح الباری ج۳،ص۱۷)**

د مذکوره حکمت مقتضٰی دا ده چه له دې لمانځه څخه تهجد مراد دی. پرته له دې څخه په مذکوره عبارت کښې د تهجد د لفظ تصریح هم شته.

## په تهجد او تراویحو کښې فرق

اهلِ حدیث وائي چه تهجد او تراویح یو شی دي د دوی دا خیال د لاندینیو وجوهاتو له وجې باطل دی.

۱- په تهجد کښې تداعي جائز نه دی او په تراویحو کښې تداعي وي.

۲ - د تراویحو وخت له خوب څخه مخکښې دی او د تهجدو وخت معیّن نه دی بهتر وخت ئې تر خوب وروسته دی.

۳ - محدثینو رحمهم الله د تهجدو او تراویحو د هر یوه باب جلا اینبی دی. **کصنیع الامام مسلم و غیرہ.** د صحیح مسلم بابونه اګر که پخپله امام مسلم نه دي قائم کړي لیکن د احادیثو ترتیب او مناسب روایتونه په یوه ځای جمع کول خو پخپله د امام مسلم کار دی. همدارنګه د تراجمو لیکونکي هم د امام مسلم رحمه الله د لوړې مرتبې له شاګردانو او مشهورو محدثینو څخه دي.

۴ - د تهجد لمونځ مخکښې فرض وو او بیا وروسته الهي وحی ئې فرضیت منسوخ کړ اوس د دوباره فرضیت ویره پاتې نه شوه حالانکه د نبي کریم ﷺ په قیام لیل باندې د همیشه والي نه

کولو حکمت د فرضیت ویره بیانوي. له دې څخه ثابته شوه چه دا قیام لیل له تهجدو څخه بدل دی
څکه مخکښې ئې لا د تهجدو د فرضیت په منسوخولو سره نبي کریم ﷺ مطمئن کړی وو.

۵ - د تهجدو حکم په قرآنکریم کښې دی. ﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا ○ يٰاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ قُمِ الَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا نِّصْفَهٗ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا ○ اَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ○﴾ او د تراویحو په باره کښې نبي کریم ﷺ فرمائي چه **سننت لكم قيامه.** (نسائی ج۱، ص۳۰۸)

یعنې د تراویحو حکم وحی غیر متلو دی. له دې څخه ثابته شوه چه دا له تهجدو څخه بیل شی دی. په دې کښې دا تاویل نه شي چلیدلی چه د الله تعالی د نازل شوي حکم عملي طریقه نبي کریم ﷺ بیان کړې ده څکه چه په دې حدیث کښې د تقابل په صورت کښې ارشاد دی. **ان الله تبارك وتعالىٰ فرض صيام رمضان عليكم وسننت لكم قيامه.** حالانکه د رمضان د روژې عملي طریقه هم نبي کریم ﷺ بیان کړې ده. سره له دې د تقابل له صورت څخه ثابته شوه چه د صوم (روژې) حکم وحی متلو (چه تلاوت ئې کیږي) دی او د تراویحو حکم وحی غیر متلو دی.

۶ - په حدیث کښې د تراویح نوم "قیام رمضان" مستقل دلیل دی چه دا له تهجدو څخه بیل شی دی. څکه چه تهجد له رمضان سره مخصوص نه دی.

۷ - د تهجدو حکم په مکې مکرمې کښې وشو او د تراویحو حکم مدینې منورې ته تر رسیدو وروسته.

۸ - د حنبلي فقهې په مشهور کتاب مقنع کښې دي چه **ثم التراويح وهى عشرون ركعة يقوم بها فى رمضان فى جماعة ويوتر بعدها فى الجماعة فان كان له تهجد يوتر بعده.** (مقنع ص۱۸۴)

له دې څخه ثابته شوه چه امام احمد هم تهجد او تراویح یو له بله جلا جلا شیان ګڼل.

۹ - له امام بخاري رحمه الله څخه هم په دې ډول منقول دی چه د شپې په پیل کښې به ئې له خپلو شاګردانو سره تراویح کول او یو ځل به ئې قرآنکریم پکښې ختم کاوه او سهار ته په نژدې وخت کښې به ئې تهجد یواځې ادا کاوه.

۱۰ - د تهجدو متعین رکعتونه له نبي کریم ﷺ څخه ثابت دي. سره له وترو له زیات څخه زیات دیارلس او له کم څخه کم اوه رکعته. او د تراویحو په اړه پخپله د اهلِ حدیثو حضراتو ګواهي ورکوي چه کوم معین تعداد ئې له نبي کریم ﷺ څخه ثابت نه دی.

## د اهلِ حدیثو حضراتو ګواهي

۱- **قال الشيخ الاسلام العلامة ابن تيمية: ومن ظن ان قيام رمضان فيه عدد موقت عن النبى ﷺ لا يزاد**

ولا ینقص منه فقط اخطأ. (فتاوٰی ابن تیمیة ج۲،ص۴۰۱)

۲.. قال العلامة السبکی اعلم انه لم ینقل کم صلی رسول الله ﷺ فی تلك اللیالی هل هو عشرون او اقل. (شرح المنهاج)

۳.. قال العلامة جلال الدین السیوطی ان العلماء اختلفوا فی عددها و لو ثبت ذٰلك من فعل النبی ﷺ لم یختلف فیه. (المصابیح ص۴۳)

۴.. قال العلامة الشوکانی و الحاصل الذی دلّت علیه احادیث الباب و ما یشابهها هو مشروعیة القیام فی رمضان و الصلٰوة فیه جماعة و فرادٰی فقصر الصلٰوة المسماة با لتراویح علی عدد معین و تخصیصها بقراءة مخصوصة لم ترد به سنة. (نیل الاوطار ج۱،ص۳۶)

۵ - مولوي وحید الزمان صاحب فرمائي: ولا یتعین لصلٰوة لیالی رمضان یعنی التراویح عدد معین. (نزل الابرار ج۱،ص۱۲۶)

۶ - ابو الخیر میر نور الحسن خان صاحب لیکي: وبالجمله عددی معین در مرفوع نیامده. (العرف الجادی ص۸۴).

۷ - نواب صدیق حسن خان صاحب لیکي: ان صلٰوة التراویح سنة باصلها لما ثبت انه ﷺ صلاها فی لیالی ثم ترکها شفقةً علی الامة ان لا تجب علی العامة او یحسبوها واجبة و لم یأت تعین العدد فی الروایات الصحیحة لکن یعلم من حدیث کان رسول الله ﷺ یجتهد فی رمضان ما لا یجتهد فی غیره رواه مسلم ان عددها کثیر. (الانتقاد الرجیح ص۶۱)

### د دویم حدیث ځواب:

له دې حدیث څخه د دې لپاره استدلال صحیح نه دی چه په دې کښې دوه راویان ضعیف دي:

۱ - محمد بن حمید الرازي: ضعّفه الحافظ رحمه الله فی التقریب.

۲ - عیسٰی بن جاریة: حافظ رحمه الله په تهذیب التهذیب کښې او حافظ ذهبي په میزان الاعتدال کښې د فن جرح او تعدیل منل شوی امام یحیٰی بن معین څخه د ده تضعیف او مُنکر الحدیث والی نقل کړی دی. همدارنګه ابن عدي او ساجي عقیلي هم ده لره په ضعفاوو کښې شمار کړی دی. امام نسائي ورته متروک او منکر الحدیث ویلي دي. امام ابو داؤد هم ده لره منکر الحدیث ګڼلی دی. او اهلحدیث عالم مولانا عبد الرحمٰن صاحب مبارکپوري له سخاوي څخه نقل کوي: منکر الحدیث

وصف فی الرجل یستحق به الترک لحدیثه. (ابکار المنن ص۱۹۱)
دومره امامانو په عیسیٰ بن جاریة باندې دومره کلکه جرح کړې ده. د دومره لوی جماعت مقابل یواځې ابو زرعه "لا بأس" ویلي دي او ابن حبان په ثقاتو کښې ذکر کړی دی. د لاندیني وجوهاتو له وجې جرحه راجحه ده.
۱ - د اصولِ حدیث د قاعدې مطابق په تعدیل باندې د مفسر جرحې ته ترجیح وي.
۲ - جارحین پوره یوه ډله ده او منل شوي امامان دي.
۳ - جرحه ډېره سخته ده. چنانچه د منکر الحدیث په اړه پخپله د اهلِ حدیثو فیصله پوره نقل شوې ده.
لهذا دا روایت د قبول وړ نه دی بالخصوص کله چه له حضرت جابر ﷺ څخه په نقل کولو کښې عیسیٰ متفرد (یواځې) دی. قال الامام الطبرانی لا یروی عن جابر بن عبدالله الا بهذا الاسناد. له کوم بل صحابي څخه هم د دې حدیث هیڅوک گواه نشته.
**د دریم حدیث ځواب**: د دې حدیث سند هم بعینه هم هغسې دی کوم چه د دویم حدیث دی. د دې لپاره دا حدیث هم د قبول وړ نه دی.
**د څلورم حدیث ځواب**:
۱ - دا روایت مضطرب المتن دی اختلف فیه علی محمد بن یوسف فروی عنه مالک فی الموطا و یحی القطان عند ابن ابی شیبة و عبدالعزیز بن محمد عند سعید ابن منصور هکذا احدی عشرة رکعة و رواه محمد بن نصر فی قیام اللیل من طریق محمد ابن اسحٰق عن محمد بن یوسف فقال ثلاث عشرة و رواه عبدالرزاق من وجه اٰخر عن محمّد بن یوسف فقال احدی و عشرین قاله الحافظ فی الفتح ج۴، ص۲۱۹. (اعلاء السنن ج۷، ص۴۸)
د محمد بن یوسف پنځه شاگردان دي. له هغو څخه درې کسان یوولس رکعته. یو کس دیارلس رکعته او یو کس ئې یوویشت رکعته نقل کوي. بیا د یوولسو رکعتونو د نقل کوونکو متن هم پخپل منځ کښې سره مختلف دي. د دریواړو متنونه لاندې ملاحظه کړئ.
امام مالک: حضرت عمر ﷺ ابی بن کعب او تمیم داري ته حکم وکړ چه هغوی خلکو ته یوولس رکعته تراویح ورکړي.
یحیی القطان: حضرت عمر ﷺ په ابی بن کعب او تمیم داري باندې خلک را جمع کړل. پس هغو دواړو یوولس یوولس رکعتونه ادا کول.
عبد العزیز بن محمد: مونږ د حضرت عمر ﷺ په زمانه کښې یوولس رکعتونه ادا کول.
۲ - قال ابن عبدالبر روی غیر مالک فی الحدیث احدیٰ و عشرین و هو الصحیح و لا اعلم احداً قال فیه

احدٰی عشرة الا مالکاً (الی ان قال) الاغلب عندی ان قوله احدی عشرة وهم کذا فی التعلیق الحسن نقلاً عن الزرقانی فی شرح الموطا ج۲، ص۵۲، قلت لم یهم فیه مالك لمتابعة اثنین له فی ذلك عن محمد بن یوسف بل الوهم عندی فیه من محمد بن یوسف فانه قال مرة احدی وعشرین ومرة احدی عشرة وتارة ثلاث عشرة والجمع بینها بالحمل علی اختلاف الاحوال ونحوه کما قال الحافظ وغیره بعید مستغنی عنه فان المخرج واحد فکیف یصح حمله علی اختلاف الاحوال والمحفوظ ما رواه یزید بن خصیفة عن السائب بن یزید قال کانوا یقومون علی عهد عمر بن الخطاب رضی الله تعالیٰ عنه فی شهر رمضان بعشرین رکعة کما ذکرناه فی المتن اخرجه البیهقی و سنده صحیح وعزاه الحافظ فی الفتح الی مالك ایضاً. (اعلاء السنن ج۷، ص۴۸)

د سائب بن یزید دوه شاګردان دي محمد بن یوسف او یزید بن خصیفه. د محمد بن یوسف سخت اختلاط پورته بیان شو چه د هغه پنځه واړه شاګردانو له هغه څخه مختلف روایتونه کړي دي. حافظ ابن عبد البر د یو ویشتو رکعتونو روایت ته ترجیح ورکړې ده. اوس د یزید بن خصیفه د شلو رکعتونو د روایت د قوت وجوهات ملاحظه کړئ.

بیهقي په سنن کبریٰ ج۲. ص۴۹۲ کښې دا روایت له ابي الذئب له یزید بن خصیفه څخه نقل کړی دی او همدا روایت بیهقي په معرفة السنن و الآثار کښې عن محمد بن جعفر عن یزید بن خصیفه ذکر کړی دی. غرض دا چه د یزید دواړه شاګردان متفق دي. په هغوی کښې د محمد بن یوسف د شاګردانو غوندې اختلاف نشته. د لومړي سند امام نووي، امام سیوطي او امام عراقي او داسې نورو هم تصحیح کړی دی. (ارشاد الساري تحفة الاخیار ص۱۹۲، تحفة الاحوذي ج۲، ص۷۵)

دویم سند لره امام سُبکي په شرح المنهاج کښې او ملا علي قري په شرح موطا کښې صحیح ګڼلی دی. (تحفة الاحوذي ج۲. ص۷۵)

د کوم متعسف قول را نقل شوی دی چه په دې روایت کښې ابو عبد الله ابن فنجویه دینوري دی کوم چه عدالت ئې معلوم نه دی. اول خو د حدیثو د دومره جلیل القدرو امامانو له خوا څخه د دې روایت توثیق تر ثابتیدلو وروسته دا اشکال تعسف دی. دویم د کوم راوي د تعدیل لپاره په هغه باندې د کوم شهادت موجودوالی ضروري نه دی بلکه په هغه باندې د جرح نه پیدا کیدل او په اهلِ فن کښې د هغه شهرت د تعدیل لپاره کافي دی.

قال ابن الصلاح فی المقدمة علاة الراوی تارة تثبت بتنصیص العدلین علی عدالته و تارة تثبت بالاستفاضة فمن اشتهرت عدالته بین اهل النقل او نحوهم من اهل العلم وشاع الثناء علیه بالثقة والامانة استغنی فیه بذلك عن بینة شاهدة بعدالته تنصیصًا هذا هو الصحیح فی مذهب الشافعی وعلیه الاعتماد فی فن

اصول الفقه.(مقدمة ص ۴۰)

وقال الحافظ ابو عمرو ابن عبد البر كل حامل علم معروف العناية به فهو عدل محمول في امره ابداً على العدالة حتى يتبين جرحه.(حوالهٔ بالا)

ابو عبد الله ابن فنجويه باندې هيڅ جرحه نه ده راغلې او په د فن په خاوندانو کښې شهرت لري چنانچه ذهبي په ٤١٤ هجری کښې په وفات شويو مشهورو محدثينو کښې د ده ذکر کړی دی (تذکرة الحفاظ ج۳. ص۲۴۴) او ابن اثير جزري فرمائي:

عرف بها ابو عبد الله الحسين بن محمد بن الحسين فنجويه الفنجوني الدينوری الحافظ روی عن ابی الفتح محمد بن الحسين الاودی الموصلی و ابی بكر ابن مالك القطعی وغيرهما روی عنه ابو اسحٰق الثعلبی فاكثر فی تفسيره و يذكر كثيرا فيقول اخبرنا الفنجوني. علاوه پر دې سمعاني د برهان دينوري په شاګردانو کښې د ده يادونه کړې ده او امام بيهقي په سنن کښې له ده څخه ډير روايتونه کړي دي

۳ - دا روايت له حضرت عمر ﷺ څخه د نورو صحيحو او قوي روايتونو په خلاف دی له حضرت عمر ﷺ څخه د شلو رکعتونو نور د قوي اسنادونو روايتونه هم مخکښې ذکر کوو انشاء الله تعالى

۴ - پخپله امام مالک رحمه الله دا روايت د عمل قابل نه دی ګڼلی. د دې لپاره هغه د اتو رکعتونو قائل و نه ګرځيد

۵ - پخپله په موطا کښې امام مالک رحمه الله له حضرت عمر ﷺ څخه شل رکعتونه نقل کړي دي (موطا ص۴۰. فتح الباري ج۴. ص۲۱۹)

۶ - که چيرته حضرت عمر ﷺ د يوولس رکعتونو حکم ورکړی وای نو له حضرت عثمان او حضرت علي رضی الله عنهما او من بعدهم څخه به هم دا ډول روايتونه يا په دې باندې د دوی عمل رانقل شوی وای ليکن داسې هيڅ يو روايت هم نشته

۷ - ممکنه ده چه حضرت عمر ﷺ ته لومړی له نبي کريم ﷺ څخه يواځې د اتو رکعتونو روايت رسيدلی وي د دې لپاره به ئې دا حکم ورکړي وي وروسته چه د شلو رکعتونو روايت ورته معلوم شو نو د دې حکم ئې نافذ کړ

## د موطا د يو بل روايت وضاحت

په موطا کښې يو بل روايت دی: عن الاعرج قال ما ادركت الناس الا وهم يلعنون الكفرة في رمضان قال وكان القاری يقرأ سورة البقرة في ثمان ركعات فاذا قام بها في ثنتی عشرة ركعة رأى الناس انه قد خفف

(موطامالك)

په دې کښې په دې باندې دلیل نشته چه کله به ئې اته رکعته ادا کول او کله دولس بلکه مطلب دا دی چه د قرائت اندازه دومره وه چه د بقره غوندې سورت به ئې په اتو رکعتونو کښې ختم کاوه. د مجموعه رکعتونو بیان په دې روایت کښې نشته لماجاء الاحتمال بطل الاستدلال.

## د شلو تراویحو ثبوت

۱.. قال عائشة ﷺ کان رسول الله ﷺ یجتهد فی رمضان مالا یجتهد فی غیره. (رواه مسلم)

۲.. وعنها رضی الله تعالیٰ عنها قالت کان النبی ﷺ اذا دخل العشر شد مئزره واحیٰی لیله وایقظ اهله اخرجه البخاری. (فتح الباری ج۴، ص۲۳۴)

۳.. روی البیهقی فی شعب الایمان عن عائشة ﷺ مرفوعاً کان اذا دخل شهر رمضان شد مئزره ثم لم یأت فراشهٗ حتّٰی ینسلخ واسناده حسن.

۴.. وعنها رضی الله تعالیٰ عنها قالت کان اذا دخل رمضان تغیر لونه و کثرت صلاته و ابتهل فی الدعاء و اشفق لونهٗ کذا فی العزیزی ج۳، ص۱۲۷ له مذکوره حدیثونو څخه ثابته شوه چه نبي کریم ﷺ به په رمضان شریف کښې زیات رکعتونه ادا کول. دا احتمال چه په اتو رکعتونو به ئې شپه تیروله ډیر لرې دی. ځکه چه په دې صوت کښې د قیام اوږدوالی سخت مشقت دی او په آخري حدیث کښې د (طالت صلاته) په ځای د (کثرت صلاته) لفظ په دې باندې ښکاره دلیل دی چه په رکعتونو کښې زیاتوالی مراد دی. نواب صدیق حسن خان اهلِ حدیث فرمائي: یعلم من حدیث کان رسول الله ﷺ یجتهد فی رمضان مالا یجتهد فی غیره رواه مسلم ان عددها کثیر. (الانتقاد الرجیح ص۶۱)

په پورتنیو مذکوره روایتونو کښې له اتو رکعتونو څخه زیاتوالی ثابت شو اگر که د شلو رکعتونو تعین پکښې نشته او په لاندیني روایت کښې د شلو رکعتونو تعین شته.

۵.. عن ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما ان رسول الله ﷺ کان یصلی فی رمضان عشرین رکعة والوتر اخرجهٗ ابن ابی شیبة فی مصنفه والبغوی فی معجمه والطبرانی فی الکبیر له والبیهقی فی سننه. (التعلیق الحسن ج۲، ص۵۶)

صاحبِ فتح القدیر او د ځینو نورو مصنفینو د دې حدیث راوي ابراهیم بن عثمان له وجې څخه دې حدیث ته ضعیف ویل د لاندیني وجوهاتو له وجې صحیح نه دي.

(۱) - مختلفو محدثینو د ده توثیق کړی دی. قال ابن عدی له احادیث صالحة وهو خیر من ابراهیم بن ابی حنیفة وقال یزید بن هارون و کان علی کتابته ایام کان قاضیاً ما قضی علی الناس رجل یعنی فی زمانه اعدل

فی قضائه منه. (تهذیب ج۱، ص۱۳۵) له دې څخه ثابته شوه چه ابراهیم بن عثمان له ابراهیم بن ابي حیه څخه زیات ثقه دی. حالانکه ابراهیم بن ابي حیه هم ثقه او حسن الحدیث دی. نقل عثمان الدارمی عن یحیٰ بن معین انه قال شیخ ثقة کبیر کذا فی اللسان. (ج۱، ص۵۳) چه کله ابراهیم بن ابي حیه ثقه دی نو ابراهیم بن عثمان په طریقهٔ اولےٰ سره ثقه ثابت شو. د یزید بن هارون تعدیل ډیر وزن لري ځکه چه دی د امام بخاري رحمه الله داستاذ استاذ ډیر ثقه او ښکلی حافظ دی همدارنګه دی دابراهیم له حالاتو څخه د خارجینو په نسبت زیات خبر وو ځکه چه یزید د هغه په محکمه کښې محرر (لیکونکی) وو.

(۲) - د ضعیف حدیث په صحت باندې چه کله قرائن موجود وي نو داسې حدیث صحیح وي په دې باندې لاندیني شواهد شته:

(۱) پخپله ابن الهمام رحمه الله لیکلي دي او په مثال کښې ئې بیان کړی دی چه د ابو هریره رضی الله عنه مذهب غسل ثلاثا من ولوغ الکلب په دې باندې قرینه ده چه په دې باره کښې د حضرت ابو هریره رضی الله عنه مرفوع روایت صحیح دی. (فتح القدیر ج۱، ص۴۴)

(۲) ..وفیه ایضاً والحاصل ان غیر المرفوع او المرفوع المرجوح فی الثبوت عن مرفوع اٰخر قد یقدم علی عدیله اذا اقترن بقرائن تفید انه صحیح عنه علیه الصلوة والسلام مستمر علیه. (فتح القدیر ج۱، ص۱۱۵)

(۳) د شافعي رحمه الله په نزد مرسل حدیث ضعیف دی. لیکن که له هغه سره د صحابي قول موافق راشي نو په اتفاق سره حجت دی. د دې تصریح هم ابن همام رحمه الله کړې ده. وقول الترمذی العمل علیه عند اهل العلم یقتضی قوة اصله وان ضعف خصوص هٰذا الطریق. (فتح القدیر ج۱، ص۱۸۸)

(۴) ..روی اسد بن عمرو بن ابی یوسف قال سألت اباحنیفة رحمة الله علیه عن التراویح وما فعله عمر رضی الله تعالیٰ عنه فقال التراویح سنة مؤکدة ولم یتخرصه عمر رضی الله تعالیٰ عنه من تلقاء نفسه ولم یکن فیه مبتدعاً ولم یأمر به الا عن اصل لدیه وعهد من رسول الله ﷺ کذا فی مراقی الفلاح نقلاً عن الاختیار. (ص۲۳۹)

لنډه دا چه که چیرته پنځم حدیث با لفرض ضعیف هم ومنل شي بیا هم څلور روایتونه او د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم او تر دوی وروسته د ټول امت اجماع د دې حدیث په صحت باندې ښکاره حجت دی. مولانا ثناء الله امرتسري صاحب اعتراف کوي چه ځینې ضعیف داسې دي چه کوم چه د اُمت په تلقی با لقبول سره رفع شوي دي. (اخبار اهلِ حدیث ۱۹ اپریل سـ۱۹۰۷ـۂ) او د اتو رکعتونو حدیث د دې په خلاف نه دی. د دې لپاره چه دا اته رکعتونه د تهجدو وو. برسیره پر دې د اتو رکعتونو په حدیث کښې اضطراب دی. (فتح الباري ج۳. ص۱۷) یعني ابو سلمه له حضرت عائشه رضی الله عنها څخه روایت کوي انه ما کان یزید فی رمضان ولا فی غیره علی احدی عشرة رکعة او حضرت عروه

له حضرت عائشه ﷞ څخه روایت کوي انه ﷺ کان یصلّی باللیل ثلث عشرة رکعة ثم یصلّی اذا سمع النداء بالصبح رکعتین خفیفتین رواه البخاری. (فتح الباری ج۳،ص۴۷) وقد مرّ تفصیله.

۶.. علیکم بسنتی و سنة الخلفاء الراشدین المهدیین تمسکوا بها و عضوا علیها بالنواجذ. (رواه احمد و ابو داؤد و الترمذی و ابن ماجة) په دې حدیث کښې د خلفاء راشدینو ﷺ د سنتو اتباع واجب ګڼل شوی دی. پس کوم کار چه د خلفاء راشدینو په عمل سره ثابت شي هغه حکماً د نبي کریم ﷺ له قول څخه ثابت او د ده له خوا څخه مامور به ګڼل کیږي. پس که چیرته د شلو رکعتونو تراویحو ثبوت له نبي کریم ﷺ څخه هم نه وای نو بیا به هم له دې حدیث څخه شل رکعتونه د نبي کریم ﷺ له خوا څخه ثابت شول.

## په شلو رکعتونو باندې د صحابه ؤ ﷺ اجماع

۱.. عن السائب بن یزید قال کنا نقوم من زمن عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه بعشرین رکعة و الوتر رواه البیهقی فی المعرفة وصححه السبکی فی شرح المنهاج. (التعلیق الحسن ج۲،ص۵۴)

۲.. وفی لفظ له من طریق اُخر قال کانوا یقومون علی عهد عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه فی شهر رمضان بعشرین رکعة وقال کانوا یقرءون بالمئین و کانو یتوکؤون علی عصیهم فی عهد عثمان بن عفان رضی الله تعالی عنه من شدة القیام صححه النووی فی الخلاصة و ابن العراقی فی شرح التقریب و السیوطی فی المصابیح. (حوالهٔ بالا)

۳.. عن یحیٰی بن سعید ان عمر بن الخطاب ﷺ امر رجلاً یصلی بهم عشرین رکعة رواه ابو بکر ابن ابی شیبة فی مصنفه و اسناده مرسل قوی. (اٰثار السنن ج۲،ص۵۵)

۴.. عن عبد العزیز بن رفیع قال کان ابی بن کعب رضی الله تعالی عنه یصلی بالناس فی رمضان بالمدینة عشرین رکعة یوتر بثلاث اخرجهٔ ابو بکر ابن ابی شیبة فی مصنفه و اسناده مرسل قوی. (حوالهٔ بالا)

۵.. عن ابی الحسناء ان علی بن ابی طالب رضی الله تعالی عنه امر رجلاً یصلی بالناس خمس ترویحات عشرین رکعة رواه البیهقی فی سننه و ضعفهٔ. (کنز العمال ج۴،ص۲۸۴)

۶.. اخرج البیهقی روایة ابی عبد الرحمٰن السلمی عن علی رضی الله تعالی عنه و سیجیء مفصلاً عن قریب انشاء الله تعالی

۷.. عن شتر بن شکل و کان من اصحاب علی ﷺ انه کان یؤمهم فی رمضان بعشرین رکعة و الوتر بثلاث وفی ذٰلک قوة. (بیهقی ج۲،ص۴۹۶)

۸..عن یزید بن رومان انه قال کان الناس یقومون فی زمان عمر بن الخطاب رضی الله عنه فی رمضان بثلاث وعشرین رکعة رواه مالك واسناده قوی مرسل. (بیهقی ج۲،ص۴۹۶)

۹..عن عطاء قال ادرکت الناس وهم یصلون ثلاثا وعشرین رکعة بالوتر. (ابو بکر ابن ابی شیبة واسناده حسن)

۱۰..عن ابی الخصیب قال کان یؤمنا سوید بن غفلة فی رمضان فیصلی خمس ترویحات عشرین رکعة. (بیهقی ص۴۹۶ واسناده حسن)

۱۱..عن نافع بن عمر قال کان ابن ابی ملیکة یصلی بنا فی رمضان عشرین رکعة. (ابن ابی شیبة واسناده حسن)

۱۲..عن سعید بن عبید ان علی بن ربیعة کان یصلی بهم فی رمضان خمس ترویحات و یوتر بثلاث. (ابن ابی شیبة واسناده حسن)

۱۳..قال محمد بن کعب القرظی کان الناس یصلون فی زمان عمر بن الخطاب رضی الله عنه فی رمضان عشرین رکعة یطیلون فیها القراءة ویوترون بثلاث. (قیام اللیل ص۹۱)

۱۴..قال الاعمش کان (عبدالله بن مسعود رضی الله عنه) یصلی عشرین رکعة و یوتر بثلاث. (حوالهٔ بالا)

۱۵..سیأتی عن المغنی روایة صالح مولی التوأمة.

۱۶..قال الحافظ ابن قدامة فی المغنی والمختار عند ابی عبدالله رحمه الله علیه فیها عشرون رکعة و بهذا قال الثوری وابو حنیفة والشافعی وقال مالك ستة وثلاثون وزعم انه الامر القدیم و تعلق بفعل اهل المدینة فان صالحا مولی التوأمة قال ادرکت الناس یقومون باحدی واربعین رکعة یوترون منها بخمس ولنا ان عمر رضی الله عنه لما جمع الناس علی ابی ب کعب رضی الله عنه کان یصلی بهم عشرین رکعة رواه ابو داؤد و رواه السائب بن یزید و روی عنه من طرق وروی مالك عن یزید بن رومان قال کان الناس یقومون فی زمن عمر رضی الله تعالی عنه فی رمضان بثلاث وعشرین رکعة وعن علی رضی الله تعالی عنه انه امر رجلا یصلی بهم فی رمضان عشرین رکعة وهذا کالاجماع واما ما رواه صالح فان صالحاً ضعیف ثم لا ندری من الناس الذین اخبر عنهم فلعله قد ادرك جماعة من الناس یفعلون ذلك و لیس ذلك بحجة ثم لو ثبت ان اهل المدینة کلهم فعلوه لکان ما فعله عمر و اجمع علیه الصحابة رضی الله عنهم فی عصره اولی بالاتباع قال بعض اهل العلم انما فعل هذا اهل المدینة لانهم ارادوا مساواة اهل مکة فان اهل مکة یطوفون سبعاً بین کل ترویحتین فجعل اهل المدینة مکان کل سبع اربع رکعات و ما کان علیه اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم اولی واحق ان یتبع. (المغنی ج۱،ص۸۰۳)

۱۷۔۔ قال ابن حجر المکی الشافعی اجتمعت الصحابة ﷺ علی ان التراویح عشرون رکعة. (مرقاۃ)

۱۸۔۔ التراویح سنة مؤکدة عشرون رکعة برمضان و الاصل فی مسنونیتها الاجماع. (نیل المأرب فی الفقه الحنبلی)

۱۹۔۔ قال العلامة القسطلانی فی شرح الصحیح للبخاری وقد عدوا ما وقع فی زمان عمر ﷺ کالاجماع.

۲۰۔۔ روی محمد بن نصر من طریق داؤد بن قیس قال ادرکت الناس فی امارة ابان ابن عثمان و عمر بن عبد العزیز بالمدینة یقومون بست و ثلاثین و یوترون بثلاث. (فتح الباری ج۴، ص۲۲۰)

۲۱۔۔ عن الزعفرانی عن الشافعی رحمة الله علیه رأیت الناس یقومون بالمدینة بتسع و ثلاثین و بمکة بثلاث و عشرین. (حوالهٔ بالا)

قال الشیخ یرد علی هؤلاء احداث البدعة فی الدین فان قیام رمضان بستة و ثلاثین لم یثبت عن احد من الخلفاء و لم یرو ذلک فی اثر من الصحابة ثم اجاب و قال و الله اعلم لعلهم لم یروا التحدید فیه و ظنوا ان النبی ﷺ رغب الناس و حثهم علی قیام رمضان من غیر تحدید فیه ولا تعیین رکعات واختیار الخلفاء عشرین رکعة کان لدخوله تحت هذا الترغیب العام لا لمعنی فی عشرین حتی یکره الزیادة علیها فاختار و الحکمة اما ستة و ثلاثین بناء علی زعمهم ان فی الامر سعة و اما نحن فلا نجیز الزیادة علی العشرین رکعة فی الجماعة العامة و نجیز فی غیر الجماعة لان الجماعة من الشعائر فلا تشرع الا ما ورد به النص او المواظبة من الصحابة ولم یرد النص ولا مواظبة الصحابة بازید من عشرین رکعة فی رمضان و اما قولهم ان النبی ﷺ حث علی قیام رمضان من غیر تحدید فالجواب عنه انه ﷺ حث علیه بالاطلاق و نحن نقول به و لم یحث علیه بالجماعة لا الی حد فلا یجوز قیامهٔ بالجماعة الا بالقدر الذی ورد فیه الجماعة والله اعلم. (حاشیهٔ اعلاء السنن ج۷، ص۴۹)

له دغو روایتونو څخه ثابته شوه چه په شلو رکعتونو باندې د صحابه ؓ او تر دوی د وروستنیو خلکو اجماع ده. مغني، قسطلاني، مرقات او نیل المآرب لیکل شوي عبارتونه د دې با لکل تصریح کوي. له شلو څخه د زیاتو خو ځینو قول کړی دی لیکن له شلو څخه د کمو رکعتونو خو هیڅوک قائل نه دي.

په مذکوره روایتونو کښې ځیني مراسیل دي او د ابو الحسناء روایت ضعیف دی. د دومره ډیرو روایتونو په موجودوالي کښې د هغو په اړه د څه ویلو ضرورت نشته. سره له دې د فائدې د اتمام او نور تائید په غرض سره څه نا څه نور وضاحت هم کیږي.

## د مرسل حجیّت

د مرسل د حجیّت په انکار کښې له ائمه اربعه وو څخه امام شافعي رحمه الله متفرد دی. له امام احمد رحمه الله څخه هم اگر که د انکار قول راغلی دی لیکن د هغه راجح قول د حجیت دی. ابو داؤد او ابن جریر له امام شافعي رحمه الله څخه مخکښې د مرسل په حجیّت باندې د ټولو اسلافو اجماع را نقل کړې ده. تر ټولو مخکښې امام د دې انکار کړی دی. حافظ ابن عبد البر د اجماع په نقل کولو سره د دې د ساقطولو ډیر کوشش کړی دی لیکن په ډیر مشکل سره ئې پنځه نومونه وړاندې کولی شوای. (مقدمۀ فتح الملهم ص۷۹)

پرته له دې څخه چه کله د کوم مرسل په تائید کښې په کوم بل مستقل مسند یا مرسل روایت څخه وشي نو داسې مرسل د امام شافعي رحمه الله په نزد هم مقبول دی. **قال الحافظ وقال الشافعي يقبل اذا اعتضد بمجيئه من وجه آخر يباين الطريق الاولى مسنداً كان او مرسلاً (شرح نخبة الفكر ص۵۲)** بلکه شیخ الاسلام زکریا انصاري فرمائي چه د مرسل مؤید اگر که ضعیف هم وي نو بیا هم قبلیږي. (حاشیۀ نخبة الفکر) پرته له دې څخه د یزید بن رومان روایت د مالک مرسل دی او د امام مالک رحمه الله مراسیل د امام شافعي رحمه الله په نزد هم بې له شبهې څخه حجت دي. حضرت شاه ولی الله صاحب فرمائي: **قال الشافعي اصح الكتب بعد كتاب الله موطا الامام مالك واتفق اهل الحديث على ان جميع ما فيه صحيح على رأى مالك ومن وافقه واما على رأى غيره فليس فيه مرسل ولا منقطع الا قد اتصل السند به من طرق اخرى وقد صنف فى زمان مالك موطأت كثيرة فى تخريج احاديثه ووصل منقطعه مثل كتاب ابن ابى ذئب وابن عيينة والثورى ومعمر. (حجة الله البالغة ج۱،ص۱۰۶)**

## د ابو الحسناء روایت

د دې روایت د ضعیف والي دوه وجې بیانیږي

۱- په تقریب التهذیب کښې ابو الحسناء مجهول لیکل شوی دی.

د دې ځواب دا دی چه له ابو الحسناء څخه د هغه دوه شاگردانو ابو سعد او عمرو بن قیس روایت کوي او د اصول حدیثو قاعده ده چه له چا څخه چه روایت کوونکي دوه وي هغه مجهول الذات نه وي. لهذا ابو الحسناء مجهول نه بلکه مستور دی. او د مستور روایت لره یو جماعت قبلوي او د جمهورو په نزد د مؤید په شرط سره مقبول دی. دلته د ده مؤید عبد الرحمٰن سلمي او شتیر بن شکل روایت موجود دی کوم لره شه بیهقي قوي گڼلی دی. **وقد مر نصه هذا الحديث وان كان ضعيفا لكن مجبر بتعدد طرقه. (ابكار المنن ص۱۴۸)** بلکه د کوم چه گڼ شمیر طریقې وي او هغه ټولې

ضعیفې وي نو بیا هم د طرق د تعدّد له وجې د حسن درجې ته رسیږي. **ولوسلم ان کلها ضعیفة فهی مجموعها تبلغ درجة الحسن. (ابکار المنن ص۱۳۱)**

۲ - له حضرت علي ﷺ سره د ابو الحسناء لقاء (لیدل) ثابته نه ده له دې امله دا حدیث منقطع دی. د دې ځواب دا دی چه ابو الحسناء دوه دي. یو د حضرت علي ﷺ د شاګرد شاګرد دی او دی د حکم بن عتبه شاګرد او د شریکِ نخعي أستاد دی. (تهذیب التهذیب) بل ابو الحسناء کوم چه د مذکور حدیث راوي دی د حضرت علي ﷺ شاګرد او د ابو سعد بقال او عمرو بن قیس استاد دی.

## په شلو رکعتونو باندې د خلفاء راشدینو مواظبت (همیشه والې)

د صاحبِ هدایې په قول چه (په شلو رکعتونو باندې د خلفاء راشدینو مواظبت دی) باندې اعتراض شوی دی چه حضرت ابو بکر صدیق ﷺ شل رکعته نه دي ادا کړي او له حضرت عمر او حضرت عثمان غني رضی الله عنهما څخه هم شل رکعته له جماعت سره د شاملیدو په صورت کښې ادا کول ثابت نه دي. دا اعتراض غلط دی ځکه چه د خلفاء راشدینو تغلیباً اطلاق شوی دی. مقصود ترې دریې ګوني خلفاء دي. (فتح القدیر ج۱، ص۴۰۷)

باقي د خلفاء راشدینو له جماعت سره له نه ادا کولو څخه عدمِ مواظبت ثابتول لنډ نظري دی ځکه چه مواظبت په دوه ډوله دی:

۱ - عملاً: **کمواظبة النبی ﷺ علی الجماعة والسنن الرواتب وغیرها.**

۲ - تشریعاً: یعنې په کوم فعل باندې د تل لپاره مشغول اوسیدل او ترغیب ورکول لکه چه د آذان او اقامت په سنیت باندې اجماع ده. حالانکه نبي کریم ﷺ په دې باندې عملاً مواظبت نه دی کړی بلکه هیڅکله ئې آذان او اقامت پخپله نه دی کړی. **(الا ان یکون نادراً)**

غرض دا چه د آذان او اقامت سنیت یواځې تشریعي یعنې د ترغیب ورکولو له وجې دی. اوس که چیرته با لفرض و منل شي چه دریې ګوني خلفاؤ له جماعت سره تراویح نه ادا کولې نو بیا هم تشریعي مواظبت ثابت دی. پرته له دې څخه دا دعوٰی غلطه ده چه خلفاء ثلاثه له جماعت سره تراویح نه ادا کولې.

۱ - امام احمد رحمه الله جزماً فرمایلي دي چه حضرت عمر ﷺ په جماعت سره تراویح ادا کولې. او حضرت علي، حضرت جابر او حضرت عبد الله ﷺ هم له جماعت سره تراویح ادا کولې. (المغني لابن قدامة)

۲ - **قال الشوکانی واختلفوا فی ان الافضل صلاته فی بیته منفرداً ام فی جماعة فی المسجد فقال الشافعی و جمهور اصحابه وابو حنیفة واحمد وبعض المالکیة وغیرهم رحمهم الله تعالی الافضل صلاتها جماعة کما فعله**

عمر بن الخطاب و الصحابة رضی الله تعالی عنهم و استمر امر المسلمین علیه لانه من شعائر الظاهرة. (نیل الاوطار ج۲،ص۲۹۵)

۲.. قد اخرج البیهقی فی سننه عن ابی عبد الرحمٰن السلمی عن علی رضی الله تعالی عنه قال و دعا القراء فی رمضان فامر منهم رجلاً ان یصلی بالناس عشرین رکعة قال و کان علی رضی الله تعالی عنه یوتر بهم و روی ذلك بوجه اٰخر عن علی انتهی کذا فی التعلیق الحسن قال النیموی فیه حماد بن شعیب و هو ضعیف (ج۲،ص۵۶) ثم نقل اقوال مضعفیه عن المیزان قلت و فی اللسان و قال ابن عدی یکتب حدیثه مع ضعفه و اخرج له مع هذا الحاکم فی مستدرکه اه.(ج۲،ص۲۲۸) فالاثر حسن مع کونه مرویاً من وجه اٰخر ایضاً و فیه تصریح بامر علی رضی الله عنه بعشرین رکعة و اشعار بقیامه معهم لانه کان یوتر بهم فافهم. (اعلاء السنن ج۷،ص۵۰)

په مدونه کښې روایت دی چه: عن یحیٰی بن سعید انه سئل عن صلوٰة الامیر خلف القاری قال ما بلغنا ان عمر و عثمان رضی الله تعالی عنهما کانا یقومان فی رمضان مع الناس فی المسجد. (مدونه ج۱،ص۱۹۳)

له دې څخه د خلفاء ثلاثه وو له جماعت سره د لمانځه نه ادا کول نه ثابتیږي ځکه چه په دې کښې د اقتداء په صورت کښې د لمانځه د نه ادا کول نفی دی. ممکنه ده چه دوی پخپله امامان شوي وي او نورو صحابه وو ته به ئې د تراویحو جماعت ورکړی وي چه له دې څخه روایت ساکت (چُپ) دی. پرته له دې څخه د یحیٰی بن سعید نه پیژندګلوي د نورو د نه پیژندګلوي مستلزم نه دی. مونږ پورته ذکر کړی دی چه امام احمد رحمه الله پوره یقین درلود چه حضرت عمر رضی الله عنه په جماعت سره تراویح ادا کولې. او حضرت علي، حضرت جابر، حضرت عبد الله رضی الله عنه په اړه هم د امام احمد تصریح تیره شوه چه دغو حضراتو په جماعت سره تراویح ادا کولې.

## د ابن همام رحمه الله قول

ابن همام رحمه الله فرمائي چه اته رکعته سنت او پاتې مستحب دي. ځکه چه اته رکعته پخپله له نبي کریم ﷺ څخه ثابت دي او شل رکعته د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم عمل دی. (فتح القدیر ج۱، ص۴۰۷)

دا قول د اجماع په خلاف د کیدو تر څنګ روایةً او درایةً په هر ډول باطل دی. روایةً د دې لپاره چه پورته ثابت شول چه شل رکعته پخپله له نبي کریم ﷺ څخه ثابت دي او درایةً د دې لپاره چه ابن همام رحمه الله د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم مواظبت سنت نه دی ګڼلی. حالانکه محققین او اصولیین فقهاء د خلفاء راشدینو له مواظبت څخه سنیت ثابتوي. لکه څرنګه چه د تراویحو جماعت سنت مؤکد دی. څو عبارتونه ملاحظه کړئ.

۱.. قال الحافظ العینی رحمه الله علیه فی البنایة شرح الهدایة، سیرة العمرین رضی الله تعالی عنهما لا شك فی ان

فعلها ثواب وفی ترکها عقاب لانا امرنا بالاقتداء بهما لقوله علیه الصلوة والسلام اقتدوا بالذین بعدی ابی بکر وعمر فاذا کان الاقتداء مأموراً به یکون واجباً وتارك الواجب یستحق العقاب والعتاب. (مجموعة الفتاوٰی ج۱، ص۲۱۵)

۲.. وقال کمال الدین بن الهمام فی تحریر الاصول قسم الحنفیة العزیمة الی فرض ما قطع بلزومه وواجب ما ظن، وسنة الطریقة الدینیة معه علیه الصلوة والسلام او الخلفاء الراشدین او بعضهم. (حوالهٔ بالا)

۳.. وقال بحر العلوم فی شرح التحریر ینبغی ان یراد اعم من ان یکون طریقة دینیة مستمرة فی الدین عنه ﷺ بان باشره اولا بان استمر الناس علیها باذنه او باذن الخلفاء ﵃. (حوالهٔ بالا)

۴.. وفی التبیین شرح الحسامی، وفی عرف الشرع یراد بها طریقة الدین اما للرسول ﷺ او للصحابة ﵃ حتی یقال سنة الرسول او سنة الخلفاء الراشدین. (مجموعة الفتاوٰی ج۱، ص۲۱۷)

د دوی تائید له دې حدیث څخه کیږي: علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین عضوا علیها بالنواجذ قال الترمذی هذا حدیث حسن صحیح. (ترمزی ج۲، ص۹۲)

د (علیکم) لفظ وضعاً په لزوم باندې دلالت کوي او معطوف د معطوف علیه په حکم کښې وي. څرګنده شوه چه د خلفاؤ ﵃ سنت هم د رسول الله ﷺ د سنتو غوندې لازم دی. لهذا په دوارو کښې د سنیت او استحباب فرق کول صحیح نه دي. ځکه چه مندوب لازم نه دي. بیا (عضوا علیها بالنواجذ) هم له دوارو سره لګیږي. پرته له دې څخه که چیرته د خلفاؤ په سنت باندې د استحباب قول وشي نو د خلفاؤ په یادونه کښې د تخصیص هیڅ وجه نه پاتې کیږي. ځکه چه د ټولو صحابهٔ کرامو ﵃ په سنت بانې عمل کول مستحب دي.

لما روی عن عمر ﵁ مرفوعاً سألت ربّی عن اختلاف اصحابی من بعدی فاوحی الیّ یا محمّد ان اصحابك عندی بمنزلة النجوم فی السماء بعضها اقوٰی من بعض ولکل نور فمن اخذ بشیء مما هم علیه من اختلافهم فهو عندی علی هدی رواه رزین. (مشکٰوة ص۵۵۴) د همدې لپاره نبي کریم ﷺ د نورو صحابهٔ کرامو په نسبت د خلفاء راشدینو د سنت او خصوصاً د شیخینو د سنت د اتباع زیات تاکید کړی دی.

غرض دا چه که چیرته له نبي کریم ﷺ څخه شل رکعته ثابت هم نه وای نو بیا هم د خلفاء راشدینو ﵃ په دې باندې مواظبت د سنیت موجب دی. د صحابي فعل ګوا که پخپله د نبي کریم ﷺ قول دی ځکه چه پخپله رسول الله ﷺ د صحابه وو د اقتداء او اتباع حکم فرمایلی دی.

## له شلو رکعتونو څخه په نه کموالي باندې د ائمهٔ اربعه ؤ و غیرهم اجماع

د صحابهٔ کرامو ﷺ د اجماعت له وجې د ائمهٔ اربعه وو رحمه الله هم په دې باندې اجماع ده چه تراویح له شلو رکعتونو څخه کم نه دي.

۱ - د مغني مکمل عبارت پوته تیر شو چه په هغه کښې د ائمه اربعه ؤ مذهب منقول دی.

۲..المسنون عند ابی حنیفة و الشافعی و احمد عشرون رکعة وحکی عن مالك ان التراویح ست و ثلاثون رکعة. (رحمة الامة ص۲۳)

۳..واختلفوا فی المختار من عدد الرکعات التی یقوم بها الناس فی رمضان فاختار مالك فی احد قولیه و ابو حنیفة و الشافعی و احمد و داؤد القیام بعشرین رکعة سوی الوتر وذکر ابن قاسم عن مالك انه کان یستحسن ستا وثلاثین رکعة والوتر ثلاث (الی قوله) وذکر ابن القاسم عن مالك انه الامر القدیم. (بدایة المجتهد ج۱،ص۲۰۲)

۴..وقد قالت المالکیة انها کانت ثلاثا و عشرین ثم جعلت تسعا و ثلاثین (قسطلانی)

۵.. قال الامام الترمذی رحمۃ اللہ علیہ و اختلف اهل العلم فی قیام رمضان فرای بعضهم ان یصلی احدی و اربعین رکعة مع الوتر وهو قول اهل المدینة و العمل علی هذا عندهم بالمدینة و اکثر اهل العلم علی ما روی عن علی و عمر و غیرهما من اصحاب النبی ﷺ عشرین رکعة وهو قول سفیان الثوری و ابن المبارك و الشافعی و قال الشافعی و هکذا ادرکت ببلدنا بمکة یصلون عشرین رکعة و قال احمد روی فی هذا الوان لم یقض فیه بشیء و قال اسحٰق بل نختار احدی و اربعین رکعة علی ما روی عن ابی بن کعب. (ترمذی ج۱،ص۱۱۲)

لنډه دا چه دشلو رکعتونو سنت والی پخپله له نبي کریم ﷺ څخه ثابت دی او دصحابهٔ کرامو ﷺ او تر دوي وروسته او د ائمهٔ اربعه ؤ رحمهم الله او داسې نورو امامانو اجماع ده چه تراویح له شلو رکعتونو څخه کم نه دي. لهذا د دوی په خلاف خبره یا قول کول ضلالت او ګمراهي ده.

والائمة اذا اختلفوا فی مسألة فی ای عصر کان علی اقوال کان اجماعا منهم علی ان ما عداها باطل ولا یجوز لمن بعدهم احداث قول اٰخر. (نور الانوار ص۲۲۳)

## د اجماع تعریف

د اجماع په تعریف کښې د حسامي تعبیر تر ټولو غوره دی. ونصه والصحیح عندنا ان اجماع کل عصر من اهل العدالة و الاجتهاد حجة ولا عبرة لقلة العلماء و کثرتهم ولا بالثبات علی ذٰلك حتّٰی یموتوا او لا لمخالفة اهل الهواء فیما نسبوا به الی الهواء ولا لمخالفة من لا رأی له فی الباب الا فیما یستغنی عن الرأی ثم الاجماع علی مراتب فالاقوی اجماع الصحابة ﷺ نصا لانه لا خلاف فیه ففیهم اهل المدینة وعترة الرسول علیه السلام ثم الذی ثبت بنص بعضهم و سکوت الباقین لان السکوت فی الدلالة علی التقریر دون النص

ثم اجماع من بعد الصحابة على حكم لم يظهر فيه قول من سبقهم مخالفاً ثم اجماعهم على قول سبقهم فيه مخالف فقد اختلف العلماء في هذا الفصل فقال بعضهم هذا لا يكون اجماعاً لان موت المخالف لا يبطل قوله و عندنا ان اجماع علماء كل عصر حجة فيما سبق فيه الخلاف و فيما لم يسبق لكنه فيما لم يسبق فيه الخلاف بمنزلة المشهور من الحديث و فيما سبق فيه الخلاف بمنزلة الصحيح من الأحاد و اذا انتقل الينا اجماع السلف باجماع كل عصر على نقله كان في معنى نقل الحديث المتواتر و اذا انتقل الينا بالافراد كان كنقل السنة بالأحاد و هو يقين باصله و لكنه لما انتقل الينا بالأحاد اوجب العمل دون العلم و كان مقدماً على القياس. (حسامی)

## آیا د اجماع منکر کافر دی او که نه؟

په دې اړوند په شامیه کښې دا تفصیل دی چه: ثم نقل فی نور العین عن رسالة الفاضل الشهير حسام چلبي من عظماء علماء السلطان سليم بن بايزيد خان ما نصه اذا لم تكن الأية او الخبر المتوتر قطعی الدلالة او لم يكن الخبر متواترا او كان قطعيا لكن فيه شبهة او لم يكن اجماع الجميع او كان و لم يكن اجماع الصحابة رضی الله عنهم او كان و لم يكن اجماع جميع الصحابة او كان اجماع جميع الصحابة و لم يكن قطعياً بان لم يثبت بطريق التواتر او كان قطعياً لكن كان اجماعاً سكوتياً ففي كل من هذه الصور لا يكون الجحود كفرا يظهر ذلك لمن نظر في كتب الاصول فاحفظ هذا الاصل فانه ينفعك في استخراج فروعه حتى تعرف منه ما قيل انه يلزم الكفر في موضع كذا و لا يلزم في موضع أخر اه. (ردالمحتار ج۳، ص۲۹۳، کتاب المرتد)

له دې تفصیل څخه ثابته شوه چه د تراویحو په اړه د منعقدې اجماع د منکر تکفیر (کافر کول) جائز نه دی. البته تضلیل ئې کیږي. یعنې له شلو رکعتونو څخه د کمو رکعتونو د سنیّت قائل په ښکاره ضلالت او ګمراهي کښې دی. فقيام رمضان بعشرين ركعة والوتر هو السنّة المؤكدة يضلل تاركها ويلام من نقص عنها. (اعلاء السنن ج۷، ص۴۷) فقط والله تعالى اعلم و علمه اتم.

رشید احمد ۲۳ ذی الحجة ۷۳ هجری

## تتمّه

### د خیر المصابیح مؤلفه حضرت مولانا خیرمحمد صاحب رحمه الله له رسالې څخه اقتباسات

۱ - د پاکستان اهلِ حدیث په ډیر زور او شور سره وائي چه رسول الله ﷺ اته رکعته تراویح ادا کړي دي او حضرت عمر رضی الله عنه هم د اتو رکعتونو حکم ورکړی وو. جمهور مسلمانان کوم چه شل رکعته تراویح کوي یا له شلو زیات کوي د دې هیڅ ثبوت نشته. حالانکه نه پوهیږي چه له عمل څخه د هر شي معلومات کیږي. که چیرته نبي کریم ﷺ اته رکعته تراویح کړي وای او د حضرت

عمر ﷺ حکم هم د اتو رکعتونو وای نو د حضراتو صحابهٔ کرامو ﷺ، تابعینو، تبع تابعینو، ائمهٔ مجتهدینو، سلف صالحینو او علماءِ راسخینو عمل د شلو رکعتونو یا زیاتو نه وو. حالانکه په ګډ هندوستان کښې دوه پیړۍ مخکښې پوره تر دولس سوه کلونو پورې دشرق، غرب، جنوب او شمال په ټولو جوماتونو شل رکعته یا له شلو څخه زیات رکعتونه ادا کیدل. په حرمین شریفینو کښې تر اوسه پورې شل رکعته یا له شلو رکعتونو څخه زیات ادا کیږي. آیا له اهلِ حدیثو څخه پرته جمهور اُمت ټول په ګمراهۍ کښې پاتې شوی دی یا پرته له ثبوت څخه شل رکعته یا له شلو څخه زیات ادا کوي. د نبي کریم ﷺ له زمانې څخه تر دولسمې پیړۍ پورې په هیڅ یوه جومات کښې که چیرته اته رکعته تراویح ادا شوي وي نو د دې ثبوت وړاندې کړئ.

څرګنده شوه چه آنحضرت ﷺ په حتمي توګه اته رکعته نه دي ادا کړي بلکه شل رکعته ئې ادا کړي. او د حضرت عمر ﷺ په مبارکې زمانې کښې هم شل رکعته تراویح ادا شوي دي. او که نه نو د امام ترمذي غوندې محقق به د عادت په مطابق د یوه چا مذهب اته رکعته خو به ئې نقل کړي وای لیکن په ټولو صحاح سته وو کښې د هیچا مذهب د اتو رکعتونو نه دی او نه د اتو رکعتونو په ادا کولو کښې د چا عمل را نقل شوی دی.

## له اهلِ حدیثو علماؤ څخه د شلو رکعتونو ثبوت

پس منع از بست و زیاده چیزی نیست الخ. (العرف الجادی ص۸۴) پس له شلو یا زیاتو رکعتونو څخه منع کول کوم شی نه دی..

نواب صدیق حسن خان صاحب لیکي: **پس آنی بزیادت عامل بسنّت هم باشد الخ.** (هدایة السائل ص۱۳۸) له یوولسو څخه زیات تراویح کوونکي هم په سُنت باندې عمل کوونکي دي.

همدارنګه فرمائي چه: **اما آنکه جمع از اهلِ علم این نماز بست رکعت قرار داده اند و در هر رکعتی قرائتی معین را مستحسن داشته این عدد بخصوصه ثابت نشده ولیکن مجمله چیزے است که بر آن این معنے صادق است که انه صلوٰة انه جماعة وانه فی رمضان پس حکم بتبدیع آن چه معنی.** (بدور الاهله ص۸۳)

لیکن د علم کومو خاوندانو چه دا لمونځ شل رکعته ټاکلی دی او په هر رکعت کښې ئې ټاکلې قرائت نښه ګڼلی دی. دا عدد په ځانګړې توګه ثابت نه دی لیکن یو مجمل شی دی په کوم باندې چه دا صادقیږي چه دا لمونځ دی، دا جماعت دی، دا په رمضان کښې دی. پس په دې باندې د بدعت د حکم لګولو څه معنیٰ؟

همدارنګه فرمائي: **ان صلوٰة التراویح سنة باصلها لما ثبت انه ﷺ صلاها فی لیالی ثم ترکه شفقة علی الامة ان تجب علی العامة او یحسبوها واجبة ولم یأت تعین العدد فی الروایات الصحیحة المرفوعة ولکن یعلم من حدیث کان**

رسول الله ﷺ یجتهد فی رمضان مالا یجتهد فی غیرہ. رواہ مسلم ان عددها کان کثیراً. (الانتقاد الرجیح ص ۲۱)

د تراویح لمونځ د خپل اصل په لحاظ سره سنت دی ځکه چه ثابت شول چه نبي کریم ﷺ په خو شپو کښې تراویح کړي دي. بیا د دې اندیښنې له وجې چه په خلکو باندې واجب نه شي یا ئې عوام واجب و نه بولي، څه وخت پریښودل. او په صحیح او مرفوع روایتونو کښې د کوم (حتمي) عدد تعیّن نه دی راغلی لیکن له دې حدیث څخه چه (کان رسول الله ﷺ یجتهد فی رمضان مالا یجتهد فی غیرہ رواہ مسلم) معلومیږي چه د تراویحو تعداد زیات دی.

۳ - اهلِ حدیث یوولس رکعته تراویح د نبي کریم ﷺ خوا ته په منسوبولو کښې د خپل سلف مخالف دي. آیا نواب صدیق حسن خان صاحب مرحوم او میر ابو الحسن صاحب، مولوي وحید الزمان صاحب، علامه شوکاني، علامه سبکي، علامه ابن تیمیه بخاري شریف نه وو ویلي. د دې لپاره د نن صبا اهلِ حدیث له اصح الکتب څخه د یوولسو رکعتونو ثبوت ورکوي. ګوا که ولا فی غیرہ په ویلو سره د دولسو میاشتو د تهجد لمونځ دې ولې نه وي. په هر حال دا وواییئ چه تاسو د ډېر علم خاوندان یئ او که نوموړي حضرات؟

۴ - له فاروقي زمانې څخه د دولسمې پیړۍ تر آخره پورې د شلو رکعتونو یا تر دې د زیاتو رکعتونو ټول خلک قائل وو. بل ځای په یوه جومات کښې هم اته رکعته نه ادا کیدل. که چیرته چیرته یا په کوم جومات کښې اته رکعته ادا کیدل نو دا په ښکاره توګه واضح کړئ.

۵ - د حضرت عمر ﷺ په زمانه کښې که کله کله په جومات کښې د ننه اته رکعته تراویح ادا شوي وي نو د دې ثبوت وړاندې کړئ.

۶ - د حضرت علي ﷺ په زمانه کښې که چیرته کله په جومات کښې د ننه د اتو رکعتونو جماعت شوی وي یا چا له شلو رکعتونو څخه انکار کړی وي نو د دې ثبوت وړاندې کړئ.

۷ - له سلفو څخه کوم یوه په جومات کښې اته رکعته تراویح په جماعت سره ادا کړ او په دې باندې ئې انکار نه دی کړی؟ په کوم کال کښې؟ په کوم ښار کښې؟

انتهى الالحاق من خیر المصابیح بقلم محب المؤلف رحمه الله تعالى رحمةً واسعةً العبد رشید احمد رزقه الله تعالى حبه وحب اولیائه. والحمد لله اولاً وآخراً والصلوٰة والسلام علی رسوله وآله وصحبه کما یحب ویرضی بعدد ما یحب ویرضی.

۱۱ جمادی الاولی ۹۷ هجری

# باب قضاء الفوائت

## د قضاء په نیت کښې د ورځې تعین ضروري دی

**سوال**: زما په ذمې باندې د څو کلونو لمونځونه پاتې وو. الله تعالی هدایت را ته وکړ نو ما د هغو لمونځونو قضائي شروع کړه لیکن اوس یوه مسئله را ته معلومه شوه چه په قضائي لمونځونو کښې د ورځې تعین ضروري دی چه د فلانۍ ورځې قضائي لمونځ را ګرځوم. د دې لپاره د لاندینیو سوالونو ځوابونه را ته ولیکئ.

۱ - چه کله د چا په زړه نه وي چه د کومې ورځې کوم لمونځ زما په ذمې باندې پاتې دی نو هغه به څه ډول لمونځ کوي؟

۲- کوم لمونځونه ئې چه تر اوسه پورې بې له تعین څخه را ګرځولي دي آیا هغه به تول له سره دوباره را ګرځوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱ - که چیرته ورځ، تاریخ هیڅ ور یاد نه وي نو داسې نیت دې وکړي چه "زما په ذمې باندې چه د سهار څومره لمونځونه پاتې وي له هغو څخه اولنی لمونځ را ګرځوم" همدارنګه د نورو لمونځونو نیت دې هم همداسې وتړي. **قال فی شرح التنویر فی اٰخر باب قضاء الفوائت کثرت الفوائت نوی اول ظهر علیه او اٰخره.(ردالمحتار ج۱،ص۶۹۰)**

۲ - د یوه قول مطابق د ورځې تعین ضروري نه دی. دا قول هم مصحح دی. اګر که د تعین اشتراط ارجح او احوط دی. که چیرته د لمونځونو په را ګرځولو کښې حرج یا تکلیف وي نو په دې قول باندې د عمل کولو ګنجائش شته.

قال ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله کثرت الفوائت الخ) وقیل لا یلزمه التعیین ایضاً کما فی صوم ایام من رمضان واحد ومشی علیه المصنف فی مسائل شتی اٰخر الکتاب تبعا للکنز وصححه القهستانی عن المنیة لکن استشکله فی الاشباه وقال انه مخالف لما ذکره اصحابنا کقاضیخان وغیره والاصح الاشتراط اھ قلت وکذا صححه فی الملتقی هناك وهو الاحوط وبه جزم فی الفتح کما قدمناه فی بحث النیة وجزم به هناك صاحب الدرر ایضاً.(ردالمحتار ج۱،ص۶۹۰) وقال فی بحث النیة فقد اختلف التصحیح والاشتراط احوط وبه جزم فی الفتح هنا.(ردالمحتار ج۱،ص۳۸۹) فقط والله تعالی اعلم

غرۂ محرم ۱۳۸۶ هجری

## قضائي لمونځ باید په پټه توګه ادا شي

**سوال** : قضائي لمونځونه په ښکاره توګه په جومات کښې ادا کول بهتر دي او که په پټه توګه په کور کښې؟ که چیرته یو څوک د وترو قضائي په جومات کښې ادا کوي او په دې خیال سره چه خلکو ته معلومات و نه شي نو په دریم رکعت کښې د دعاء قنوت لپاره لاسونه نه پورته کوي. نو آیا د نوموړي سړي د وترو قضائي صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قضائي لمونځونه باید په پټه توګه ادا شي لیکن په جومات کښې ادا کولو ته ښکاره ادا کول نه ویل کیږي. خلکو ته څه معلومات کیږي چه نوافل ادا کوي او که قضائي. البته د مازدیګر او سهار تر لمانځه وروسته دې قضائي نه را ګرځوي ځکه چه په دغو وختونو کښې نفل مکروه دی. لهذا کتونکي ئې بیا قضائي ګڼي. او د ګناه ښکارول یوه مستقله ګناه ده. د خلکو په مخ کښې د وترو په قضائي کښې دې په دعاء قنوت کښې لاسونه نه پورته کوي.

قال فی الشامیة عن الامداد اما فی القضاء عند الناس فلا یرفع حتی لا یطلع احد علی تقصیره اهـ.(رد المحتار ج ۱، ص ۶۲۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ ربیع الثانی ۱۳۸۷ هجری

## که چیرته د وترو قضائي د خلکو په مخ کښې را ګرځوي نو په دعاء قنوت کښې دې لاسونه نه پورته کوي

**سوال** : قضائي لمونځونه دې په پټه توګه باید ادا شي لیکن که چیرته یو څوک د وترو په قضائي کښې تر دعاء قنوت مخکښې لاسونه پورته کړي نو خلکو ته څرګندیږي. په دې صورت کښې دې نوموړی څه وکړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په داسې صورت کښې دې تکبیر ووائي لیکن لاسونه دې نه پورته کوي.

قال ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله رافعاً یدیه) وهذا کما فی الامداد عن مجمع الروایات لو فی الوقت، اما فی القضاء عند الناس فلا یرفع حتی لا یطلع احد علی تقصیره اهـ.(رد المحتار ج ۱، ص ۶۲۳) فقط والله تعالیٰ اعلم

۳ ربیع الثانی ۱۳۸۷ هجری

## د مازدیګر قضائي دې تر ماښام مخکښې را وګرځوي

**سوال** : که چیرته له چا څخه د مازدیګر لمونځ قضا شي نو آیا د ماښام تر آذان وروسته به د مازدیګر قضائي را اړوي او که د ماښام لمونځ به ادا کوي په داسې حال کښې چه جماعت هم په

دریدو وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته دا سړی د ترتیب خاوند وي نو لومړی دې د مازدیگر قضائي را وگرځوي او بیا دې د ماښام لمونځ وکړي. د جماعت فوت کیدل د ترتیب د سقوط لپاره سبب نه دی گڼل شوی. او که چیرته د ترتیب خاوند نه وي نو لومړی دې د ماښام لمونځ له جماعت سره ادا کړي او بیا دې د مازدیگر قضائي را وگرځوي. د ترتیب خاوند هغه دی د چا په ذمې باندې چه شپږ قضائي لمونځونه نه وي.

**قال فی التنویر الترتیب بین الفروض الخمسة و الوتر اداءً و قضاءً لازم (وبعد اسطر) الا اذا ضاق الوقت او نسیت الفائتة او فاتت ست اعتقادیة بخروج وقت السادسة. (ردالمحتار ج۱، ص۶۷۹) فقط والله تعالیٰ اعلم**

**۲۲ جمادی الاولی ۱۳۸۶ هجری**

## چه قضائي لمونځونه تر شپږو کم وي نو ترتیب پکښې واجب دی

**سوال** : له زید څخه تقریباً د دوه میاشتو لمونځونه قضاء شوي دي. د ټولو د قضائي تر گرځولو وروسته که چیرته اوس ئې په ذمې باندې دوه لمونځونه پاتې وي نو آیا دی د ترتیب خاوند گڼل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په نوموړي صورت کښې چه تر څو پورې بیا شپږ لمونځونه ترې قضاء نه شي نو د ترتیب خاوند به وي.

**قال فی التنویر و الترتیب بین الفروض الخمسة و الوتر اداء و قضاء لازم (الیٰ قوله) الا اذا ضاق الوقت او نسیت الفائتة او فاتت ست اعتقادیة وفی الشامیة خرج الفرض العملی وهو الوتر و ان الترتیب بینه و بین غیره و ان کان فرضاً لکنه لا یحسب مع الفوائت اھ. (ردالمحتار ج۱، ص۶۷۹) ۲۲ ذی الحجة ۱۳۹۴ هجری**

## د لمونځونو د قضائي لپاره دې سنتونه او اهم نفلونه نه پریږدي

**سوال** : آیا دا جائزه ده چه یو څوک د سنتو، نفلو او تراویحو په ځای په دې وختونو کښې د قضائي لمونځونو د پوره کولو کوشش وکړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قضائي لمونځونو د ادا کولو لپاره دې سنت مؤکده او تراویح نه پریږدي بلکه فقهاء کرام رحمهم الله تعالی ماثوره نوافل لکه څاښت، اوابین او صلوة التسبیح او داسې نور هم تر قضائي مقدم بولي. لیکن دا په دې صورت کښې څرگندیږي چه د ظاهري اسبابو له مخې له مرگ نه مخکښې مخکښې له قضائي لمونځونو څخه د غاړې د خلاصولو هیله وي که چیرته قضائي لمونځونه ډیر زیات وي او عمر کم په نظر ورځي نو د اصولو له مخې قضائي ته تر

نفلو ترجيح وركول لازم دي.

قال في شرح التنوير ويجوز تأخير الفوائت وان وجبت على الفور لعذر السعي على العيال وفي الحوائج على الاصح وفي الشامية (قوله وفي الحوائج) اعم مما قبله اي ما يحتاجه لنفسه من جلب نفع ودفع ضرر واما النفل فقال في المضمرات الاشتغال بقضاء الفوائت اولى و اهم من النوافل الا سنن المفروضة و صلوة الضحى و صلوة التسبيح و الصلوة التي رويت فيها الاخبار اه ط اي كتحية المسجد والاربع قبل العصر و الست بعد المغرب. (ردالمحتار ج۱،ص۶۸۸)

تحية المسجد ته په قضائي باندې ترجيح وركول صحيح نه دي د دې لپاره چه جومات ته تر داخليدو وروسته چه كومه قضائي ادا كوي د هغه په ضمن كښې تحية المسجد هم ادا كيږي. **فقط والله تعالى اعلم** **غرۂ محرم ۱۳۹۵ هجری**

## چه د لمانځه په منځ كښې وخت ختم شي نو لمونځ وشو او كه قضاء شو؟

**سوال** : يوه سړي په آخر د وخت كښې لمونځ شروع كړ ليكن د لمانځه تر پوره كيدو مخكښې وخت ختم شو نو آيا دا لمونځ وشو او كه نه؟ كه چيرته شوى وي نو اداء به وي او كه به قضاء وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : كه چيرته د سهار په لمانځه كښې لمر وخيژي نو دا لمونځ فاسد شو. د لمر تر پورته كيدو وروسته دې قضائي را وګرځوي. له سهار څخه پرته په نورو وختونو كښې چه د لمانځه په سر وخت پای ته ورسيږي نو لمونځ نه فاسديږي.

داسې لمونځ اداء شو او كه قضاء؟ په دې باره كښې څلور قولونه دي:

۱ - كه چيرته تكبير تحريمه په وخت كښې د ننه وويل شي نو دا لمونځ اداء دى او كه نه نو بيا قضاء دى.

۲ - كه چيرته يو ركعت په وخت كښې د ننه راشي نو اداء دى او كه نه نو بيا قضاء دى.

۳ - كومه برخه چه په وخت كښې د ننه ادا شي هغه اداء دى او پاتې برخه ئې قضاء ده.

۴ - د كوم لمانځه چه كومه برخه هم تر وخت وروسته شي هغه پوره لمونځ قضاء ده.

قال العلاء رحمه الله في اول باب قضاء الفوائت و بالتحريمة فقط بالوقت يكون اداء عندنا و بركعة عند الشافعي رحمه الله وقال ابن عابدين رحمه الله وما ذكره من انه بالتحريمة يكون اداء عندنا هو مجزم به في التحرير و ذكر شارحه انه المشهور عند الحنفية ثم نقل عن المحيط ان ما في الوقت اداء و الباقي قضاء و ذكر ط عن الشارح في شرحه على الملتقى ثلاثة اقوال فراجعه. (ردالمحتار ج۱،ص۶۷۷)

وقال العلامة الطحطاوی رحمه الله معزیا لشرح العلاء للملتقی لو ادرك ركعة من فرض غیر الفجر فی الوقت ثم خرج الوقت هل تكون هذه الصلوة اداء او قضاء او ما فی الوقت اداء وما بعده قضاء اقوال اصحها اولها وتظهر الثمرة فی نیة المسافر الاقامة، قیدنا بغیر الفجر لان فیه تبطل بطلوع الشمس وقیدنا بركعة لان ما دونها یكون قضاء قاله البهنسی وتلمیذه الباقانی لكن نقلت فی شرح المنار من بحث الاداء عن ابن نجیم معزیا للتحریر انه با لتحریمة فی الوقت یكون اداء عندنا وبركعة عند الشافعی رضی الله تعالیٰ عنه. (طحطاوی علی العلائیة ج۱، ص۳۰۲)

لومړنی قول ډیر زیات مشهور دی او په باب قضاء الفوائت کښې تر ټولو زیات همدغه قول راغلی دی. لیکن علامه شامي د ماسخوتن د وخت د نه میندونکي لپاره یواځې دریم قول ذکر کړی دی کوم چه د ارجحیت دلیل دی. همدارنګه په ټولو کتابونو کښې په باب صلوة المسافر کښې د لمانځه په منځ کښې د وخت تر خروج وروسته د اقامت نیت لره غیر معتبر ګڼلی دی کوم چه په همدې دریم قول باندې مبني دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ محرم ۱۴۰۰ هجری

## د سفر د لمانځه په حضر کښې او د حضر په سفر کښې د قضائي حکم

**سوال**: که چیرته د سفر د لمانځه قضائي د سفر تر ختم کیدلو وروسته اړوي نو آیا د ماسپښین. مازدیګر او ماسخوتن د لمونځونو لپاره به د دوه رکعته قصر نیت کوي او که پوره څلور رکعته به ادا کوي. چونکه اوس خو د سفر حالت نه دی. او د دې برعکس صورت کښې که چیرته یو څوک په سفر کښې د کور د څلور رکعتیزو لمونځونو قضائي اړوي نو پوره څلور څلور رکعته به را اړوي او که دوه دوه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سفر د لمانځه په قضائي کښې به قصر کوي اګر که د سفر تر ختمیدلو وروسته هم وي. او د کور د لمانځه قضائي به پوره څلور رکعته اړوي اګر که په سفر کښې هم وي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ جمادی الاولی ۱۳۹۸ هجری

## د وترو په قضائي کښې هم ترتیب واجب دی

**سوال**: آیا په قضائي لمونځونو کښې د وترو د لمانځه د ماسخوتن تر فرضو مخکښې د ادا کولو اجازه شته او که په دې کښې هم د فرضو د تابع والي شرط شته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په قضائي کښې هم د فرضو او وترو تر منځ ترتیب لازم دی. البته چه د ترتیب خاوند نه وي د هغه لپاره د نورو لمونځونو غوندې د فرض او وترو تر منځ هم ترتیب ساقط دی. د چا په ذمې باندې چه تر پنځو لمونځونو زیاته قضائي وي هغه صاحب ترتیب نه دی په دې تعداد کښې وتر داخل نه دي. له وترو پرته شپږ یا تر شپږو زیات قضائي لمونځونه چه په چا

باندې وي نو ترتيب به ساقط وي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ذی قعده ۱۳۹۹ ھ هجری

## د ترتيب د خاوند تعريف

**سوال** : په قضائي لمونځونو کښې ترتيب په کوم سړي باندې ضروري دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د چا په ذمې باندې چه شپږ قضائي لمونځونه نه وي هغه د ترتيب خاوند دی. شپږ يا تر شپږو زيات فرض لمونځونه چه د چا په ذمې باندې وي نو په هغه باندې ترتيب لازم نه دی. وتر په دې کښې نه ګڼل کيږي. مثلاً له يوه سهار څخه تر بل سهاره پورې لمونځونه له چا قضا شوي وي نو د هغو په قضائي کښې ترتيب لازم نه دی. چه تر دې کم قضاء شوي وي نو ترتيب پرې لازم دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ذی قعده ۱۳۹۹ ھ هجری

## د جُمعې د فوت کيدو ويره د ترتيب ساقطوونکی نه دی

**سوال** : د چا د سهار لمونځ قضاء شوی دی او د جُمعې د لمانځه په وخت کښې ور ياد شو. اوس که چيرته قضائي را اړوي نو د جُمعې لمونځ ترې فوت کيږي. د داسې سړي لپاره څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته د ترتيب خاوند وي نو لومړی دې د سهار قضائي ادا کړي. که چيرته تر دې وروسته د جُمعې لمونځ ونيسي نو بهتره ده او که نه نو بيا دې د ماسپښين لمونځ وکړي.

قال في الشامية عن التاتارخانية انه يصليها عندهما وان خاف فوت الجمعة مع الامام ثم يصلي الظهر وقال محمد يصلي الجمعة ثم يقضي الفجر الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۶۸۱) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۹ شعبان ۱۴۰۰ ھ هجری

**د لمانځه د فديې مقدار ۲/۲۵ کيلو ګرام د غنمو قيمت دی**

**د مړي له خوا څخه د هغه زوی د لمانځه فديه ادا کولی شي**

دا دواړه مسئلې په غلطۍ سره په دريم جلد باب صفة الصلوة کښې راغلي دي، هلته ئې وګورئ. د اوزانو په اړه د مکمل تحقيق لپاره د همدې جلد د باب صدقة الفطر په آخر کښې په رساله دې "بسط الباع لتحقيق الصاع" کښې ئې وګورئ. (مرتب)

# باب سجود السهو

## که چیرته سورت یا دعاء قنوت سهواً له چا پاتې شي نو څه باید وکړي؟

**سوال** : له یوه سړي څخه سورت یا دعاء قنوت سهواً پاتې شو او په رکوع کښې ور یاد شو نو که چیرته رکوع پرېږدي او بیرته ودرېږي سورت یا دعاء قنوت ووائي آیا لمونځ ئې صحیح کېږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته سورت پاتې شي نو رکوع دې پرېږدي بیرته دې ودرېږي او سورت دې ووائي اګر که ئې رکوع پوره کړې وي او د قومې خوا ته تللی هم وي. بیا دې دوباره رکوع وکړي په آخر کښې دې سجدهٔ سهو وکړي. که چیرته دوباره رکوع و نه کړي نو لمونځ ئې نه کېږي. او که چیرته د ور په یادیدلو تر څنګ قیام ته بیرته و نه ګرځي نو د دې حکم مې صراحةً تر نظره نه دی تیر شوی البته د فقهاوو له تعبیر څخه د قیام خوا ته د رجوع وجوب معلومېږي. لهذا په قصد سره چه واجب پرېښودل شي نو د لمانځه بیرته را ګرځول واجبېږي. او که چیرته دعاء قنوت پاتې شي نو له رکوع څخه دې قیام خوا ته نه ګرځي یواځې په آخر کښې دې سجدهٔ سهو وکړي. لیکن د بیرته را ګرځیدو په صورت کښې هم لمونځ نه فاسدېږي. په دې صورت کښې به دوباره رکوع نه کوي سجدهٔ سهو دې وکړي. که چیرته ئې رکوع دوباره وکړه نو بیا هم د سجدهٔ سهو په کولو سره لمونځ کېږي. که چیرته یو سورت ووائي او د دویم سورت لپاره له رکوع څخه د قیام خوا ته رجوع وکړي نو د دې حکم بعینه د قنوت غوندې دی. (والتفصیل فی شرح التنویر وحاشیته لابن عابدین باب سجود السهو).

فقط والله تعالیٰ اعلم — ۱۷ ذی قعده ۱۳۷۲ هجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال** : رکوع ته تر تلو وروسته دا ور په زړه شي چه سورت ئې نه دی ویلی نو آیا د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ کېږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که په رکوع یا قومه کښې د سورت پاتې کیدل ور په زړه شي نو سورت دې ووائي او بیا دې رکوع وکړي او سجدهٔ سهو دې وکړي. که چیرته پرته د سورت له ویلو څخه سجدهٔ سهو وکړي نو بیا هم لمونځ واجب الاعاده دی.

که چیرته امام ته په سرّي لمانځه کښې دسې صورت پیښ شي او د جماعت د ډیروالي له وجې تر رکوع وروسته د سورت په ویلو او دوباره رکوع په کولو سره د خلکو د لمونځونو د فاسدیدلو ویره وي نو د دې حکم مې په صراحت سره تر نظره نه دی تیر شوی. د خلکو د ډیر والي له وجې د سجدهٔ سهو د پرېښودو په جواز باندې د قیاس مقتضیٰ دا ده چه په دې صورت کښې د سورت د

پریښودلو ګنجائش شته. په دې صورت کښې هم سجدهٔ سهو واجبه ده، د سجدهٔ سهو وجوب په ضمّ سورت کښې د تاخیر له وجې دی نه د سورت د پریښودو له وجې ځکه چه سورت خو ئې په قصد سره پریښی دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی الحجة ۱۳۹۸ هجری

## مسبوق چه له امام سره عمداً د سهو سلام واړوي نو لمونځ ئې فاسدیږي

**سوال**: امام سهو شو نو آیا مسبوق مقتدي به له امام سره د سجدهٔ سهو د کولو په وخت کښې سلام اړوي او که به بې سلام څخه سجده کوي. په دې کښې اکثره اختلاف وي د دې لپاره مدلل ځواب ئې ولیکئ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مسبوق به له امام سره د سجدهٔ سهو په وخت کښې سلام نه اړوي بې له سلام څخه به سجده کوي، که چیرته مسبوق سلام واړوي په داسې حال کښې چه خپل مسبوق والی ور په یاد وو یعنې دا ئې په زړه وو چه په ما باندې څه لمونځ پاتې دی نو لمونځ ئې فاسدیږي. البته که چیرته سهواً سلام واړوي یعنې ده ته خپل مسبوق والی ور په یاد نه وو نو لمونځ ئې نه فاسدیږي. که چیرته مسبوق والی ور په زړه وو لیکن د ناپوهۍ له وجې ئې سلام واړاوه نو بیا ئې هم لمونځ له منځه ځي ځکه چې جهالت عذر نه دی.

قال فی الشامیة عن البحر (والمسبوق یسجد مع امامه) قید بالسجود لانه لا یتابعه فی السلام بل یسجد معه ویتشهد فاذا سلم الامام قام الی القضاء فان سلم فان کان عامداً فسدت والا لا، وبعد سطرین عن شرح المنیة ولو سلم علی ظن ان علیه ان یسلّم فهو سلام عمد یمنع البناء. (ردالمحتار ج۱، ص۶۹۶) وفیها (قوله ولو سلم ساهیاً) قید به لانه لو سلم مع الامام علی ظن ان علیه السلام معه فهو سلام عمد فتفسد کما فی البحر عن الظهیریة. (ردالمحتار ج۱، ص۵۶۰) وفی العلائیة او سلم ذاکراً ان علیه رکنا حیث تبطل لانه سلام عمد. (ردالمحتار ج۱، ص۶۰۴)

همدارنګه د علائیه جزئیه سلام من علیه سجود سهو یخرجه من الصلوٰة خروجا موقوفا ان سجد عاد الیها والا لا. (ردالمحتار ج۱، ص۶۰۲) څخه ښکاره شوه چه د سجدهٔ سهو سلام تحلیل دی او د تحلیل د سلام په اړه د علائیه قول دا دی چه دا د لمانځه له مفسداتو څخه دی. فسلام التحیة مفسد مطلقا وسلام التحلیل ان عمداً. (ردالمحتار ج۱، ص۵۲۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم منتصف ربیع الآخر ۱۳۷۹ هجری

## د آخرې قعدې په پریښودو سره چه لمونځ نفل وګرځي نو سجدهٔ سهو نشته

**سوال**: د ماسپښین په لمانځه کښې که چیرته له چا څخه آخره قعده هیره شي او پنځم رکعت په

سجده پورې مقيد کړې نو سجدهٔ سهو پرې شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې سجدهٔ سهو نشته. **قال فی شرح التنویر ولا یسجد للسهو علی الاصح لان النقصان بالفساد لا ینجبر وفی الشامیة.(قوله لان النقصان) ای الحاصل بترك القعدة لا ینجبر بسجود السهو فان قلت انه وان فسد فرضاً فقد صح نفلاً ومن ترك القعدة فی النفل ساهیاً وجب علیه سجود السهو فلماذا لم یجب علیه السجود نظراً لهذا الوجه قلت انه فی حال ترك القعدة لم یکن نفلا انما تحقق النفلیة بتقیید الرکعة بسجدة والضم فالنفلیة عارضة ط.(رد المحتار ج۱،ص۵۰۰) فقط والله تعالیٰ اعلم**

۲۲رجب ۱۳۷۵ هجری

## که چيرته په څلور رکعته نفلو کښې په اولې قعدې باندې سلام واړوي نو سجدهٔ سهو نشته

**سوال**: يوه سړي د څلور رکعته نفلو نيت وتاړه او په اولې قعدې باندې ئې سلام واړاوه، وروسته ور ياد شو نو د دريم رکعت خوا ته د دريدو په صورت کښې ئې دويم شفع مکمله کړه نو آيا سجدهٔ سهو پرې لازميږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: په دې صورت کښې سجدهٔ سهو نشته ځکه چه په نوافلو کښې د څلورو رکعتونو په نيت سره يواځې يوه شفع (دوه رکعته) واجبيږي چه کله دويمه شفع واجبه نه ده نو د سلام په اړولو سره په فرضو کښې تاخير را نه غی کوم چه د سجدهٔ سهو سبب وو. پاتې شوه دا پوښتنه چه دويمه شفع صحيح شوه او که نه؟ پس د دريم رکعت خوا ته د دريدو په وخت کښې ئې چه کوم تکبير ويلی دی دا د تکبير[1] تحريمه قائم مقام ګرځي. په فقه کښې ددې مثالونه موجود دي چه يواځې تکبير اګر که بې له تحريمې څخه په بل نيت سره وويل شي نو د تحريمه قائم مقام ګرځول شوی دی او نيت ته اعتبار نه دی ورکړل شوی. له دې امله دويمه شفع صحيح کيږي. البته که چيرته دريم رکعت ته د پورته کيدو په وخت کښې ئې تکبير نه وي ويلی نو د دويمه شفعه له ابتداء څخه صحيح شوې نه ده. **فقط والله تعالیٰ اعلم** ۲۲رجب ۱۳۷۵ هجری

---

۱- وفیه ان القیام من شرائط التحریمة ولعل الصحیح جواز البناء وان لم یکبر للقیام لانه انما سلم سهواً وفی شرح التنویر ان السلام ساهیاً لا یبطل لانه دعاء من وجه.(رد المحتار ج۱،ص۵۰۲) منه

## د دوه رکعته نفلو د نیت په کولو سره تر قعدې وروسته سهواً د دوه نورو رکعتونو ادا کولو حکم

**سوال**: یوه چا د دوه رکعته نفلو په نیت سره لمونځ شروع کړ. تر قعدې وروسته سهواً دریم رکعت ته ولاړ شو او دویمه شفع (دوه رکعته نور) ئې هم پوره کړل نو آیا سجدهٔ سهو پرې لازمه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: چه کله بناء النفل علی النفل جائز دی نو د سجدهٔ سهو هیڅ سبب وجود نه لري. بلکه چه کله د څلور رکعته نفلو نیت هم وتړل شي نو بیا هم د فقهاوو د تصریحله مخې یوه شفعه (دوه رکعته) واجبیږي، د څلورو نیت هیڅ اعتبار نه لري. بې له سلام اړولو او بې له تکبیر تحریمه څخه یواځې دریم رکعت ته په ولاړیدو سره دویمه شفع لازمیږي. سره له دې په دې صورت کښې سجدهٔ سهو نشته. نو په دې باندې دقیاس په کولو سره په نوموړي صورت کښې به هم سجدهٔ سهو نه وي ځکه چه په دې کښې هم د دویمې شفعې وجوب دریم رکعت ته په دریدو سره منځ ته راغی.

قال فی شرح التنویر کل شفع منه صلوٰة وفی الشامیة کأنه والله اعلم لتمکنه من الخروج علی رأس الرکعتین فاذا قام الی شفع اٰخر کان بانیا صلوٰة علی تحریمة صلوٰة ومن ثم صرحوا بانّهٗ لو نوی اربعاً لا یجب علیه بتحریمتها سوی الرکعتین فی المشهور عن اصحابنا وان القیام الی الثالثة بمنزلة تحریمة مبتدأة حتی ان فساد الشفع الثانی لا یوجب فساد الشفع الاوّل. (ردالمحتار ج۱، ص۳۲۸، باب صفة الصلوٰة) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۲ رجب ۱۳۷۵ هجری

## له امام سره تر سجدهٔ سهو وروسته د شریکیدونکي سړي حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک له امام سره په داسې حالت کښې شریک شي چه امام د سجدهٔ یوه یا دواړه سجدې کړې وي نو د داسې سړي حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: که چیرته په دویمه سجده کښې شریک شي نو په ده باندې لومړۍ سجده نشته. که چیرته تردواړو سجدو وروسته ورسره شریک شي نو دواړه سجدې د ده له غاړې څخه ساقطې دي.

قال فی الهندیة فی فصل سهو الامام من الباب الثانی عشر ولو دخل معهٗ بعد ما سجد سجدة السهو یتابعهٗ فی الثانیة ولا یقضی الاولیٰ وان دخل معهٗ بعد ما سجد سجدة السهو یتابعهٗ فی الثانیة ولا یقضی الاولیٰ وان دخل معهٗ بعد ما سجدهما لا یقضیهما کذا فی التبیین. (عالمگیریة ج۱، ص۱۲۸) و کذا فی الشامیة ایضاً فی باب سجود السهو

ج۱،ص۶۹۶) فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۲۳ صفر ۱۳۷۶ھ ہجری

## د مسبوق لپاره د امام له سجدهٔ سهو څخه مخکښې د دریدلو حکم

**سوال**: مسبوق ته دا معلومه نه وه چه په امام باندې سجدهٔ سهو لازمه شوې ده نوله دې امله د امام له سجدهٔ سهو څخه مخکښې ودرید. وروسته په قیام کښې ور معلومه شوه نو څه به کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: تر څو پورې چه ئې خپل رکعت په سجدې پورې مقید کړی نه وي بیرته دې را وګرځي او د امام متابعت دې وکړي او که چیرته ئې سجده کړې وي نو بیا دې بیرته نه راګرځي بلکه په آخر کښې دې سجدهٔ سهو وکړي. که چیرته له سجدې څخه وروسته را وګرځي نو لمونځ ئې فاسدیږي.

لما فی فصل سهو الامام من الباب الثانی عشر من الهندیة ولو لم یتابع الامام فی سجود السهو و قام الی القضاء لا یسقط عنه و یسجد فی اٰخر صلاته ولو سلم الامام فقام المسبوق ثم تذکر الامام ان علیه سهواً فسجد له قبل ان یقید المسبوق الرکعة بسجدة فعلیه ان یرفض ذٰلك و یعود الی متابعته ثم اذا سلم الامام قام الی القضاء ولا یعتد بما فعل من القیام و القراءة و الرکوع ولو لم یعد الی متابعة الامام و مضی علی قضائه فانه تجوز صلاته و یسجد للسهو بعد فراغه استحساناً ولو سجد الامام بعد ما قید هٰذا المسبوق الرکعة بسجدة فانه لا یعود فان عاد الی متابعته فسدت صلاتهٗ کذا فی السراج الوهاج. (عالمگیریة ج۱،ص۶۶) وایضاً قال فی الفصل السابع من الباب الخامس لو قام الی قضاء ما سبق به و علی الامام سجدتا سهو قبل ان یدخل معهٗ کان علیه ان یسجد فی اٰخر صلاته. (عالمگیریة ج۱،ص۴۸) والعبارتان المذکورتان مزبورتان فی الشامیة ایضاً بتغییر یسیر احداهما فی بیان المسبوق ج۱،ص۵۵۸/۵۵۹ والاخریٰ فی باب سجود السهو ج۱،ص۶۹۶.

فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۲۲ صفر ۱۳۷۶ھ ہجری

## د مسبوق له امام سره د سلام اړولو حکم

**سوال**: مسبوق په هیره سره له امام سره سلام واړاوه او ترسلام اړولو وروسته دور په زړه کیدو په صورت کښې ئې خپل پاتې رکعتونه پوره کړل نو آیا سجدهٔ سهو پرې لازمه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: که چیرته له امام سره داسې سلام واړوي چه د امام د سلام د لفظ له میم سره یو ځای مسبوق هم د سلام د میم لفظ ادا کړ نو سجدهٔ سهو پرې نشته که چیرته

مسبوق د امام د سلام د لفظ له میم څخه وروسته د سلام د لفظ میم اداکړي نو سجدهٔ سهو واجبیږي. ځکه چه د سلام په لفظ سره اقتداء ختمیږي. په عمومي توګه د مقتدي سلام د امام له سلام څخه وروسته وي له دې امله سجدهٔ سهو لازمیږي.

قال فی الشامیة تحت (قوله والمسبوق یسجد مع امامه) فاذا سلم الامام قام الی القضاء فان سلم فان کان عامداً فسدت والا لا ولا سجود علیه ان سلم سهواً قبل الامام اومعه وان سلم بعده لزمه لکونه منفرداً حینئذ بحر واراد بالمعیة المقارنة وهو نادر الووقوع کما فی شرح المنیة. (رد المحتار ج۱، ص۶۹۶) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۵ ذی الحجة ۱۳۸۶ هجری

## که چیرته امام پرته له کومې وجې سجدهٔ سهو وکړي نو د مسبوق د لمانځه حکم به څه وي

**سوال**: که چیرته امام په دې ګومان سره سجدهٔ سهو وکړي چه په ما باندې سجدهٔ سهو واجبه شوې ده او وروسته ور معلومه شي چه سجدهٔ سهو واجبه نه وه نو آیا د مسبوق لمونځ فاسدیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اصل قاعدې مطابق خو د مسبوق لمونځ فاسدیږي لیکن د جوماتونو په امامانو کښې د جهل او ناپوهی. د غلبې له وجې د نه فساد فتوی ورکړ شوې ده. د دې لپاره که چیرته مسبوق ته د دې معلومات وشي نو لمونځ دې را وګرځوي

قال فی الخانیة اذا ظن الامام ان علیه سهواً فسجد للسهو وتابعه المسبوق فی ذلك ثم علم ان الامام لم یکن علیه سهو فیه روایتان واختلف المشائخ لاختلاف الروایتین واشهرهما ان صلوة المسبوق تفسد وقال الشیخ الامام ابو حفص الکبیر رحمه الله لا تفسد وان لم یعلم انه لم یکن سهو علی الامام لم تفسد صلوة المسبوق فی قولهم. (قاضیخان ج۱، ص۴۸)، وفی العلائیة ولو ظن الامام السهو فسجد له فتابعه فبان ان لا سهو فالاشبه الفساد لاقتدائه فی موضع الانفراد.

وفی الشامیة (قوله فالاشبه الفساد) وفی الفیض وقیل لا تفسد وبه یفتی وفی البحر عن الظهیریة قال الفقیه ابو اللیث فی زماننا لا تفسد لان الجهل فی القراء غالب اه. والله اعلم (رد المحتار ج۱، ص۵۰۰) فقط والله تعالیٰ اعلم

۳ شوال ۱۳۸۶ هجری

## په آخري قعده کښې د تشهد یا درود په تکرار سره سجدهٔ سهو نشته

**سوال** که چیرته یو څا په آخري قعده کښې تشهد یا درود شریف تول یا نیمائي په قصد سره یا

په سهو سره دوه ځله ووائي نو آیا سجدهٔ سهو پرې واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: سجدهٔ سهو پرې نه واجبيږي ځکه چه دا د ثناء او دُعاء موقع ده، که په دې کښې ه څومره اوږدوالی وشي نو پروا نه لري.

قال ابن نجيم رحمه الله تعالى ولو كرر التشهد فى القعدة الاخيرة فلا سهو عليه. (البحر الرائق ج۲، ص۹۷)

فقط والله تعالى اعلم — ۲ محرم ۱۳۸٦ هجری

## په اوله قعده کښې د تشهد په تکرار سره سجدهٔ سهو واجبيږي

**سوال**: که چيرته يو څوک په اوله قعده کښې ټول التحيات يا څه برخه ئې دوه ځله ووائي نو څه حکم لري، آيا سجدهٔ سهو پرې واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په اوله قعده کښې د تشهد په تکرار سره د دريم رکعت په فرض قيام کښې تاخير لازميږي له دې امله د قصد په صورت کښې لمونځ واجب الاعاده دی او د سهو په صورت کښې سجدهٔ سهو لازميږي خو که چيرته دا ځنډ د يوه رکن په اندازه وي يعنې د درې ځله سبحان[1] ربي الاعلى ويلو - ۴۲ مقروءه حروفو په اندازه وي. له دې اندازې څخه په کم تکرار باندې سجدهٔ سهو نه لازميږي.

قال ابن نجيم رحمه الله تعالى لو كرر التشهد فى القعدة الاولى فعليه السهو لتأخير القيام. (البحر الرائق ج۲، ص۹۷)

فقط والله تعالى اعلم — ۲ محرم ۱۳۸٦ هجری

## په اوله قعده کښې څومره زياتوالی د سجدهٔ سهو موجب ګرځي؟

**سوال**: تاسو ليکلي دي چه په کوم رکن کښې چه د درې ځله تسبيح په اندازه سره چه د سجدهٔ سهو کوم حکم دی له هغه څخه درې ځله سبحان الله مراد نه دی بلکه درې ځله سبحان ربي العظيم يا سبحان ربي الاعلى مراد دی په دې باندې دا اشکال دی چه په عامو کتابونو کښې ليکلي دي چه په لومړي قعده کښې که چيرته تر اللّٰهم صل على محمد پورې وويل شي نو سجدهٔ سهو واجبيږي حالانکه دا اندازه له درې ځله سبحان ربی العظيم څخه ډيره کمه ده. هيله ده چه تسلي بخښونکی ځواب راکړئ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا اشکال خو په سبحان الله باندې هم وي. د درې ځله سبحان الله

---

۱ - له تسبيح څخه مراد سبحان ربی الاعلی مراد دی تفصيل ئې په باب مفسدات الصلوة کښې د ستر د ښکاريدو په بيان کښې دی ۱۲ منه

تول مقروءه حروف اوه ویشت دي او د اللهم صل علی محمد اتلس دي حقیقت دا دی چه د رکن په اندازه سره ځنډ یا تاخیر سجدهٔ سهو واجبوي او د رکن په اندازه کښې دوه قولونه دي یو قدر ما تجوز به الصلوٰة کما فسر العلامة الطحطاوی رحمه الله تعالیٰ فی مراقی الفلاح قدر الرکن بآیة او دویم قول په اندازه د دریو تسبیحاتو. بیا قدر ما تجوز به الصلوٰة کښې دوه قولونه دي یو په شمول د محذوفه حروفو اتلس حروفه او بل دیرش حروفه. په دغو قولونو کښې راجح قول دا دی چه له دې څخه تر ټولو لنډ او اقصر رکن په طریقهٔ مسنونه سره مراد دی او هغه هغه د درې خله سبحان ربی العظیم یا سبحان ربّی الاعلی اندازه ده کوم چه مقروءه حروف ئې دوه څلویښت دي

قال ابن عابدین رحمه الله فی حاشیته علی البحر (و قدر الکثیر ما یؤدی فیه رکن) ای بسنته کما قیده فی المنیة قال شارحها ابن امیر حاج ای بما له من السنة ای بما هو مشروع فیه من الکمال السنّی کالتسبیحات فی الرکوع و السجود مثلاً و هو تقیید غریب ووجهه قریب ولم اقف علی التقیید بکونه قصیراً او طویلاً آه ای تقیید الرکن ای هل المراد منه قدر رکن طویل بسنته کالقعود الاخیر او القیام المشتمل علی قراءة المسنون او قدر رکن قصر کالرکوع او السجود بسنته ای قدر ثلاث تسبیحات و بالثانی جزم البرهان الحلبی فی شرح المنیة حیث قال و ذلك مقدار ثلاث تسبیحات اه فافاد ان المراد اقصر رکن و کأنه لانه الاحوط والله اعلم.

(منحة الخالق علی البحر الرائق ج۱،ص۲۸۶)

په اوله قعده کښې په تشهد باندې زیاتوالی د سجدې په موجب کیدو باندې مختلف اقوال راغلي دي یو په اندازه د رکن. دویم په اندازه د اللهم صل علی محمد دریم تر علی آل محمد پورې، څلورم د صاحبینو رحمهما الله په نزد تر انّك حمیدٌ مجید پورې په دغو کښې اولنی قول اصل دی او دویم قول رکن په اندازه د اتلسو حروفو په مطابق دی او د دریم قول رکن په اندازه د دیرشو حروفو په مطابق دی. دا هم ممکنه ده چه د وظیفې د ادا کولو حکم ئې د رکن ادا کول ګڼلی وي. بیا په دویم قول کښې ئې نفس درود او اصل مقصود ئې په لحاظ کښې ساتلی دی او په دریم قول کښې ئې تابع لره هم او په څلورم قول کښې ئې تشبیه او د برکت دُعاء لره هم. یعنې د کاملې وظیفې لحاظ په کښې شوی دی

علامه شامي رحمه الله دریم قول ته ترجیح ورکړې دی لیکن په اندازه د رکن کښې راجح قول د دوه څلویښتو حروفو پر بناء په صلیت علی کښې د (علی) تر لام پورې په تاخیر سره سجدهٔ سهو باید واجبه شي دا قول اوسع هم دی او د صاحبینو رحمهما الله په نزد خو له دې څخه هم زیات وسعت دی. البته دریم قول اوسط او محوط دی. د سیّدنا د لفظ د زیاتوالي په صورت کښې په آلِ سیّدنا

محمد کښې د محمد د تر دویم مشدد میم پورې دوه څلویښت حروفه پوره کیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ محرم ۱۳۸٦ هجری

## د سورهٔ فاتحه تکرار د سجدهٔ سهو موجب دی

**سوال** : امام د سورهٔ فاتحه څینې برخه یا ټوله دوه ځلې وویله نو آیا سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : علامه ابن عابدین د ظهیریه په حوالې سره د سورهٔ فاتحه د اکثرې برخې تکرار د سجدهٔ سهو موجب ګڼلی دی. **(قوله وكذا ترك تكريرها الخ) فلو قرأها في ركعة من الاولیین مرتین وجب سجود السهو لتأخیر الواجب وهو السورة كما في الذخيرة وغيرها وكذا لو قرأ اكثرها ثم اعادها كما في الظهيرية. (رد المحتار ج۱، ص۴۲۹)** لیکن علامه طحطاوي رحمه الله په شرح د مراقي کښې په مطلقه توګه د سورهٔ فاتحه د څینې برخې تکرار د سجدهٔ سهو موجب لیکلی دی. **لو كرر الفاتحة او بعضها في احدى الاولیین قبل السورة سجد للسهو. (طحطاوی ص۲۲۷)**

په حقیقت کښې د فاتحې په تکرار سره د سجدهٔ سهو د وجوب علت د سورت تاخیر دی لکه څرنګه چه د شامي په مذکوره عبارت کښې ئې تصریح شوې ده. همدا وجه ده چه د فرائضو په آخري دوه رکعتونو کښې د سورهٔ فاتحه تکرار د سجدهٔ سهو موجب نه دی. پس که چیرته په لومړنیو دوه رکعتونو کښې د سورهٔ فاتحه دومره تکرار وشي چه مکرره (دوه ځله ویل شوي حروف) د درې ځله سبحان ربی الاعلی ویلو په برابر شي نو سجدهٔ سهو واجبیږي. د دې حساب لګول شوی دی نو ثابته شوه چه د سبحان ربی الاعلی مقروءه حروف څوارلس دي او دوه څلویښت مقروءه حروف د الدین د "ي" پورې راځي. له دې امله تر دې اندازې پورې تکرار د سجدهٔ سهو موجب دی.

فقط والله اعلم ۲ محرم ۱۳۸٦ هجری

## په جهري قرائت کښې اخفاء او په بالعکس سره د سجدهٔ سهو حکم

**سوال** : د امام په جهري لمانځه کښې سراً یا په سرّي لمانځه کښې جهراً په څومره قرائت کولو سره سجدهٔ سهو لازمیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په شمول د محذوفه حروفو دیرش حروفه یا تر دې د زیاتو حروفو په ویلو سره سجدهٔ سهو واجبیږي. تر (الرّحمٰن) پورې نهه ویشت حروفه دي له دې امله له دې څخه مخکښې چه یو بل حرف ووائي نو سجدهٔ سهو واجبیږي. **قال في التنوير والجهر فيما يخافت فيه وعكسه**

بقدر ما تجوز به الصلوٰة فی الفصلین.(ردالمحتار ج۱،ص۶۹۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ محرم ۱۳۸٦ هجری

## له سورۀ فاتحه څخه چي يو حرف هم پاتې شي نو سجدۀ سهو واجبه ده

**سوال**: که چیرته په لمانځه کښې له چا څخه سهواً د سورۀ فاتحه یو آیت یا دوه آیتونه پاتې شي نو آیا سجدۀ سهو پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له سورۀ فاتحه څخه که چیرته یو حرف هم په سهو سره پاتې شي نو سجدۀ سهو واجبه ده.

قال فی شرح التنویر فیسجد للسهو بترك اکثرها لا اقلها لکن فی المجتبیٰ یسجد بترك اٰیة منها وهو اولیٰ قلت وعلیه فکل اٰیة واجبة وقال ابن عابدین رحمه الله (قوله وعلیه) ای وبناء علی ما فی المجتبیٰ فك اٰیة واجبة وفیه نظر لان الظاهر ان ما فی المجتبیٰ مبنی قول الامام بانها بتمامها واجبة وذکر الاٰیة تمثیلاً لا تقییداً اذ بترك شیء منها اٰیة او اقل ولو حرفا لا یکون اٰتیا بکلها الذی هو الواجب کما ان الواجب ضم ثلاث اٰیات فلو قرأ دونها کان تارکاً للواجب افادهٔ الرحمتی.(ردالمحتار ج۱،ص۴۲٦) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ ذی الحجة ۱۳۹۰ هجری

## تر آخرې قعدې وروسته د دریدلو حکم

**سوال**: یو سړی له امام سره د لمانځه له پیل څخه شریک وو په آخره قعده کښې چه کله امام سلام واړاوه نو نوموړي په غلطۍ سره دا فکر وکړ چه یو رکعت ئې پاتې دی. چه کله ودریده نو ور یاد شو چه لمونځ خو مې پوره دی. اوس آیا په نوموړي سړي باندې سجدۀ سهو واجبه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د پنځم رکعت له سجدې څخه مخکښې ور یاد شي نو بیرته دې را وګرځي. او که چیرته تر سجدې وروسته ور یاد شي نو یو بل رکعت دې هم ورسره یو ځای کړي تر څو چه دوه رکعته ئې نفل شي. په دواړو صورتونو کښې سجدۀ سهو پرې واجبه ده.

قال فی التنویر وان قعد فی الرابعة مثلاً قدر التشهد ثم قام عاد وسلم وان سجد للخامسة سلموا وضم الیها سادسة لتصیر الرکعتان له نفلا وسجد للسهو، وقال الشارح فی الصورتین لنقصان فرضه بتاخیر السلام فی الاولیٰ وترکه فی الثانیة.(ردالمحتار ج۱،ص۷۰۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ صفر ۱۳۸۷ هجری

## چه تر آخرې قعدې وروسته پورته شي نو د بیرته راګرځیدو په صورت کښې دې فوراً سجدۀ سهو وکړي

**سوال**: د آخرې قعدې له التحیات ویلو وروسته که چیرته یو څوک په هیره سره ودریږي او بیا

په ور يادېدو سره بيرته کښيني نو آيا په کښيناستو سره دې التحيات بيا ووائي او سجدهٔ سهو دې وکړي او که پرته د التحيات له ولو دې فوراً سجدهٔ سهو وکړي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تشهد خو ئې مخکښې ويلی دی د دې لپاره دې دوباره التحيات نه وائي بلکه په کښيناستو سره دې فوراً سجدهٔ سهو وکړي. **فقط والله تعالیٰ اعلم**

**۱۰ ربیع الاوّل ۱۳۹۸ هجری**

## د آخرې قعدې د پرېښودلو حکم

**سوال**: د سهار په لمانځه کښې يوه چا آخري قعده و نه کړه او د دريم رکعت تر ادا کولو وروسته ور په زړه شو. څلور رکعته ئې پوره کړل او سجدهٔ سهو ئې هم وکړه نو آيا لمونځ ئې وشو او که نه؟ يعنې دوه رکعته نفل او دوه فرض او که څنګه؟

که چيرته همداسې واقعه د ماسپښين په لمانځه کښې چا ته ور پيښ شي او د پنځم رکعت تر سجدې وروسته ور په زړه شي نو چه شپږم رکعت پوره کړي او سجدهٔ سهو وکړي نو آيا لمونځ ئې کيږي او که نه؟ يعنې څلور فرض او دوه رکعته نفل.

او که چيرته همداسې واقعه په نفلو کښې چا ته ور پيښ شي او د دريم رکعت تر سجدې وروسته ور ياد شي نو چه څلور رکعته پوره کړي او سجدهٔ سهو هم وکړي نو څلور رکعته نفل ئې کيږي او که نه؟ او که په همدغو ټولو صورتونو کښې د لمانځه بيرته را ګرځول به پرې واجب وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته په نفلو يا سنتو کښې د دوه رکعته لمانځه نيت وتړي او آخره قعده ئې هيره شي او دوه رکعته نور هم ورسره يو ځای کړي نو په داسې صورت کښې سجدهٔ سهو واجبه ده او لمونځ ئې څلور رکعته شول. ليکن په تراويحو کښې به دوه رکعته ګڼل کيږي يعنې له څلورو رکعتونو څخه به دوه تراويح وي او دوه رکعته نفل.

د ماسپښين په سنتو کښې که چيرته آخره قعده ترې پاتې شي او شپږ رکعته پوره کړي او سجدهٔ سهو وکړي نو لمونځ ئې وشو. څلور رکعته سنت مؤکده او دوه رکعته نفل.

که چيرته په څلور رکعته فرضو کښې دا واقعه ور پيښ شي نو ټول لمونځ ئې نفل ګرځي او سجدهٔ سهو پرې واجبه نه ده.

قال فی العلائیة و لا یسجد للسهو علی الاصح لان النقصان با لفساد لا ینجبر. و فی الشامیة (قوله لان النقصان) ای الحاصل بترك القعدة لا ینجبر بسجود السهو فان قلت انه وان فسد فرضا فقد صح نفلاً ومن ترك القعدة فی النفل ساهیاً وجب علیه سجود السهو فلما ذا لم یجب علیه نظراً لهذا الوجه قلت انه فی حال ترك

القعدة لم یکن نفلاً انما تحقق النفلیة بتقیید الرکعة بسجدة و الضم فالنفلیة عارضة ط. (رد المحتار ج۱، ص۵۰۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ ذی الحجة ۱۳۸۸ هجری

## د سجدهٔ سهو له تشهد څخه مخکښې د کولو حکم

**سوال**: په زید باندې سجدهٔ سهو واجبه وه لیکن زید مخکښې د التحیات له ویلو سجدهٔ سهو وکړه نو آیا لمونځ ئې صحیح شو او که بیرته به ئې را ګرځوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته قصداً داسې وکړي نو د لمانځه بیرته را ګرځول پرې واجب دي او که سهواً ئې داسې وکړل نو په دې کښې تفصیل دا دی چه که چیرته د التحیاتو په اندازه ناست نه وي نو سجدهٔ سهو له خپل محل څخه پرته په بل محل کښې د ادا کیدو له وجې اعتبار نه لري. لهذا له التحیاتو وروسته دې بیا سجدهٔ سهو وکړي. که چیرته سجدهٔ سهو و نه کړي نو لمونځ به ئې واجب الاعاده وي. او که چیرته د التحیاتو په اندازه تر کښیناستو وروسته سجدهٔ سهو وکړي لیکن التحیات هم و نه وائي او سلام هم وا نهړوي او همداسې سجده وکړي نو لمونځ ئې صحیح کیږي او هم هغه سجده ئې کافي ده. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربیع الاول ۱۳۸۷ هجری

## په لومړي رکعت کښې د سجدهٔ سهو د واجبوونکي ناستې اندازه

**سوال**: که چیرته یو سړی په لومړي یا دریم رکعت کښې په هیره سره کښیني نو په څومره اندازه کښیناستو سره سجدهٔ سهو پرې واجبیږي. یو عالِم فرمائي چه په لږ غوندې څنډ په کښیناستو سره هم سجدهٔ سهو واجبیږي او په دې خبره باندې د منیة المصلي حواله وړاندې کوي. آیا دا صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په منیه کښې په مطلق کښیناستو سره د سجدهٔ سهو واجبیدل راغلي دي لیکن راجحه دا ده چه د درې ځله سبحان ربی الاعلی د ویلو په اندازه سره څوک کښیني نو سجدهٔ سهو پرې واجبیږي او له دې څخه په کم وخت باندې نه واجبیږي. ځکه چه د سجدهٔ سهو د وجوب وجه په قیام کښې څنډ او تاخیر دی او تاخیر هغه معتبر دی چه د تر ټولو لنډ رکن په اندازه سره له سنتونو وي. او دا لنډ رکن رکوع یا سجده دی او د هغوی مسنون تسبیح سبحان ربی العظیم او سبحان ربی الاعلی دی. په دغو دواړو کښې د هر یوه مقروءه حروف څوارلس دي او د دریو تسبیحاتو دوه څلویښت جوړیږي. او په التحیاتو کښې د "ایها" په "ه" کښې دوه څلویښت حروفه پوره کیږي. لهذا له دې څخه په کم باندې سجدهٔ سهو نه واجبیږي.

فی واجبات الصلوة من الشامیة و کذا القعدة فی اٰخر الرکعة الاولیٰ او الثالثة فیجب ترکها و یلزم من فعلها

ایضاً تأخیر القیام الی الثانیة او الرابعة عن محله وهذا اذا کانت القعدة طویلة اما الجلسة الخفیفة التی استحبها الشافعی رحمه الله فترکه غیر واجب عندنا بل هو الافضل کما سیأتی. (رد المحتار ج۱،ص۴۳۸) وفی العلائیة ویکبر للنهوض علی صدور قدمیه بلا اعتماد و قعود استراحة ولو فعل لا بأس، وفی الشامیة قال شمس الائمة الحلوانی الخلاف فی الافضل حتی لو فعل کما هو مذهبنا لا بأس به عند الشافعی رحمه الله ولو فعل کما هو مذهبه لا بأس به عندنا کذا فی المحیط اه. قال فی الحلیة و الاشبه انه سنة او مستحب عند عدم العذر فیکره فعله تنزیها لمن لیس به عذر اه وتبعه فی البحر والیه یشیر قولهم لا بأس فانه یغلب فیما ترکه اولیٰ، اقول ولا ینافی هذا ما قدمه الشارح فی الواجبات حیث ذکر منها ترک قعود قبل ثانیة و رابعة لان ذاک محمول علی القعود الطویل ولذا قیدت الجلسة هنا بالخفیفة تأمل. (رد المحتار ج۱،ص۴۷۳) و قال ابن عابدین رحمه الله فی حاشیته علی البحر (و قدر الکثیر ما یؤدی فیه رکن) ای بسنته کما قیده فی المنیة قال شارحها ابن امیر حاج ای بما له من السنة ای بما هو مشروع فیه من الکمال السنّی کالتسبیحات فی الرکوع والسجود مثلاً وهو تقیید غریب ووجهه قریب و لم اقف علی التقیید بکونه قصیراً او طویلاً اه ای تقیید الرکن ای هل المراد منه قدر رکن طویل بسنته کالقعود الأخر او القیام المشتمل علی قراءة المسنون او قدر رکن قصیر کالرکوع او السجود بسنته ای قدر ثلاث تسبیحات و بالثانی جزم البرهانی الحلبی فی شرح المنیة حیث قال و ذٰلک مقدار ثلاث تسبیحات اه فافاد ان المراد اقصر رکن و کأنه لانه الاحوط والله اعلم. (منحة الخالق علی البحر الرائق ج۱،ص۲۸۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ محرم ۱۳۸٦ هجری

## د وترو په دریم رکعت کښې چه د سورت یو ځای کول پاتې شي نو سجدهٔ سهو واجبه ده

**سوال:** د وترو په دریم رکعت کښې که چیرته څوک تر الحمد لله وروسته کوم سورت و نه وائي نو آیا سجدهٔ سهو پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وترو په هر رکعت کښې تر سورهٔ فاتحه وروسته د سورت ویل واجب دي له دې امله سهواً د پاتې کیدو په صورت کښې سجدهٔ سهو واجبه ده او په قصد سره د پرېښودلو په صورت کښې د لمانځه بیرته را ګرځول واجب دي

فی واجبات الصلوٰة من التنویر و ضم سورة فی الاولیین من الفرض و جمیع النفل والوتر. (رد المحتار ج۱، ص۴۲۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ شعبان ۱۳۸۸ هجری

## د سورۀ فاتحه په ځای د التحیات د ویلو حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک د الحمد لله په ځای تشهد تر التحیات لله والصلوات پورې ووائي نو آیا سجدۀ سهو پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له سورۀ فاتحه څخه مخکښې د التحیاتو په ویلو سره په فرض قرائت کښې تاخیر راغی او په فرضو کښې د درې ځله سبحان ربی الاعلی په اندازه تاخیر د سجدۀ سهو موجب دی. د دې ټول مقروءه حروف دوه څلویښت حروفه دي او د تشهد د ایّها تکي تر "ه" پورې دوه څلویښت مقروءه حروف پوره کیږي. لهذا سهواً تر دې ځایه پورې چه څوک التحیات ووائي نو سجدۀ سهو پرې واجبیږي او که تر دې کم وي نو نه واجبیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم غرۀ ذی الحجة ۱۳۸۸ هجری

## د التحیاتو په ځای د سورۀ فاتحه د لوستلو حکم

**سوال**: په قعده کښې په هیره سره د التحیاتو په ځای که چیرته نور څه یا الحمد لله وویل شي نو آیا سجدۀ سهو نه واجبیږي لکه څرنګه چه په معلم الدین کښې لیکلي دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته له التحیاتو څخه مخکښې د درې ځله سبحان ربی الاعلی (چه ټول حروف ئې دوه څلویښت راځي) په اندازه سورۀ فاتحه ولولي نو سجدۀ سهو واجبیږي. په سورۀ فاتحه کښې د الدین تر "ي" پورې دوه څلویښت حروفه پوره کیږي. البته تر آخري تشهد وروسته د سورۀ فاتحه په ویلو سره سجدۀ سهو نشته.

قال فی الهندیة واذا فرغ من التشهد قرأ الفاتحة فلا سهو علیه واذا قرأ الفاتحة مکان التشهد فعلیه السهو وکذلك اذا قرأ الفاتحة ثم التشهد کان علیه السهو کذا روی عن ابی حنیفة رحمه الله فی الواقعات الناطفیة وذکر هناك اذا بدأ فی موضع التشهد بالقراءة ثم تشهد فعلیه السهو ولو بدأ بالتشهد ثم بالقراءة فلا سهو علیه. (عالمگیریة ج۱، ص۱۲۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ذی الحجة ۱۳۸۸ هجری

## د ماښام په لمانځه کښې د آخری قعدې د هیریدلو حکم

**سوال**: د ماښام په لمانځه کښې که چیرته له چا څخه آخره قعده پاتې شي او د څلورم رکعت تر ادا کولو وروسته ور یاده شي نو آیا بیرته د قعدې خوا ته د ګرځیدو په سورت کښې د سجدۀ سهو په کولو سره لمونځ کیږي او له سره به ئې را ګرځوي. او آیا په نوموړي صورت کښې سجدۀ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې صورت کښې سجدۀ سهو نه واجبیږي، د ماښام فرض ئې نه

وشول بلکه دا څلور رکعته تړول نفل وګرځيدل له دې امله دې پنځم رکعت نه ورسره يو ځاى ګوي البته که چيرته د څلورم رکعت تر سجدې مخکښې ور په زړه شي نو بيرته را ګرځيدل او د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ صحيح کيږي فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ ذی الحجه ۱۳۸۸ هجری

## د ماښام په لمانځه کښې تر اخرې قعدې وروسته د دريدلو حکم

**سوال** د ماښام په لمانځه کښې که چيرته يو څوک له آخرې قعدې څخه په دې ګومان چه دا مې دويم رکعت دى را پورته شي بيا ور په زړه شي چه دا خو څلورم رکعت دى او کښيني آيا د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته ئې د څلورم رکعت سجده نه وي کړې نو کښيناستل او د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ پوره کيږي. او که چيرته ئې د څلورم رکعت سجده کړې وي نو د پنځم رکعت يو ځاى کول ورته مستحب دى. آخري دوه رکعته ئې نفل ګرځي ليکن سجدهٔ سهو په دې صورت کښې هم واجب دى.

**قال فی التنویر وان قعد فی الرابعة ثم قام عاد وسلم وان سجد للخامسة سلموا وضم الیها سادسة، وقال ابن عابدین رحمه الله علیه ای ندبا علی الاظهر وقیل وجوبا ح عن البحر.(ردالمحتار ج۱،ص۵۰۰)**

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ محرم ۱۳۹۲ هجری

## د سلام په پريښودو سره سجدهٔ سهو واجبيږي

**سوال** : زيد په لمانځه کښې يوې خوا يا دواړو خواوو ته سلام و نه ګرځاوه او تشهد، درود شريف او دعاء ئې وويله همداسې پورته شو نو آيا لمونځ ئې وشو او که نه؟ که چيرته شوى وي نو له کراهت سره او که بې له کراهته. که له کراهت سره وي نو تحريمي دى او که تنزيهي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته يوې خوا ته تر سلام ګرځولو وروسته ودريږي نو لمونځ ئې بې له کراهته کيږي ځکه چه په لومړي سلام سره لمونځ ختميږي ليکن چونکه دويم سلام هم واجب دى د دې لپاره له قبلې څخه د مخ نه اړولو او د خبرو له کولو څخه مخکښې چه ور په زړه شي نو دويم سلام دې هم واړوي. بهتره دا ده چه کښيني او سلام وګرځوي. که چيرته ئې په ولاړې سلام واړاوه نو بيا ئې هم واجب ادا کړي ليکن د سنتو خلاف دى او که چيرته ئې يوې خوا ته هم سلام و نه ګرځاوه او له جومات څخه نه وتلو او خبرې کولو څخه مخکښې ور په زړه شي نو کښيني دې ئې سجدهٔ سهو دې وکړي او سلام دې وګرځوي او که نه نو لمونځ به ئې مکروه تحريمي او واجب الاعاده به وي که چيرته دواړو خواوو ته په قصد سره سلام وا نه ړوي نو بيا سجدهٔ سهو کافي نه ده بلکه د لمانځه را ګرځول پرې واجب دي

د لومړي سلام د پاتې کیدو په صورت کښې له جومات څخه د نه وتلو قید دی او د دویم سلام د پاتې کیدو په صورت کښې له قبلې څخه د سینې د نه ګرځیدلو قید دی. **كما فرقوا بين تسليم من عليه سجود السهو ناسيا وعامداً.** (د جومات د خارج حکم د "سجدهٔ سهو چه هیره شي" تر عنوان لاندې ملاحظه کړئ)

**قال في العلائية ولفظ السلام مرتين فالثاني واجب على الاصح برهان دون عليكم وتنقضي قدوة بالاول قبل عليكم على المشهور عندنا وعليه الشافعية.** (رد المحتار ج۱،ص۳۳۶) **وفيها ولو نسي اليسار اتى به مالم يستدبر القبلة في الاصح وتنقطع التحريمة بتسليمة واحدة برهان وقد مرّ.** (رد المحتار ج۱،ص۴۹۰)

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ذی قعده ۱۳۸۹ هجری**

## د سلام تاخير د سجدهٔ سهو موجب دی

**سوال**: که چیرته یو چا په آخره قعده کښې تشهد، درود شریف او دعاء وویله لیکن په سلام اړولو او خروج بصنع المصلي کښې ئې تاخير وکړ آیا په داسې سړي باندې سجدهٔ سهو لازمه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته نورې زیاتی دعاګانې ئې ویلې یا حمد، ثنا او داسې نورو اذکارو کښې مشغول پاتې وو نو سجدهٔ سهو نشته اګر که هر څومره تاخير وشي. البته که چیرته په قصد سره د درې ځله سبحان ربی الاعلی په اندازه چُپ پاتې شو نو لمونځ واجب الاعاده دی او که سهواً همدومره ځنډ چُپ پاتې شو نو سجدهٔ سهو پرې واجبه ده.

**قال في الدر وسجد للسهو في الصورتين لنقصان فرضه بتاخير السلام في الاولى وتركه في الثانية.** (رد المحتار ج۱،ص۵۰۱)

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ذی الحجة ۱۳۹۵ هجری**

## د فرض لمانځه په دریم رکعت کښې چه د امام د یوه آیت په جهر سره د ویلو حکم

**سوال**: په دریم رکعت کښې امام په جهر سره تر (الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ) پورې ووایه نو آیا سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د فرض لمانځه په آخري دوه رکعتونو کښې اخفاء واجبه ده. له دې امله په دې کښې سره د محذوفه حروفو د دیرشو یا زیاتو حروفو په ویلو سره سجدهٔ سهو لازمیږي دیرش حروفه د الرحیم د مشددې راء په لومړي راء کښې پوره کیږي. د دې لپاره په نومورې صورت

کښې سجدۀ سهو نه واجبیږي.

فی واجبات الصلوٰة من التنویر والجهر والاسرار فیما یجهر ویسر. وفی الشامیة عن البحر والاسرار یجب علی الامام والمنفرد فیما یسر فیه وهو صلوٰة الظهر والعصر والثالثة من المغرب والاخریان من العشاء الخ. (رد المحتار ج۱، ص۴۳۷) وفی سجود السهو من التنویر والجهر فیما یخافت فیه وعکسه بقدر ما تجوز به الصلوٰة فی الفصلین، وفی الشامیة والصحیح ظاهر الروایة وهو التقدیر بما تجوز به الصلوٰة من غیر تفرقة. (رد المحتار ج۱، ص۶۹۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ محرم ۱۳۹۰ هجری

## د جُمعې او اخترونو په لمونځونو کښې د سجدۀ سهو حکم

**سوال**: د اختر د لمانځه د دویم رکعت دریم تکبیر له امام څخه سهوا پاتې شو، نو آیا په دې سره سجدۀ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اختر په لمانځه کښې له شپږو تکبیرونو څخه هر یو ئې بلکه د دویم رکعت د رکوع تکبیر هم واجب دی. له دې امله له دغو تکبیرونو څخه چه کوم یو پاتې شي نو د سجدۀ سهو موجب ګرځي لیکن په جُمعې او اخترونو کښې که چیرته جماعت دومره ګڼ وي چه د سجدۀ سهو په کولو سره په لمانځه کښې د خلل یا ګډوډي اندیښنه وه نو سجدۀ سهو معاف ده، پرته له جُمعې او اخترونو هم د ګڼ جماعت هم همدا حکم دی.

فی واجبات الصلوٰة من العلائیة وتکبیرات العیدین وکذا احدها وتکبیر رکوع رکعة الثانیة (رد المحتار ج۱، ص۴۳۷) وفیها والسهو فی صلوٰة العید والجمعة والمکتوبة التطوع سواء والمختار عند المتأخرین عدمه فی الاولیین کما فی جمعة البحر واقره المصنف وبه جزم فی الدرر وفی الشامیة الظاهر ان الجمع الکثیر فیما سواهما کذلك کما بحثه بعضهم ط وکذا بحثه الرحمتی وقال خصوصاً فی زماننا وفی جمعة ابی السعود عن العزمیة انه لیس المراد عدم جوازه بل الاولیٰ ترکه لئلا یقع الناس فی الفتنة اه. (قوله وبه جزم فی الدرر) لکنه قیده محشیها الوانی بما اذا حضر جمع کثیر والا فلا داعی الی الترك ط (رد المحتار ج۱، ص۷۰۵) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۷ رجب ۱۳۹۰ هجری

## په رکوع کښې د قنوت په ویلو سره سجدۀ سهو نه ساقطیږي

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام په دې مسئله کښې چه که چیرته له چا څخه دعاء قنوت د قیام په حالت کښې هیر شي او په رکوع کښې ور یاد شي او په رکوع کښې دعاء قنوت ووائي نو آیا سجدۀ سهو پرې واجبیږي او که نه؟ که چیرته له رکوع څخه وروسته دعاء قنوت ور په زړه شي

نو له سجدې څخه مخکښې چه دعاء قنوت ووائي نو بيا وروسته به سجدهٔ سهو کوي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دواړو صورتونو کښې سجدهٔ سهو واجبيږي. که چيرته رکوع ته تللی وي او دعاء قنوت ور ياد شي نو په رکوع او قومه کښې دې دعاء قنوت نه وائي بلکه يواځې دې په سجدهٔ سهو اکتفاء وکړي.

قال في التنوير ولو نسيه ثم تذكره في الركوع لا يقنت فيه ولا يعود الى القيام. فان عاد اليه وقنت ولم يعد الركوع لم تفسد صلوته وسجد للسهو. وفي الشرح قنت اولا لزواله عن محله. (ردالمحتار ج۱، ص۶۲۴)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ ربيع الاول ۱۳۹۱ هجری

## د ټوخي او داسې نورو له وجې چه تاخير وشي نو سجدهٔ سهو نشته

**سوال** : که چيرته په لمانځه کښې چا ته د ټوخی، سلګی يا پرنجی د ورتلو له وجې د درې څله سبحان ربی الاعلی ويلو په اندازه سره له قرائت څخه منع شي نو سجدهٔ سهو واجبيږي او که نه؟ او د سجدهٔ سهو د نه کولو په صورت کښې به لمونځ واجب الاعاده وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې صورت کښې سجدهٔ سهو نشته او نه د لمانځه بيرته را ګرځول واجب دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم غرهٔ جمادی الاولی ۱۳۹۱ هجری

## د دريو سجدو په کولو سره سجده سهو واجبيږی

**سوال** : په يوه رکعت کښې په هيره سره چه څوک درې سجدې وکړي نو سجدهٔ سهو واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قعدې يا قيام په فرض کښې د تاخير له وجې په دې صورت کښې سجدهٔ سهو واجبه ده.

قال الحلبی رحمة الله عليه ويجب بتكرار الركن نحو ان يركع مرتين او يسجد ثلاث مرات. (غنية ج۱، ص۴۴۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ جمادی الاولی ۱۳۹۱ هجری

## له سجدهٔ سهو څخه مخکښې او وروسته درود ويل احوط دي

**سوال** : چه د کوم لمونځ کوونکي په غاړه سجدهٔ سهوه واجبه شي نو يواځې د التحيات په ويلو سره به سجدهٔ سهو کوي او که څه نا څه درود شريف به هم وائي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته درود شريف ووائي يا يواځې د التحياتو په ويلو سره سجدهٔ سهو وکړي دواړه صحيح دي. بهتره دا ده چه د سجدهٔ سهو څخه مخکښې هم درود ووائي او

وروسته هم.

قال فی الخانیة ومن علیه السهو یصلی علی النبی علیه الصلوٰة والسلام فی القعدة الاولیٰ فی قول ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالیٰ و فی قول محمد رحمه الله فی القعدة الثانیة و الاحوط ان یصلی فی القعدتین (خانیة علی هامش العالمگیریة ج۱،ص۱۲۱) وفی الهندیة ویأتی بالصلوٰة علی النبی ﷺ والدعاء فی قعدة السهو هو الصحیح و قیل یأتی بهما فی القعدة الاولیٰ کذا فی التبیین و الاحوط ان صلی فی القعدتین کذا فی فتاوٰی قاضیخان. (عالمگیریة ج۱،ص۱۲۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ شعبان ۱۳۹۴ هجری

## پرته له سلام اړولو څخه سجدهٔ سهو مکروه تنزیهي دی

**سوال**: زید په هیره سره پرته له سلام څخه سجدهٔ سهو وکړه نو آیا لمونځ ئې وشو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! لمونځ ئې وشو لیکن قصداً داسې کول مکروه تنزیهي دي. قال فی شرح التنویر ولو سجد قبل السلام جاز و کره تنزیهاً. قال ابن عابدین رحمه الله هو ظاهر الروایة وفی المحیط و روی عن اصحابنا انه لا یجزیه ویعیده بحر. (ردالمحتار ج۱،ص۶۹۱) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۳ جمادی الاخر ۱۳۹۵ هجری

## د اولې قعدې د پاتې کیدلو حکم

**سوال**: که چیرته له امام څخه د ماسپښین په لمانځه کښې اوله قعده سهوا پاتې شي بیا د فتح په لاس ته راوړلو سره بیرته کښیني. نو آیا د سجدهٔ سهو په کولو سره لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د زنګنونو د سیده کیدلو څخه مخکښې بیرته را وګرځي نو سجدهٔ سهو واجبه نه ده. او که زنګنونه ئې سیده شي نو بیا د قعدې خوا ته بیرته را ګرځیدل جائز نه دي، صرف سجدهٔ سهو پرې واجبه ده. که چیرته د ناپوهۍ له وجې د زنګنونو تر سیده والي وروسته را وګرځید نو مقتدیان دې نه کښیني بلکه ولاړ دې وي او په امام باندې واجب دی چه قعده پریږدي او ودریږي. که چیرته و نه دریږي او التحیات وویل او بیا ودرید نو بیا هم لمونځ کیږي لیکن په دې صورت کښې به هم سجدهٔ سهو واجبه وي.

قال فی التنویر سها عن القعود الاول من الفرض ثم تذکره عاد الیه مالم یستقم قائماً والا لا و سجد للسهو فلو عاد الی القعود تفسد صلوٰته وقیل لا وهو الاشبه وفی العلائیة لا تفسد لکنه یکون مسیئاً ویسجد لتأخیر

الواجب وهو الاشبه كما حققه الكمال وهو الحق بحر، وفي الشامية يعني اذا عاد قبل ان يستتم قائماً و كان الى القعود اقرب فانه لا سجود عليه في الاصح وعليه الاكثر واختار في الولوالجية وجوب السجود واما اذا عاد وهو الى القيام اقرب فعليه سجود السهو كما في نور الايضاح وشرحه بلا حكاية خلاف فيه وصحح اعتبار ذلك في الفتح بما في الكافي ان استوى النصف الاسفل وظهره بعد منحن فهو اقرب الى القيام وان لم يستو فهو اقرب الى القعود (قوله لكنه يكون مسيئا) اى ويأثم كما في الفتح فلو كان اماماً لا يعود معه القوم تحقيقاً للمخالفة و يلزمه القيام للحال شرح المنية عن القنية. (ردالمحتار ج۱، ص۶۹۷)

تر دریدلو وروسته د بیرته را ګرځیدلو په صورت کښې د لمانځه د اعادې کوم صریح حکم لاس ته را نه غی لیکن د کلیې مقتضا دا ده چه لمونځ واجب الاعاده دی. لان عدم العود واجب وتركه عمدا.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ شعبان ۱۳۹۴ هجری

## په ناستې سره د لمونځ کولو په صورت کښې د تشهد په ځای د قرائت ویلو حکم

**سوال**: یو سړی په ناستې سره لمونځ کاوه او په هیره سره ئې په قعده کښې د تشهد په ځای الحمد لله شروع کړه. وروسته ور یاد شو نو څه به کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ناستې سره د لمانځه د ادا کولو په صورت کښې قرائت د قیام په حکم کښې دی د دې لپاره که چیرته په نفلو کښې دا صورت مخته راشي نو اګر که تر دویم رکعت یا څلورم رکعت وروسته هم وي په هر حال دې قرائت پریږدي او تشهد دې ووائي او بیا دې سجدهٔ سهو وکړي او که چیرته د مرض له وجې ئې فرض لمونځ په ناستې کاوه نو په اوله قعده کښې دې د تشهد خوا ته نه را ګرځي او په آخره قعده کښې دې را وګرځي. په دواړو صورتونو کښې سجدهٔ سهو واجبه ده. که چیرته ئې لاسونه تر نامه لاندې تړلي وو لیکن قرائت ئې لا نه وو شروع کړی نو دا د قیام په حکم کښې نه دی له دې امله دې لاسونه خلاص کړي، التحیات دې ووائي نو په دې صورت کښې سجدهٔ سهو پرې واجبه نه ده..

قال ابن عابدين رحمه الله اعلم ان حالة القراءة تنوب عن القيام في مريض يصلي بالايماء حتى لو ظن في حالة التشهد الاول انها حالة القيام فقرأ ثم تذكر لا يعود الى التشهد كما في البحر عن الولوالجية. (ردالمحتار ج۱، ص۶۹۷) وفي الخانية رجل صلى اربع ركعات جالسا فلما قعد في الركعة الرابعة منها قرأ وركع قبل ان يتشهد قال هو بمنزلة القيام ويمضي ولو ان حلين رفع رأسه من السجدة الثانية في الركعة الثانية نوى القيام ولم يقرأ ثم

علم قال يعود ويتشهد لان مجرد النية لا يصير قائماً.(خانية على هامش الهندية ج١،ص١٨٣) فقط والله تعالى اعلم

۲۴ ربیع الاول ۱٤۰۰ هجری

## نابالغ هلک د سجدهٔ سهو د پرېښودلو حکم

**سوال**: په نابالغ باندې په لمانځه کښې چه سجدهٔ سهو واجبه او ئې نه کړي نو ایا لمونځ ئې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا!

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بالغ غوندې د نابالغ لمونځ هم ناقص شو. البته په بالغ باندې د داسې لمانځه بیرته را گرځول واجب دي او په نابالغ باندې واجب نه دی. لیکن که چیرته اوه کلن وو نو د هغه په ولي باندې واجب دی چه هغه ته د لمانځه د بیرته را گرځولو حکم وکړي او چه لس کلن وي نو په وهلو سره دې ئې را وگرځوي. فقط والله تعالى اعلم ۹ شوال ۱۳۹۵ هجری

## د قعدې تر پاتې کیدو وروسته په فوراً بیرته را گرځیدو کښې د سجدهٔ سهو د وجوب وجه

**سوال**: که چیرته سهواً له چا څخه په دویم رکعت کښې قعده هیره شي او دریم رکعت ته ودریږي یا ئې یواځې زنگنونه سیده شي او بیا د قعدې خوا ته بیرته را وگرځي نو په هغه باندې سجدهٔ سهو واجبه ده حالانکه په دې کښې خو د درې ځله سبحان ربی الاعلی د ویلو په اندازه تاخیر نه دی شوی. د دې څه وجه ده؟ بینوا توجروا!

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په مسنونه طریق سره د رکن په اندازه تاخیر د سجدهٔ سهو د موجب کیدلو قاعده په هغه وخت کښې دی چه کله پخپله کوم رکن ئې نه وي ادا کړی. په دې صورت کښې قیام پخپله یو رکن دی. له دې امله د قیام خوا ته تلل د سجدې موجب دی اگر که د درې ځله تسبیح په اندازه تاخیر و نه شي. غالباً په همدې بناء باندې صاحب منیه په اول او دریم رکعت باندې مجرد کښیناستلو لره د سجدې موجب گڼلی دی. لیکن علامه شامي رحمه الله د دې په خلاف د سجدې د وجوب لپاره د اوږد کښیناستلو شرط لگولی دی. د دې وجه دا کیدلی شي چه له سجدې څخه د قیام خوا ته په تللو کښې په غیر اختیاري توگه لازماً څه نا څه قعود ما بانسه سنخ ته راځي او د عذر په وخت کښې خو د استراحت د جلسې په صورت کښې قصداً قعود وي. لهذا په اول او دریم رکعت کښې سهواً په کښیناستو سره د کوم نوي رکن خوا ته تلل نه [illegible] کیږي. د دې لپاره دلته مجرد جلوس د سجدې موجب نه دی بلکه په انداز د رکن سره په تاخیر باندې سجده واجبیږي.

**تنبیه**: که چیرته یو څوک سهواً دریم رکعت ته ولاړ شي یا ئې زنگونه سیده شي نو بیرته دې

قعدې خوا ته نه را ګرځي، که چیرته را وګرځید نو بیرته دې فوراً ودریږي. که چیرته فوراً بیرته و نه دریږي بلکه د التحیات تر ویلو وروسته ودریده نو بیا هم لمونځ کیږي. او سجدهٔ سهو په دواړو صورتونو کښې واجبیږي. که چیرته د ناپوهۍ له مخې امام کښیني نو مقتدیان دې نه کښیني بلکه ولاړ دې وي.

**قال فی العلائیة فلو عاد الی القعود بعد ذلك تفسد صلوته لرفض الفرض لما لیس بفرض وصححه الزیلعی و قیل لا تفسد لکنه یکون مسیئا و یسجد لتأخیر الواجب و هو الاشبه کما حققه الکمال و هو الحق بحر، و فی الشامیة (قوله لکنه یکون مسیئاً) ای و یأثم کما فی الفتح فلو کان اماماً لا یعود معه القوم تحقیقاً للمخالفة و یلزمه القیام للحال شرح المنیة عن القنیة. (رد المحتار ج۱، ص۶۹۷) فقط والله تعالی اعلم**

**۱۶ ذی القعده ۱۳۹۸ هجری**

## د یوې سجدې د هیریدلو حکم

**سوال**: که چیرته په لمانځه کښې له چا څخه یوه سجده هیره شي او په دویم کعت کښې درې سجدې وکړي نو د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې هم لمونځ کیږي لیکن بهتره دا ده چه کله ور یاد شي نو فوراً دې سجده وکړي. په کوم رکن کښې چه د سجدې د ور په زړه کیدو په صورت کښې سجده وکړي نو د همدې رکن بیرته را ګرځول مستحب دي. البته که چیرته د آخرې قعدې په منځ یا تر تشهد ویلو وروسته ئې سجده وکړه نو د تشهد بیرته را ګرځول واجب دي. سجدهٔ سهو په هر صورت کښې واجبه ده.

که چیرته د سلام تر اړولو وروسته او له جومات څخه تر وتلو مخکښې ور یاد شو نو فوراً دې سجده وکړي. التحیات دې له سره ووائي، سجدهٔ سهو دې وکړي او تر دې وروسته د قاعدې مطابق التحیات، درود او دُعاء ووائي سلام دې واړوي.

**قال فی التنویر فی آخر باب الاستخلاف و لو تذکر فی رکوعه او سجوده سجدة فسجدها اعادهما ندبا، و فی الشامیة (قوله فسجدها) افاد ان سجودها عقب التذکر غیر واجب لما فی البحر عن الفتح له ان یقضی السجدة المتروکة عقب التذکر وله ان یؤخرها الی آخر الصلوة فیقضیها هناك اه. (رد المحتار ج۱، ص۵۷۳)**

**و فی واجبات الصلوة منها تحت (قوله کالسجدة) قال فی شرح المنیة حتی لو ترك سجدة من رکعة ثم تذکرها فیما بعدها من قیام او رکوع او سجود فانه یقضیها و لا یقضی ما فعله قبل قضائها مما هو بعد رکعتها من قیام او رکوع او سجود بل یلزمه سُجود السهو فقط لکن اختلف فی لزوم قضاء ما تذکرها فقضاها فیه کما لو تذکر و هو**

راکع او ساجد انه لم یسجد فی الرکعة التی قبلها فانه یسجدها و هل یعید الرکوع او السجود المتذکر فیه ففی الهدایة انه لا تجب اعادته بل تستحب معللا بأن الترتیب لیس بفرض بین ما یتکرر من الافعال و فی الخانیة انه یعیده و الا فسدت صلاته (الی قوله) و المعتمد ما فی الهدایة فقد جزم به فی الکنز و غیره فی اٰخر باب الاستخلاف و صرح فی البحر بضعف ما فی الخانیة هذا و التقیید بالترتیب بینها و بین ما بعدها للاحتراز عما قبلها من رکعتها فان الترتیب بین الرکوع و السجود من رکعة واحدة شرط کما مر نبه علیه فی الفتح، و فی شرح التنویر لو نسی سجدة من الاولی قضاها و لو بعد السلام قبل الکلام لکنه یتشهد ثم یسجد للسهو ثم یتشهد لانه یبطل بالعود الی الصلبیة و التلاویة، اما السهویة فترفع التشهد لا القعدة. (رد المحتار ج۱، ص۳۲ - ۴۳۰) و فی سجود السهو منه و لو نسی السهو او سجدة صلبیة او تلاویة یلزمه ذٰلک ما دام فی المسجد. (رد المحتار ج۱، ص۶۰۴) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ صفر ۱۳۹۷ھجری

## د سجدهٔ سهو د هیریدلو حکم

**سوال**: له یواځې لمونځ کوونکي څخه که چیرته سجدهٔ سهو هیره شي او تر اللّٰهم ربنا پورې ورسیږي لیکن سلام ئې لا نه وي اړولی نو په کوم ترکیب سره به سجدهٔ سهو ادا کوي؟ او آیا له سجدهٔ سهو وروسته درود او دعاء به بیا وائي سلام به اړوي؟ او که چیرته ئې سلام هم اړولی وي نو بیا به څه کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر سجدهٔ سهو وروسته دې تشهد، درود او دعاء ووائي او بیا دې سلام واړوي. که چیرته د سلام تر ګرځولو وروسته سجدهٔ سهو ور په زړه شي لیکن له جوماته لا نه وي وتلی او خبرې ئې هم نه وي کړې نو بیا هم همدا حکم دی. او که چیرته له جوماته وتلی وي یا ئې کومه خبره کړې وي نو لمونځ دې بیرته را وګرځوي. که چیرته جماعت له جومات څخه د باندې په میدان کښې کیده نو بیا دا شرط دی چه له صفونو څخه لا تیر شوی نه وي نو سجدهٔ سهو دې وکړي او که یواځې وي نو څلورو خواوو ته د سجدې د ځای په اندزه چه لا نه وي وتلی نو سجدهٔ سهو دې وکړي. که چیرته له ۳۳۴/۸۹ مربع متر څخه وړې کمرې یا له دې څخه په کم صحن کښې وي نو له دې څخه چه د باندې لا نه وي وتلی سجدهٔ سهو دې وکړي. له ۳۳۴/۸۹ مربع متر څخه لویه کمره او صحن د صحراء (بیابان) په حکم کښې دی.

قال فی العلائیة و لو نسی السهو او سجدة صلبیة او تلاویة یلزمه ذٰلک ما دام فی المسجد، و فی الشامیة ای و ان تحول عن القبلة استحسانا لان المسجد کله فی حکم مکان واحد و لذا صح الاقتداء فیه و ان کان بینهما فرجة و

اما اذا كان في الصحراء فان تذكر قبل ان يجاوز الصفوف من خلفه او يمينه او يساره عاد الى قضاء ما عليه لان ذلك الموضع ملحق بالمسجد وان مشى امامه فالاصح موضع سجوده او سترته ان كانت له سترة بين يديه كما في البدائع والفتح. (رد المحتار ج۱، ص۷۰۳) فقط والله تعالى اعلم ۱۲ شعبان ۱۳۹۷ هجری

## د امام له سلام څخه وروسته د پنځم رکعت د ادا کولو حکم

**سوال**: په جومات کښې د مازدیګر جماعت کیده، امام په آخره قعده کښې ناست وو چه له شا څخه یوه مقتدي فتحه ورکړه چه الله اکبر. په داسې حال کښې چه دا څلورم رکعت وو. امام یوې خوا ته سلام واړاوه نو همدې مقتدي دوباره الله اکبر وویل. اوس امام ته شک ور ولوید او پنځم رکعته ور پورته شو. په پنځم رکعت باندې امام سجدهٔ سهو وکړه او سلام ئې وګرځاوه. آیا په داسې صورت کښې د امام او مقتدیانو لمونځونه وشول او که به سره ئې را ګرځوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام او مقتدیانو د ټولو لمونځونه صحیح شول. البته د مسبوق لمونځ و نه شو **للاقتداء في موضع الانفراد** که چیرته مسبوق په پنځم رکعت کښې د امام اقتداء نه وای کړې بلکه له امام څخه د جلا والي په صورت کښې خپل پاتې شوی لمونځ پوره کړي وای نو د ده لمونځ به هم صحیح وای فقط والله تعالى اعلم ۲۵ رجب ۱۳۹۸ هجری

## د قنوت په ځای د سورهٔ فاتحه یا تشهد د لوستلوس حکم

**سوال**: په وترو کښې د دعاء قنوت په ځای که څوک الحمد لله شریف یا التحیات په سهو سره ووائي نو آیا سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ یا که چیرته د دعاء قنوت په ځای الحمد لله یا التحیات ووائي او د ور په زړه کیدو په صورت کښې بیا دعاء قنوت ووائي نو بیابه هم سجدهٔ سهو واجبه وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دغو دواړو صورتونو کښې سجدهٔ سهو واجبه نه ده د دې لپاره چه د وترو په آخري رکعت کښې چه هره دعاء وویله شي نو واجب ادا کیږي. البته معهوده دُعاء مسنونه ده او له مسنونې دعاء سره بله کومه دُعاء یوځای کول بهتر دي. قال ابن نجيم رحمه الله ولو قرأ غيره جاز ولو قرأ معه غيره كان حسناً. (البحر الرائق ج۲، ص۴۲)

حمد، ثناء، تسبیح، تهلیل او داسې نور هم دُعاء ده. فان الثناء على الكريم دعاء :

أأذكر حاجتي ام قد كفاني ثناؤك ان شيمتك الحياء
اذا اثنى عليك المرء يوما كفاه من تعرضك الثناء

فقط والله تعالى اعلم ۱۳ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## د سجدۀ سهو په پرېښودو سره لمونځ واجب الاعاده دی

**سوال** : یوه حافظ صاحب د تراویحو په آخري رکعت باندې کښې نه ناست او سیده ودریده د فتحې په ورکولو سره فوراً بیرته کښیناست او سجدۀ سهو ئې و نه کړه. آیا لمونځ وشو او که بیرته را گرځول ئې واجب دي؟ که چیرته ئې را گرځول واجب وي نو د دغو دوه رکعتونو د بیا ادا کولو په وخت کښې به تلاوت شوی قرآنکریم به هم دوباره تلاوت کوي او که په ورو سورتونو سره دا دوه رکعته ادا کړي. شرعاً د دې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا دوه رکعتونه واجب الاعاده ده. په هغو کښې دې تلاوت شوی قرآنکریم هم بیرته له سره وویل شي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ١٦ شعبان ١٣٩٨ هجری

## د دریو تسبیحاتو په اندازه سکوت د سجدۀ سهو موجب دی

**سوال** : په تراویحو کښې یو حافظ تر الحمد لله وروسته یا د الحمد لله په منځ کښې خاموش یا غلی شو او تقریباً د دریو تسبیحاتو په اندازه غلی پاتې شو نو آیا سجدۀ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته د درې ځله سبحان ربی الاعلی ویلو په اندازه چُپ پاتې شوی وي نو سجدۀ سهو واجبیږي او که نه وي نو نه واجبیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ٢٣ شوال ١٣٩٨ هجری

## تر لمانځه وروسته شک هیڅ اعتبار نه لري

**سوال** : که چیرته د لمانځه تر پوره کیدو وروسته چاته شبهه ور ولویږي چه درې رکعته ئې کړي دي او که څلور؟ آیا داسې سړی دې لمونځ بیرته را وگرځوي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نه، لمونځ دې نه را گرځوي. لمونځ ئې شوی دی. **قال شارح التنویر** و لا یصلی بعد صلوٰة مفروضة مثلها فی القراءة او الجماعة او لا تعاد عند توهم الفساد للنهی. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۳) و فی الشامیة عن الفتح لو شك بعد الفراغ منها او بعد ما قعد قدر التشهد لا یعتبر. (رد المحتار ج۱، ص۵۰۴)

فقط والله تعالیٰ اعلم ٢١ جمادی الأخر ١٣٩٩ هجری

## له تشهد څخه چه یو لفظ هم پاتې شي نو سجدۀ سهو واجبیږي

**سوال** : که چیرته د تشهد څه برخه پاتې شي نو سجدۀ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : تشهد ټول واجب دی. په دې کښې که چیرته یو لفظ هم پاتې شي نو سجدۀ سهو واجبیږي.

قال فی الدر فی واجبات الصلوٰۃ و التشهدان و یسجد للسهو بترك بعضه ككله الخ و فی الشامیة (قوله و التشهدان) ای تشهد القعدة الاولیٰ وتشهد الاخیرة والتشهد المروی عن ابن مسعود رضی الله تعالیٰ عنه لایجب بل هو افضل من المروی عن ابن عباس و غیره رضی الله تعالیٰ عنهم (قوله بترك بعضه ككله) قال فی البحر من باب سجود السهو فانه یجب سجود السهو بترکه و لو قلیلاً فی ظاهر الروایة لانه ذکر واحد منظوم فترك بعضه كترك كله اه.(ردالمحتار ج۱،ص۳۳۲)فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ربیع الآخر ۱٤۰۰ هجری

## د سورۀ فاتحه د هیریدلو حکم

**سوال** : په لمانځه کښې که چیرته له چا څخه د سورۀ فاتحه ویل پاتې شي نو آیا په ور یادیدو سره د سورۀ فاتحه او یو بل سورت دوباره لوستل ضروري دي او که نه؟ همدارنګه په دې صورت کښې سجدۀ سهو ضروري ده او که نه؟ په تفصیل سره ئې بیان کړئ.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته له سجدې څخه مخکښې د سورۀ فاتحه پاتې کیدل ور په زړه شي نو فوراً دې سورۀ فاتحه ووائي او بل سورت دې دوباره ورسره ووائي. ځکه چه په سورۀ فاتحه او سورت کښې ترتیب واجب دی. له دې وروسته دې رکوع دوباره وکړي او بیا دې په آخر کښې سجدۀ سهو وکړي.

قال فی الدر ثم انما یتحقق الترك بالسجود فلو تذکر ولو بعد الرفع من الرکوع عاد ثم اعاد الرکوع الا انه فی تذکر الفاتحة یعید السورة ایضاً وقال السید احمد الطحطاوی رحمه الله فی حاشیته علی الدر (قوله یعید السورة) ای لاجل الترتیب بینهما وفی البحر عن المحیط لو ترك السورة فذکرها قبل السجود عاد و قرأها و كذا لو ترك الفاتحة فذکرها قبل السجود و یعید السورة لانها تقع فرضاً بالقراءة بخلاف ما لو تذکر القنوت فی الرکوع فانه لایعود ومتی عاد فی الکل فانه یعید رکوعه لارتفاضه وفی الخلاصة ویسجد للسهو فیما اذا عاد اولم یعد الی القراءة (قوله ایضاً) ای کما یعید الرکوع.(طحطاوی ج۱،ص۳۱۱)فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ رجب ۱٤۰۰ هجری

## تر سورت وروسته د سورۀ فاتحه تکرار د سجده سهو موجب نه دی

**سوال** : یوه حافظ د تراویحو په لمانځه کښې د سجدۀ تلاوت تر کولو وروسته دوباره سورۀ فاتحه وویله نو آیا سجدۀ سهو پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نه، سجدۀ سهو نه واجبیږي ځکه چه سورۀ فاتحه له ضم سورت څخه وروسته تکرار شوی دی.

قال العلائی رحمه الله فی واجبات الصلوٰۃ و كذا ترك تکریرها قبل سورة الاولیین، وفی الشامیة فلو قرأها فی رکعة من الاولیین مرتین وجب سجود السهو لتأخیر الواجب وهو السورة (الیٰ قوله) اما لو قرأها قبل السورة مرة و بعدها مرة فلا یجب کما فی الخانیة و اختاره فی المحیط و الظهیریة و الخلاصة و صححه الزاهدی لعدم لزوم

التأخیر لان الرکوع لیس واجباً باثر السورة فانه لو جمع بین سور بعد الفاتحة لا یجب علیه شئ کذا فی البحر. (رد المحتار ج۱، ص۴۲۹) فقط والله تعالی اعلم ۲۱ شوال ۱۴۰۰ هجری

## د فرضو په دریم رکعت کښې د سورهٔ فاتحه په تکرار سره سجدهٔ سهو نشته

**سوال**: که چیرته د فرضو په دریم یا څلورم رکعت کښې یو څوک سورهٔ فاتحه دوه ځلې ووائي نو آیا سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې سجدهٔ سهو نه واجبیږي. فی واجبات الصلوٰة من العلائیة و کذا ترك تکریرها قبل سورة الاولیین. و فی الشامیة قال فی شرح المنیة قید با لاولیین لان الاقتصار علی مرة فی الاخریین لیس بواجب حتی لا یلزمه سجود السهو بتکرار الفاتحة فیهما سهواً و لو تعمده لا یکره الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۴۲۹) فقط والله تعالی اعلم ۲۲ شوال ۱۴۰۰ هجری

## د فرضو په دریم رکعت کښې تر الحمد وروسته د سورت په ویلو سره سجدهٔ سهو نه لازمیږي

**سوال**: د ماښام د فرض لمانځه په دریم رکعت کښې د وترو غوندې له الحمد لله سوره باید کو سورت یو ځای شي او که نه؟ او که چیرته ئې څوک په غلطۍ سره یو ځای کړي نو سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ټولو فرائضو کښې یو شان حکم دی. یعنې یو اځې په لومړیو دوه رکعتونو کښې له الحمد لله سره د سورت یو ځای کول واجب دي. په وروستنیو دوه رکعتونو کښې واجب نه دي لیکن جائز دي. نه یو ځای کول ئې بهتر دي. که چیرته ئې څوک یو ځای کړي نو سجدهٔ سهو نه واجبیږي. فقط والله تعالی اعلم ۸ رمضان ۱۴۰۰ هجری

## د رکوع د هیریدلو حکم

**سوال**: له چا څخه رکوع هیره شوه، په سجده کښې ور یاده شوه نو فوراً ئې رکوع وکړه او دویمه سجده ئې وکړه. آیا د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په رکوع او سجدې کښې ترتیب فرض دی. د دې لپاره لومړۍ سجدهٔ و نه شوه. تر رکوع وروسته دوه سجدې فرض وې. لیکن ده یوه سجده کړې ده ځکه ئې لمونځ و نه شو.

قال فی العلائیة وبقی من الفروض تمییز المفروض و ترتیب القیام علی الرکوع و الرکوع علی السجود و فی الشامیة (قوله و ترتیب القیام علی الرکوع الخ) ای تقدیمه علیه. (الی قوله) حتی لو سجد ثم رکع فان سجد ثانیاً صحت لما قلنا. (ردالمحتار ج۱، ص۴۱۹) فقط والله تعالی اعلم ۷ شعبان ۱۴۰۱ هجری

# باب صلوة المريض

## په کرسۍ یا چوکۍ باندې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال**: زید یو مشر سړی دی، له یوې پښې څخه معذور دی په ناستې له جماعت سره لمونځ نه ادا کوي. ما یوه ورځ د جُمعې په جماعت کښې ولیده چه داسې لمونځ ئې کاوه چه یوه کرسۍ ئې د سجدې په ځای کښې ایښې وه او په بلې کرسۍ باندې د جماعت په منځ کښې ناست وو. نو آیا په نومونې طریقې سره لمونځ کیږي او که نه؟ او آیا شرعاً داسې کول صحیح دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته په یوې کرسۍ باندې کښینې او په بلې باندې سجده ولګوي نو لمونځ صحیح کیږي په دې شرط چه د سجدې په وخت کښې ئې ګونډې هم په کرسۍ باندې ایښې وي. سره له دې داسې کول ګناه ده. په زمکې باندې کښینئ او لمونځ باید ادا کړئ. او که چیرته د سجدې په وخت کښې ئې ګونډې په کرسۍ باندې ایښې نه وي نو د لمانځه بیرته را ګرځول پرې واجب دي. معلومه شوه چه ځینې خلک په کرسۍ باندې کښیني او د سجدې په ځای په اشارې سره لمونځ کوي. که چیرته په زمکې باندې د کښیناستو په صورت کښې په سجده باندې قدرت ولري نو په کرسۍ باندې په اشارې سره لمونځ نه کیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم غرهٔ شعبان ۱۳۸۸ھ هجری

## په بیهوښۍ کښې د فوت شوي لمونځونو حکم

**سوال**: د آپریشن لپاره اکثره مریضانو ته بیهوښي ورکوي. نو آیا د بیهوښۍ په حالت کښې چه د مریض څومره لمونځونه قضاء کیږي د هغو قضائي را اړول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته یوه شپه او ورځ یا له دې څخه کم وخت بیهوښه وي نو د همدې مودې د لمونځونو قضائي ضروري ده. او که چیرته د شپږم لمانځه وخت هم په بیهوښۍ کښې پرې تیر شي نو په دې صورت کښې اختلاف دی. د دې لپاره د قضائي را ګرځول بهتر دي. دا حکم پخپل اختیار سره د بیهوښه کولو دی. په قدرتي بیهوښي کښې که چیرته له پنځو لمونځونو څخه زیات قضاء شي نو په اتفاق سره د هغو قضائي معاف ده.

قال فی التنویر ومن جنّ او اغمی علیه یوماً ولیلةً قضی الخمس وان زاد وقت صلوة لا، زال عقلا ببنج او خمر لزمه القضاء وان طالت وفی الشرح لانه بصنع العباد کالنوم، وفی الشامیة ای وسقوط القضاء عرف بالاثر اذا حصل بأفة سماویة فلا یقاس علیه ما حصل بفعله وعند محمد یسقط القضاء بالبنج والدّواء لانّه مباح فصار کالمریض کما فی البحر وغیره والظاهر انّ عطف الدواء علی البنج عطف تفسیر وان المراد شرب البنج لاجل الدّواء

اما لو شربه للسکر فیکون معصیة بصنعه کالخمر. (ردالمحتار ج۱، ص۵۶۳) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۴ محرم ۱۳۹۵ هجری

## د مریض لپاره د استقبال قبله (قبلې ته د مخامخ کېدلو) حکم

**سوال**: له آپریشن څخه وروسته څه وخت په مطلقه توګه او وروسته بیا تر څو ورځو پورې له خوځېدلو څخه مریض منع کوي. په داسې صورت کښې که چیرته لمونځ په ملاسته یا په ناسته په اشارو سره لمونځ ادا شي او د کټ مخ د قبلې خوا ته نه وي. نو آیا چه کومې خوا ته د مریض مخه وي لمونځ دې وکړي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قبلې خوا ته مخ اړول ضروري دي. که چیرته د شفا خاني کار کوونکي په دې کار کښې امداد او تعاون و نه کړي نو په داسې وخت کښې چه څرنګه کولی شي لمونځ دې ادا کړي لیکن وروسته ئې قضائي را ګرځول ضروري دي.

فقط والله اعلم ۲۴ محرم ۱۳۹۸ هجری

## په جماعت کښې چه د درېدو قدرت و نه لري نو یواځې دې لمونځ وکړي

**سوال**: زید د کمزورۍ یا مرض له وجې که چیرته جومات ته په تلو سره له جماعت سره لمونځ کوي نو له امام سره دومره ډېر قیام نه شي کولی. په دې صورت کښې آیا په ناسته له جماعت سره لمونځ ادا کړي او که جماعت دې پرېږدي او په کور کښې دې په ولاړې لمونځ وکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جماعت سنت مؤکده یا واجب دی او قیام فرض دی. د دې لپاره په جماعت کښې د شاملېدو په غرض سره د قیام پرېښودل جائز نه دي. په ناستې سره ئې لمونځ نه کېږي. په کور کښې دې په ولاړې لمونځ وکړي. که چیرته ممکنه وي نو په کور کښې دې جماعت وکړي.

قال فی العلائیة ولو اضعفه عن القیام الخروج لجماعة صلی فی بیته قائما، به یفتی خلافاً للاشباه وقال ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ (قوله الخروج لجماعة) ای فی المسجد وهو محمول علی ما اذا تیسر له الجماعة فی بیته افاده ابو السعود ط (قوله به یفتی) وجهه ان القیام فرض بخلاف الجماعة وبه قال مالك والشافعی خلافا لاحمد بناءً علی ان الجماعة فرض عنده. (ردالمحتار ج۱، ج۵۱۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## د پورتني سوال په اړوند یو بل سوال

**سوال**: تاسو لیکلي دي چه که چیرته مریض یواځې په ولاړې لمونځ کولی شي لیکن له جماعت سره په قیام باندې قادر نه وي نو په کور کښې دې په ولاړې لمونځ وکړي. له امام سره په ناسته د

لمانځه ادا کول جائز نه دي. ليکن د فيض الباري ج۲، ص۲۳۲ کښې دي چه له جماعت سره په ناستې لمونځ افضل دی. په دې باندې نظر ثاني وکړئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې باره کښې درې قولونه دي. يو دا چه له امام سره دې په ناستې لمونځ وکړي. دويم دا چه له امام سره دې په ولاړې لمونځ شروع کړي بيا دې کښېني بيا دې د رکوع په وخت کښې که چيرته د قيام قدرت ولري نو و دې دريږي او رکوع دې وکړي. دريم دا چه په کور کښې دې په ولاړې لمونځ وکړي، له امام سره چه په ناستې لمونځ وکړي نو لمونځ ئې نه کيږي. دا قول له مفتی به والي پرته احوط هم دی.

قال العلامة الحصكفى رحمه الله و لو اضعفه عن القيام الخروج لجماعة صلى فى بيته قائما به يفتى خلافاً للاشباه و قال ابن عابدين رحمه الله (قوله و به يفتى) وجهه ان القيام فرض بخلاف الجماعة و به قال مالك و الشافعى رحمهما الله تعالى خلافا لاحمد رحمه الله بناءً على ان الجماعة فرض عنده و قيل يصلى مع الامام قاعداً عندنا لانه عاجز اذذاك ذكره فى المحيط و صححه الزاهدى شرح المنية و ثم قول ثالث مشى عليه فى المنية و هو انه يشرع مع الامام قائماً ثم يقعد فاذا جاء وقت الركوع يقوم و يركع. اى ان قدر و ما مشى عليه الشارح تبعاً للنهر جعله فى الخلاصة اصح و به يفتى قال فى الحلية و لعله اشبه لان القيام فرض فلا يجوز تركه للجماعة التى هى سنة بل يعد هذا عذراً فى تركها اه و تبعه فى البحر. (رد المحتار ج۱، ص۵۱۶) و قال ابن نجيم رحمه الله و الاشبه ما صححه فى الخلاصة لان القيام فرض فلا يجوز تركه لاجل الجماعة التى هى سنة بل يعد هذا عذرا فى تركها. (البحر الرائق ج۱، ص۲۹۲)

د شامي او بحر له مذکوره عبارتونو څخه ثابته شوه چه صاحب بحر په دې مسئله کښې تردد نه لري بلکه هغه د عدم جواز قائل دی. فيض الباري د حضرت شاه صاحب رحمه الله تصنيف نه دی بلکه د امالي مجموعه ده. د دې په ډيرو ځايونو کښې له ليکونکو څخه ډيره ګډوډي شوې ده. د دې لپاره د اصل ماخذ خوا ته تر رجوع کولو پرته په فيض الباري باندې اعتماد صحيح نه دی. د نظر لاندې مسئله کښې د صاحبِ بحر خوا ته د تردد نسبت له غلط والي پرته په افضليت کښې د اختلاف نسبت هم غلط دی. صحيح دا ده چه په افضليت کښې نه بلکه د لمانځه په صحت کښې اختلاف دی. له حديث څخه استدلال ځکه صحيح نه دی چه په دې کښې دا احتمال شته چه دغو مريضانو ته به په کور کښې هم په قيام باندې قدرت نه وي. فقط والله تعالى اعلم ۱۹ ربيع الاول ۱۴۰۲ هجری

(نور تحقيق په تتمه کښې دی)

## که چیرته معذور په اوداسه سره تنها یا یواځې لمونځ کولی شي نو جماعت دې پریږدي

**سوال**: یو سړی د بادو مریض دی چه یواځې لمونځ کوي نو په اوداسه سره ئې کولی شي لیکن په جماعت کښې په اوداسه سره لمونځ نه شي پوره کولی. د دې لپاره شرعاً څه حکم دی؟ آیا له جماعت سره دې لمونځ وکړي او د معذور والي له وجې ئې لمونځ کیږي او که په اوداسه سره دې یواځې لمونځ وکړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا سړی شرعاً معذور نه دی. چه له جماعت سره بې ادوسه لمونځ وکړي نو لمونځ ئې نه کیږي. په ده باندې لازمه ده چه په کور کښې یواځې لمونځ وکړي. بلکه د مجبورۍ په وخت کښې دې د لمانځه سنتونه، واجبات او داسې نور هم پریږدي او یواځې دې په فرائضو اکتفاء وکړي.

قال فی العلائیة یجب رد عذره او تقلیله بقدر قدرته ولو بصلاته مؤمیا وبرده لا یبقی ذا عذر، وقال ابن عابدین رحمه الله قال فی البحر ومتی قدر المعذور علی رد السیلان بربأط اوحشو او کان لو جلس لا یسیل ولو قام سال وجب رده وخرج برده عن ان یکون صاحب عذر ویجب ان یصلی جالسا بایماء ان سال بالمیلان لان ترك السجود اهون من الصلوٰة مع الحدث اه (رد المحتار ج۱، ص۲۸۳) وقال ایضاً تحت (قوله ولو حکما) قال الرحمتی ثم هل یشترط ان لا یمکنا (الوضوء والصلوٰة) مع سننهما او الاقتصار علی فرضهما؟ یراجع اه اقول الظاهر الثانی تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۲۸۱)

قلت ویؤید الثانی ما مرّ عن البحر ان ترك السجود اهون من الصلوٰة مع الحدث. فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۷ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## له سجدې څخه د عاجز سړي حکم

**سوال**: زما والد صاحب مریض دی، په هډونو، ملا او ګونډو کښې ئې تل درد وي، د سینې تکلیف هم لري چه له وجې ئې په صحیح توګه سره رکوع او سجده نه شي کولی، له تیرو څو میاشتو راهیسې په ناستې لمونځ کوي. په رکوع او سجدې کښې چه څومره خان ټیټولی شي هغومره ټیټیږي په زیات ټیټدلو کښې ورته تکلیف وي. ځینو ملګرو دا اعتراض کړی دی چه سجده چرته له دې څخه چه تندی په یوه کلک شي و نه لګیږي نه ادا کیږي، د دې لپاره ده ته باید یو کوچنی میز جوړ شي، که چیرته په فرش باندې تندی نه شي لګولی نو په دې میز باندې دې ولګوي او که داسې و نه کړي نو لمونځ ئې نه کیږي. د مهربانۍ له مخې شرعي حکم را ولیکئ؟

جزاکم الله تعالیٰ

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته سر دومره ټیټولی شي چه تر زمکې پورې یوه لویشت یا تر دې کمه فاصله پاتې کیږي نو په کومې خښتې یا میز باندې سجده لګول لازم دي، په اشارې سره ئې لمونځ نه کیږي په دې شرط چه داسې یو شی میسّر وي. که چیرته داسې کوم شی موجود نه وي یا ئې سر دومره نه شوای ټیټولی نو لمونځ ئې صحیح دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## له سجدې څخه په عاجز سړي باندې قیام فرض نه دی

**سوال**: یوه سړي د سترګو آپریشن کړی دی. ډاکټر په لمانځه کښې له رکوع او سجدې څخه منع کړی دی. دا سړی کښیني او په اشارې سره لمونځ کوي په داسې حال کښې چه دریدلی هم شي او د ډاکټر له خوا څخه په دریدلو هیڅ ممانعت نشته. آیا د نوموړي سړي په ناستې سره لمونځ کیږي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کوم سړی چه په سجدې باندې قادر نه وي له هغه څخه د قیام فرض ساقط دی. دی اختیار لري که د قیام په حالت کښې د سجدې لپاره اشاره کوي او که تر رکوع وروسته کښیني او اشاره کوي او که له پیل څخه په ناستې لمونځ کوي. آخري صورت ئې افضل دی. بیا منځنی صورت بیا لومړنی صورت.

قال فی شرح التنویر (وان تعذرا) لیس تعذرهما شرطا بل تعذر السجود کاف لا القیام (اومأ قاعداً) وهو افضل من الایماء قائماً لقربه من الارض، وفی الشامیة (قوله بل تعذر السجود کاف) نقله فی البحر عن البدائع و غیرها وفی الذخیرة رجل بحلقه خراج ان سجد سال وهو قادر علی الرکوع والقیام والقراءة یصلی قاعداً یؤمی ولو صلی قائماً برکوع وقعد واومأ بالسجود اجزأه والاول افضل لان القیام والرکوع لم یشرعا قربة بنفسهما بل لیکونا وسیلتین الی السجود اھ. (ردالمحتار ج۱ ص۵۱۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ شعبان ۱۳۹۹ هجری

# باب سجود التلاوة

## په لمانځه کښې د تلاوت د سجدې حکم

**سوال**: څه فرمائي د شرع مفتيانِ کرام په دې مسئله کښې چه په لمانځه کښې سجدهٔ تلاوت فی الفور يعنې سمدستي ضروري وي او که د څو آيتونو تر ويلو وروسته هم سجدهٔ تلاوت ادا کولی شي. او يو څوک د سجدې تر آيت وروسته څومره آيتونو تلاوت کولی شي.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سجدې تر آيت وروسته تر دريو آيتونو پورې تاخير جائز دی، د يوه قول مطابق تر دريو آيتونو پورې هم جواز لري او تر دې زيات تاخير جائز نه دی. اولنی قول ارجح او احوط دی. البته د سورت په آخر کښې په اتفاق سره تر دريو څلورو آيتونو پورې د تاخير گنجائش شته. په دې صورت کښې که د سجدې په آيت باندې سجده وکړي او پاتې سورت پوره کړي او رکوع وکړي هم صحيح دی او که د سجدې په آيت سجده و نه کړي او د سورت تر پوره کيدو وروسته رکوع وکړي هم صحيح دی. که چيرته د سورت په منځ کښې په قصد سره د سجدې تر آيت وروسته درې آيتونه ووائي نو د لمانځه بيرته را گرځول پرې واجب دي. په صلوة معاده (يعنې هغه لمونځ چه بيرته ئې را گرځوي) کښې دې همدغه آيت ووائي او د تلاوت سجده دې وکړي او که چيرته سهواً دومره تاخير ترې وشي نو په لمانځه کښې د ننه دې د سجدهٔ تلاوت قضائي را وگرځوي او په آخر کښې دې سجدهٔ سهو هم وکړي.

قال فی العلائیة فعلی الفور لصیرورتها جزءاً منها ویأثم بتأخیرها ویقضیها ما دام فی حرمة الصلوة ولو بعد السلام فتح. وفی الشامیة لانها وجبت بما هو من افعال الصلوة وهی القراءة وصارت من اجزائها فوجب اداؤها مضیقا کما فی البدائع ولذا کان المختار وجوب سجود السهو لو تذکرها بعد محلها الخ. (رد المحتار ج۱، ص۴۲۲) و قال فی شرح التنویر و تؤدی برکوع صلوة اذا کان الرکوع علی الفور من قراءة اٰية او اٰيتین و کذا الثلاث علی الظاهر کما فی البحر، ان نواه ای کون الرکوع لسجود التلاوة علی الراجح و تؤدی بسجودها کذلك ای علی الفور، وفی الشامیة تحت (قوله علی الظاهر کما فی البحر) وفی الامداد الاحتیاط قول شیخ الاسلام خواهر زاده بانقطاع الفور بالثلاث و قال شمس الائمة الحلوانی لا ینقطع ما لم یقرأ اکثر من ثلاث و قال کمال ابن الهمام قول الحلوانی هو الروایة اه قلت وصرّح فی المنیة بانه الاصح روایةً فان محمداً نص علی انه اذا بقی بعد السجدة اٰيات من اٰخر السورة ای کسورة الانشقاق وسورة بنی اسرائیل ان شاء ختم السورة ورکع لها وان شاء سجد لها ثم قام فاکمل السورة ثم رکع اه ومثله فی الفتح لکن فی البحر عن المجتبی ان الرکوع ینوب عنها بشرط النیة وان لا

يفصل بثلاث الا اذا كانت الثلاث من اٰخر السورة اهو مقتضاه ان الخلاف فيما فى وسط السورة وان هٰذه وفاقية و به صرح فى الحلية عن الاصل وغيره. نعم قال بعده ان الفرق غير ظاهر الوجه قلت قد يوجه بأن قراءة الثلاث من اٰخر السورة لا تفصل لانها اتمام للسورة و عدم رفض باقيها فكان فى قراءتها زيادة طلب فلم تفصل بخلاف الثلاث من وسط السورة فانه ليس فيها زيادة طلب لعدم ما ذكرنا فعدت فاصلة تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۴۲۳) فقط والله تعالٰى اعلم ۹ محرم ۱۳۸٦ هجرى

## لمونځ کوونکی چه له هغه سړي څخه چه په لمانځه کښې نه وي سجده واوري د هغه حکم

**سوال**: یوه سړي بغیر له لمانځه څخه د سجدې د آیت تلاوت کاوه او بل سړي کوم چه په لمانځه کښې وو د سجدې آیت واوریده. آیا په نوموړي لمونځ کوونکي اوریدونکي باندې د تلاوت سجده واجبه شوه او که نه؟ که چیرته واجبه وي نو کله به ئې ادا کوي؟ که چیرته ئې په لمانځه کښې ادا کړي نو سجدهٔ تلاوت ئې کیږي او که نه، همدارنگه په دې صورت کښې ئې لمونځ کیږي او که نه؟

دویم صورت دا چه یوه سړي د لمانځه په منځ کښې د سجدهٔ تلاوت آیت وایه او بل سړي کوم چه په لمانځه کښې وو یا نه وو لیکن د ویونکي مقتدي نه وو، تلاوت واورید نو داسې سړی به سجده کله کوي؟ که چیرته پخپل لمانځه کښې سجدهٔ تلاوت وکړي نو آیا ادا کیږي او که نه او همدارنگه لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لمونځ کوونکي اوریدونکي باندې سجدهٔ تلاوت واجب دی. له لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته دې سجدهٔ تلاوت وکړي. که چیرته په لمانځه کښې سجدهٔ تلاوت وکړي نو نه ادا کیږي تر لمانځه وروسته به ئې بیا ادا کوي او د لمانځه بیرته را گرځول هم پرې واجب دي. البته که چیرته اوریدونکی پخپله هم د همدې آیت تلاوت وکړي او په لمانځه کښې سجده هم وکړي نو دا سجده ئې ادا شوه او د لمانځه بیرته را گرځول هم پرې واجب نه دي.

که چیرته چا په لمانځه کښې د سجدهٔ تلاوت آیت په زوره ووایه نو بیا هم په اوریدونکي باندې سجدهٔ تلاوت واجب دی اگر که اوریدونکی په لمانځه کښې نه وي یا له تلاوت کوونکي څخه جلا په بل لمانځه کښې وي. اگر که منفرد وي یا د کوم بل امام مقتدي وي، که چیرته اوریدونکی هم په لمانځه کښې وي لیکن د تلاوت کوونکي مقتدي نه وي نو د دې هغه حکم دی کوم چه د سوال د لومړي شق په خواب کښې تیر شو. یعنې له لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته دې سجده وکړي. که چیرته په لمانځه کښې سجده وکړي نو سجده ئې نه ادا کیږي او لمونځ ئې هم واجب الاعاده گرځي

په دې شرط چه د سجدهٔ تلاوت د کولو په وخت کښې ئې د قاري د اقتداء نیت نه وي کړی، که چیرته ئې د اقتداء نیت وکړ نو لمونځ ئې فاسد شو او سجدهٔ تلاوت ئې هم ادا نه شو. او که چیرته له خپل لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته د تلاوت کوونکي اقتداء وکړي نو له هغه سره د سجدهٔ تلاوت ادا کول پرې واجب دي. اګر که له خپل لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته او له اقتداء څخه مخکښې ئې سجدهٔ کړې هم وي.

که چیرته اوریدونکي د تلاوت کوونکي د سجدهٔ تلاوت تر ادا کولو وروسته په همدې رکعت کښې اقتداء پسې وکړي د تلاوت سجده ئې له غاړې څُخه ساقطیږي او که په بل رکعت کښې اقتداء پسې وکړي نو سجده ئې له غاړې څخه نه ساقطیږي.

قال فی الدر ولو سمع المصلی السجدة من غیره لم یسجد فیها لانها غیر صلوتیة بل یسجد بعدها لسماعها من غیر محجور ولو سجد فیها لم تجزه لانها ناقصة للنهی فلا یتأدی بها الکامل واعاده ای السجود لما مر، الا اذا تلاها المصلی غیر المؤتم ولو بعد سماعها سراج دونها ای الصلوة لان زیادة ما دون الرکعة لا یفسد الا اذا تابع المصلی التالی فتفسد لمتابعته غیر امامه ولا تجزئه عما سمع تجنیس وغیره، وفی الشامیة تحت (قوله دونها الخ) والظاهر ان الاعادة واجبة لکراهة التحریم کما هو مقتضی النهی المذکور تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۷۲۵) وفی العلائیة و من سمعها من امام ولو باقتدائه به فائتم به قبل ان یسجد الامام لها سجد معه ولو ائتم بعده لا یسجد اصلاً، کذا اطلق فی الکنز تبعاً للاصل وان لم یقتد به اصلا سجدها و کذا لو اقتدی به فی رکعة أُخری علی ما اختاره البزدوی وغیره وهو ظاهر الهدایة، وفی الشامیة وبه جزم فی النقایة واصلاحها والفتح وشرح المنیة و کذا فی المواهب وقال انه الاظهر و تبعه فی نور الایضاح وقد علمت ان اطلاق الکنز والاصل محمول علیه و قد صرح صاحب الکنز بحمل اطلاقه علیه فی کتابه الکافی وصاحب الدر ادری. (رد المحتار ج۱، ص۷۲۲) فقط والله تعالی اعلم.

۱۸ ذی الحجة ۱۳۸۵ هجری

## له لمونځ کوونکي څخه د داسې سړي چه په لمانځه کښې نه وي د سجدهٔ تلاوت د اوریدلو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیانِ عظام په دې مسئله کښې چه چیرته په تراویح او داسې نورو لمونځونو کښې قرآن کریم تلاوت کیده لیکن یو سړی په دې لمانځه کښې شریک نه وو بلکه ناست وو. ذکر او داسې نور څه ئې کول یا کوم بل کار کاوه، په دې دوران کښې د سجدې آیت تلاوت شو لیکن نوموړي ته دا معلومات و نه شو چه ما د سجدې آیت

واوريده ليكن كله چه تولو لمونځ كوونكو سجده وكړه نو ده ته دا معلومات وشو اوس به دا سړى څه كوي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** كه چيرته په ذكر او داسې نورو كښې د مشغول والي له وجې ئې د سجدې آيت نه وي اوريدلى نو سجدهٔ تلاوت پرې واجب نه دى. او كه چيرته ئې آيت اوريدلى وي نو سجده پرې واجبه ده او له ځان سره دې سجده وكړي. په دې كښې به په امام پسې اقتداء نه كوي. البته كه چيرته په همدې ركعت كښې له امام سره په لمانځه كښې شريک شي نو سجدهٔ سهو ئې له غاړې ساقطيږي. او كه په بل ركعت كښې اقتداء پسې وكړي نو سجده ئې له غاړې څخه نه ساقطيږي بلكه له ځان سره به ئې ادا كوي فقط والله تعالیٰ اعلم ۳۰شوال ۱۳۹۸ھ هجرى

## د امام لپاره په ركوع كښې د سجدهٔ تلاوت د نيت كولو حكم

**سوال** : امام د سجدې د آيت تر تلاوت وروسته فوراً ركوع وكړه او په ركوع كښې ئې د سجدې نيت وكړ ليكن مقتديانو نيت و نه كړ. نو آيا د لمانځه په سجده كښې د مقتديانو د تلاوت سجده ادا كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې كښې اختلاف دى. د يوه قول مطابق د مقتدي سجده نه ادا كيږي. نه په ركوع كښې او نه په سجده كښې. له دې امله مقتدي دې تر سلام وروسته سجدهٔ تلاوت وكړي بيا دې قعده وكړي او سلام دې واړوي. ليكن راجح قول دا دى چه په ركوع كښې د امام نيت د مقتدي له خوا څخه هم كافي دى. د دې لپاره په ركوع كښې د امام او مقتدي دواړو سجده ادا كيږي. بهتره دا ده چه امام په ركوع كښې نيت و نه كړي تر څو چه د لمانځه په سجده كښې د امام او مقتدي دواړو له خلاف څخه پرته سجده ادا شي. او د مقتدي لپاره دا بهتره ده چه كه چيرته د سجدې علم ورته وشي نو په ركوع كښې دې نيت وكړي د دې احتمال له وجې چه ښائي امام نيت كړى وي.

قال فى العلائية ولو نواها فى ركوعه ولم ينوها المؤتم لم تجزه ويسجد اذا سلم الامام ويعيد القعدة ولو تركها فسدت صلوته كذا فى القنية وينبغى حمله على الجهرية نعم لو ركع وسجد لها فوراً ناب بلا نية. وفى الشامية وفى القهستانى واختلفوا فى ان نية الامام كافية كما فى الكافى فلو لم ينو المقتدى لا ينوب على رأى فيسجد بعد سلام الامام ويعيد القعدة الاخيرة كما فى المنية اه وايضاً فيها تحت (قوله وينبغى حمله على الجهرية) والاولى ان يحمل على القول بأن نية الامام لا تنوب عن نية المؤتم والمتبادر من كلام القهستانى السابق انه خلاف الاصح حيث قال على رأى فتأمل. (ردالمحتار ج ۱، ص ۶۲۳) فقط والله تعالیٰ اعلم

۳۰شوال ۱۳۸۲ھ هجرى

## د سجدې د ایت له ویلو څخه مخکښې چه سجده وکړي نو لمونځ واجب الاعاده دی

**سوال** امام دوه رکعته تراویح لمونځ ورکړ او داسې سورت ئې پکښې تلاوت کړ چه د سجدې آیت پکښې وو او په غلطۍ سره د سجدې د آیت له ویلو څخه مخکښې ئې سجده وکړه. لمونځ ئې پوره کړ. سلام ئې واړاوه او سجدهٔ سهو ئې و نه کړه. نو آیا لمونځ وشو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې صورت کښې د لمانځه بیرته را ګرځول واجب دي. د داسې سجدې چه واجبه نه وي د زیاتوالي له وجې ئې که سجدهٔ سهو هم کړې وای نو بیا به هم لمونځ واجب الاعاده وای ځکه چه دا سهو نه بلکه ناپوهي ده کوم چه عذر نه دی بلکه عمد دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۱ رمضان ۱۳۸٦ هجری

## له جُنب، حائضې، لیوني یا نابالغ څخه د سجدې د ایت د اوریدلو حکم

**سوال** له جنب. حائضې یا نفاسې ښځې. لیوني یا کوچني څخه چه د سجدې د آیت په اوریدو سره د تلاوت سجده واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** جنب سړی چه د سجدې آیت ووائي یا واوري نو سجدهٔ تلاوت پرې واجب دی

په حائضه. لیوني او نابالغ باندې سجده واجبه نه ده که ئې خپله ووائي یا ئې له چا څخه واوري

له جنب. حائضې او ممیّز کوچني (هغه کوچنی چه څه ناڅه د ښو او بدو فرق کولی شي) څخه د سجدې د آیت په اوریدونکي باندې سجده واجبه ده. له لیوني او غیر ممیّز کوچني د آیت په اوریدو سره سجده نه واجبیږي.

قال فی التنویر یجب علی من کان اهلا لوجوب الصلوٰة اداء او قضاء فلا تجب علی کافر وصبی ومجنون وحائض و نفساء قرءوا او سمعوا و تجب بتلاوتهم خلا المجنون المطبق. وفی العلائیة فی شرح قوله اداء او قضاء کالاصم اذا تلا والجنب والسکران والنائم وفی الشامیة عن الفتح تحت (قوله خلا المجنون) لان السبب سماع تلاوة صحیحة وصحتها بالتمییز ولم یوجد وهذا التعلیل یفید التفصیل فی الصبی فلیکن هو المعتبر ان کان ممیزا وجب بالسماع منه والا فلا اهـ واستحسنه فی الحلیة. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۰) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۷ رجب ۱۳۸۷ هجری

## د استفهام په غرض سره د سجدې د آیت د ویلو حکم

**سوال**: یوه سړي له بل سړي څخه پوښتنه وکړه چه فلانی آیت د سجدې دی او که نه؟ یا ئې د آیت کوم لفظ ووایه او پوښتنه ئې وکړه چه آیا په دې لفظ باندې به سجده او که په کوم لفظ باندې؟ آیا په دې سره د تلاوت سجده واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ئې د سجدې آیت پوره و نه وایه نو سجده تلاوت نه واجبیږي ځکه چه سجده د ټول آیت په ویلو سره واجبیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ رمضان ۱۳۸۸ هجری

## د سجدې آیت په تهجي یعنې په ټکو سره په ویلو سجده نه واجبیږي

**سوال**: که چیرته د سجدې آیت کوچنیانو په ټکي څوک ووائي نو آیا سجده پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پوره آیت په پرله پسې ویلو سره سجده واجبیږي، په تهجي سره نه واجبیږي

قال فی شرح التنویر یجب بسبب تلاوة آیة، وقال ابن عابدین رحمة الله علیه احترز عما لو کتبها او تهجاها فلا سجود علیه کما سیأتی. (ردالمحتار ج۱، ص۷۱۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ رمضان ۱۳۸۸ هجری

## د سجدې د آیت د ترجمې یا معنی دپوښتلو حکم

**سوال**: یوه سړي له کوم عالِم څخه د سجدې د آیت معنی یا ژباړه و پوښتله. آیا په دې سره هم سجده واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته پوره آیت ووایه او د ترجمې پوښتنه ئې وکړه نو سجده واجبه ده او که نه وي نو د نیم آیت په ویلو سره سجده نه واجبیږي. البته که چیرته د آیت ټکي په ټکي ترجمه وکړي نو په ترجمه کوونکي او د ترجمې په اوریدونکي واړو باندې به سجده واجبه وي. او د سجدې د آیت په تفسیر سره سجده نه واجبیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ رمضان ۱۳۸۸ هجری

## د حفظ په مدرسه کښې د کوچنیانو په تلاوت سره د سجدې حکم

**سوال**: د حفظ په کمره کښې چه کوم کوچنیان حفظ کوي آیا په دې سره هم سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په نابالغ کوچني باندې سجده واجبه نه ده، له کوچني څخه د

سجدې د آيت په اوريدو کښې دا تفصيل دی چه که چيرته کوچنی مميز يعنې د پوهې خاوند وي نو په اوريدونکي واجبه ده او له ډير کوچني څخه په اوريدلو واجبه نه ده.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ رمضان ۱۳۸۸ هجری

## د سجدې د آيت په ترجمې سره هم سجده واجبيږي

**سوال**: که چيرته يو څوک د سجدې آيت تلاوت نه کړي بلکه يواځې ئې ترجمه وکړي نو د ترجمې په کوونکي او اوريدونکي باندې سجده واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لفظي (ټکي په ټکي) ترجمې په کوونکي باندې سجده واجبه ده او اوريدونکي ته که چيرته دا معلومه وي چه د قرآنکريم ترجمه ده او په مطلب ئې هم پوه شي نو په هغه باندې هم سجده واجبه ده او که نه وي نو نه ده واجبه. دا حکم هلته دی چه کله ئې ترجمه ټکي په ټکې کړې وي، که چيرته د لفظي ترجمې په ځای د آيت تفسير وکړي نو په تفسير کوونکي او اوريدونکي په يوه باندې هم سجده نشته.

قال فی العلائية والسماع شرط فی غير التالی ولو بالفارسية اذا اخبر، وفی الشامية (قوله اذا اخبر) ای بانها اٰية سجدة سواء فهمها اولا، وهذا عند الامام وعندهما ان علم السامع انه يقرأ القراٰن لزمته والا فلا بحر، وفی الفيض وبه يفتی وفی النهر عن السراج ان الامام رجع الی قولهما وعليه الاعتماد اه والمراد من قوله ان علم السامع ان يفهم معنی الاٰية كما فی شرح المجمع حيث قال وجبت عليه سواء فهم معنی الاٰية اولا عنده وقالا ان فهمها وجبت والا فلا لانه اذا فهم كان سامعا للقراٰن من وجه دون وجه اه ملخصاً (رد المحتار ج۱، ص۷۱۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ رمضان ۱۳۸۸ هجری

## د سجدې آيت چه پوره ووائي نو سجده واجبيږي

**سوال**: آيا د سجدې د پوره آيت په ويلو سره سجده واجبيږي او که د څه برخې په ويلو سره ئې هم سجده واجبيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د پوره آيت په تلاوت سره سجده واجبيږي. که چيرته له آيت څخه يو لفظ هم پاتې شي نو سجده نه واجبيږي، بلکه که چيرته وروستنی آيت هم د سجدې له آيت سره تعلق ولري نو د دواړو آيتونو تر پوره تلاوت وروسته سجده واجبيږي.

قال فی شرح التنوير يجب بسبب تلاوة اٰية ای اكثرها مع حرف السجدة، وقال ابن عابدين رحمه الله هذا خلاف الصحيح الذی جزم به فی نور الايضاح ففی السراج وهل تجب السجدة بشرط قراءة جميع الاٰية ام بعضها

فيه اختلاف والصحيح انه اذا قرأ حرف السجدة وقبله كلمة او بعده كلمة وجب السجود والا فلا وقيل لا يجب الا ان يقرأ اكثر اية السجدة مع حرف السجدة ولو قرأ اية السجدة كلها الا الحرف الذى فى اخرها لا يجب عليه السجود اه لكن قوله ولو قرأ اية السجدة الخ يقتضى انه لابد من قراءة الأية بتمامها كما يفهم من اطلاق المتون و يأتى قريباً ما يؤيده الا ان يقال سياق الأية قرينة على ان المراد بقوله الا الحرا لخ الكلمة التى فيها مادة السجود و اطلاق الحرف على الكلمة شائع فى عرف القراءة (و بعد اسطر) ان السبب تلاوة اية تامة كما هو ظاهر اطلاق المتون وان المراد بالاية ما يشمل الأية والأيتين اذا كانت الثانية متعلقة بالأية التى ذكر فيها حرف السجدة (وبعد اسطر) وبه ظهر ان ما فى السراج خلاف المذهب الذى مشى عليه الشراح والمتون تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۷۱۶) فقط والله تعالى اعلم ۱۹ رمضان ۱۳۸۸ هجرى

## چه چیرته د سجدې له آیت څخه تر یوه آیت وروسته سجده لیکلې وي د هغه حکم

**سوال**: کله کله له حرف دال على السجده (هغه حرف چه په سجدې باندې دلالت کوي) څخه تر یوه آیت وروسته سجده لیکلې وي. په داسې صورت کښې به په کوم ځای باندې سجده باید وشي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دویم آیت دې پوره ووائي بیا دې سجده وکړي. که چیرته ئې په لومړي آیت باندې سجده وکړه نو سجده ئې نه ادا کیږي.

قال فى الشامية ان المراد بالأية ما يشمل الأية و الأيتين اذا كانت متعلقة بالأية التى ذكر فيها حرف السجدة (الى ان قال) انه لا يجب السجود فى سورة حم السجدة الا عند انتهاء الأية الثانية احتياطاً كما صرح به فى الهداية و غيرها لان الوجوب لا يكون الا بعد وجود سببه فلو سجدها بعد الأية الاولى لا يكفى لانه يكون قبل سببه. (رد المحتار ج۱، ص۷۱۶) فقط والله تعالى اعلم ۱۹ رمضان ۱۳۸۸ هجرى

## د سجدې د آیت په لیکلو سره سجده نه واجبیږي

**سوال**: که چیرته د سجدې آیت ولیکي لیکن په ژبې سره ئې تلاوت نه کړي نو سجده پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: یوازې د سجدې د آیت په لیکلو سره سجده نه واجبیږي

قال فى التنوير و يجب بتلاوة اية، وقال ابن عابدين رحمه الله عليه احترز عما لو كتبها او تهجاها فلا سجود عليه كما

سيأتي.(ردالمحتار ج۱،ص۵۱۶) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ رمضان ۱۳۸۸ هجری

## د اُستاذ او شاگرد د يوه آيت بار بار د اورولو حکم

**سوال**: يو اُستاذ خپل شاگرد ته قرآنکريم ور زده کوي. که چيرته د سجدې آيت راشي او د دې ضرورت پيښ شي چه بار بار ئې ورته ووائي نو آيا يوه سجده واجبيږي او که دوه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته يو آيت په يوه مجلس کښې څو څو ځله تلاوت کړي او يا ئې واوري نو يوه سجده واجبيږي.

قال في الشامية تحت (قوله بشرط اتحاد الأية والمجلس) وان اجتمع التلاوة والسماع ولو من جماعة ففي البدائع لا يتكرر ولو اجتمع سببا الوجوب وهما التلاوة والسماع بأن تلاها ثم سمعها او بالعكس او تكرر احدهما اه وفي البزازية سمعها من اٰخر ومن اٰخر ايضاً وقرأها كفت سجدة واحدة في الاصح لاتحاد الأية والمكان اه ونحوه في الخانية فعلى هذا لو قرأها وسمعها بعضهم من بعض كفتهم واحدة. (ردالمحتار ج۱،ص۵۲۷) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۰ هجری

## له لاسپيکر څخه د سجدې د ايت د اوريدلو حکم

**سوال**: په تراويحو کښې له حافظ څخه هغو خلکو چه په لمانځه کښې نه وو هم د سجدې آيت واوريدل نو آيا په هغو باندې سجده واجبيږي او که نه؟ اگر که هغوی ته د سجدې آيت معلوم وي يا نه وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: راجحه دا ده چه له لاسپيکر څخه اوريدل شوی آواز پخپله د تلاوت کوونکي آواز دی. د صدي د آواز غوندې د متکلم (خبرې کوونکي) د آواز نقل نه دی. د دې لپاره له لاسپيکر څخه په اوريدونکي باندې هم سجدهٔ تلاوت واجبيږي. البته که چيرته اوريدونکو ته د سجدې د آيت علم نه وي نو په هغو باندې سجده نشته.

قال في الشامية لا يجب على الاعجمي مالم يعلم كما في الفتح اى وان لم يفهم. (ردالمحتار ج۱،ص۵۱۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ رجب ۱۳۹۰ هجری

## له تلويزون څخه د سجدې د آيت د اوريدلو حکم

**سوال**: په تلويزون يا راديو باندې چه کوم تلاوت کيږي يا په تراويحو کښې چه د قرآنکريم کوم ختم برې خپريږي او ښکاره ول کيږي د دې په اوريدونکو باندې سجدهٔ تلاوت واجبيږي او که نه؟ همدا رنگه سب ريکارډ په دې کښې څه حکم لري؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : له ټیپ ریکارډ څخه په اوریدو سره سجدهٔ تلاوت نه واجبیږي. د دې لپاره په تلویزون او رادیو باندې که چیرته له ټیپ څخه اوریدل کیده نو بیا هم نه واجبیږي او که چیرته مخامخ د قاري آواز وي نو بیا واجبیږي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ ذیقعده ۱۳۹۸ هجری

## د سجدې یو آیت چه په یوه مجلس کښې له ګڼ شمیر خلکو څخه واریدل شی

**سوال** : څه فرمائي د دین علماء کرام په دې مسئله کښې شاګرد یو آیت تلاوت کړ. استاذ واوریده. بیا همدارنګه استاذ تلاوت کړ شاګرد واوریده. یا استاذ له څو شاګردانو څخه همدغه یو آیت واوریده نو آیا په دې صورت کښې به په هغوی باندې ګڼ شمیر سجدې وي او که یوه سجده به کافي وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ګڼو سجدو لپاره ضروري دا ده چه سببونه ګڼ وي یا د مکان اختلاف وي. دلته خو نه تعددِ سبب شته او نه د مکان اختلاف. د دې لپاره یوه سجده به کافي وي.

قال فی الشامیة تحت (قوله بشرط اتحاد الأیة والمجلس) وفی البزازیة سمعها من اٰخر ومن اٰخر ایضاً وقرأها کفت سجدة واحدة فی الاصح لاتحاد الأیة والمکان اھ ونحوه فی الخانیة فعلی هٰذا لو قرأها جماعة وسمعها بعضهم من بعض کفتهم واحدة. (ردالمحتار ج۱، ص۷۲۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ ربیع الاول ۱۳۹۹ هجری

## د سجدهٔ تلاوت په نیت کښې تعیین ضروري نه دی

**سوال** : د زید په ذمې باندې د تلاوت څو سجدې پاتې دي. آیا د هغو د ادا کولو په وخت کښې دا نیت ورته ضروري دی چه دا سجده د فلاني آیت سجده ده او که یواځې د سجدهٔ تلاوت نیت کافي دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: یواځې د سجدهٔ تلاوت نیت کافي دی. د آیت تعیین ضروري نه دی.

قال فی العلائیة بشروط الصلٰوة المتقدمة خلا التحریمة ونیة التعیین وفی الشامیة ای تعیین انها سجدة اٰیة کذا نهر عن القنیة واما تعیین کونها عن التلاوة فشرط کما تقدم فی بحث النیة من شروط الصلٰوة الا اذا کانت فی الصلٰوة وسجدها فوراً کما علمته. (ردالمحتار ج۱، ص۷۱۸) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۱ ربیع الاول ۱۳۹۹ هجری

## د امام په سجدهٔ تلاوت باندې مقتدي رکوع ته د تللو حکم

**سوال** : امام صاحب د مازدیګر په لمانځه کښې د انشقاق سورت ولوست او د سجدې په آیت باندې ئې سجده وکړه لیکن مقتدیان د غلط فهمۍ له مخې رکوع ته ولاړل. خینې چه پوه شول هغو

سجده وکړه او څینو د امام په را پورته کیدو سره له رکوع څخه بیرته ودریدل. د دوی د لمانځه او سجدهٔ تلاوت حکم څه دی؟ آیا لمونځونه او سجدهٔ تلاوت ئې وشو او که نه؟

**الجواب**: امام ته داسې کول جائز نه وو. په مقتدیانو کښې انتشار. د هغوی په لمانځه کښې خلل بلکه فساد او د هغوی لپاره د سجدې د هیڅ یوه صورت نه پاتې کیدلو د خطر د پیدا کولو ګناه به په امام باندې وي. صحیح طریقه دا وه چه امام سورت پوره کولی او رکوع ئې کولی او په رکوع کښې ئې د سجدې نیت نه وای کړی. تر دې وروسته د لمانځه په سجده کښې د امام او مقتدیانو د ټولو سجدهٔ تلاوت ادا کیدلی. په سورهٔ انشقاق کښې د سجدې تر آیت وروسته اګر که ځلور آیتونه دي لیکن د سورت د پوره کولو لپاره د دې ګنجائش شته چه سورت پوره کړي او بیا رکوع وکړي. **كذافى الشامية.**

د سوال په صورت کښې په مقتدیانو لازمه وه چه په خبریدو باندې ئې رکوع پریښې او سجده ئې کړې وای بلکه له رکوع وروسته هم په خبریدو سره ئې سجدهٔ تلاوت ادا کړی او د امام اتباع ئې کړی وای. کومو خلکو چه سجده نه ده کړې د هغو لپاره د سجدې د ادا کولو هیڅ صورت نشته. د واجبو د پریښودو ګناه به په امام باندې وي. که چیرته کوم مقتدي د اشتباه په حالت کښې تر رکوع وروسته د لمانځه سجده هم کړې وي نو د دې په ضمن کښې د هغه سجدهٔ تلاوت ادا شو او که چیرته ئې د لمانځه دویمه سجده هم کړې وي نو لمونځ ئې فاسد یږي.

**قال فى شرح التنوير ولو سجد لها فظن القوم انه ركع فمن ركع رفضه و سجد لها ومن ركع و سجد سجدة اجزأته عنها ومن ركع و سجد سجدتين فسدت صلوته لانه انفرد بركعة تامّة.(ردالمحتار ج۱،ص۴۲۲)**

**فقط والله تعالىٰ اعلم** ۱۶ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## د تلاوت سجده بې له اوداسه جائزه نه ده

**سوال**: آیا د تلاوت سجده بې له اوداسه څخه به جائزه وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه! جائزه نه ده. **فقط والله تعالىٰ اعلم** ۷ ذی قعده ۱۳۹۹ هجری

## په سورلۍ باندې د سجدې د ایت تکرار

**سوال**: په روانې سورلۍ کښې یوه چا د سجدې آیت تکرار کړ نو آیا یوه سجده پرې واجبیږي او که چه څه خله ئې تکرار کړې وي هغومره سجدې پرې واجبیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په اس، اوښ او هر ډول ګاډی او داسې نور چه د وچې سورلۍ وي په هغې باندې چه د لمانځه په منځ کښې د سجدې تکرار وشي نو یوه سجده واجبیږي او بې له لمانځه په تکرار سره هم هغومره سجدې واجبیږي چه څومره ئې تکرار وشي. په کشتۍ یا بیړۍ

کښې په هر صورت کښې د آیت په تکرار سره یوه سجده واجبیږي که په لمانځه کښې وي یا خارج نه لمانځه څخه وي په کشتۍ کښې د سجدې د تکرار له تعلیل څخه څرګندیږي چه په بحري بیړۍ او هوائي جهاز کښې د آیت په تکرار سره د سجدې تکرار واجب دی.

لان سیرهما مضاف الیه کالسیارة. قال فی التنویر وانتقاله من غصن الی اُخر وسبحه فی نهر او حوض تبدیل فتجب اخرٰی وفی العلائیة بخلاف زوایا مسجد وبیت وسفینة سائرة وفعل قلیل کاکل لقمتین وقیام ورد سلام وکذا دابة یصلی علیها لان الصلوٰة تجمع الاماکن ولو لم یصل تتکرر. وفی الشامیة لان سیرها مضاف الیه حتی یجب علیه ضمان ما اتلفت بخلاف سیر السفینة ح عن الدرر. (رد المحتار ج۱،ص۷۲۸) فقط والله تعالیٰ اعلم

۳۰ ربیع الاول ۱۳۸۶ هجری

## په سورت صٓ کښې د تلاوت د سجدې مقام

**سوال** په قرآنکریم کښې په سورهٔ سجده باندې د "اناب" په لفظ باندې سجده لیکل شوې ده لیکن د حضرت مفتي کفایت الله صاحب فتویٰ دا ده چه سجده په "مآب" باندې ده. د دې تحقیق وکړئ. د حضرت مفتي صاحب د فتویٰ فوټو کاپي مې هم در لیږلې ده. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د حضرت مفتي کفایت الله صاحب رحمه الله ځواب صحیح دی. په دې کښې دواړه قوله دي لیکن په دویم آیت باندې په سجده کولو کښې احتیاط دی ځکه دا قول راجح دی.

قال ابن عابدین رحمه الله وفی صٓ عند وَحُسْنَ مَاٰب وهو اولی من قول الزیلعی عند واناب لما نذکره وفی حٰم السجدة عند وَهُمْ لَا یَسْئَمُوْنَ (الی قوله) لانها وجبت عند تعبدون فالتأخیر الی یسأمون لا یضر بخلاف العکس لانها تکون قبل وجود سبب الوجوب فتوجب نقصانا فی الصلوٰة لو کانت صلوٰتیة ولا نقص فیما قلناه اصلاً کذا فی البحر عن البدائع. امداد ملخصاً (رد المحتار ج۱،ص۷۱۶) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۵ رجب ۱۳۹۸ هجری

## په لمانځه د تلاوت د سجدې د هیریدلو حکم

**سوال** په لمانځه کښې یوه چا د سجدې آیت وواېه لیکن سجده ئې هیره شوه او سلام ئې واړاوه اوس په باید وکړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته تر سلام اړولو وروسته ور په زړه شي نو سجدهٔ تلاوت دې وکړي. التحیات دې دوباره ووائي بیا دې سجدهٔ سهو وکړي او د قاعدې مطابق دې خپل لمونځ پوره کړي. که چیرته د سجدې د آیت له دوو یا زیاتو آیتونو وروسته په لمانځه کښې د ننه

وریاده شي نو بهتره دا ده چه فوراً سجده وکړي. په کوم رکن کښې چه د سجدې ور په زړه کیدلو باندې ئې سجدهٔ کړې وي د هم هغه رکن بیرته را ګرځول مستحب دي د لمانځه تر آخره پورې د سجدې تاخیر هم جائز دی. البته د آخرې قعدې په منځ یا تر قعدې وروسته چه سجده وکړي نو د قعدې بیرته را ګرځول فرض او د تشهد له سره ویل واجب دي او په هر صورت کښې سجدهٔ سهو پرې واجبه ده. **کذا فی خر باب الاستخلاف من الشامیة.**

که چیرته ئې په سجدهٔ تلاوت کښې په قصد سره له دوه آیتونو څخه زیات تاخیر وکړ نو د لمانځه بیرته را ګرځول پرې واجب دي. سجدهٔ سهو ورته کافي نه ده

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ رمضان ۱۳۹۸ هجری

# باب صلوٰة المسافر

## د اقامت وطن ته نژدې د شپې تیرولو حکم

**سوال**: یوه مسافر په تهیرې نومې ځای کښې اقامت وکړ. دی پیرې لګوي او رخت یا کپړه خرڅوي. یوه شپه ئې په خیر پور کښې تیره کړه. هلته ئې د ماسخوتن لمونځ پوره څلور رکعته ادا کړ. دی وائي چه زه په تهیرې نومې ځای کښې مقیم یم او له تهیرې څخه تر خیر پور پورې مسافه د سفر نه ده. په دې باره کښې ستاسو څه فتویٰ ده آیا د مقتدیانو لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ئې یواځې په تهیرې کښې کم تر کمه د پنځلسو شپو تیرولو نیت کړی وي نو تهیرې د ده د اقامت وطن شو. تر دې وروستې چه کله له تهیرې څخه د شرعي سفر په ارادې سره و نه ووځي نو په تهیرې او په شاو خوا کښې به ئې پوره لمونځ کوي. له دې امله په خیر پور کښې د ده پوره لمونځ ادا کول صحیح دي. قصر ورته جائز نه دی.

**قال فی شرح التنویر ویبطل وطن القامة بمثله وبالوطن الاصلی وبانشاء السفر وفی الشامیة عن الکافی والتتارخانیة خراسانی قدم بغداد لیقیم بها نصف شهر ومکی قدم الکوفة کذٰلك ثم خرج کل منهما الی قصر ابن هبیرة فانهما یتمان فی طریق القصر لان من بغداد الی الکوفة اربعة ایام والقصر متوسط بینهما الخ. (رد المحتار ج۱، ص۶۳۳) فقط والله تعالیٰ اعلم غرۂ رجب ۱۳۷۳ هجری**

## د ماښام د لمانځه په کولو سره هوائي جهاز ته ور سپریدل او د لمر دوباره په نظر راتللو حکم

**سوال**: یوه سړي د ماښام لمونځ ادا کړ او طیارې ته ور وخوت. طیاره د مغرب خوا ته دومره تیزه لاړه چه لمر دوباره په نظر راغی. نو آیا په ده باندې به دوباره د ماښام لمونځ واجب وي او که نه؟ همدارنګه که چیرته روژتي روژه ماته کړې وي نو روژه ئې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

الجواب باسم ملهم الصواب: د ماښام لمونځ دوباره ادا کول واجب نه دي. روژه هم صحیح شوه، لیکن له قواعدو څخه څرګندیږي چه تر دوباره غروب پورې امساک (څه شي نه خوړل) واجب دی.

**قال فی شرح التنویر فلو غربت ثم عادت هل یعود الوقت الظاهر نعم، و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله الظاهر نعم) بحث صاحب النهر حیث قال ذکر الشافعیة ان الوقت یعود (الی قوله) قلت علی ان الشیخ اسمٰعیل**

ردما بحثه فی النهر تبعاً للشافعیة بأن صلوٰة العصر بغیبوبة الشفق تصیر قضاءً و رجوعها لا یعیدها اداءً و ما فی الحدیث خصوصیة علی رضی الله تعالیٰ عنه کما یعطیه قوله علیه الصلوٰة و السلام انه کان فی طاعتك و طاعة رسولك اھ قلت و یلزم علی الاول بطلان صوم من افطر قبل ردها و بطل صلوٰة المغرب لو سلمنا عود الوقت بعودها للکل والله اعلم. (رد المحتار ج۱، ص۳۳۴) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربیع الاول ۱۳۸۶ هجری

## په هوائي سفر کښې چه ورځ ډیره لویه یا ډیره کوچنۍ شي نو په دې صورت کښې د لمانځه او روژې حکم

**سوال**: زید د هوائي جهاز په ذریعې سر د مغرب په سمت روان دی او لمر با لکل غروب نه کوي نو لمونځ به څه ډول ادا کوي او روژه به کله ماتوي؟ یا د دې برعکس که چیرته د مشرق په طرف روان وي کوم چه ورځ ئې ډیره کوچنۍ پاتې کیږي. په دې صورت کښې به ئې د لمانځه او روژې په اړه څه حکم وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله حدیث الدجال) قال الرملی فی شرح المنهاج و یجری ذٰلك فیما لو مکثت الشمس عند قوم مدة اھ قال فی امداد الفتاح قلت و کذٰلك یقدر لجمیع الآجال کالصوم و الزکوٰة و الحج و العدة و آجال البیع و السلم و الاجارة و ینظر ابتداء الیوم فیقدر کل فصل من الفصول الاربعة بحسب ما یکون کل یوم من الزیادة و النقص کذا فی کتب الائمة الشافعیة و نحن نقل بمثله اذ اصل التقدیر مقول به اجماعا فی الصلوات اھ (و بعد اسطر) و فی هٰذا الحدیث ان لیلة طلوعها من مغربها تطول بقدر ثلاث لیال لکن ذٰلك لا یعرف الا بعد مضیها لا بهامها علی الناس فج قیاس ما مرّ انه یلزم قضاء الخمس لان الزائد لیلتان فیقدر ان عن یوم و لیلة و واجبهما الخمس.

وقال ایضاً تحت قوله فقد الامران (تتمه) لم ار من تعرض عنه عندنا لحکم صومهم فیما اذا کان یطلع الفجر عندهم کما تغیب الشمس او بعده بزمان لا یقدر فیه الصائم علی اکل ما یقیم بنیته و لا یمکن ان یقال بوجوب موالاة الصوم علیهم لانه یؤدی الی الهلاك فان قلنا بوجوب الصوم یلزم القول بالتقدیر و هل یقدر لیلهم باقرب البلاد الیهم کما قاله الشافعیة هنا ایضاً ام یقدر لهم بما یسع الاکل و الشرب ام یجب علیهم القضاء فقط دون الاداء کل محتمل فلیتأمل. (رد المحتار ج۱، ص۳۳۶)

له دغو عبارتونو څخه ثابته شوه چه د مغرب په طرف تلونکی سړی که چیرته په څلور ویشتو ساعتونو کښې پنځه لمونځونه پخپلو وختونو کښې ادا کولی شوای نو هر لمونځ دې د خپل وخت

په داخلیدو سره ادا کړي او که چیرته ورخ دومره اوږده شي چه په څلور ویشتو ساعتونو کښې د پنځو لمونځونو وخت نه راتلو نو په عامو ورځو کښې د لمانځه د وختونو تر منځ دې د جلاوالي اندازه ولګوي او د هغه مطابق دې لمونځونه وکړي همدا حکم د روژې هم دی چ که چیرته د سهار له ختو څخه را واخله په څلور ویشتو ساعتونو کښې لمر ډوبیده نو له ډوبیدو وروسته دې افطار وکړي په کومو ملکونو کښې چه په مستقله توګه ورځې دومره اوږدې شي چه په څلورویشتو ساعتونو کښې د کفایت په اندازه د خوراک او څښاک وخت پیدا کیږي نو په هغو کښې له ډوبیدو مخکښې د افطار اجازه نشته نو په عارضي توګه شاذ او نادر د یوې ورځې په اوږدوالي خو په طریقهٔ اولی سره به د دې اجازه نه وي البتي که چیرته په څلور ویشتو ساعتونو کښې د ننه لمر ډوب نه شي د څلور ویشتو ساعتونو څخه په دومره وخت کښې چه د ضرورت په اندازه خوراک او څښاک وکولی شي نو افطار دې وکړي که چیرته د صبح صادق د ابتداء په وخت کښې هم په سفر کښې وو نو په هغه باندې روژه فرض نه ده وروسته دې بیا قضائي راوړي او که چیرته په دې وخت کښې مسافر نه وو نو روژه نیول ورته فرض دي او چه د دومره اوږدې روژې برداشت و نه لري نو سفر ورته ناجائز دی

کوم سړی چه د مشرق خوا ته روان وي او د لمانځه وختونه پرې تیریږي نو په دغو وختونو کښې به لمونځونه ادا کوي او روژه به تر لمر ډوبیدو وروسته ماتوي څکه چه روژه د سهار له را ختو څخه تر لمر ډوبیدو پورې امساک ته ویل کیږي

**قال فی التنویر هو امساك عن المفطرات حقیقةً او حکماً فی وقت مخصوص، و فی الشرح و هو الیوم، و فی الحاشیة ای الیوم الشرعی من طلوع الفجر الی الغروب.(ردالمحتار ج۲،ص۸۸)**

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربیع الاول ۱۳۸۶ هجری

## په سفر کښې د سنتو د ادا کولو حکم

**سوال** آیا د مسافر لپاره د رواتبو (مؤکدو) سنتو پریښودل جائز دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د بیړې په صورت کښې د سهار له سنتو پرته د نورو سنتونو پریښودل جائز دي د اطمینان او آرام په حالت کښې د مؤکدو سنتونو ادا کول ضروري دي له نبي کریمﷺ څخه په سفر کښې د سنتونو ادا کول ثابت دي (اعلاء السنن ج۷،ص۱۹۳)

**و قال فی العلائیة و یأتی المسافر ان کان فی حال امن و قرار و الا بأن کان فی خوف و فرار لا یأتی بها هو المختار لانه ترك العذر تجنیس، قیل الا سنة الفجر.(ردالمحتار ج۱،ص۷۴۲)**

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الاولی ۱۳۸۶ هجری

## د ښار له حدودو څخه په وتلو باندې د قصر حکم شروع کيږي

**سوال** : د سفر حکم له کومه ځايه شروع کيږي؟ آيا له خپل کلي څخه په وتو باندې او که د ښار له ټولې آبادۍ څخه تر وتلو وروسته شروع کيږي؟

يو سړی له دويم نمبر کورنګي څخه په سفر روانيږي آيا په ستي سټيشن باندې به د قصر لمونځ کوي او که نه؟ او همدارنګه چه بيرته راځي نو په لانډي سټيشن باندې به قصر کوي او که نه په داسې حال کښې چه دويم نمبر کورنګي ته تر رسيدو پورې د لمانځه وخت ختميږي؟ په وضاحت سره ئې بيان کړئ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ښار له کومې خوا څخه چه د سفر په نيت ووځي د هغې خوا له له مکانونو څخه په وتلو باندې د قصر حکم شروع کيږي. له مکانونو څخه مراد آباد مکانونه دي. غير آباد او کنډوالې اوعتبار نه لري. همدارنګه د بيرته راتلو په وخت کښې د مکانونو په حدودو کښې په داخليدو باندې د قصر حکم ختميږي. مکانونه که پاخه وي يا کچه يا له ښار سره لګيدلي د لوخو او داسې نورو څپرې وي. بلکه له څپريو څخه وروسته له هغو سره لګيدلی کلی هم د همدې ښار په حکم کښې راځي.

که چيرته د ښار د فناء (دښار ضروريات لکه قبرستان. د منډې ترړې او د ګندګيو او داسې نورو لپاره د ټاکل شوی ميدان تر منځ که چيرته زرعي (د کرنې) زمکه حائله نه وي او له عمارتونو څخه د غلوه په اندازه (۱۳۷/۱۶متر) څخه په کمې فاصلې باندې وي نو د ښار له فناء څخه به هم تر تيريدو وروسته به د قصر حکم وي. البته تر داسې فناء وروسته له هغې سره لګيدلی کلی اعتبار نه لري. د ښار په فناء کښې د جُمعې د صحت لپاره عدم المزارع او د غلوه اندازه شرط نه ده. يو اخې د قصر د حکم لپاره دا شرط په شامي باب المسافر کښې د غلوه د اندازه له عدم اعتبار څخه مقصد دا دی چه پخپله فناء د غلوه په قدر سره مقيد نه وي. له ښار څخه جلا والی په اندازه د غلوه معتبر دی.

که چيرته د ښار د سفر د طرف مکانونه پای ته ورسيدل ليکن د لارې له کومې يوې خوا څخه لرې کوم کلی دې خوا ته را رسيدلی وي نو هغه اعتبار نه لري. البته که د لارې دواړو خواوو ته دا ډول آبادي وي نو د هغو له محاذات څخه تر وتلو وروسته به د قصر حکم وي.

د کراچۍ آبادي (عمارتونه) غالباً تر ډرګ روډ پورې رسيدلي دي. په ستي اسټيشن او لانډهي سټيشن باندې په هر صورت کښې قصر جائز نه دی بلکه پوره لمونځ به کيږي وهذا خلاصة ماهو مشروح في العلائية والشامية.

فقط والله تعالی اعلم
غرهٔ رجب ۱۳۸۷ هجری

## کومه آبادي چه له ښار سره لګيدلې نه وي هغه مستقله ده

**سوال**: يو سړی له لاهور څخه لرې په پنځلس ميله مضافاتو کښې اوسيږي. د ده د کور په څلور ميله مسافه کښې د بسونو د دريدو ځای دی. اوس دی به له کوم ځای څخه مسافر ګڼل کيږي له لومړي استيشن څخه او که له دويم څخه؟ آبادي پرله پسې تر دويم استيشن پورې لګيدلې دي او که چيرته آبادي بنده هم شي نو د دې ځای په عرف او عادت کښې دا ځای په لاهو کښې شميرل کيږي. نو بيا به څه حکم وي؟ يعنې د سفر او اقامت حکم به د ضلع په اعتبار سره وي او که د کلي او کورونو په اعتبار سره. يعنې په کوم کلي کښې چه دی اوسيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته له دې کلي څخه تر ښار پورې پرله پسې آبادي نه وي بلکه د غلوه په اندازه (۱۳۷/۱۶متره) يا له دې څخه زياته خلا (خالي ځای) وي، يا په منځ کښې زرعي زمکې وي نو دا ځانته مستقله آبادي ګڼل کيږي. د دې آبادۍ له کورونو څخه په وتلو باندې د قصر حکم شروع کيږي. او که چيرته له ښار سره لګيدلی وي اګر که د ښار له کچه کورونو يا د څپرو، لوخو او داسې نورو سره متصل وي نو دا په ښار کښې داخل دی. د دې لپاره د ښار له حدودو څخه د باندې په وتلو سره به مسافر ګڼل کيږي.

ستيشن (د بسونو د دريدلو ځای) که چيرته له ښار سره لګيدلی وي يعنې په منځ کښې زرعي زمکه يا (۱۳۷/۱۶متره) خالي ځای نه وي نو په دې باندې د قصر حکم نشته.

**قال ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله من خرج من عمارة موضع اقامته) واشار الى انه يشترط مفارقة ما كان من توابع موضع الاقامة كربض المصر وهو ما حول المدينة من بيوت ومساكن فانه فى حكم المصر وكذا القرى المتصلة بالربض فى صحيح. (وبعد سطر) واما الفناء وهو المكان المعد لمصالح البلد كركض الدواب ودفن الموتى والقاء التراب فان اتصل بالمصر اعتبر مجاوزته وان انفصل بغلوة او مزرعة فلا. (الى قوله) والقرية المتصلة بالفناء دون الربض لا تعتبر مجاوزتها على الصحيح كما فى شرح المنية. (ردالمحتار ج۱،ص۷۳۲)**

د فقهې په عبارتونو کښې د آبادۍ د اتصال هيڅ معيار مې تر نظر تير نه شو. په ظاهره د دې مدار په ظاهري رؤيت باندې دی يعنې چه په کتلو سره اتصال (پيوست والی) په نظر راشي ليکن د زرعي زمکو او د غلوه پ اندازه خلا په هر صورت کښې د انقطاع (بيلوالي) موجب دی. ځکه چه د مصر فناء د جُمعې د صحت لپاره اګر که مطلقاً د مصر (ښار) په حکم کښې دی ليکن د قصر په حکم کښې د زرعي زمکې او په قدر د غلوه موجودوالی له ښار سره د لګيدلو مانع دی. حالانکه فناء د ښار له متعلقاتو څخه دی نو په مستقل کلي کښې خو به دا جلا والی په طريقهٔ اولی سره د الحاق (د ښار سره د لګيدلو) مانع وي. البته د مذکور جلا والي تر څنګ که چيرته په عام عرف او

عادت کښي دوه ځايونه د يوه ښار دوه کلي بلل کيدل نو حکم به ئې بيا د يوه وي د ريل ګاډي استيشن د ښار په فناء کښي داخل دی. فقط والله تعالیٰ اعلم. ۱۸ ذی الحجة ۱۳۸۸ هجری

## په بندرګاه باندې د قصر د حکم تفصيل

**سوال**: زمونږ ښار د دريا په څنډې باندې پروت دی. فاصله ئې تقريباً له پنځوسو ګزونو څخه زياته نه ده. او په درياب کښې کښتی تقريباً له سلو څخه تر درې سوه ګزونو په فاصلې باندې د اوبو د لږ ژوروالي له وجې دريږي. دا له مخکښينی زماني څخه مشهوره بندرګاه ده. آيا له دې بندرګاه څخه د قصر حکم شروع کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بندرګاه د ښار فناء ده. حکم ئې دا ده چه له ښار څخه يو سل پنځوس ګزه = ۱۳۷/۱۶ مترو څخه په کمې فاصلې باندې وي او په منځ کښې د کرنې زمکه نه وي نو د قصر حکم به شروع کيږي. پس د دې بندرګاه مخې ته د درياب په کناره يا څنډې باندې که چيرته کومه آبادي وي او هغه له ښار څخه پنځوس ګزه او له دې بندرګاه څخه په سل ګزه کښې وي. په منځ کښې ۱۳۷/۱۶ متره خلا نه وي د دې لپاره دا د ښار په حکم کښې دی او که چيرته د درياب په کنارې باندې کوم کور يا آبادي په همدې طرف نه وي نو له ښار څخه د ۱۳۷/۱۶ متره د خلا د موجودوالي له وجې دلته د قصر حکم دی. **قال فی الشامیة واما الفناء وهو الموضع المعد لمصالح البلد کرکض الدواب ودفن الموتی والقاء التراب فان اتصل بالمصر اعتبر مجاوزته وان انفصل بغلوة او مزرعة فلا.**

(ردالمحتار ج۱، ص۷۳۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ رمضان ۱۳۹۱ هجری

## د آبادۍ د اتصال (سره لګيدلو) معيار

**سوال**: پنجګور يو تحصيل يعنې ولسوالي ده چه دولس علاقې لري. دا ځايونه له يوه او بل څخه يو ميل، يو نيم ميل، دوه ميله په فاصلې باندې واقع دي. هر يو ځای پوره پوره آبادۍ لري. په کومې رقبې کښې چه دا ځايونه پراته دي هغو ټولو ته د پنجګور علاقه وائي. د پورتني بيان لاندې به د لانديني سوالونو ځوابونه څه وي؟

۱. کوم سړی چه سفر کول وغواړي نو آيا هغه د خپل کله له آبادي څخه چه ووځي نو مسافر بلل کيږي او که له ټولو کليو څخه تر تيريدو وروسته؟

۲. چه کله له سفر څخه بيرته را شي نو آيا خپل کلي ته په ور داخليدو سره مقيم ګرځي او که مطلق پنجګور ته په داخليدو سره؟

۳. له باهره يو سړی د شلو ورځو په نيت سره پنجګور ته راغی ليکن کله په يوه کلي او کله په

بل کلي کښې اوسيږي آيا داسې سړی به قصر کوي او که پوره لمونځ به کوي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دوه کليو تر منځ د زرعي زمکې موجودوالی يا په اندازه د غلوه (۱۹/۱۳۷ متره) د جلاوالي علامه ده. سره له دې که چيرته دواړه کلي يا ځايونه په عام عرف او عادت کښې د يوه ښار دوه کلي ګڼل کيدل نو د مذکوره جلا والي تر څنګ دواړه ځايونه په حکم کښې يو ګڼل کيږي.

په سوال کښې د مذکوره تفصيل څخه ثابتيږي چه هر يو ځای مستقل ځای دی. او پنجګور په دغو ټولو ځايونو باندې مشتمل د دې علاقې نوم دی. لهذا د سفر په پيل او پای او اقامت کښې به هر يو ځای جلا شميرل کيږي. که چيرته کم تر کمه په يوه ځای کښې د پنځلسو شپو د پاتې کيدو نيت وي او يوازې د ورځې نورو ځايونو ته ځي نو مقيم به وي او که نه نو مقيم به نه وي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ جمادی الاخر ۱۳۹۶ھجری

## صرف د زمکې په موجود والي سره کوم ځای وطن نه جوړيږي

**سوال**: يو سړی د درسانوچهنو (د کوم کلي نوم) اوسيدونکی دی او پرته له اهل او عيال څخه يواځې زمکه ئې په لسبيله کښې ده. له درسانوچهنو څخه تر لسبيله پورې د دوه اويا ميلونو فاصله ده. اوس نوموړی سړی له درسانو چهنو څخه کراچۍ ته کوم چه دوه ويشت ميله مسافه ده راځي او د څه وخت په پاتې کيدو سره بيا لسبيلې ته ځي کوم چه له کراچۍ څخه پنځوس ميله مسافې باندې پرته ده. نو آيا دا سړی به تر کراچۍ پورې مقيم ګڼل کيږي په داسې حال کښې چه له پيل څخه ئې اراده لسبيلې ته د تللو وه او بيا لسبيلې ته تر تللو وروسته هلته د زمکې د درلودلو له وجې مقيم ګڼل کيږي او که مسافر؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا سړی لسبيلې ته د تلو په نيت سره له درسانوچهنو څخه په را وتلو مسافر شو. په کراچۍ کښې به قصر کښې او په لسبيله کښې به هم مسافر وي او د زمکې له وجې به مقيم نه ګڼل کيږي.

قال في شرح التنوير الوطن الاصلي هو موطن ولادته او تأهله او توطنه. (ردالمحتار ج۱، ص۷۳۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ رمضان ۱۳۸۸ھجری

## په وطن اصلي کښې يوازې د زمکې په پاتې کيدو سره وطن نه پاتې کيږي

**سوال**: زما پلار په يوه ځای کښې زمکه واخيسته او هلته مستقله اوسيدنه غوره کړه. زه په دې وخت کښې بالغ وم ليکن د خپل پلار په کفالت کښې وم. د دې لپاره ما هم همدا ځای خپل اصلي وطن ګاڼه. وروسته د ملازمت (نوکری) په سلسله کښې په مختلفو ځايونو کښې له خپل اهل او

عیال سره پاتې شوم لیکن له دغو څخه په یوه ځای کښې هم ما د وطن اصلي د جوړولو نیت و نه کړ. بالاخره کراچۍ ته په رسیدو باندې مې دا خپل اصلي وطن وګرځوله. اوس په مخکښیني وطن اصلي کښې مې یواځې زمکه ده کومه چه والد صاحب مې پخپل ژوند کښې ما ته هبه کړې وه. پرته له دې څخه والد صاحب او نور وروڼه او خویندې مې هم هلته مقیم دي. په دې صورت کښې آیا هغه ځای زما لپاره وطن اصلي پاتې شوی دی او که نه؟ چه هلته لاړ شم نو قصر به کوم او که پوره لمونځ به کوم؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د کراچۍ په اصلي وطن جوړولو سره مخکښینی وطنِ اصلي باطل شو. یواځې د زمکې په پاتې کیدو سره هغه وطن نه پاتې کیږي.

قال شارح التنویر الوطن الاصلی هو موطن ولادته او تأهله او توطنه یبطل بمثله اذا لم یبق له بالاول اهل، وفی الشامیة عن شرح المنیة ولو کان له اهل ببلدتین فایتهما دخلها صار مقیما فان ماتت زوجته فی احداهما و بقی له فیها دور و عقار قیل لا یبقی وطنا له اذ المعتبر الاهل دون الدار کما لو تأهل ببلدة و استقرت سکنا له و لیس فیها دار و قیل تبقی اه و فیها (قوله اذا لم یبق له بالاول اهل) ای وان بقی له فیه عقار قال فی النهر ولو نقل اهله و متاعه و له دور فی البلد لا تبقی وطنا له و قیل تبقی کذا فی المحیط و غیره. (رد المحتار ج۱، ص۷۴۲) فقط و الله تعالیٰ اعلم

۸ رمضان ۱۳۸۸ھجری

## که چیرته تابع ته د متبوع د اقامت نیت معلوم نه وي نو څه حکم لري

**سوال**: یوه سړي مسافرانه لمونځ ادا کړ. د لمانځه په حالت کښې ئې اراده وکړه چه اوس به زه تر پنځلسو ورځو پورې دلته اوسیږم. د دې لپاره ئې خپل شروع کړی لمونځ په پوره کولو سره فارغ شو. د ده موټر چلوونکي (موټروان) ته دا معلومات نه وو چه مالک مې د اقامت نیت کړی دی او تر لمانځه وروسته ئې ورته وویل. نو آیا موټروان به دا دوه رکعته دوباره څلور ادا کوي او که په راتلونکي کښې به څلور رکعته کوي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ملازم یا نوکر ته چه تر څو پورې د مالک د نیت معلومات نه وي تر هغه وخته پورې به قصر کوي. لهذا د موټروان دا دوه رکعته صحیح شول. راتلونکي لمونځونه به پوره کوي سره له دې که چیرته دا لمونځ هم بیرته را وګرځوي نو بهتره ده.

قال فی شرح التنویر ولا بد من علم التابع بنیة المتبوع فلو نوی المتبوع الاقامة ولم یعلم التابع فهو مسافر حتی یعلم علی الاصح وفی الفیض و به یفتی کما فی المحیط و غیره دفعا للضرر عنه وفی الشامیة و قیل یلزمه الاتمام کالعزل الحکمی ای بموت الموکل وهو الاحوط کما فی الفتح وهو ظاهر الروایة کما فی الخلاصة بحر.

(ردالمحتار ج۱،ص۷۳۵)

که چیرته دوی دواړه په جماعت سره لمونځ کړی وای او مالک امام جوړ شوی وای نو د جماعت ثواب به هم ورکړ شوی وای او د موټروان په لمانځه کښې به هم کوم اشکال نه وای پیدا شوی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۸رمضان ۱۳۸۸هجری

## د مسافر لپاره سهواً د پوره لمانځه نیت کولو حکم

**سوال**: په سفر کښې د قصر په ځای یوه مسافر د پوره لمانځه نیت وکړ یا ئې په کور کښې د پوره لمانځه په ځای سهواً ئې د مسافرانه لمانځه نیت وکړ نو داسې سړی څه باید وکړي؟ آیا په لمانځه کښې د نته به خپل نیت صحیح کوي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: په لمانځه کښې د نته دې د خپل نیت تصحیح وکړي لیکن په ژبې سره به د نیت الفاظ نه ادا کوي. په زړه زړه کښې دې نیت وکړي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ذی قعده ۱۳۸۸هجری

## د مسافر لپاره سهواً د پوره لمونځ کولو حکم

**سوال**: مسافر په هیره سره د دوه رکعته په ځای څلور رکعته ادا کړل. اوس که چیرته په منځ کښې قعده وکړي یا و نه کړي نو په دواړو صورتونو کښې ئې لمونځ کیږي او که نه؟ که چیرته ئې قعده کړې وي نو په سجدهٔ سهو سره ئې لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ئې اوله قعده کړې وي نو په سجدهٔ سهو سره ئې لمونځ کیږي او که نه نو نه کیږي. **قال فی التنویر فلو اتم مسافر ان قعد فی الاولیٰ تم فرضه واساء وما زاد نفل وان لم یقعد بطل فرضه.(ردالمحتار ج۱،ص۷۴۰)**

که چیرته د دریم رکعت تر سجدې مخکښې ور په زړه شي نو را و دې ګرځي او که نه نو لمونځ به ئې واجب الاعاده وي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴جمادی الاٰخره ۱۳۹۳هجری

## چه په سفر کښې په قصد سره قصر و نه کړي نو توبه او د لمانځه بیرته راګرځول پرې واجب دي

**سوال**: که چیرته یو څوک په سفر کښې په قصد سره قصر و نه کړي بلکه پوره لمونځ ادا کړي نو د داسې سړي حکم څه دی؟ آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: په مسافر باندې قصر واجب دی. نوموړی به قصداً د واجبو په پرېښودو سره ګنهګار وي. له دې امله په ده باندې توبه او د لمانځه بیرته راګرځول پرې واجب دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴جمادی الثانی ۱۳۹۳هجری

## د جنګي قیدیانو لپاره د قصر حکم

**سوال**: مودودي صاحب لیکلي دي چه "چه د دې حضراتو په قید کښې قیام بې له ارادې او غیر اختیاري دی. د دې لپاره دوی به قصر لمونځونه کوي. سنت به پوره ادا کوي، په کوم ځای کښې چه قیام پخپل نیت او ارادې سره نه وي هلته همدا حم دی. په دې باندې د اکثره فقهاوو او محدثینو اتفاق دی چه په کوم ځای باندې یو سړی د مجبوررولو له مخې پاتې شي او هر وخت ئې دا نیت وي چه دا خنډ له منځه لاړ شي نو انشاء الله بیرته به ځم. نو هلته چه نوموړی څومره موده پاتې شي لمونځ به قصر کوي. حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په یوه ځای کښې د واورې له امله تر شپږو میاشتو پورې پاتې شو او لمونځونه به ئې مسافرانه کول. په جنګي حالاتو کښې ځینې صحابهٔ کرام به په ځینو ځایونو کښې په پاتې کیدلو باندې مجبوره کیدل. حضرت انس تر دوه کلونو پورې په شام کښې بند پاتې وو او قصر به ئې کاوه. جُمعه په داسې چا باندې واجبه نه ده که ئې ادا کړي نو ثواب به ورکول کیږي

په تفهیم القرآن کښې ئې هم همداسې لیکلي دي. د دې برعکس تاسو د پوره لمونځ کولو فتوی ورکړې ده. له دې څخه دا نه ښرګندیږي چه آیا دا حکم قیدیانو ته هم متوجه کیږي؟ حالات داسې دي چه مونږ په عملي توګه د یوه محبس په حویلی. یا چاردیوالي کښې بند یو چیرته چه شا او خوا پیرې ده. له دې امله د مهربانی. له مخې د حنفي فقهې مطابق په دې مسئلې باندې لږ په تفصیل سره رڼا واچوئ چه فتوی څه ده؟ تر اوسه پورې چونکه زه لمونځونه ورکوم. تول په ما پسې پوره لمونځونه کوي. دا مې د زیات اطمینان د حاصلولو لپاره ولیکل.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لمانځه د قصر او اتمام داروم‌دار په اختیاري او اضطراري اقامت باندې نه دی بلکه تر پنځلسو ورځو پورې د اقامت په تیقّن او نه تیقّن باندې دی. لکه څرنګه چه د ښځې، غلام او قیدي اقامت اختیاري نه وي بلکه د خاوند او مالک د اقامت تابع او غیر اختیاري وي. سره له دې چه کله هغوی ته تر پنځلسو ورځو پورې د خاوند او مالک یا مولی د اقامت معلومات وشي نو په هغوی باندې پوره لمونځ ضروري دی. د مودودي صاحب په لیکنه کښې چه کومې حوالې نقل شوي دي په هغو ټولو کښې قصر په دې بناء باندې نه دی چه اقامت غیراختیاري وو بلکه په دې بناء باندې دی چه تر پنځلسو ورځو پورې د اقامت یا پاتې کیدو یقین نه وو. هغه دناپوهی. له وجې غلط پوه شوی دی اوخپل فاسد ګومان ئې داکثروفقهاوواو محدثینو خوا ته منسوب کړی دی. الله تعالی دې هغه ته د علماوو خوا ته د رجوع او پرته له علم څخه د اجتهاد د شوق په ځای په (فَسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ) باندې د عمل کولو هدایت وکړي

لنډه دا چه جنګي قیدیانو ته که چیرته له قرائنو څخه غالب ګومان وشي چه تر پنځلسو ورځو

پورې په همدې ځای باندې ساتل کیږو نو په هغو باندې اتمام ضروري دی او قصر ورته جائز نه دی او د جُمعې لمونځونه هم کولی شي. فقط والله تعالیٰ اعلم ٤شوال ۱۳۹۲ هجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: له ډیر اوږده انتظاره وروسته دوه ورځې مخکښې ستاسو په شوال کښې لیکل شوی لیک د قصر د لمانځه په اړوند عین په هغه ورځ را ورسید په داسې حال کښې چه مولانا مفتئ اعظم محمد شفیع صاحب او د جامعهٔ اشرفیه لاهور څخه د راغلې فتوٰی مطابق دلته د قصر لمونځ شروع شوی وو. په ذاتي توګه ستاسو استدلال مې خوښ شو او د احتیاط له مخې مې د قصر لمانځه په کولو سره جلا پوره لمونځ کاوه لیکن د مقتدیانو په اصرار باندې مې یواځې په قصر لمانځه باندې اکتفاء وکړه.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۵ جنوري لیکنه دوه ورځې کیږي چه را ورسیده، د ټیلیفون په ذریعې سره د قصر د اړوندې فتوٰی په متعلق پوښتنه وکړه نو هغه ځواب ئې راکړ کوم چه ما لیکلی وو یعنې که چیرته پنځلس ورځې په یوه ځای باندې د پاتې کیدلو یقین نه وي نو قصر لمونځ دې وشي. ما ته په دې باندې تعجب راغی چه له دې څخه تاسو څه ډول د اتمام حکم ګڼلی دی؟ د دې لپاره ما له هغو څخه د فتوٰی نقل را وغوښت او و مې لیدل چه په هغې کښې دا عبارت دی.

"کوم پاکستاني مسلمانان چه د هندوستان په بندیخانو کښې دي که چیرته هغوی ته دا معلومات نه وي چه کله به له دې ځای څخه خلاصیږو یا کله له یوه کیمپ څخه بل کیمپ ته نقل کیږو نو د هغو د اقامت نیت معتبر نه دی. هغوی به پرله پسې کورونو ته تر رسیدو پورې ي له قید څخه په خلاصیدو سره په کوم ښار یا کلي کښې تر پنځلسو ورځو پورې پخپل اختیار سره تر کار کولو پورې به د تل لپاره مسافر پاتې وي.

وفی نسخة القاضی الامام العبد اذا خرج مع مولاه ولا یعلم سیر المولی فانه یسأله ان اخبره ان مسیرته مدة السفر صلی صلوة المسافرین وان کان دون ذٰلک صلی صلوة الاقامة وان لم یخبره بذٰلک ان کان مقیماً قبل ذٰلک صلی صلوة القامة وان کان مسافراً قبل صلی صلوة الحاضرین کذا فی الخلاصة الخ وفی المحیط مسلم اسره العدو ان کان مسیرة العدو ثلاثة ایام یقصر وان کان دون ذٰلک یتم وان لم یعلم یسأل کما مر فی العبد. (البحر الرائق ج۲،ص۱۵۰)

د مذکوره فتوٰی عبارت له اداء مراد څخه قاصر دی. د دې متبادر مطلب هغه دی کوم چه تاسو پرې پوه شوي یئ یعنې چه کله د خلاصیدو د تاریخ هیڅ علم نه وي نو قصر به کیږي. لیکن دا مطلب نه صحیح دی او نه د دار العلوم د خاوندانو مراد دی. هغو د دې اعتراف هم کړی دی او د

هغوی د فتوی عربي عبارات هم د دې ثابتوونکي دي. د هغوی مراد له دې څخه هغه دی چه پنځلس ورځې د پاتې کیدلو یقین نه وي نو قصر دې وشي، ما هغو ته هم دا ولیکل چه د عبارت ترمیم دې وکړي او مستفتي دې هم خبر کړي ترڅو چه د مراد په پوهیدلو کښې غلط فهمي را نه شي او لمونځونه ضائع نه شي.

حاصل دا دی چه په دې باندې د فتوی ټول خاوندان متفق دي چه په یوه ځای باندې د پنځلسو ورځو د پاتې کیدلو یقین وي نو پوره لمونځ دې وکړي او که نه وي نو قصر دې وکړي. په دې کښې اختیار او نه اختیار هیڅ دخل نه لري. البته په دې کښې د رایې اختلاف کیدلی شي چه د حالاتو له مخې په یوه ځای باندې د پنځلسو ورځو اقامت متیقن دی او که نه؟ په دې کښې به په سیاسي حالاتو باندې د بصیرت درلودونکو رایې ته به اعتبار ورکول کیږي. که چیرته د هغوی غالب ګومان دا وي چه تر پنځلسو ورځو مخکښې د خلاصیدو یا له یوه ځای څخه بل ځای ته د نقل کیدلو توقع نه وي نو اتمام به فرض وي او که نه نو قصر دې کوي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ ذی الحجة ۱۳۹۲ هجری

## په مقیم پسې چه د مسافر مقتدي لمونځ فاسد شي نو دوه رکعته به ګرځوي

**سوال** : یوه مسافر په مقیم امام پسې لمونځ شروع کړ او په دریم رکعت کښې ورسره یو ځای شو او له امام سره ئې یو ځای سلام واړاوه. تر دې وروسته دا پته ورته ولګیده چه د امام د متابعت له وجې په ده باندې څلور رکعته فرض وو. اوس دې نوموړی د لمانځه د بیرته را ګرځولو په وخت کښې دوه رکعته را وګرځوي او که څلور؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دوه رکعته دې را وګرځوي.

قال فی العلائیة واما اقتداء المسافر بالمقیم فیصح فی الوقت ویتم لا بعده فیما یتغیر وفی الشامیة تحت (قوله فیصح فی الوقت ویتم) ای سواء بقی الوقت او خرج قبل اتمامها لتغیر فرضه بالتبعیة لاتصال المغیر بالسبب وهو الوقت ولو افسده صلی رکعتین لزوال المغیر بخلاف مالو اقتدی به متنفلاً حیث یصلی اربعاً اذا افسده لانه التزم صلوة الامام. (رد المحتار ج۱، ص۴۱۷) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۶ جمادی الاول ۱۳۹۶ هجری

## د لمانځه په دوران کښې د وخت تر وتلو وروسته د اقامت د نیت حکم

**سوال** : زید په سفر کښې وو او د لمر له ډوبیدو لږ مخکښې ئې د مازدیګر لمونځ شروع کړ

لیکن دوه رکعته ئې لا پوره کړي نه وو چه لمر ډوب شو او په لمانخه کښې د ننه دننه ئې په همدې ښار کښې د اقامت نیت وکړ. نو آیا دا لمونځ به همدا دوه رکعته پوره کوي او که څلور به پوره کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته د لمر تر ډوبیدو مخکښې د اقامت نیت وکړي نو پوره لمونځ دې وکړي او که چیرته د لمر تر ډوبیدو وروسته د اقامت نیت وکړي نو قصر دې وکړي.

**قال فی شرح التنویر اوینوی ولو فی الصلوۃ اذالم یخرج وقتها وفی الحاشیة ای قبل ان ینوی الاقامة لانه اذا نواها بعد صلوۃ رکعة ثم خرج الوقت تحول فرضه الی الاربع اما لو خرج الوقت وهو فیها ثم نوی الاقامة فلا یتحول فی تلك الصلوۃ کما فی البحر عن الخلاصة.(رد المحتار ج۱،ص۷۳۴)**

وروسته د (**صلوۃ رکعة**) احترازي قید نه دی بلکه د شافعي رحمه الله له قول څخه احتراز ترې مقصود دی. د هغه په نزد یو رکعت په وخت کښې د ننه په ادا کولو سره پوره لمونځ اداء دی د دې لپاره د وخت تر وتلو وروسته هم د اقامت نیت باید معتبر وي. لیکن د احنافو په نزد د راجح قول له مخې د وخت په منځ کښې اداء شوې برخه اداء ده او پاتې برخه قضاء ده. لهذا تر وخت وروسته د اقامت نیت معتبر نه دی.

**ولو بعد صلوۃ رکعة قال فی العلائیة و بالتحریمة فقط بالوقت یکون اداء عندنا و برکعة عند الشافعی وفی الشامیة وما ذکره من انه بالتحریمة یکون اداء عندنا هو ما جزم به فی التحریر وذکر شارحه انه المشهور عند الحنفیة ثم نقل عن المحیط ان ما فی الوقت اداء و الباقی قضاء (رد المحتار ج۱،ص۶۷۷) و فیها فی بیان فاقد وقت العشاء المنقول عن المحیط وغیره ان الصلوۃ الواقع بعضها فی الوقت وبعضها خارجه یسمی ما وقع منها فی الوقت اداء و ما وقع خارجه یمسی قضاء اعتبار الکل جزء بزمانه فافهم. (رد المحتار ج۱، ص۳۳۶) و قال العلامة الطحطاوی معزیا لشرح العلاء للملتقی لو ادرك رکعة من غیر الفجر فی الوقت ثم خرج الوقت هل تکون هذه الصلوۃ اداء او قضاء او ما فی الوقت اداء و ما بعده قضاء اقوال اصحها اولها و تظهر الثمرة فی نیة المسافر الاقامة و قیدنا بغیر الفجر لان فیه تبطل بطلو الشمس و قیدنا برکعة لان ما دونها یکون قضاء قاله البهنسی و تلمیذه الباقانی لکن نقلت فی شرح المنار من بحث الاداء عن ابن نجیم معزیا للتحریر انه بالتحریمة فی الوقت یکون اداء عندنا و برکعة عند الشافعی رضی الله تعالی عنه. (طحطاوی علی الدر ج۱،ص۳۰۳)**

د مسافر په باب کښې په ټولو کتابونو کښې دریم قول یعني (**ما فی الوقت اداء و ما بعده قضاء**) غوره شوی دی

**فقط والله تعالی اعلم** ۱۳ صفر ۱۴۰۰ هجری

## په هوائي جهاز (طيارې) کښې د قصر مسافت

**سوال**: يوه ملک ته چه د سفر کولو درې لارې وي. لومړې د وچې لار. دويم د درياب لاره او دريم د وچې ليکن غرنۍ لاره ده. د وچې په لارې باندې. د وچې په لار باندې درې ورځې لګيږي او د غرنۍ لارې هم همدا حال دی ليکن د درياب په لارې دوه ورځې لګيږي. چه کله زيد سفر کول غواړي نو د درياب په لارې باندې د هغه لپاره قصر کول صحيح دي او که نه؟ او که صحيح نه وي نو بيا چه کله په هوائي جهاز يا طيارې باندې سفر کوي نو په دې کښې خو به په طريقهٔ اولی سره قصر کول صحيح نه وي. په دې باره کښې د **(مستخلص الحقائق شرح کنز الدقائق)** عبارت ملاحظه کړئ: **(حتی لو کان لموضع طريقان احدهما فی البحر و الأخر فی البر او فی الجبل بحيث لو سار فی البر قطع فی ثلاثة ايام ولو سار فی البحر قطع فی اقل من ذٰلك باعتدال الريح او کان بحيث لو سار فی البر قطع فی اقل من ثلاثة ايام ولو سار فی الجبل قطع فی ثلاثة ايام لمکان الصعود و النزول فان سار فی البر قصر و ان سار فی البحر لا، و کذٰلك الجبل کذا فی الينابيع وغيرہ). (ص۱۵۳) بينوا توجروا.**

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته د درياب د لارې په غوره کولو سره د دوه ورځو مسافت جوړيږي نو په دې لاره کښې به قصر کول صحيح نه وي. هوائي جهاز په دې باندې قياس کول صحيح نه دي ځکه چه د قصر اصل مدار په وچه يا لمده کښې په معتدل سير (منځنۍ تګ) سره د دريو ورځو مسافه وي. که چيرته همدومره مسافه د تيزې سورلۍ په ذريعې سره زر طی شي نو بيا به هم قصر واجب وي. **قال فی العلائية حتی لو اسرع فوصل فی يومين قصر، و فی الشامية ای الی مکا مسافته ثلاثة ايام بالسير المعتاد بحر. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۰)**

له دې امله هوائي جهاز د وچې لارې په محاذاتو باندې پرواز کوي نو په معتدل سير سره د دريو ورځو د مسافت له وجې به قصر واجب وي او که چيرته ئې پرواز د درياب د لارې په محاذاتو وي نو بيا قصر جائز نه دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ رمضان المبارک ۱۳۹۶ هجری

## مسافر مسبوق دې په مقيم امام پسې پوره لمونځ کوي

**سوال**: د مقيم امام مسبوق مسافر مقتدي به خپل پاتې لمونځ د قصر په حساب سره ادا کوي او که د امام د اقتداء له وجې به پوره څلور رکعته ادا کوي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لمانځه په ابتداء کښې د امام د متابعت له وجې به څلور رکعته پوره ادا کوي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ شعبان ۱۳۹۷ هجری

## مسافر مقتدي به په مقيم امام پسې د څلورو رکعتونو نيت کوي

**سوال**: په څلور رکعتيزه لمانځه کښې به مسافر مقتدي په مقيم امام پسې د څو رکعتونو نيت تړي؟ يعنې د نيت د کولو په وخت کښې به څلور يادوي او که دوه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام د متابعت له وجې د مقتدي هم څلور رکعته فرض دي. د دې لپاره به د څلورو رکعتونو نيت تړي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ جمادی الثانی ۱۳۹۸ هجری

## په بحري جنګي مشقونو (تمرينونو) کښې د قصر حکم

**سوال**: د پاکستان بحري بيړۍ چه کله د جنګي مشقونو لپاره په سمندر کښې ګشت کوي نو کار کوونکي به ئې پوره لمونځونه کوي او که قصر؟ يوه ديني عالم پخپله دې بيړۍ ته وراغی، موقع ئې چه وليد او حالات ئې چه واوريدل نو د قصر لمانځه د ادا کولو فتویٰ ئې ورکړه ليکن د مدرسۀ عربيه نيو ټاؤن له دار الافتاء څخه چه کله استفتاء وشوه نو هغو د پوره لمونځ کولو فتویٰ وليکله. دا فتویٰ ستاسو حضور ته وړاندې کوم، تاسو ئې وګورئ او دا وليکئ چه کومه يوه فتویٰ صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**سوال**: د پاک بحريه (پاکستان نيوي) بحري بيړئ چه کله په سمندر کښې د مختلفو جنګي مشقونو لپاره ځي نو آيا په هغو کښې به پوره لمونځونه کيږي او که قصر په داسې حال کښې چه د دغو بيړيو تفصيلي حالات په لاندې ډول دي:

۱ - د خوراک څښاک، اوسيدنې او د ژوندانه داسې نورو ټولو ضرورتونو کوم چه په عام کور کښې د يوه مقيم سړي لپاره مهيا وي په دې کښې هم ټول مهيا دي، بيړۍ اکثره له دوه ورځو څخه واخله تر اوه ورځو يا لسو ورځو پورې په پرله پسې توګه په سمندر کښې روانې وي. کله کله له کراچۍ څخه يواځې په ديرش يا څلويښت ميله باندې وي ليکن د ټول سفر له حسابه په سلګونو ميلونه په يوه ورځ وهي او روانه وي. مثلاً کله کله د دغو مشقونو په دوران کښې مشرق ته کله مغرب، شمال، او جنوب ته د ۲۵،۲۰ يا ۳۰ ميله قطر په دائره کښې د ننه ګرځي را ګرځي. نو آيا دلته به د ټول سفر حساب کيږي او که له کراچۍ څخه د فاصلې حساب کيږي؟ بينوا توجروا.

۲ - يو ځل مثلاً دوی درې ميله شرعي (۴۸ ميله) له کراچۍ څخه لرې فاصله ووهله او بيا دوه درې ورځې له دې څخه په کمې فاصلې باندې وو او مختلفو خواوو ته روان وو نو آيا دلته به قصر وي او که نه؟

۳ - بيړۍ يواځې د څو ساعتونو لپاره سمندر ته لاړه. د کراچۍ له بندرګاه څخه پوره اته څلويښت يا پنځوس ميله په يوه طرف لاړه او بيا سيده بيرته بندرګاه ته راغله نو د دې حالت څه حکم دی؟

۴ - بېړۍ د څو ساعتونو لپاره له کراچۍ څخه روانه شوه بیا سیده یوې خوا ته نه بلکه مختلفو خواوو ته په تاویدو سره ئې له پنځوس میلونو څخه زیاته مسافه ووهله او همدارنګه په بیرته راتګ سره ئې هم له پنځوسو میلونو څخه زیاته مسافه ووهله لیکن په دې دوران کښې هیڅکله هم او په یوه ځای کښې هم له کراچۍ څخه په ۴۸ میله باندې واقع نه وه. نو د دې به څه حکم وي؟

۵ - له بندرګاه څخه بېړۍ د شلو یا پنځه وشتو میلونو په فاصلې باندې دوه درې ورځې مشقونه کول بیا په دریمه یا څلورمه ورځ له ۴۸ میلونو څخه په زیاتې فاصلې باندې لاړه بیا بیرته راغله نو آیا وروسته ټول لمونځونه په بیرته راتګ سره تر بندرګاه پورې به پوره ادا کیږي او که قصر؟

۶ - له کراچۍ څخه بېړۍ لاړه او له پنځوسو یا زیاتو میلونو پورې د تللو اراده ئې وه بیا په لاره کښې خرابه شوه یا د کوم مصلحت پر بناء بیرته راغله نو آیا لمونځونه به پوره وي او که قصر؟

۷ - ځینې وختونه د جنګي تمرینونو د مصلحتونو پر بناء پرته له څو کسانو کوم چه په دې کار یعني د سمتونو او فاصلو په معلومولو، باندې مامور وي هیچا ته هم نه ویل کیږي چه بېړۍ له بندرګاه څخه په دومره فاصلې بانده ده. نو آیا دا معلومول فرض دي په داسې حال کښې چه کومو کسانو ته معلومه وي هغوی په سختۍ سره منع کیږي چه چا ته مه وایئ. نو آیا په داسې حالت کښې به پخپلې اندازې سره قصر او پورهٔ لمونځونه کوي او که څنګه؟ برسیره پر دې د بحري سفر په باره کښې له شرعي احکامو څخه مو خبر کړئ چه د څومره میلونو په مسافه باندې د قصر حکم دی؟ بینوا توجروا.

**ځواب له مدرسهٔ دار العلوم نیو ټاؤن څخه:**

۱- د تمرین په دوران کښې که چیرته بېړۍ د ۴۸ میلونو څخه د کمې فاصلې په قطر کښې مشرق، مغرب، جنوب او شمال ته ګرځي را ګرځي نو لمونځ به پوره ادا کیږي اګر که د ټول سفر په حساب سره ئې په سلګونو میلونه وهلې وي، چه تر څو پورې د کراچۍ له ساحل څخه ۴۸ میله فاصله نه شي تر هغو پورې قصر نه کیږي.

۲ - چه کله یو ځل د کراچۍ له ساحل څخه ئې ۴۸ میله سفر کړی وي او د سفر د شروع کولو په وخت کښې د اته څلویښت میلو یا له دې څخه د زیاتو اراده هم وه نو په دې صورت کښې له روانیدو څخه وروسته تر بیرته راتلو پورې قصر کیږي

۳ - قصر کیږي

۴ - پوره لمونځ ادا کیږي

۵ - که چیرته د سفر د شروع کولو په وخت کښې اته څلویښت میله له دې څخه د زیاتې مسافې اراده وي نو له شروع څخه دې قصر کوي، که چیرته له شروع څخه د اته څلویښت میلو اراده نه وه

نو د اته څلويښت ميلو تر پوره کيدو وروسته بيرته بندرګاه ته تر راتلو پورې قصر کيږي

۶ - له کومه وخته چه اراده بدله شي له هغه وخت څخه پوره لمونځ کيږي او له دې څخه مخکښې قصر کيږي

۷ - ښکاره خبره ده چه د بيړۍ عام نوکران د قومندان تابع دي او په دې سلسله کښې مسئله دا ده چه د متبوع يعنې قومندان نيت اعتبار لري او چه کله نيت معلوم نه شي لکه څرنګه چه په سوال کښې ويل شوي دي چه د نيت او ارادې معلومول مشکل دي نو که چيرته قومندانان يا افسران لمونځ کوونکي وي نو هغو ته دې چه څه ډول لمونځ کوي. قصر او که پوره؟ او که هغوی لمونځ ګذاره نه وي نو د بيړۍ پاتې کسان دې خپل حالت ته اعتبار ورکړي. يعنې له اته ميله وروسته دې قصر کوي او له دې څخه مخکښې دې پوره لمونځ وکړي.

فقط والله تعالیٰ اعلم يکم محرم الحرام ۱۳۹۷ هجری

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کوم عالِم چه د قصر د وجوب فتویٰ ورکړې ده هغه غالباً په دې مسئله کښې اشتباره ور لويدلې ده چه کله کوم ځای ته د رسيدو دوه لارې وي، په نژدې لارې باندې د قصر مسافه نه وي او په لرې لارې سره د قصر مسافه وي نو په لرې لارې باندې په سفر کوونکي باندې قصر واجب دی ليکن د سوال صورت په دې باندې قياس کول صحيح نه دي ځکه چه په نوموړې مسئله په دې صورت کښې دی چه منزلِ مقصود ته د رسيدو لارې تاکلې وي لکه څرنګه چې په عمومي توګه په برّي (د وچې) په سفر کښې وي. د مسافر اصل مقصد يو مخصوص مقام وي او د هغه ښی او کيڼې خوا ته تاويدل د لارې د کوږوالي له وجې وي. پس د لارې د کوږوالي له وجې که چيرته د سفر مسافه متحققه شي نو قصر واجب دی اګر که مستقيمه ليکه يا نژدې لاره د سفر له مسافې څخه کمه وي. که چيرته د لارې له قيد څخه قطع نظر په مطلقه توګه ښی او کيڼې خوا ته د انحراف مسافت ته اعتبار ورکړل شي نو په دې خبره باندې دا لازميږي چه کوم سړی له خپل ښار څخه د باندې ووځي او له ښار سره متصل شا و خوا را وګرځي يا خپله زمکې يوې کړي يا څه خلک له ښار څخه د باندې د کبډي لوبه وکړي او د ګرځيدو او منډو را منډو ټوله مسافه د سفر له مسافې سره برابره شي نو په هغو دې قصر واجب شي او دا (بديهي البطلان دی والقوم المستلزم للباطل باطل). لنډه دا چه په مسئوله صورت کښې د قصر د وجوب قول صحيح نه دی. د نيو ټاؤن د مدرسې ځواب صحيح دی ليکن په هغه کښې هم د لومړي سوال په ځواب کښې څو اشتباهات واقع شوي دي کوم چه په لاندې ډول دي:

۱ - په دې کښې د وچې او لمدې د ميل فرق په لحاظ کښې نه دی ساتل شوی. د وچې ميل ۱۷۶۰ ګزه او بحري ميل ۲۰۲۶/۹۶ ګزه وي

۲ - د سفر مسافه د قطر د قید په صورت کښې صحیح نه دی بلکه له ساحل (کنارې) څخه لرې والی معتبر دی که د قطر په صورت کښې وي او که نه.

۳ - په بحري سفر کښې هم په برّي باندې د قیاس په کولو سره د اته څلویښت میلونو مسافه ټاکل صحیح نه دي. په مذهب کښې اصل اعتبار د میلونو په ځای د دریو ورځو مسافې لره دی په بري سفر کښې ئې ۴۸ شرعي میله اندازه شوې ده لیکن دا فیصله په بحري سفر باندې نه شي جاري کیدلی. د بحري بیړۍ له بیړۍ، چلوونکي څخه دا تحقیق وشو چه د یوې عامې معمولي کښتۍ په معتدله هوا کښې پنځه شپږ بحري میله په یوه ساعت کښې وهي. د فن ماهرینو د کښتۍ چلوونکو او د پاک بحریه له افسرانو څخه هم د دې تصدیق کړی دی. له مجموعي پنځه ګواهیو څخه ثابته شوه چه په معتدله هوا کښې د معمولي کښتۍ اوسط رفتار ۵/۵ بحري میله په یوه ساعت کښې دی. لهذا په بحري سفر کښې د قصر د مسافې حساب به داسې وي. درې ورځې - ۷۲ ساعته × ۵/۵=۳۹۲ بحري میل.

کښتۍ چونکه شپه ورځ په پرله پسې توګه چلیږي نو ځکه د بحري سفر په صورت کښې درې ورځې او درې شپې په پرله پسې توګه د تللو مسافه د قصر مسافه ګڼل کیږي. له دې څخه دکمې مسافې په قصد باندې قصر کول جائز نه دي.

**فائده**: انګریزي میل = ۱۷۶۰ګزه . میل شرعي ۲۰۰۰ ګزه. بحري میل ۲۰۲۶/۷۶ګزه. په برّي سفر کښې ۴۸ انګریزي میله د سفر مسافه نه ده بلکه ۴۸ شرعي میله ده. بلکه د مفتی به قول مطابق ۵۴ شرعي میله - ۶۱ میله انګریزي د سفر مسافه ده. تفصیل ئې د بنده په (**القول الاظهر فی مسئلة السفر**) نومې په رساله کښې دی.

**فقط والله تعالیٰ اعلم** ۶شوال ۱۳۹۷ هجری

## د ریل ګاډي له قبلې څخه د اووښتلو حکم

**سوال**: په ریل ګاډي کښې د سفر په دوران کښې د ریل ګاډي مخه قبلې ته شوه او د لمانځه په دوران کښې ئې بیرته مخه له قبلې څخه وګرځیده. نو آیا د لمونځ کوونکي لمونځ باقي پاتې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ریل ګاډي د مخې د اووښتلو په پوهیدو سره فوراً باید د قبلې خوا ته ځان واړوي. که چیرته وا نه وړي یا د اووښتلو ځای نه وي نو لمونځ دې له سره وکړي. البته که چیرته تر لمانځه وروسته د ریل ګاډي د مخې د اووښتو علم ورته وشي نو دا لمونځ ئې صحیح شوی دی.

**فقط والله تعالیٰ اعلم** ۲صفر ۱۳۹۸ هجری

## موټروان به په سفر کښې د تل لپاره قصر کوي

**سوال**: دلارۍ او ریل ګاډي چلوونکي موټروانان په داسې حال کښې چه له ۵۰ میلونو څخه زیات سفرونه کوي بلکه دا خلک د تل لپاره په سفر سفر کښې وي. ځکه چه له کراچۍ څخه ترلاهوره پورې او له لاهور څخه تر کراچۍ پورې، له کراچۍ څخه تر پېښوره او داسې نورو ځایونو پورې تګ او راتګ کوي. نو آیا داسې خلک به پوره لمونځونه کوي او که قصر؟ بینوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: تر څو پورې چه په سفر کښې پاتې وي نو قصر به کوي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ رجب ۱۳۹۸ هجری

## ښځه چه په سفر کښې خپل وطن ته نژدې ځای ته په تلو سره پاکه شي نو پوره لمونځ به کوي

**سوال**: یوه ښځه له حیض سره په سفر کښې وه او داسې ځای ته په رسیدو سره پاکه شوه له کوم ځای څخه چه تر وطن پورې د سفر مسافه کمه وي او په دې حالت کښې په دې باندې د لمانځه وخت هم راغی نو آیا قصر به کوي او که به پوره لمونځ کوي؟ او که چیرته ئې دا لمونځ قضا شوي نو پوره قضائي به ئې راوړي او که دوه رکعته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نوموړې ښځه که اداء لمونځ وکړي او که ترې قضا شي په هر صورت کښې په دې باندې پوره لمونځ کول فرض دي. **قال فی العلائیة طهرت الحائض وبقی لقصدها یومان تتم فی الصحیح کصبی بلغ بخلاف کافر اسلم.** (ردالمحتار ج۱،ص۷۳۶) دا حکم هلته دی چه د سفر له ابتداء څخه حائضه وي. که چیرته ئې د پاکوالي په حالت کښې سفر شروع کړي وي نو د حیض له ختمیدو وروسته به هم قصر کوي. **کما یفهم من قول ابن عابدین رحمه الله منعها من الصلوة ما لیس بصنعها نیتها من الاول.**

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ شعبان ۱۴۰۰ هجری

## د غوائي په ګاډۍ (ریړه) کښې د لمانځه حکم

**سوال**: په داسې حال کښې چه د غوائي له ګاډۍ سره غویی لګیدلی وي. آیا په داسې ګاډۍ یا ریړۍ کښې په ولاړې لمونځ ادا کول که فرض وي او که نفل یا سنتونه صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: فرائض او مؤکده سنتونه بې له عذره جائز نه دي. نفلونه پرې جائز دي که چیرته قبلې ته مخامخ والی مشکل وي نو هغه هم معاف دی. همدارنګه په اس باندې هم نفلونه ادا کیدلی شي د سجدې په ځای اشاره کافي ده. په دې کښې نه قبلې ته مخامخ والی

ضروري دی او نه د اس د رکاب، زین او داسې نورو پاکوالی لیکن پخپله په لمونځ کوونکي باندې چه نجاست نه وي. که چیرته ګاډی، داسې وي چه وزن ئې په ځناور باندې نه وي لکه د اوښ ربړی نو په هغې باندې فرض لمونځ هم جائز دی. لیکن قبلې ته مخامخ والی او قیام (دریدل) پکښې شرط دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ جمادی الاولی ۱۳۹۰ هجری

## په ریل ګاډي او بس (سرویس موټر) کښې د لمانځه حکم

**سوال**: د ریل ګاډي بس یا ډبې په سفر کښې د لمانځه د ادا کولو څه حکم دی؟ که چیرته موټروان موټر و نه دروي او د دریدو تر ځای یا سټاپ پورې په رسیدو کښې د وخت د وتلو ویره وي. که چیرته څوک و نه دریدلی شي نو آیا په ناستې سره لمونځ پکښې جائز دی او که نه؟ او که چیرته د قبلې خوا ته مخ اړول هم ممکن نه وي نو څه به کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ریل ګاډې او بس کښې سړی باید په ولاړې لمونځ وکړي. که چیرته د لویدو ویره وي نو یوه شي ته د تکیې په لګولو سره دې په لاس سره یو شی ونیسي او و دې دریږي. د قیام په حالت کښې د لاسونو تړل فرض نه بلکه سنت دي او قیام فرض دی. د دې لپاره د ضرورت په وخت کښې دې لاسونه خلاص کړي او یو شی دې ونیسي و دې دریږي. که چیرته قبلې ته د مخامخ دریدلو ګنجائش نه وي نو د دوو چوکیو تر منځ دې قبلې ته مخامخ ودریږي، د رکوع او قیام فرض دې ادا کړي. او د سجدې لپاره دې په لومړي چوکی، کښې د کرسی، په شان کښیني. یعنې پښې دې کښته زوړندې ساتي او په مخته چوکی، باندې دې سجده ولګوي. په دې صورت کښې د سجدې په حالت ګونډې په کوم شي باندې نه تکیه کیږي لیکن په سجده کښې د ګونډو لګول فرض نه بلکه واجب یا سنت دي. د عذر په وخت کښې د ګونډو په نه لګولو سره لمونځ کیږي. که چیرته له کومې وجې څخه د قیام او قبلې ته د مخامخ والي فرض په هیڅ ډول نه شوای ادا کیدلی نو په داسې وخت کښې چه څرنګه ممکنه وي لمونځ دې ادا کړي لیکن وروسته دې بیا قضائي را وګرځوي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ رجب ۱۳۹۰ هجری

## په کښتۍ او بحري بیړۍ کښې د لمانځه حکم

**سوال**: کومه کښتۍ، چه د وچې له کنارې یا څنډې سره لګیدلې ولاړه وي او له هغې څخه کښته کیدل او د لمانځه ادا کول ممکن وي نو آیا په کښتۍ، کښې دننه لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ د بحري بیړۍ حکم هم د کښتۍ، غوندې دی او که له هغې څخه مختلف دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د کښتۍ، او بحري بیړۍ، تل له زمکې سره لګیدلی وي نو لمونځ پکښې صحیح دی او که چیرته په زمکې باندې نه وي لګیدلی نو ځینو علماوو له هغې څخه

د وتلو د امکان تر څنګ د لمانځه د صحت قول کړی دی لیکن راجحه دا ده چه په دې صورت کښې په کښتۍ او بحري بېړۍ کښې د تنه لمونځ صحیح نه دی بلکه د باندې را ووځي او لمونځ دې وکړي بلکه په روانه کښتۍ کښې هم که چیرته له کنارې سره ولګیږي او را وتل ترې ممکن وي نو د راجح قول په بناء سره په دې کښې هم لمونځ صحیح نه دی که چیرته کښتۍ چلوونکی کښتۍ لره له کنارې سره په لګولو باندې راضي نه شي یا په بندرګاه باندې د بېړۍ کارکوونکي یا عمله د باهر د وتلو اجازه ور نه کړي نو د کښتۍ په منځ کښې دې لمونځ وکړي لیکن وروسته ئې بیرته را ګرځول واجب دي

قال ابن عابدين رحمه الله وظاهر ما فى الهداية وغيرها الجواز قائماً مطلقا سواء استقرت على الارض اولا و صرح فى الايضاح بمنعه فى الثانى حيث امكنه الخروج الحاقا لها بالدابة نهر واختاره فى المحيط والبدائع بحر و عزاه فى الامداد ايضاً الى مجمع الروايات عن المصفى وجزم به فى نور الايضاح وعلى هٰذا ينبغى ان لا تجوز الصلوٰة فيها سائرة مع امكان الخروج الى البر وهٰذه المسألة الناس عنها غافلون. شرح المنية (رد المحتار ج۱، ص۶۱۳)

فقط والله تعالىٰ اعلم

۱۱ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۳ هجری

## په هوائي جهاز او بحري بېړۍ کښې د لمانځه حکم

**سوال**: په هوائي جهاز کښې لمونځ کیږي او که نه؟ که چیرته نه کیږي او له جهاز څخه تر کښته کیدو پورې د لمانځه د قضاء کیدو ویره وي نو څه به کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د پرواز په وخت په هوائي جهاز کښې د لمانځه حکم د روانې بحري بېړۍ په شان دی. یعنې په دې کښې د عذر له وجې د لمانځه ادا کول جائز دي (کالصلوٰة على الدابة) البته د دریدو په حالت کښې د دواړو حکمونه مختلف دي. هوائي جهاز چه په زمکې باندې ولاړ وي نو په هغه کښې په اتفاق سره لمونځ صحیح دی او بحري بېړۍ چه د زمکې له کنارې سره لګیدلې وي نو په هغې کښې د لمانځه جواز مختلف فیه دی. عدم جواز (نه جائز والی) ئې راجح دی. که چیرته د بحري بېړۍ عمله د لمانځه لپاره د را کښته کیدلو اجازه ور نه کړي نو په بېړۍ کښې دې لمونځونه وکړي لیکن وروسته ئې بیرته را ګرځول واجب دي.

فقط والله تعالىٰ اعلم

۶ شوال ۱۳۹۸ هجری

## د کراچۍ په بندرګاه کښې قصر نشته یعنې پوره لمونځ به کوي

**سوال**: د کراچۍ اوسیدونکي خلک یا د بېړۍ نوکران چه په بحري بېړۍ کښې سفر کوي نو هغوی ته د قصر د لمانځه حکم کله شروع او کله پای ته رسیږي؟ آیا په بېړۍ کښې تر کښیناستو

وروسته چه تر څو پورې بیړی د سمندر په ساحل (کنارې) کښې ولاړه وي قصر به کوي او که د هغې تر روانیدو وروسته به قصر لمونځونه شروع کوي؟ کومې بیړۍ چه د تجارت سامانونه خارج ته وړي یعنې کارګو شپ نومې بیړۍ. په هغو باندې د غلې یا داسې نورو سامانو په بارولو کښې کله کله ډیر وخت لګیږي. همدارنګه کراچۍ ته راتلونکې بیړۍ هم تر رسیدو وروسته په کنارې باندې ئې چه کوم منزل خالي نه وي نو له کنارې څخه په څه فاصلې باندې په سمندر کښې دریږي او د سامان په کښته کولو کښې ډیر وخت مصرفیږي. نو دا خلک به قصر لمونځونه کله پای ته رسوي؟ د بیړۍ کراچۍ ته په رسیدو باندې او که له بیړۍ څخه په را کښته کیدو باندې؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بندرګاه او انتظارګاه یعنې په بندرګاه کښې د ځای د نشت والي په صورت کښې چیرته چه بیړۍ په انتظار کښې درول کیږي د مصر یعنې ښار په فناء کښې داخل دی. د فناء او پخپله د ښار تر منځ چه زرعي زمکه او ۱۳۴/۱۲ متره فاصله نه وي نو د سفر په احکامو کښې د فناء حکم د ښار حکم دی. لهذا د روانیدو او د بیرته راتلو په وخت په دواړو صورتونو کښې په دواړو ځایونو کښې لمونځونه پوره ادا کیږي. البته کوم سړی چه په کراچۍ کښې مقیم نه وي او دلته ئې د پنځلسو ورځو د پاتې کیدو نیت هم نه وي نو هغه به قصر کوي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ رجب ۱۴۰۱ هجری

# القول الاظهر

## فی تحقیق مسافة السفر

## د سفر د مسافې تحقيق (څېړنه)

د صاع (پيمانې) او د سفر د مسافې تحقيق په متعلق د اوزان شرعيه په رساله کښې چه مصنف ئې حضرت مفتي محمد شفيع صاحب دی، د يوه سوال په ځواب کښې د دواړو تحقيق ليکل شوی دی، چونه داوړه مسئلې له جلا جلا بابونو سره تړلي دي د دې لپاره د هرې يوې لپاره د جلا نوم په غوره کولو سره پخپل پخپل باب کښې شامل کړی شوی دی. د صاع په اړوند تحقيق د "بسط الباع لتحقيق الصاع" په نامه په باب د صدقة الفطر کښې دی، د سفر د مسافې تحقيق دلته درج کيږي.
د صاع په اړه سوال د بسط الباع د رسالې په پيل کښې دی. (مرتب)

حضرت مولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله د اوزان شرعيه په رسالې کښې فرمائي:

"د امام اعظم رحمه الله راجح او صحيح مذهب دا دی چه د کومې خاصې اندازې تحديد په ميلونو اوداسې نورو ونه شي بلکه په دريو شپو او ورځو کښې چه څومره مسافه انسان د پښو په تګ سره په آسانئ طی کولې شي يا د اوښ په سورلئ کښې ئې په آسانئ سره وهلې شي همدا د شرعي مسافې اندازه ده. او د ابن همام د تصريح مطابق د غويو د سورلئ هم همدا حکم دی. او د بحر الرائق د تصريح مطابق له اوښ څخه هم د قافلې اوښ مراد دی، تيز تلونکی اوښ ترې مراد نه دی

او د دريو شپو او ورځو مطلب دا نه دی چه شپه او ورځ روان وي بلکه مراد يواځې په ورځ کښې تګ دی او هغه هم ټوله ورځ نه بلکه څومره اندازه چه په عادي توګه يو د منځنئ اندازې قوي سړی تګ کولی شي. کوم چه فقهاء ئې له سهار څخه د لمر تر زواله پورې اندازه کړې ده. (کما ذكره الشامی ومثله فی البحر ج۱،ص۱۴۰)

مخکښې فرمائي:

"په عامو متونو او شروحو کښې د جمهورو حنفي مشائخو تر منځ مختاره دا ده چه د ميلونو تعين و نه شي. فتح القدير، عمدة القاري، البحر الرائق، شامي، در مختار او داسې نورو ټولو په دې باندې اتفاق دی. د دوی په خلاف ځينو فقهاوو د فرسخونو او ميلونو تعين هم کړی دی، د حضرت امام مالک رحمه الله مذهب دا دی چه له ۴۸ ميلونو څخه په کمې مسافې کښې دې قصر نه کوي او همدا د امام احمد رحمه الله هم مذهب دی او له امام شافعي رحمه الله څخه هم يو روايت همداسې راغلی دی (عمدة القاري ج۳،ص۵۳۱)

او له حنفي مشائخو څخه ځينو يو ويشت فرسخه چه درې شپيته ميله کيږي او ځينو اتلس

فرسخه چه څلور پنځوس میله کیږي او څینو پنځلس فرسخه چه پنځه څلویښت میله کیږي د قصر مسافه ګڼلې ده. په عمدة القاري کښې د اتلسو فرسخو په قول باندې فتوی را نقل شوې ده او په بحر الرائق کښې هم د نهایه په حوالې سره په همدې قول باندې فتوی راغلې ده او شامي او بحر د مجتبی په حوالې سره د خوارزم د اکثرو امامانو فتوی د پنځلسو فرسخو په روایت باندې ذکر کړې ده (بحر ج۱، ص۱۴۰) انتهی ما فی الاوزا الشرعیة.

**قال العبد الضعیف** : د احنافو اګر که راجح قول دا دی چه د سفر د مسافې لپاره په میلونو او داسې نورو سره کومه خاصه اندازه ټاکل شوې نه ده بلکه په دریو شپو او ورځو کښې چه د منځنی اندازې قوت لرونکی سړی په پښو څومره مسافه په آسانی سره طی کولې شي هغه د شرعي سفر مسافه ده. لیکن په کومې زمانې کښې چه قافلې په پښو یا په اوښانو او داسې نورو باندې تللې په هغې زمانې کښې د دې اندازه لګول آسانه وو. د موټر. ریل ګاډي او هوائي جهاز په دې زمانه کښې د دریو ورځو د پښو د مسافې اندازه لګول د چا د وس خبره نه ده. ښائي چه په راتلونکې کښې تر دې هم د زیاتو تیز تلونکو شیانو زمانه راشي. لهذا د شرعې په احکامو کښې د سهولت له مخې اوس د میلونو تعین ضروري ښکاریږي. د میلونو په تعین کښې مختلف قولونه دي:

۲۱ فرسخ، ۱۸ فرسخ، ۱۶ فرسخ، ۱۵ فرسخ. یو فرسخ - ۳ شرعي میله ده. بیا د شرعي میل په اندازه کښې اختلاف دی. ۴ زره قدمه - ۲ زره ذراع. درې نیم زره ذراع او څلور زره ذراع یعنې دوه زره انګریزي ګزه. همدا قول معتمد علیه دی.

## فرسخ، شرعي میل، انګریزي میل او کلو متر

فرسخ - ۳ شرعي میله - ۳/۴۰۹۰۹۰۹ انګریزي میل - ۵/۴۸۲۴ کیلو متره
شرعي میل - ________________ ۲۰۰۰ ګزه
انګریزي میل - ________________ ۱۷۶۰ ګزه
شرعي میل - ۱/۱۳۶۳۶۳۶ انګریزي میل - ۱/۸۲۸۸۰۰۰ کیلو متره
انګریزي میل - ۰/۸۸۰۰۰۰۰ شرعي میل - ۱/۶۰۹۳۴۴۰ کیلو متره
کیلو متر - ۰/۵۴۶۸۰۶۶ شرعي میل - ۰/۶۲۱۳۷۱۱ انګریزي میله

په کتاب الفقه علی مذاهب الاربعه کښې د درې ګوني امامانو په نزد د سفر مسافه مساوي ده له ۱۲ فرسخو سره. او فرسخ مساوي دی له درې میله سره. او میل مساوي دی له ۶ زره ذراع سره. همدارنګه دې مسافت لره ئي ۸۰/۶۴ کیلومتره ګڼلی دی او د حنفیه وو خوا ته ئې د ۲۴ فرسخو قول منسوب کړی دی.

په دې ليکنې کښې ميل - د ۲ زره ذراع نسبت د ائمهٔ ثلاثه وو خوا ته او د سفر مسافه مساوي له ۲۴ فرسخو نسبت د حنفيه وو خوا ته صحيح نه دی. ممکنه ده چه د شپږو زرو ذراعو کوم قول د کوم امام وي ليکن دا د ائمهٔ ثلاثه وو مذهب تاکل صحيح نه دي. چنانچه علامه احمد بن دردير په الشرح الصغير علي اقرب المسالک الی مذهب الامام مالک کښې د درې نيمو ذراعو د قول تصحيح کړی دی. بيا ميل - ۲ زره ذراعو په اخيستو سره ۱۲ فرسخه - ۸۰/۲۴ کلو متره ګڼل صحيح نه دي. د صحيح حساب له مخې ۱۳۱/۲۷۳۲ کيلو متره جوړيږي

د احنافو اکثره مشائخو اتلس فرسخه مساوي له څلور پنځوس شرعي ميل سره مساوي له ۴/۱۱ ــ ۶۱ انګريزي ميل لره ئې د متوسط قول په ګڼلو سره فتوی پرې ورکړې ده. علامه شامي رحمه الله هم دې قول لره مفتی به ليکلی دی او احتياط هم په دې کښې دی.

په دويمې درجې کښې ۱۲ فرسخه - شرعي ميله - ۶/۱۱ ــ ۵۴ انګريزي ميله د سفر د مسافې ګڼلو قول دی. اګر که دا قول په احنافو کښې له هيچا څخه هم منقول نه دی سره له دې دا قول له دوو وجهو څخه په دريم قول باندې د ترجيح مستحق دی. يو دا چه دا قول د نورو دريو امامانو هم دی او دويمه وجه دا چه د اوزان شرعيه په رسالې کښې ئې له عمدة القاري څخه د دې په تائيد کښې دا حديث نقل کړی دی چه: **يا اهل مكة لا تقصروا الصلوة في ادنیٰ من اربعة برد من مكة الیٰ عسفان. (عمدة القاري ج۳، ص۵۳۱)**

د اوزان شرعيه په رسالې کښې ئې بريد لره ۱۲ انګريزي ميله بللی او له دې حديث څخه د ۴۸ انګريزي ميلو په مسافه باندې استدلال کړی دی کوم چه صحيح نه دی. ځکه چه بريد مساوي دی له ۱۲ شرعي ميلونو سره. چنانچه پخپل د اوزان شرعيه په ۲۴ مخ باندې دی.

"بريد څلور فرسخه يا دولس ميله مسافې ته ويل کيږي" او په ۲۷ مخ باندې ئې فرسخ له دريو شرعي ميلونو سره مساوي ليکلی دی. د دغو دواړو عبارتونو له يو ځای کولو څخه ثابته شوه چه بريد له ۱۲ شرعي ميلونو سره مساوي دی.

په دريمې درجې باندې د ۱۵ فرسخه - ۴۵ شرعي ميله - ۳/۲۲ ــ ۵۱ ميله انګريزي قول دی. له دې څخه د کمې مسافې هيڅ قول نشته.

د مذکوره ټولو قولونو نقشه

| | فرسخ | شرعي مېل | انګريزي ميل | کيلو متر |
|---|---|---|---|---|
| له زيات څخه زيات | ۲۱ = | ۶۳ = | ۷۱/۰۹۰۹ = | ۱۱۵/۲۱۴۴ |
| مفتی به قول | ۱۸ = | ۵۴ = | ۶۱/۳۶۳۶ = | ۹۸/۷۵۵۲ |
| دويم قول | ۱۶ = | ۴۸ = | ۵۴/۵۴۵۵ = | ۸۷/۷۸۲۴ |

۸۲/۲۹۶۰ = ۵۱/۱۳۶٤ = ٤۵ = ۱۵

له کم څخه کم

د هند د اکابرو علماوو خوا ته د ۴۸ انګریزي میلونو قول منسوب کیږي لیکن د اکابرو د لیکنو له پلټنې څخه ثابته شوه چه په هغو کښې د مطلق میل ذکر دی او د انګریزي د تکي قید ورسره نشته او متبادره ئې دا ده چه د هغو مراد شرعي میل دی. ځکه چه د ۴۸ انګریزي میلونو هیڅ ماخذ په نظر کښې نه راځي. یواځې په بهشتي زیور کښې د انګریزي میل ذکر شته کوم چه د جامع (د کتاب د یو ځای کوونکي) یا وروسته د خپروونکو تسامح (غلطي) معلومیږي

چه کله په غرنیو علاقو کښې د ۵۱ میلونو څخه د کمو میلونو قول نشته نو زمونږ په میداني یعنې هوارو علاقو کښې ۴۸ انګریزي میلونو لره د قصر د مسافې د تاکلو هیڅ ګنجائش نشته. د عمل لپاره مفتی به قول باید را واخیستل شي. سره له دې د هند د اکابرو علماوو قول ۴۸ شرعي میله- ۱/۲ ــ ۵۴ انګریزي میلونو په مطابق عمل هم جائز دی.

## د حضرت ګنګوهي قدّس سرّه فتوی

### د شرعي سفر مقدار

**سوال** د سفر په څومره اندازه مسافې سره د صحیحو احادیثو په مطابق په لمانځه کښې قصر باید وشي؟ (از عزیز الدین صاحب مراد آبادي)

**جواب**: څلور بریده چه د شپاړسو شپاړسو میلونو درې منزلونه کیږي. د موطاء امام مالک له حدیث څخه ثابتیږي. لیکن د میل مقدار مختلف دی. لهذا درې منزله د ټولو قولونو جامع قول راځي فقط والله تعالی اعلم رشید احمد عفی عنه.

**د فرسخ او میل تحدید (اندازه کول)**

**سوال** د فرسخ او میل معتبر تحدید کوم دی؟ (از عزیز الدین مراد آبادي)

**جواب** فرسخ درې میله او میل څلور زره قدمه لیکي لیکن دا ټول تقریبي امور دي اصل میل هغې مسافې ته ویل کیږي چه نظر مَیل ورته وکړي او دا هم د وخت، ځای او رایې په اعتبار سره مختلف دی والله اعلم رشید احمد عفی عنه (فتاوی رشیدیه ص۳۲۷)

د حضرت ګنګوهي له دې فتوی څخه ثابته شوه چه اته څلویښت شرعي میله مراد دي پاتې شوه د درېو منزلونو فیصلې ته ترجیح ورکول. البته په دې اړوند مونږ پورته لیکلي دي چه د سرعت سیر (تیز تللو) په دې زمانه کښې درې منزلونه په میلونو سره د اندازه کولو ضرورت دی.

حضرت مفتي عزیز الرحمٰن صاحب قدّس سرّه له فتوی څخه هم د شرعي میلونو حساب ثابتیږي. ځینو حضراتو د (اربعة برد) د حدیث له وجې د ریم قول او ځینو د سهولت له مخې څلورم قول

غوره کړې دی. لیکن دا حدیث ضعیف دی او څلورم قول اګر که اوسع دی لیکن دویم قول د اوسط او مفتی به والي برسیره احوط هم دی. د سفر د انتهائي آسانتیاوو او د تیز تلونکو سورلیو په دې دور کښې د سفر په مسافه کښې د سهولت په ځای د احتیاط اړخ ته ترجیح ورکول انسب دی.

## بحري سفر

په بحري سفر کښې د دریو ورځو د مسافې تعیین د کښتی په رفتار او د کار په وختونو باندې موقوف دی. د دې د تحقیق لپاره د فن ماهرین دار الافتاء ته وبلل شول چه تفصیل ئې په لاندې ډول دی:

د بحري بیړی کپتان ۲، د پاک بحریه افسر ۲، د بادباني کښتیو په سمندر کښې د اوږد ترینو سفرونو پخوانی تجربه کار ملاح ۹ (کښتی چلوونکی) چه مجموعه ئې دیارلس تنه ماهرین شول. دغو ټولو په اتفاق سره بې له شک او شبهې څخه په یقیني او قطعي توګه دا ځوابونه ورکړل:

۱ - بادباني کښتی پرته له کومې پیښې څخه په سمندر کښې هیڅرته نه دریږي او شپه او ورځ پرله پسې روانه وي.

۲ - په معتدله هوا کښې د بادباني کښتی اوسط رفتار په یوه ساعت کښې ۱/۲ ــ ۵ بحري میله دی.

لهذا د قصر مسافه: درې ورځې - ۷۲ ساعته × ۱/۲ ــ ۵ - ۳۹۲ بحري میل. بحري میل - ۲۷/ ۲۰۲۲ ګزه. د بحري لارې په محاذاتو کښې د برّي مسافې د اعتبار تحقیق به په تتمه کښې راشي انشاء الله تعالی.  فقط والله تعالیٰ اعلم  ۲۳ ذی قعده ۱۳۹۵ هجری

**(دا تحقیق ورک شوی دی که چیرته پیدا شو نو خامخا به خپریږي انشاء الله تعالی)، (مرتب)**

## ضمیمه

مولانا مهربان علي بړوتوي صاحب رساله "شرعي مسافه" را ورسیده، چه په هغې کښې د بنده په رساله "القول الاظهر في تحقیق مسافة السفر" باندې نیوکې شوي دي. په دې اړوند څو خبرې لیکل کیږي:

۱ - له دې څخه دا حقیقت روښانه شو چه د اکابرو په اقوالو کښې له "میل" څخه خاص انګریزي میل مراد دی. الله تعالی دې مؤلف ته د خیر بدله ورکړي.

۲ - د رسالې په دریم مخ باندې دي:

((اکابرو او په هغوی پسې د تلونکو ټول اُمّت لمونځونه خراب په نظر راځي)).

زما د اکابرو له رایې سره اختلاف نه وو بلکه د اکابرو په محمل کښې اختلاف وو، له دې څخه

د لمونځونو د فساد وهم څنګه درته پيدا شو؟ بلکه که چيرته د رايې اختلاف هم وای نو بيا هم د لمانځه د فساد کومه وجه نشته. په مجتهد فيها مسائلو کښې د رايې د اختلاف له وې د مخالف لوري په عباداتو باندې د فساد د حکم لګولو هيڅ جواز نشته.

د مجتهد فيها مسائلو د لا تعدادو مثالونو له جملې څخه يواځې يو څو مثالونه وړاندې کيږي، د مؤلف د فساد ګومان مخته کښيږدئ او غور پرې وکړئ:

۱- په حضراتو صحابهٔ کرامو رضی الله تعالی عنهم او د مذهبونو په امامانو رحمهم الله تعالی کښې د قرائت خلف الامام په باره کښې اختلاف دی. **عند البعض حرام او عند البعض فرض.**

د مؤلف په ګومان دغو حضراتو د اختلاف ډيره لويه فتنه برپا کړې له حضراتو صحابه وو رضی الله تعالی عنهم څخه را واخله تر قيامته پورې د راتلونکي ټول اُمت لمونځونه برباد کړي.

۲- د وينې په وتو او د ښځې په مس کولو سره د اوداسه د ماتيدلو اختلاف هم د صحابه وو رضی الله عنهم له زمانې څخه را روان دی. بيا د مذاهبو امامانو رحمهم الله د مؤلف په ګومان دا فتنه نوره هم داسې تيزه کړه چه تر قيامته پورې د ټول امت لمونځونه برباد.

۳- پخپله د بحث لاندې مسئله کښې له نورو مذاهبو څخه قطع نظر يواځې په حنفي مذهب کښې پنځه اقوال دي، يو قول د عدمِ تحديد او څلور قولونه د تحديد په مقدار کښې.

د مؤلف په ګومان دغو حضراتو د يوه او بل په مقابله کښې د محاذونو په جوړولو سره د ټل امت لمونځونه تباه کړي دي

۴- په دې مسئله کښې د علماء هند هم پنځه قولونه دي چه تفصيل په لاندې ډول دی:

(۱) حضرت ګنګوهي قدّس سرّه د عدمِ تحديد قائل دی. **کما سيجيء.**

(۲) څلور ويشت انګريزي ميله، حضرت نانوتوي رحمه الله. (د "شرعي مسافت" رساله ص۵۳)

(۳) شپږ ديرش انګريزي ميله. حضرت مولانا خليل احمد صاحب سهارنپوري. حضرت مولانا محمد يحيی صاحب. حضرت مفتي کفايت الله صاحب. حضرت مولانا عبد الحی لکهنوي صاحب. حضرت مولانا عبد الشکور لکهنوي صاحب رحمهم الله تعالی. (ص۱۸، ص۱۹)

(۴) پنځه څلويښت انګريزي ميله بلکه له دې څخه د کمو ميلونو خوا ته رجحان، حضرت مدني رحمه الله. (ص۲۵)

(۵) اته څلويښت انګريزي ميله، حضرت مولانا محمد يعقوب نانوتوي. حضرت حکيم الاُمّه او داسې نور اکابرين رحمهم الله تعالی. (ص۱۸ تر ص۲۵)

دمؤلف په ګومان سره په دغو اکابرو کښې د هيچا هم په اُمت باندې رحم را نه غی. د همعصری، هموطنی، هم عقيده او هم مشرب والي برسيره له يوه او بل سره د نژدې اړيکو د درلودلو تر څنګ

هم ئې پخپل منځ کښې د اختلاف د محاذ په خلاصولو سره د ټول اُمت لمونځونه برباد کړي
همدارنګه د مؤلف په ګومان سره د حضرت مدني قدّس سرّه له اکابرو سره د رايې د اختلاف تر څنګ محض د اکابرو په مروّت سره ئې خپل لمونځونه هم بربادول او د ټول اُمت لمونځونه هم.

**تنبيه**: لکه څرنګه چه د قصر له مسافې څخه په کم سفر کښې قصر جائز نه دی همدارنګه د قصر په مسافت کښې اتمام يعنې پوره لمونځ کول هم جائز نه دي. که چا اتمام وکړ نو لمونځ ئې واجب الاعاده دی.

د دې لپاره د مؤلف په ګومان يواځې د زياتې مسافې قائل ظالم نه دی بلکه د کمې مسافې قائل هم د اُمت د لمونځونو د بربادولو په ظلم کښې ککړ دی.

**احتياط**: د اختلاف او اشتباه په صورت کښې د لاندينيو وجوهاتو له مخې اتمام ارجح او احوط دی:

۱ - اتمام اصل دی او قصر د عارض له وجې دی. له دې امله پرته د عارض له پوخ يقين څخه قصر جائز نه دی.

۲ - د قصر په مقام کښې په اتمام سره لمونځ سره له کراهته کيږي ليکن د اتمام په مقام کښې په قصر سره قطعاً لمونځ نه کيږي. له دې امله د لرې مسافې قول واجب العمل دی. **ونصّ عليه الامام محمد رحمة الله عليه. (کتاب الحجة ج۱،ص۱۶۶)**

۳ - په مذاهب ثلاثه کښې د قصر په مقام کښې هم اتمام جائز دی. د هغو په مطابق لمونځ بې له کراهته کيږي. ليکن د اتمام په مقام کښې قصر په هيڅ يوه مذهب کښې هم لمونځ نه کيږي.

دا تفصيل د رايې د اختلاف په بار: کښې دی. د بنده په ليکنو کښې له اکابرو سره د رايې اختلاف نشته. په ظاهره دومره اختلاف خامخا په نظر راځي چه بنده د اته څلويښت ميلونو په ځای څلور پنځوس شرعي ميلونو ته ترجيح ورکړی دی. ليکن دا هم په غلط فهمۍ باندې مبني دی. د "اوزان شرعيه" د رسالې د تحرير له اسلوب (انداز) څخه بنده دا ګڼلې وه چه اکابرو د زمانې د حالاتو له مخې نه بلکه د حضراتو فقهاوو رحمهم الله له مختلفو اقوالو څخه د اته څلويښت شرعي ميلونو قول ته ترجيح ورکړی دی. په دې باندې بنده وليکل چه د فقهې په کتابونو کښې څلور پنځوس شرعي ميلونو ته ترجيح ورکړ شوی دی.

د "اوزان شرعيه" د ليکنې له اسلوب (انداز) څخه د دوه غلط فهميو تفصيل مخکښې راځي.

۳ - په شپږم مخ د مؤلف په حاشيه کښې او په درې څلويښتم مخ باندې په يوه تصديق کښې "په تيز رفتاري" باندې بحث راغلی دی.

د بنده د عبارت مطلب دومره واضح او څرګند دی چه دا دواړه حضرات ئې چه په لږ غوندې

توجه سره وګوري نو ان شاء الله د خپل بحث په عبث والي به پوه شي

زما مقصد دا دی چه د مال او زر په افراط او د تيز رفتارو سورليو د ډيروالي له وجې خلکو تر دومره اوږدې مسافې پورې په پښو يا د غوائي په ګاډي او د قافلې په اوښانو باندې د تللو مشقتونه پريږدي نو د دريو ورځو د تحديد فيصله کول به څرنګه ممکن وګرځي؟

۴ - په اولسم مخ باندې مؤلف او په څلويښتم مخ باندې مصدق د اکابرو د ليکنو په تتبع باندې اشکال ليکلی دی.

بنده په تتبع کښې د زيات کوشش ضرورت د دې لپاره و نه ګڼه چه د اکابرو د کلام د محمل په تعيين باندې خارجي. قوي. د غلبهٔ ظن موجبې قرينې ئې په مخکښې پروت وو لکه:

۱ - د "اوزان شرعيه" د ليکنې اسلوب. په ځانګړې توګه په دې ليکنې کښې د حضرت ګنګوهي قدّس سرّه فتوی. د دې تحرير تفصيل مخکښې راځي.

۲. - د اته څلويښت انګريزي ميلونو د فقهي په کتابونو کښې هيڅ يو مأخذ نه پيدا کيدل

۳ - د اکابرو په باره کښې دا نيک ګومان چه هغو پرته له سخت ضرورت څخه د مذهب د کتابونو په خلاف فتواوې نه ورکولې.

۵ - په اته څلويښت انګريزي ميل او د فقهاوو قول ۴۵ شرعي ميل = ۵۱ انګريزي ميلونو کښې کوم معتد به فرق نشته. يواځې د ورځې يو ميل فرق دی. په دې صورت کښې د فقهاوو د تحديد په پريښودو سره د نوي تحديد څه ضرورت دی؟

۵ - په شلم مخ باندې مؤلف د حضرت ګنګوهي قدّس سرّه په فتوی سره د اته څلويښت انګريزي ميلونو ثبوت پخپل خيال کښې په ډيره مدلله توګه وړاندې کړې ده

دا دعوې او دلائل په ښکاره توګه باطل دي. ځکه چه د څلور زرو قدمون شرعي ميل والی متفق عليه دی.

په دلائلو کښې د "اوزان شرعيه" او په هغې باندې د اکابرو له تصديقاتو څخه استدلال د دې لپاره باطل دی چه د بنده په مخکښيني. ليکنې کښې بحث هم په همدې باندې دی چه له دې فتوی څخه په انګريزي ميل باندې استدلال صحيح نه دی. ځکه چه له دې څخه خو شرعي ميل ثابتيږي تعجبه ده چه مؤلف مبحث لره د مستدل جوړولو جرئت څنګه کړی دی؟

مؤلف په دريم دليل کښې د عرف يادونه کړې ده

د عرف اعتبار به هلته صحيح کيدلی چه په فتوی کښې د څلور زره قدمونو ذکر نه وای. د شرعي ميل مقدار د مصرح والي تر څنګ په عرف باندې محمول کول او انګريزي ميل ترې مراد اخيستل ښکاره نکته چيني ده

۶ - په شپږ ويشتم مخ باندې مؤلف او په څلويښتم مخ باندې مصدق د بنده له خوا څخه د هند

د ټولو علماوو او ټولو اکابرو تخطیه او تغلیط نسبت لیکلی دی.

پورته د دویم نمبر شمارې لاندې لیکل شوید ي چه د بنده د اکابرو له رایې سره اختلاف نه وو. د چا د خبرې د محمل نه پوهیدلو ته د تخطیه او تغلیط ویلو څه جواز دی؟

پرته له دې څخه که چیرته په واقعیت کښې د رایې اختلاف وای نو د هغې اظهار ته د علم هیڅ یو خاوند هم تنقیص (کم ګڼل) نه شي ویلی. د دلیل د واضح والي تر څنګ د چا له مروت یا عقیدت څخه کتمان ما في الضمیر په دین کښې د مداهنت (چاپلوسی) له وجې حرام دی.

د حضرت امام رحمه الله بلکه د ټولو امامانو رحمهم الله فتواوې دڅو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم په خلاف دي.

د حضرت امام رحمه الله د اصحابو رحمهم الله اقوال د ده د څو اقوالو په خلاف دي. بلکه حضرت امام صاحب پخپله خپلو اصحابو ته حکم کاوه چه زما په خلاف د د دلیل تر واضح والي وروسته پخپل تحقیق باندې عمل وکړئ.

حضرات فقهاء کرام رحمهم الله تعالی د نورو مذاهبو په امامانو باندې په څومره زور او شور سره ردونه کوي.

بلکه د مذهب په مشائخو کښې خپل منځي هم د ډیرو ردونو او قدحونو تعامل دی چه د حدیثو شروح او د فقهې د کتابونو ذخیرې ترې ډکې دي.

پخپله زمونږ اکابرو د بحث لاندې مسئله کښې د خپلو اکابرو یعنې حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله په خلاف فتوی ورکړې ده.

آیا دا ټول حضرات معاذ الله! ټول عمر د خپلو بزرګانو د تنقیص غوندې د عظیم جرم او ګناه مرتکب پاتې شوي دي؟ هیڅکله نه. دغو حضراتو پخپلو زړونو کښې د اکابرو لوئي او محبت د کمال په درجه کښې د ساتلو تر څنګ د رائې د اختلاف اظهار (ښکارول) ئې فرض او اخفاء او کتمان (پټول) ئې مداهنت (چاپلوسي) او حرام ګڼل.

بنده خپلو شاګردانو ته څو څو ځله په تاکید سره دا خبرداری ورکړی دی چه که چیرته په کومې مسئلې کښې ستاسو رایه له ما څخه مختلفه وي نو خامخا ئې ښکاره کړئ. بیا که چیرته تر اجتماعي غور وروسته هم اتفاق پرې را نه شي نو د تاسو لپاره له ما سره موافقت کول جائز نه دي، بلکه پخپلې رایې باندې قائم اوسیدل او د ضرورت په وخت کښې د هغې ښکارول هم په تاسو فرض دی.

لنډه دا چه پخپل منځ کښې د بحث او تمحیص په ذریعې سره د شرعي مسائلو تنقیر او تنقیح سلسله (لړی) له حضراتو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم څخه را واخله تر اوسه پورې په ټول اُمت کښې را روانه ده او تر قیامته به جاري وي. د حضراتو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم او تر دوی وروسته د ټول اُمت تعامل ته غلط ویل او د اکابرو تنقیص ګڼل د هغوی په شان کښې ډیره لویه سخته ګستاخي ده. د اسلام په

دې منل شوې اصول او د هغه مطابق د ټول اُمت په دې تعامل باندې اعتراض کول سخته ناپوهي او خطرناک ضلالت (ګمراهي) دی.

د مؤلف او مصدق په باره کښې زما نیک ګومان دی چه هغوی به له دومره واضح حقیقت څخه کیداشی بې خبره نه وي. سره له دې هغوی ته چه کوم اشکال ور لویدلی دی د هغه دا توجیه کیدلی شي چه ښائي د هغوی په ذهن کښې د اُمت په تعامل او زما په طرز عمل کښې کوم ژور فرق وي. که چیرته هغوی د دې څرګندونه کړې وای نو په بنده باندې به ئې احسان کړی وای چه په هغه باندې ئې د غور په کولو سره د ځان د اصلاح کوشش کړی وای.

۷ - د ۳۸ مخ په آخر کښې مصدق صاحب د بنده په لیکنه باندې دا اعتراض کړی دی چه هغې کښې د یوه قول په ثابتولو سره د هغه په خلاف نور قولونو لره ممنوع ټاکلی دی.

دا اعتراض د دې لپاره صحیح نه دی چه په راتلونکي عنوان "د کار صحیح طریقه" لاندې د مذکوره تفصیل مطابق د بنده د پوره لیکنې محور همدغه دی چه د تحدید د مقدار په اړه د حضراتو فقهاء کرامو له مختلفو اقوالو څخه یوه قول ته ترجیح ورکول کیږي. د اکابرو فتوی لره هم ما په همدې اړوند ګڼلی وو. د دې لپاره زما په تحریر یا لیکنه کښې "له دې څخه د کمې مسافې هیڅ قول نه پیدا کیږي" ـــــ "له دې څخه د کمې مسافې ګنجائش نشته" ـــــ "د اته څلویښت انګریزي میلونو هیڅ ماخذ نشته" غوندې جملو باندې کوم اعتراض کول د بنده له اصلي مقصد او د ټولې لیکنې له محور څخه د سترګې پټونې نتیجه ده. چنانچه د همدې رسالې په نهه څلویښتم مخ کښې په لیکل شوي تصدیق کښې د بنده د مقصد صحیح تشریح موجود دی. غنیمت دی چه په دومره حضراتو کښې یو څوک خو دومره په خبرو باندې پوهیدونکی پیدا شو.

۸ - د پنځه څلویښتم مخ په آخر کښې همدغه مصدق صاحب د بنده خوا ته د **(اربعة برد)** د حدیث تضعیف منسوب کړی او د هغه تردید ئې کړی دی.

حالانکه تضعیف ئې حضرت مفتي محمد شفیع صاحب رحمه الله کړی دی. کوم چه ما اعتماداً را نقل کړی دی. لیکن مصدق دې لره په داسې انداز وړاندې کړی دی چه ګوا که دا غلطي له بنده څخه شوی دی.

د مصدق صاحب له دغو څلورو با لکل ښکاره او بدیهي لغزشونو څخه کوم چه پورته په دریم نمبر، شپږم نمبر، اووم نمبر او اتم نمبر شمارو کښې لیکل شوي دي په څرګنده توګه ثابته شوه چه ده د بنده په تحریر باندې د تردید د لیکلو په وخت کښې د تحریر په ویلو کښې په لږ غوندې توجه څخه د کار اخیستلو ضرورت نه دی محسوس کړی **(این کار از تو آید و مردان چنین کنند)**

په ځانګړې توګه مصدق صاحب په اتمې شمارې کښې مذکوره څلورمه غلطي خو ډیره سخته کړې ده. د مفتئ اعظم حضرت مفتي محمد شفیع صاحب رحمه الله د یو داسې رسالې په یوې برخې

باندې ئې تردید کړی دی په کومې باندې چه د حضرت حکیم الامۃ قدس سرهٔ او نورو لویو لویو اکابرو تصدیقات موجود دي. دا غلطي د مؤلف په ګومان سره بلکه په څلویښتم مخ باندې پخپله د مصدق صاحب د لیکنې مطابق هم د اکابرو د تغلیط، تخطیه او تنقیص کید له وجې ناقابل معافي جرم دی

د مصدق صاحب دا څلور غلطی کومې چه ډیرې واضحې او ښکاره دي یواځې د هغو په ګوت نیونې (ښکاره کولو) باندې اکتفاء کوم او که نه په لسو مخونو کښې خوره شوې په دې لیکنه کښې ځای ځای بالخصوص په څلور څلویښتم مخ کښې په درج شوي ترمیماتو باندې بې اختیاره له زړه څخه د "ما شاء الله" شاباسی را ووځي

**ز فرق تا بقدم هر کجا که می نگرم کرشمه دامن دل می کشد که جا اینجا ست**

۹ - په څلور پنځوسم مخ باندې یوه مصدق صاحب د بنده خوا ته د "فساد نیت" په منسوبولو سره عظیمه ښیګړه کړې ده **جزاه الله تعالیٰ احسن الجزاء.**

د هغه دا احسان یواځې په ما نه دی بلکه پخپله په هغه باندې هم دی ځکه چه د هغه د دې لیکنې تر ویلو وروسته ما هره ورځ د هغه لپاره د ایصال ثواب او د خیر د دُعا ګانو معمول جوړ کړی دی

۱۰ - په دې رسالې کښې د علماء هند د پنځو اقوالو د نقل کولو ترڅنګ اته څلویښت انګریزي میلونو قول ئې په داسې انداز وړاندې کړی دی چه ګوا که دا قطعي نص دی چه په هغه کښې تر قیامته پورې د ذرې په برابر هر ډول کمی زیاتی کول حرام دي

د بنده په لیکنې باندې دا اعتراض نه شي کیدلی چه مفصله وجه ئې پورته په اووم نمبر شمارې کښې تیر شو

۱۱ - که چیرته په عوامو کښې د انتشار د ویرې او داسې نور مصالحو له مخې کوم یوه تحدید لره برقراره ساتل ضروري دی او پرته د سخت ضرورت څخه د هغه بدلول صحیح نه دی نو د حضراتو فقهاء کرامو تحدید مو ولې پرینښود؟ بالخصوص په داسې حال کښې چه زیات تفاوت هم پکښې نشته یواځې یو میل دورځې دکمولو کومه سخته مجبوري او سخت ضرورت مخې ته راغی؟

او که چیرته د زمانې د تغیّر مطابق د تحدید تغییر لازم دی او د دې لپاره کوم معمولي مصلحت هم کافي دی نو په دې باندې دا اشتباه ده چه د اکابرو په دې تحدید باندې د یوې پیړی اوږده موده تیره شوې ده نو آیا په قوی کښې د غیر معمولي انحطاط او سقوط هره ورځ زیاتیدنه په دې تحدید کښې د زیات تخفیف اقتضاء نه کوی؟

بالخصوص په داسې حال کښې چه کله د مؤلف د تحریر مطابق حضرت مدني قدس سرهٔ پخپلې زمانې کښې مزید د یوه میل هره ورځ د تخفیف ضرورت محسوس کاوه، تر ده وروسته هم تقریبا

نیمه پیړۍ نوره هم تیره شوې ده نو اوس خو په طریقهٔ اولی سره په تخفیف باندې غور باید وشي.

## د کار صحیح طریقه

د تفقه په نظر سره صحیح طریق کار دا دی چه د وخت د تفقه خاوندانو د علماؤ داسې ډله چه په هغې باندې د عوامو اعتماد وي پخپلې زمانې باندې په ژور نظر سره د غور تر کولو وروسته که چیرته د تحدید د تبدیل والي معتد به عام ضرورت محسوس کړي نو د هغه په مطابق دې متفقه فیصله اعلان کړي.

د اکابرو تحدید په همدې خبرې باندې مبني وو. په راتلونکي کښې د زمانې د تغیر په نظر کښې ساتلو سره د دې تحدید په تغییر باندې د غور او حالاتو مطابق په مذکوره شرائطو باید د تغییر او تبدیل سلسله جاري پاتې شي.

د بنده مخکښینۍ لیکنه د دې خیال لاندې شوې وه چه د اکابرو فتوی د زمانې د حالاتو د تنقیر او تفتیش په ځای د فقهاؤ رحمهم الله په اقوالو باندې منبي دی. او هغو په مختلفو اقوالو کښې د اته څلویښت شرعي میلونو قول غوره کړی دی.

دا دوه غلط فهمۍ د "اوزان شرعیه" د رسالې د تحریر له اسلوب څخه پیدا شول. په نوموړې رساله کښې لومړی ئې د هندوستان د علماؤ قول اته څلویښت انګریزي میله لیکلی دی.

بیا ئې په دې باندې د **(اربعةبرد)** له حدیث څخه استدلال وړاندې کړی دی.

بیا ئې په دې باندې د حضرت ګنګوهي قدّس سرّه د فتوی تفریع کړې ده، چه په هغې کښې څلور برید = اته څلویښت میلونو ذکر دی.

دې تفصیل ته په کتو سره هر سړی په دې پوهیږي چه په دعوی او دلائلو کښې مطابقت نشته. دعوی ده د اته څلویښت انګریزي میلونو او په دلائلو کښې څلور بریده وړاندې کوي کوم چه له هغه څخه اته څلویښت میله شرعي جوړیږي.

چنانچه پخپله د "اوزان شرعیه" د رسالې په ۲۴ مخ کښې برید = څلور فرسخه او په ۲۷ مخ کښې ئې فرسخ له درې شرعي میلونو سره مساوي ګڼلی دی.

او د حضرت ګنګوهي قدّس سرّه په فتوی کښې هم د میل مساوي له څلور زره قدمونو سره تصریح شته او دا مسلم دی چه د څلور زرو قدمونو میل شرعي وي.

د "اوزان شرعیه" په آخر کښې چه کومه نقشه ورکړل شوې ده په دې کښې هم فرسخ = له دریو شرعي میلونو تر لیکلو وروسته ئې برید له دولس میله انګریزي سره برابر کړی دی. چه کله برید = له څلور فرسخ سره او فرسخ = له درې شرعي میلونو سره دی نو برید = له دولسو انګریزي میلونو سره څنګه شو؟

مؤلف چه د "اوزان شرعيه" د رسالې د تحرير کوم وضاحت کړې دی د هغه حاصل دا دی چه د پوره عبارت له کتلو څخه دا واضح کيږي چه د اکابرو په اقوال کښې انګريزي ميل مراد دی. چنانچه مخکښې په تلو سره په ۲۰ مخ باندې د حضرت ګنګوهي قدس سرّه فتوی د "اوزان شرعيه" په رسالې کښې ئې د تائيد په توګه په راوړلو سره هم ثابته کړې ده چه له دې عبارت او د ده له دليل څخه د انګريزي ميل ثابتول مقصود دي.

په دې باره کښې هيله ده چه بنده له دې څخه کله انکار کړی دی؟ بلکه بنده خو پخپل مخکښيني تحرير کښې هم دا اشکال وړاندې کړی دی چه د انګريزي ميل دعوی او د اکابرو خوا ته ئې د نسبت د ثابتولو لپاره چه کوم دلائل ليکلي دي له هغو څخه نه د انګريزي ميل دعوی ثابتيږي او نه د اکابرو خوا ته د انګريزي ميل نسبت ثابتيږي بلکه د دې برعکس د دعوی او د نسبت دواړو لپاره له وړاندې شوي دليلونو څخه شرعي ميل ثابتيږي.

د حضرت ګنګوهي قدس سرّه په دې فتوی کښې اګر که د عدمِ تحديد خوا ته اشاره ده ليکن چونکه دی د اکابرو رئيس او مشر دی د دې لپاره بنده له دې څخه دا اخيستی دی چه تر ده وروسته چه اکابرو کوم تحديد فرمايلی دی هغه د همدې مطابق په شرعي ميل سره کيږي. د همدې لپاره بنده د اکابرو په مراد باندې د پوهيدو لپاره د زياتې پلټنې ضرورت محسوس نه کړ. تر دې وروسته د اکابرو د عباراتو له مخته راتلو څخه معلومه شوه چه هغو د خپلې زمانې د خلکو د قوی او لارو د حالاتو مخته په کيښودو سره د تحديد د مقدار په اړه د فقهاؤ د اقوالو په پريښودو سره د اته څلويښت انګريزي ميلونو تحديد کړی دی.

په هر حال بنده د خپلې اشتباه بناء ليکلې ده. د دې وجه که د کتاب د عبارت قصور وي او که د بنده د پوهې قصور. له دې امله چا ته د اشتباه د مذکوره تقرير په کوم جزء کښې کومه خبره وي نو د وړاندې کولو حاجت ئې نشته.

بنده د خپلې ليکنې له خپرولو څخه مخکښې دوه د فن ماهرين او مشهور مفتيانِ کرام مولانا محمد عاشق الهي صاحب بلند شهري ثم المدني او مفتي عبد الستار صاحب د جامعۀ خيرا المدارس ملتان د دار الافتاء رئيس سره په دې باره کښې استشاره کړې وه. د دغو دواړو حضراتو هم د مذکوره دوو بنيادي خبرو خوا ته توجه نه ولاړه. بلکه د اکابرو په کلام کښې له "ميل" څخه د شرعي ميل په مراد کيدو باندې د حضرت ګنګوهي قدس سرّه له فتوی څخه استدلال پخپله مفتي عبد الستار صاحب وړاندې کړې وه.

په هر صورت اوس د اکابرو مراد او د هغوی د فتوی بناء واضحه شوه نو زه د خپل مخکښيني تحرير څخه رجوع کوم. تر څو پورې چه اهلِ تفقّه علماء د زمانې په حالاتو باندې په اجتماعي توګه له سره د غور او فکر په کولو سره کومه نوې فيصله و نه کړي تر هغه وخته پورې به د سفر

مسافه په لاندې ډول پاتې وي:

د سفر مسافه - ۴۸ انګریزي میله - ۷۷/۲۴۸۵ کیلو متره.

دا هم په یاد ولرئ چه دا فیصله د پاکستان او هندوستان د هوارو علاقو لپاره ده. د نورو علاقو فیصله به د هغو ځایونو د اوسیدونکو په قوی او د لارې په حالاتو باندې موقوفه وي.

## آخري ټکی

دا طریقِ کار اګر که د اصل مذهب په مطابق دی لیکن د ائمه وو رحمهم الله په زمانه کښې چونکه د قافلو د سفر عام رواج وو د دې لپاره د دریو ورځو مسافه عامه مشهوره وه. ټول خلک پرې پوهیدل، د هیچا لپاره هم د دې معلومول کوم مشکل کار نه وو. لیکن په دې زمانه کښې د دې په تعیین کښې لاندیني مشکلات دي:

۱ - د یوه ملک په مختلفو علاقو کښې د مقادیرو د تعیین لپاره د هغو ځایونو د اوسیدونکو او لارو په حالاتو باندې د اجتماعي غور کولو غیر معمولي جد و جهد (کوشش)

۲ - بیا د زمانې په تیریدو سره دوباره هغه مشقّت او تکلیف.

۳ - د رایو داختلاف ظنِ غالب کوم چه په عوامو کښې د انتشاراو له دین څخه دنفرت باعث دی

۴ - په پښو او د غوائي په ګاډي او داسې نور باندې د سفر د معدوم یا کا لمعدوم کیدو په صورت کښې د تحدید د فیصلې تعسّر بلکه تعذر.

۵ - له اکابرو سره په عقیدت کښې دومره غلو (زیاتی) چه د هغو له خوا څخه د هغوی د زمانې او ځایونو په حالاتو باندې د مبني تحدید په خلاف د امکنه ووتر اختلاف، د زمانې تر تیریدو او د احوالو تر تغیر وروسته هم تر قیامته پورې د څه فکر کول یا څه ویل حرام بلل شوي دي. په دغو حالاتو کښې نو د زمانو تر تیریدو او احوالو تر تغیر وروسته هم څوک د تحدید د نوي کیدو د تجویز د وړاندې کولو جرئت څنګه کولی شي؟

د دغو مذکوره مشکلاتو له مخې سهولت او مصلحت په دې کښې دی چه د حضرات فقهاء کرامو له اقوالو څخه یو قول معیار وګرځول شي. البته که چیرته په کومې زمانې یا ځای کښې په دې باندې عمل کول ډیر سخت هم شي او دا سختوالی د اهلِ تفقّه په نظر کښې ښه واضح او محقق وګرځي نو د داسې مجبورۍ په حالت کښې باید د تجدیدِ تحدید کوشش وشي. اګر که د پیاده سفر د متروک کیدو له وجې په راتلونکي کښې د داسې مجبورۍ د مخته راتللو په ظاهره هیڅ احتمال نشته.

حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی د همدې مصلحت له مخې د "ماء کثیر" په مقدار کښې د تحدید قول لره غوره کړی دی. د دې لپاره چه د مبتلی به په رایې باندې حواله ورکول د طبعیتونو

د اختلاف له وجې د رايو د اختلاف او انتشار سبب گرخي

د سفر له رخصت څخه خو خاص مقصد دمشقت دفع کول او د سهولت ور بخښل دي. بيا په دې کښې داسې قول غوره کول چه په هغه باندې د عمل کولو په صورت کښې پورتني ياد شوي مشکلاتو په تحمل سره کوم خلاصون نشته. په سفر کښې د رخصت د مقصد خلاف دی. د يوه يا دوه ميلونو د مسافې د قطع کولو يا طی کولو مشقت د يادو شويو مشکلاتو د مشقت په مقابله کښې اهون يعنې ډير آسانه دی. په ځانگړې توگه په داسې حال کښې چه د سفر د سهولتونو او له بهتر څخه بهترو سورليو په ډيروالي کښې ورځ په ورځ غير معمولي زياتوالی راځي چه له مخې ئې لرې نه ده چه د پياده سفرونو سلسله يا لړۍ له دُنيا څخه بالکل له منځ لاړ شي بلکه په پاکستان کښې خو اوس به هم بنائي دا سلسله چيرته پاتې وي

چه له ما سره څه وو هغه مې وړاندې کړل. کيدلی شي چه کوم "مهربان" دا هم د اکابرو تنقيص (کم گڼل) د اکابرو او په هغوی پسې د تلونکي ټول أمت د لمونځونو د فساد حکم او د هوس او جاه خوښت وگڼي **وفقنا الله الجميع لما يحبّ ويرضٰى.**

رشيد احمد. ۲۳ رمضان ۱٤۱۰ هجری

# وطن الارتحال يبقى ببقاء الاثقال

## د اثقالو په پریښودو سره سفر د اقامت وطن نه باطلوي

مخدوم او مکرم جناب حضرت مفتي صاحب مد ظلهم العالي؛ السلام عليکم ور حمة الله و برکاته.

یو مسئله د تحقیق او تصدیق لپاره ستاسو حضور ته وړاندې کوم هیله ده چه په مدلل خواب سره ئې ښائسته کړئ. په مدرسه کښې الحمد لله خیرت دی. حضرت مهتمم صاحب مد ظلهم العالي هم روغ او جوړ دی. فقط و السلام.

بنده عبد الستار عف الله عنه.نائب مفتي خير المدارس ملتان **۸۶/۹/۱هجری**

**سوال:** زه په منډي بهاؤ الدين کښې خطيب يم او په مستقله توګه ملازمت کوم. ما ته د اوقافو د محکمې له خوا د اوسيدنې يو کور راکړل شوی دی.زما اوهل او عيال سره د کور د سامانونو هم له ما سره د اوسيدو په دې کور کښې دي. البته زما اصلي وطن سلانوالي ضلع سرګودها دی. د هغه ځای اوسيدونکی يم او د اقامت وطن مې دا منډي بهاؤ الدين دی. يو فاضل عالم فرمائي چه د شرعي سفر لپاره چه زه کله هم له منډي بهاؤ الدين څخه د باندې ووځم او بيا بيرته منډي بهاؤ الدين ته راځم نو تر هغو به قصر کوم تر څو پورې مې چه تر بيرته را تلو وروسته د پنځلسو ورځو د پاتې کيدو اراده نه وي کړې. مثلاً که چيرته له شرعي سفر څخه تر بيرته راتلو وروسته په منډي تر اوه يا لسو ورځو پورې بيرته چيرې په سفر ځم نو قصر به په ما لازم وي او مقتديانو ته پوره لمونځ نه شم ورکولی. د پوښتنې وړ خبره دا ده چه په منډي بهاؤ الدين کښې په باقاعده توګه د اوسيدو او د مال او اولاد د موجودوالي تر څنګ بيا هم له شرعي سفر څخه تر بيرته راتلو وروسته د شرعي اقامت لپاره د پنځلسو ورځو نيت کول شرط دي او که نه؟ او له منډي څخه اکثره زه په سفر ځم. او کله کله دا سفرونه د لنډو وقفو څخه وروسته په مسلسله توګه وي. نو زه به څرنګه امامت وکولی شم؟ په مدلله توګه ئې وليکئ.

**الجواب:** د نوموړي فاضل پورتنی ياده شوې فتوی کيدلی شي د متونو د سفر په اطلاق باندې مبني وي. د متونو عبارت دا دی. **ويبطل الوطن الاصلی بمثله لا السفر و وطن الاقامة بمثله و السفر و الاصلی.(کنزوغيره)** له دې عبارت څخه په ظاهره دا څرګنديږي چه د اقامت له وطن څخه محض د سفر په نيت سره وتل د هغه لپاره مبطل دی. ليکن د دې عبارت ظاهر لره د کافي ګڼلو په ځای دا مناسبه معلوميږي چه د هغه تر صحيح مراد پورې د رسيدو لپاره په نورو فقهي عباراتو باندې نظر واچول شي. په عباراتو باندې د غور له کولو څخه څرګنديږي چه د اقامت له وطن څخه محض سفر

کول د هغه مبطل نه دی بلکه په اصل کښې سفر د ارتحال په صورت کښې مبطل دی. یعنې دا باطلوالی به په هغه وخت کښې وي چه د اقامت له وطن څخه سفر ته د تلو په وخت کښې خپل سامان او داسې نور هم له ځانه سره یوړل شي چه له دې څخه دا پوهه منځ ته راځي چه د نوموړي سړي فی الحال دلته د بیرته راتلو اراده نشته. همدا وجه ده چه اصلي وطن په سفر سره نه باطلیږي ځکه چه له اصلي وطن څخه سفر کول ترکِ توطن یا لوطن الاصلي یا له توطن څخه په مخ گرځولو دلالت نه کوي بلکه د اهل او عیال موجودوالی په دې امر باندې دلالت کوي چه له دې ځایه تلونکی دې ځای ته د بیرته راتللو په قصد او ارادې سره ځي تر دې پورې که چیرته له اصلي وطن څخه تلونکی له اهل او عیال سره لاړ شي او بل ځای اصلي وطن جوړ کړي نو د لومړي اصلي وطن والی له منځه ځي لکه څرنگه چه د فقهې په ټولو کتابونو کښې ئې تصریح شوی دی. له دې څخه څرگنده شوه چه په اصل کښې د وطن د بطلان مدار په سفر مع ترکِ توطن یا اعراض عن التوطن باندې دی، په محض خروج باندې د سفر په نیت سره نه دی. پس له کوم وطن څخه هم چه د ترکِ توطن عزم وکړي او له هغه ځای څخه ووځي یا بل ځای خپل وطن جوړ کړي هغه وطن باطلیږي. که هغه وطنِ اصلي وي او که وطنِ اقامت، البته له دغو دواړو وطنونو څخه د سفر په کولو کښې په عامه توگه یو فرق وي چه د هغه له وجې څخه د دغو دواړو وطنونو په اړل د سفر حکم مختلف بلل شوی دی چه سفر د اصلي وطن لپاره مبطل (باطلوونکی) نه دی او د اقامت د وطن لپاره مبطل دی. هغه فرق دا دی چه له اصلي وطن څخه په عامول حالاتو کښې سفر پرته د ترکِ وطن له ارادې څخه وي. د کوم حالت لپاره سفر واقع شي نو بیا بیرته ئې هلته راتگ وي او دا سفر په صورت د ارتحال نه وي او د اقامت له وطن څخه سفر په عمومي توگه د ترکِ توطن په ارادې سره وي. ځکه چه اصل اوسیدنه خو ئې په کوم بل ځای کښې دی دلته ئې پاتې کیدل د کوم حاجت لپاره وو. د ضرورت په پوره کیدو باندې به له دې ځایه څخه ځي. لکه د تجارت. ملاقات. حج او داسې نورو سفرونه. پس دا سفر په عمومي توگه خاصل د ارتحال په صورت سره وي.

د دې فرق له مخې دا ویل شوي دي چه سفر د اقامت د وطن لپاره مبطل دی ځکه چه د اقامت د وطن په بازه کښې د سفر عام معروف او معتاد فرد همداسې سفر وي **والمطلق اذا اطلق یرادبه الفرد الکامل** پس د متونو تعبیر د سفر د همدې فرد مطلق په باړې کښې به وي، د سفر د ټولو قسمونو په باره کښې نه دی. چنانچه د بدائع الصنائع له تعلیل څخه دا حقیقت د رڼا ورځې غوندې ښکاریږي چه کوم سفر د اقامت د وطن لپاره مبطل دی هغه کوم سفر دی؟ او په متونو کښې چه د سفر کوم لفظ راغلی دی له هغه څخه څه مراد دی؟ ملک العلماء، امام ابو بکر الکاساني رحمه الله لیکي

**وينقض بالسفر ايضاً لان توطنه في هذا المقام ليس للقرار ولكن لحاجته فاذا سافر منه يستدل به على انقضاء حاجته فصار معرضا عن التوطن به فصار ناقضاً له دلالةً.** (ج۱،ص۱۰۳)

له تعليل څخه ښكاريږي چه دا هغه سفر دی چه له هغه څخه د دې خبرې دليل جوړ شي چه اوس دلته د پاتې كيدنې حاجت نه دی پاتې شوی او تلونكی د دې ځای وطنيت ختم كړی وي او دا په هغه سفر كښې وي كوم چه د ارتحال په صورت كښې وي او په كوم ښار كښې چه د زيد اهل او عيال وي او په كامله توګه ئې اوسيدنه وي. د يوې يا دوو ورځو لپاره كه چيرته زيد چيرته لاړ شي نو د زيد دا سفر د حاجت په پوره كيدلو. اعراض عن التوطن او نقض للتوطن په يوه باندې هم هيڅكله هيڅكله دلالت نه كوي بلكه د ثقل يعنې د كور د سامانونو او اهل و عيال بقاء د توطن د بقاء قطعي دليل دی او كه چيرته د سفر له لفظ څخه مراد د شرعي سفر هر فرد وي كه د ارتحال په صورت كښې وي يا نه وي نو په دليل او دعوی كښې به انطباق څنګه وي؟ په داسې حال كښې چه دعوی عامه او دليل خاص دی.

له دې څخه پرته صاحبِ بحر او داسې نور د دې خبرې تصريح نقل كړی دی چه د ثقل په بقاء سره د اقامت وطن باقي پاتې كيږي كه په بل ځای كښې هم مقيم شي. له دې تصريح څخه د بدائع د تعليل مفهوم بالكل واضح كيږي. **وهذا نصه وفي المحيط ولو كان له اهل بالكوفة واهل بالبصرة فمات اهله بالبصرة وبقي له دور وعقار بالبصرة لا تبقى وطناً له وقيل تبقى وطناً لانها كانت وطناً له بالاهل والدار جميعاً فبزوال احدهما لا يرتفع الوطن كوطن الاقامة يبقى ببقاء الثقل وان اقام بموضع اٰخر اه.** (ج۲،ص۱۴۸)

او د محيط په حوالې سره بعينه همدغه جزئيه د مجمع الانهر په ج۱،ص۱۶۴ كښې هم موجوده ده صاحبِ بحر او صاحبِ نهر همدارنګه په منحة الخالق كښې علامه شامي په دې باندې كوم كلام نه دی كړی

**فائده** له پورتني تفصيل او نورو عبارتونو څخه دا څرګنديږي چه كه وطنِ اصلي وي يا وطنِ اقامت په حقيقت كښې هغه وخت باطليږي چه دهغه په شمارشويو باطلوونكو كښې **دلالة على نقض الوطن السابق** (د مخكښيني وطن د ماتولو دلالت) پيدا شي. وګورئ د اصلي وطن لپاره بل اصلي وطن مبطل ګڼل شوی دی او په متونو كښې دا بطلان مطلق دی. له كوم قيد سره مقيد نه دی حالانكه دويم اصلي وطن په مطلقه توګه د لومړي وطن لپاره مبطل نه دی بلكه په هغه صورت كښې مبطل دی چه كله د لومړي وطن د نقض وطنيت په كولو سره دويم وطن هم اصلي وطن جوړ كړي او كه نه نو كه چيرته لومړنی وطن پخپل پخوانی حالت باندې په پريښودو سره په بل ځای كښې واده وكړي او دا ځای د خپلې مستقلې اوسيدنې لپاره غوره كوي نو لومړی اصلي وطن په

دې سره نه باطلیږي **كما في البحر و غيره قيدنا بكونه انتقل عن الاول باهله لانه لو لم ينتقل بهم ولكنه استحدث اهلاً في بلدة اخرى فان الاول لم يبطل ويتم فيهما.** (ج۲، ص۱۴۸) بلکه علامه طحطاوي لیکلي دي چه له دوو څخه زیات اصلي وطنونه هم کیدلی شي چه څوک ئې جوړ کړي او په متونو کښې ئې دویم مبطل د اقامت وطن شمار کړی دی چه دویم وطنِ اقامت د لومړي وطنِ اقامت لپاره مبطل دی او دلته هم په الفاظو کښې اطلاق دی او په ظاهره کوم قید پکښې موجود نه دی حالانکه لکه څرنګه په اول صورت کښې بطلان مقید دی همدارنګه دلته هم مقید دی یعنې دویم وطنِ اقامت د لومړي لپاره هلته مبطل ګرځي چه د لومړي وطنِ اقامت وطنیت ختم کړي او که چیرته د لومړي وطن والی ختم نه کړي بلکه هلته اوسیدنه په دستور سره پاتې وي. ښځه بچیان او سامان هلته وي او په دویم ځای کښې له شرعي اقامت سره مقیم وګرځي نو په دې سره د اقامت لومړی وطن نه باطلیږي لکه څرنګه چه د محیط په جزئیه کښې مصرح دی **كوطن الاقامة يبقى ببقاء الثقل وان اقام بموضع اخر اه.** پس لکه څرنګه چه په دغو دواړو باطلوونکو کښې الفاظ مطلق دي لیکن مراد ئې خاص دی همدارنګه دریم مبطل (سفر) په باره کښې وي کیږي چه ګوا که په لفظونو کښې عموم دی لیکن مراد ئې خاص سفر دی کوم چه د ارتحال په صورت کښې وي لکه څرنګه چه د بدائع له تعلیل څخه ئې مفهوم را ووځي.

د اهل و عیال او ثقل په بقاء سره اقامت او توطن باقي پاتې کیږي. عرف هم د دې تائید کوي چنانچه یو څوک له اهل او عیال سره په یو ښار کښې وي ګوا که دا ئې اصلي وطن نه وي محض د هغه د یوې یا دوو ورځو لپاره په سفر باندې په تلو سره دا نه ویل کیږي چه هغه دلته اوسیدل پریښي دي او نه دې سفر ته څوک ترکِ سکونت وائي او نه هم له سفر څخه بیرته راتلل څوک تجدیدِ وطن یا له سره سکونت بولي. البته که چیرته له ښځه بچیان او داسې نور هم له ځان سره بوځي او بیرته د راتلو اراده هم دلته و نه لري نو اوس یقیناً دا ویل کیږي چه هغه له دې ځایه څخه اوسیدل ترک کړي دي.

له پورتني تفصیل څخه څرګندیږي چه کوم سړی په کوم ښار کښې له ښځې او بچیانو سره اوسیږي او د معاش او روزي ګټنې ذریعه ئې هم له همدې ښار سره تړلې وي نو د هغه دا توطن هلته باطلیږي چه کله په دې ښار کښې اوسیدل پای ورسوي او لاړ شي. محض په عارضي او وختي سفرونو باندې د ده د اقامت دا وطن نه باطلیږي او د متونو د جزئیې همدا مطلب دی چه د اقامت له وطن څخه چه کله سفر د ارتحال په صورت کښې وي نو دا به د هغه لپاره مبطل وي پس په صورت مسئوله کښې سائل له سفر څخه وروسته چه کله هم منډي بهاؤ الدین ته رسیږی مقیم ګڼل کیږي او لمونځ به پوره کوي بلکه له ځینو عبارتونو څخه خو داسې مقام د وطن اصلي د

کیدو شبهه څرګندیږي په کتاب الفقه للعلامة عبد الرحمٰن الجزربي مطبوعهٔ مصر کښې د وطن اصلي تعریف داسې شوی دی. **وهو الذی ولد فیه اوله فیه زوج فی عصمته او قصد ان یرتزق فیه وان لم یولد به ولم یکن له به زوج اه. (باب المسافر) فقط والله تعالیٰ اعلم**

**عبد الستار نائب مفتی خیر المدارس ملتان ۱۳۸۶/۹/۱ هجری**

**الجواب باسم ملهم الصواب** مسئله صحیح ده چه د ثقل په بقاء سره د اقامت وطن نه باطلیږي البته په تحریر کښې لاندیني امور د اصلاح قابل دي.

۱ - د کتاب الفقه عبارت **(او قصد ان یرتزق فیه)**

څخه په دې باندې استدلال یا د دې تائید صحیح نه دی ځکه د ارتزاق له قصد څخه مقصد دا دی چه د ارتزاق قصد علی سبیل الدوام (په دوامداره توګه) وي لکه څرنګه چه په مطلق تولد یا تزوج سره یو وطن اصلي وطن نه جوړیږي چه تر څو پورې په هغه کښې علی سبیل الدوام د اقامت قصد نه وي.

**قال فی الخانیة المسافر اذا جاوز عمران مصره. (الیٰ قوله) ان کان ذٰلك وطناً اصلیاً بان کان مولده وسکن فیه اولم یکن مولده ولٰکنه تأهل به وجعله داراً الخ. (خانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۱۶۵)**

له دې څخه ثابته شوه چه د تولد او تأهل ځای هلته وطن اصلي ګرځي چه په هغه کښې د اوسیدلو او د کور د جوړولو قصد هم وي. د مسئلې د اثبات لپاره چه کوم نور دلائل لیکل شوي دي هغه کافي او وافي دي.

۲ - د دې خبرې څرګندونه ضروري ده چه د وطن اقامت د بقاء حکم په هغه صورت کښې دی چه هلته ئې خپل اهل او عیال پریښي وي او تللی وي یا سامان پخپل مقبوض مکان کښې پریښی او تللی وي. که چیرته سامان له چا سره د ودیعت (امانت) په توګه پریښی او تللی وي نو د اقامت وطن باطلیږي. د دې لپاره چه دې ته په عرف کښې سکونت نه ویل کیږي.

**وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله علیه (قوله حلف لا یساکن فلاناً) فان کان ساکناً معه فان اخذ فی النقلة وهی ممکنة والا حنث قال محمد رحمه الله علیه فان کان وهب له المتاع وقبضه منه وخرج من ساعته ولیس من رأیه العود فلیس بمساکن وکذٰلك ان اودعه المتاع او اعاره ثم خرج لا یرید العود. بحر (رد المحتار ج۳ص۸۰)**

۳ - په تحریر کښې د دې عبارت چه "په اصل کښې د وطن د بطلان مدار (تر) که دا وطن وطن اصلي وي یا وطن اقامت" ترمیم ضروري دی ځکه چه وطن اصلي یواځې په اعراض له توطن څخه نه باطلیږي بلکه له اعراض سره په بل وطن کښې وطن نیول هم شرط دی. **فقط والله تعالیٰ اعلم.**

رشیداحمد ، ۱۳ رمضان المبارک ۱۳۸٦ هجری

## د پورتنۍ یادې شوې مسئلې په اړه په متضادو ځوابونو کښې فیصله

مخدوم العلماء جناب حضرت مفتي صاحب دامت برکاتهم!

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته مزاج گرامي مو په خیر

ستاسو له مهربانۍ نه ډک لیک د مولانا خیر محمد صاحب په واسطې سره را ورسید د اقامت د وطن په باره کښې د قاسم العلوم بعینه فتوی د خیر المدارس له تحریر سره ستاسو په خدمت کښې دی. هیله ده چه له خپلې عالي رایې څخه مو زر تر زره خبردار کړئ.

**(بنده عبد الستار عفا الله عنه) از دار الافتاء خیر المدارس ملتان.**

## د قاسم العلوم فتوی

### هو المصوب

**:** په فقهي عباراتو، متونو، شروحو او حواشیو باندې د غور له کولو څخه په ظاهره چه څه معلومیږي هغه په واقعیت کښې تر تدبر او تأمل وروسته هم د هغه صحیح مراد دی. هغه دا چه د اقامت وطن په مطلق وتو سره په نیت د سفر باطلیږي. که د یاد شوي خروج په وخت ئې دلته د بیرته راتلو کومه اراده نه وي یا د خروج په وخت کښې له څو ورځو وروسته کوم وخت دې وطنِ اقامت ته د بیرته راتلو په اراده سره ئې سفر کړی وي. همدارنګه که ئې ساز و سامان. متاع او ثقل له ځان سره وړی وي یا ئې په همدې وطن کښې پریښی وي پر هر صورت په شرعي سفر سره د اقامت وطن باطلیږي. د متونو او شروحو په عبارتونو باندې چه څو څو ځله غور وشي نو همدا مطلب په ښکاره توګه په ذهن کښې راځي. او همدا شی د وطنِ اصلي او وطنِ اقامت تر منځ هغه شی دی چه امتیاز ئې پرې کیږي. د اقامت د وطن لپاره د شرعي سفر هر فرد مبطل دی او د اصلي وطن لپاره د شرعي سفر هر فرد مبطل نه دی. چنانچه له اصلي وطن څخه وتونکی سړی له خپل وطن څخه په قصد د اعراض (بیرته نه راتګ) اګر که خپل ټول ساز او سامان، اهل او عیال او داسې نور له ځان سره یوسي، کوم کور. آبادي او داسې نور ئې هم دلته پاتې نه شي. لرې لرې ځایونو ته په سفر لاړ شي څو ځایونه یو په بل پسې د اوسیدو یا محض د اقامت وطنونه جوړ کړي نو بیا هم د ده اصلي وطن نه دی باطل شوی او د دې سفرونو افراد کامله همدارنګه د اقامت دا وطنونه د اصلي وطن لپاره هیڅکله مبطل نه دی. تر دې پورې چه کوم ځای لره خپل اصلي وطن (تل تر تله د اوسیدو ځای) جوړ نه کړي

کما قال الشامی تحـ قول التنویر الوطن الاصلی یبطل بمثله. (ج۱، ص۵۵٦) (قوله یبطل بمثله) سواء کان

بینهما مسیرة سفر اولا. ولا خلاف فی ذلك كما فی المحیط قهستانی وقید بقوله مثله لانه لو انتقل منه قاصداً غیره ثم بدا له ان یتوطن فی مكان آخر فمرّ بالاول اتم لانه لم یتوطن غیرهٔ. نهر. وفی الدر المختار ایضاً. (ج۱، ص۵۵۰) ویبطل (وطن الاقامة بمثله و) ب الوطن (الاصلی) وبانشاء (السفر) وقال الشامی تحته مطلقاً (قوله وبانشاء السفر) ای منه وكذا من غیره اذا لم یمرّ فیه علیه قبل سیر مدة السفر الخ.

باقي د بحر له عبارت په حواله د محیط (كوطن الاقامة یبقی ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر) څخه د بمثله تقیید معلومیږي نه چه د (والسفر) تقیید. او د دې عبارت مطلب به دا وي چه پرته د سفر له انشاء څخه که چیرته یو څوک د اقامت له وطن څخه ووځي او یو بل نژدې ځای کښې د اقامت وطن جوړ کړي نو د متونو د دې عبارت د اطلاق پر بناء چه (و وطن الاقامة بمثله) په هر صورت هغه مخکښینی وطن اقامت باطلیږي لیکن محیط دا قید لګولی دی چه دا باطلوالی به هلته وي چه ساز و سامان، ثقل او داسې نور له ځان سره یوسي او نژدې کوم بل ځای کښې ئې د اقامت نیت کړی وي او که چیرته ئې ثقل منتقل کړی نه وي نو د اقامت لومړنی وطن پخپل حال پاتې دی او هغه دویم وطن هم د ده لپاره د اقامت وطن جوړ شوی دی. (هذا هو الظاهر۔ هكذا نفهمهٔ) باقي د بدائع په مذكوره عبارت كښې دعوی عامه ده او تعلیل ئې خاص دی او داسې استدلال د فقهاوو په كلام كښې په ګڼو ځایونو كښې موجود دی. همدارنګه د رسم المفتي اصول دی چه د فقهاوو له تعلیلاتو څخه فقهي احكام نه ثابتیږي. د دې لپاره نقل یا اصل په كار دی. فقط والله تعالیٰ اعلم

كتبه عبد اللطیف معین مفتی مدرسه قاسم العلوم ملتان. ۲۳ رمضان ۱۳۸۶ هجری

## جواب له خیر المدارس څخه

د قاسم العلوم د مدرسې نائب مفتي صاحب خپل ځواب لیکلی وو او د خیر المدارس مدرسې ته ئې تشریف راوړی وو. ژبنی خبرې روانې وې. د ځواب په توګه مونږ د هغه په خدمت كښې دا وړاندیز كړی وو چه

۱- ستاسو دعوی دا ده چه "هر شرعي سفر د اقامت د وطن لپاره مبطل دی" او د دې په دلیل كښې چه تاسو كوم عبارتونه وړاندې كړي دي دا هغه عام عبارتونه دي چه د هغو له جملې څخه یو عبارت مونږ د خپل تحریر په پیل كښې لیكلی وو او دا عبارتونه د استغراق د اثبات لپاره كافي نه دي. ځكه چه هیڅ یو داسې لفظ چه دال علی الاستغراق وي موجود نه دی. او كه نه نو هر اصلي وطن به د لومړي اصلي وطن لپاره مبطل ګرځي او هر وطن اقامت د لومړي وطن اقامت لپاره مبطل جوړیږي. حالانكه تاسو په هغو كښې د تعدّد د جواز قائل یی، ځكه چه په متونو كښې د دریوارو

باطلوونکو تعبیر تقریباً یو شان دی

۲ - د محیط عبارت لره صاحب بحر د کوم مبطل د تقیید لپاره نقل کړی نه دی بلکه د دویم وطنِ اصلي په بحث کښې د دې یادونه راغلې ده او همدارنګه دا چه په دې عبارت کښې چه کوم "ان اقام بموضع آخر" موجود دی دا "موضع آخر" لره د "مادون السفر" له قید سره مقید کول بې له دلیله دی او لکه څرنګه چه د دې په مشبه وطنِ اصلي کښې داسې کوم قید موجود نه دی په ظاهره په دې مشبه‌به کښې داسې کوم قید وجود نه لري

۳ - د بدائع د تعلیل په اړه عرض شوی دی وو چه له دې تعلیل څخه دا خبره بالکل څرګنده ده چه کم تر کمه د بدائع ملا صاحب په یقیني توګه د سفر دا لفظ د هر سفر لپاره په عامه توګه نه اخلي بلکه د سفر هغه مخصوص فرد ترې اخلي چه په هغه کښې د وطن په ماتولو باندې دلالت پیدا شي پس د سفر له دې لفظ څخه باید همدا مراد واخیستل شي او که چیرته د کوم فقیه له کلام څخه د دې لفظ عموم او د سفر ټولو افرادو ته شامل والی محقق شي نو به منل شي

پاتې شوه دا وینا چه د "فقهاوو په کلام کښې داسې استدلال په بې شمیره ځایونو کښې موجود دی" د دې معنی خو دا ده شوه چه فقهاء د داسې دعوی او دلیل عدمِ انطباق باندې نه پوهیدل او صاحبِ بدائع هم له دې غټې غوندې خبرې څخه بې خبره دی. د دې خبرې له منلو څخه خو مونږ کم تر کمه قاصر یو.

د مسئلې له تعلیل څخه د مسئلې د صورت وضاحت کیږي دا حقیقت د علم له هیڅ یوه خاوند څخه پټ نه دی. د پلټنې په کولو سره د دې بې شمیره مثالونه پیدا کیدلی شي فقط

خادم بنده **عبد الستار عفا الله عنه** **۱۳۸٦/۱۰/۲۸هجری**

**الجواب باسم ملهم الصواب** د قاسم العلوم په فتوی کښې چه د محیط د جزئیې کوم مطلب بیان شوی دی هغه صحیح نه دی. په دې کښې "پرته د سفر له انشاء څخه کوم دویم نژدې ځای لره د اقامت وطن جوړ کړي" قید پرته له دلیل څخه دی که چیرته د بحث لاندې صورت کښې دویم ځای د اقامت وطن جوړول د مخکښیني وطنِ اقامت لپاره مبطل نه دی نو د سفر انشاء ولې مبطل دی؟ په دواړو کښې د فرق تکی کوم یو دی؟

چه کله د اقامت وطن مبطل نه دی نو سفر خو به په طریقهٔ اولی مبطل نه وي ځکه چه د سفر په نسبت سره وطن قوي دی. دا خبره تر معقول والي برسیره د فقهاؤ رحمهم الله له عباراتو څخه هم ثابته ده. چنانچه په ټولو کتابونو کښې دا په تصریح راغلي دي چه د اصلي وطن لپاره سفر مبطل نه دی او دویم اصلي وطن سره له اعراض له لومړي وطن څخه د اولني وطن مبطل دی. له دې څخه څرګنده شوه چه د سفر په نسبت سره په وطن کښې د ابطال قوت زیات دی (**و هو ظاهر جداً**).

اقامت مبطل نه کیدل او د سفر مبطل کیدل با لکل غیر معقول دی د بدائع د تعلیل په اړه چه څه لیکل شوي دي هغه هم قیاس ته نژدې نه دی اگر که په حکم عقلیه باندې د شرعي احکامو د وجود او عدم مدار نه وي لیکن په علت باندې د معلول مدار لازم دی هغه علت به څه وي چه په هغه باندې د معلول مدار نه وي؟

هو! داسې ځایونه چه چیرته د علت وجود داسې پټ او مخفي وي چه پرې پوهیدل معسر (سخت) وي هلته مقدس شریعت سبب لره د علت د قائم مقام په ګڼلو سره حکم نافذ کړی دی لکه څرنګه چه خوب ئې د باد د وتلو او سفر ئې د مشقت قائم مقام ګڼلی او د آوداسه د ماتیدلو او قصر او افطار احکام ئې جاري کړي دي. د بحث لاندې مسئله له دې ډول څخه نه ده چه په دې کښې سبب یعنې سفر لره علت یعنې د اعراض عن التوطن قائم مقام ګرځول او خاص په نفس سفر باندې د وطن د ابطال حکم ولګول شي بلکه د علت ایجاد پخپله د مسافر په اختیار کښې دی او د هغه په نیت باندې موقوف دی

خلاصه دا چه د بنده په نظر کښې د خیر المدارس ځواب صحیح دی فقط و الله تعالی اعلم

**رشید احمد ۱۳ ذی القعده ۱۳۸٦ هجری**

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

بخدمت اقدس حضرت مفتي صاحب. السلام علیکم و رحمة الله و برکاته!

له تاسو جناب څخه د لاندینی مسئلې تحقیق مطلوب دی د ملتان یوه عالم او مفتي صاحب تحقیق ستاسو په خدمت کښې وړاندې کوم په غور سره ئې تر مطالعه کولو وروسته د هغې تائید یا تردید له دلائلو سره ولیکئ تر څو چه تسلي مو وشي هیله ده چه تاسو جناب مونږ له خپل تحقیق څخه خامخا خبردار کړئ

**سوال** زید په ملتان کښې ملازمت کوي او دلته اوسیږي یعنې ملتان ئې د اقامت وطن دی د ده د کور سامن. ښځه او بچیان له ده سره په ملتان کښې اوسیږي په داسې حال کښې چه اصلي وطن ئې لائل پور دی اوس هغه د شرعي سفر لپاره له ملتان څخه د باندې ځي او چه بیرته راځي نو په ملتان کښې د پنځلسو ورځو د پاتې کیدو اراده نه کوي ځکه چه په یوې هفتې یا لسو ورځو کښې بیا کوم ځای ته په سفر باندې روان دی نو په دې حالت کښې به هغه قصر کوي او که اتمام؟ په شرعي سفر سره د اقامت په وطن کښې تر بیرته راتلو وروسته د لمانځه د اتمام لپاره د پنځلسو ورځو د اقامت نیت شرط دی او که نه؟

**جواب** دا جواب هم د مفتي عبد الستار لخوا څخه لیکل شوی دی په دې کښې هم د مضمون او دلائلو اکثره برخه هغه ده کومه چه مخکښې تیره شوه د دې لپاره له دې ځواب څخه

يو اخې هغه خبرې را نقل کيږي کومې چه په مخکښيني خواب کښې نه وې. مرتب

کوم سرى چه په کوم ښار کښې په باقاعده توګه له کډې او بچيانو سره اوسيدل غوره کړى وي نو د هغه دا توطن هلته باطليږي چه کله له دې ښار څخه اوسيدل پاى ته ورسوي او لاړ شي. محض په عارضي او وختي سفرونو سره د ده د اقامت دا وطن نه باطليږي او د متونو د جزئيې هم همدا مطلب دى چه د اقامت له وطن څخه چه کله ارتحال وشي نو دا به د هغه لپاره مبطل وي. محض سفر مبطل نه ګرځي

له کوم وطن څخه چه ترکِ وطن وکړي هغه وطن باطليږي که هغه وطنِ اصلي وي او که وطنِ اقامت البته د اقامت له وطن څخه په عامه توګه سفر چونکه مخکښې همداسې وو يعنې له کډې سره به وو څکه چه دلته به ئې پاتې کيدل د حاجت لپاره وو. د ضرورت په پوره کيدو باندې به ئې ارتحال کاوه. خصوصاً په هغې زمانې کښې چه د تګ او راتګ موجوده ذرائع او اسباب موجود نه وو لهذا نفس سفر ئې د دې سفر په خاطر مبطل ګڼلى دى او د کوم قيد حاجت ئې پکښې نه دى ليدلى لکه څرنګه چه دويم وطن اصلي لره ئې د لومړي وطن لپاره بې له کوم قيد څخه مبطل شمار کړى دى حالانکه دا بطلان د لومړني وطن له ترک سره مقيد دى. (د دې څه ناخه تفصيل مخکښې را روان دى) ليکن چونکه په عامه توګه چه کله دويم وطن په مستقله توګه وطن نيول کيږي نو لومړى يو ځل پريښودل کيږي او بيا دويم نيول کيږي. لهذا د دې قيد د تصريح ضرورت په "متونو" کښې نه دى ليدل شوى نو ګوا که د متونو تعبير د اقامت له وطن څخه د يوه خاص سفر په باره کښې دى نه د ټولو سفرونو په باره کښې.

د اقامت وطن په سفر سره باطليږي. په کتاب الفقه لعبد الرحمٰن الجزيري کښې د دې تعبير په دې الفاظو سره شوى دى. **ثانيها يبطل بمثلها فلو سافر مسافة قصر الى مكان صالح للاقامة وقام به خمسة عشر يوماً ناوياً ثم ارتحل عنه الى مكان آخر وقام به كذٰلك الخ.**

دا شبهه مه کوئ چه دا حکم په هغه صورت کښې دى چه په کوم صورت کښې شرعي سفر نه وي بلکه د اقامت په وطن کښې د خپل سامان او داسې نورو په پريښودو سره کوم نژدې ځاى ته لاړ شي ځکه چه دا تقييد بې له دليله دى او موضع آخر مطلق دى کوم چه دواړو مسافو ته يعنې پوره شرعي سفر او کم تر شرعي سفر دواړو ته شامل دى او که چيرته د متونو د سفر اطلاق د تقييد دليل وګڼل شي او داسې وويل شي چه چونکه په متونو کښې شرعي سفر د اقامت د وطن لپاره په مطلقه توګه مبطل بلل شوى دى که هغه له کډې سره وي يا محض شرعي سفر وي. لهذا د نظر مخې ته دا جزئيه له کم تر شرعي سفر سره مقيد کيږي. نو د دې خواب دا دى چه د دې برعکس بيا ولې نه کيږي (يعنې د محيط جزئيه دې مطلقه ونيول شي او د متونو اطلاق دې مقيد کړى شي) د

ترجیح وجه پکښې څه شی دی؟ خصوصاً په داسې حال کښې چه د متونو په اطلاق کښې د تقیید دلیل د صاحبِ بدائع له تعلیل څخه څرګندیږي. پس چه کله دواړه خبرې محتملې شوې نو د تقیید ثبوت نه شي کیدلی او که چیرته با لفرض دا و هم منل شي چه د محیط جزئیه تر شرعي سفر په کمې مسافې باندې محمول دی نو د نفس مسئلې په ثبوت باندې کوم اثر نه لویږي ځکه چه په دې جزئیه کښې دا هم ښکاره ده چه په بل ځای کښې له مقیم کیدو څخه مخکښې د اقامت وطن نه باطلیږي بلکه د سامان د موجودوالي له وجې به باقي پاتې وي. (لکه څرنګه چه د دویم اصلي وطن تر غوره کولو مخکښې لومړنی اصلي وطن نه باطلیږي تر څو چه لومړنی په قصد سره باطل نه کړي او په هغه ځای کښې خپل اوسیدل او داسې نور پای ته و نه رسوي) حالانکه په متونو کښې دویم وطنِ اقامت ئې د لومړي لپاره مبطل لیکلی دی پس په نوموړې جزئیې سره "بقاء ثقل" د وطنِ اقامت د بطلان لپاره مانع کیدل ثابت شو او همدغه مطلوب وو. پس لکه څرنګه چه په وطنِ اقامت سره په دې صورت کښې لومړنی وطنِ اقامت نه باطلیږي همدارنګه په سفر سره هم نه باطلیږي ځکه چه په وجود مقتضٰی او وجود مانع کښې دواړه برابر دي. (د متونو د اطلاق له اعتباره په اول ملکښې) دویم وطنِ اقامت جوړول د بطلان مقتضي دی (او د محیط د جزئیې په اعتبار سره) بقاء ثقل د بطلان مانع شو. همدارنګه په ملا کښې شرعي سفر کول مقتضي او بقاء ثقل مانع بطلان شو.

د قَسم په باره کښې هم فقهاؤ دا خبره مبنٰی ګرځولې ده چه که چیرته یو څوک په کوم ښار کښې د نه اوسیدو قَسم وخوري نو له ښار څخه یواځې تلل به د قَسم د ماتیدو لپاره کافي نه وي بلکه له دې سره سره د بیرته نه را ګرځیدلو عزم هم ضروري دی او که چیرته د بیرته راتللو په ارادې سره لاړ شي نو د دې سفر تر څنګ په نوموړي ښار کښې د ده اوسیدنه باقي تصوّر کیږي اګر که دی هلته موجود نه وي بلکه صاحبِ نهر په دې باندې دا اضافه هم کړې ده له اهل او عیال سره لاړ شي نو له حنث څخه بچ کیږي او که نه نه نو بچ کیږي. ګوا که رملي او داسې نورو د دې تردید کړی دی او ویلي ئې دي چه دا ضروري نه دی البته د بیرته نه را ګرځیدلو عزم لازمي دی.

ففی الکنز و البحر: لا یسکن هٰذه الدار او البیت او المحلة فخرج و بقی متاعهٗ و اهلهٗ حنث لانّهٗ یعدّ ساکناً ببقاء اهله و متاعه فیها عرفاً (الٰی ان قال) قیّد بالثلاثة و السکة کالمحلة لانّهٗ لو کان الیمین علی المصر او البلدة لا یتوقّف البر علی نقل المتاع و الاهل کما روی عن ابی یوسف لانّهٗ لا یعدّ ساکناً فی الذی انتقل عنه عرفاً بخلاف الاوّل و قال ابن عابدین فی منحة الخالق و فی النهر و فی مصرنا یعدّ ساکناً بترك اهله و متاعه فیها و لو خرج وحده فینبغی ان یحنث قال الرّملی کونهٗ یعدّ ساکناً مطلقاً غیر مسلّم بل انّما یعدّ ساکناً اذا کان قصد العود امّا اذا خرج منها لا بقصد العود لا یعدّ ساکناً و لعلّه مقیّد بذلك کما یفهم ممّا یأتی من قوله و کذا لو ابت المرأة الخ.

(بحر ج۲،ص۳۰۶) و کذا فی الشامیة (ج۲،ص۸۰) و مسألة لو ابت المرأة ان ا......... و غلبته و خرج هو و لم یرد العود الیه. (الی قوله) لم یحنث (بحر ج۲،ص۳۰۶) و کذا فی الشامیة (ج۲،ص۷۹)

**(ولم یرد العود الیه)** له قید څخه معلومه شوه چه ښځه په همدې ښار کې په پریښودو سره د بیرته راتلو په نیت سره که چیرته لاړ شي نو حانث گرځي او **(لا یسکن فی هذا المصر)** کښې دی صادق نه تصوّر کیږي بلکه د ده سابقه سکونت او اقامت باقي گڼل کیږي د سکونت او شرعي اقامت دواړو مصداق تقریباً یو شی دی لکه څرنگه له لاندینی جزئیې څخه څرگندیږي. **وفی الواقعات لا یساکن فلاناً فنزل منزله فمکث فیه یوماً او یومین لا یحنث لانه لا یکون ساکناً معه حتّٰی یقیم معه فی منزله خمسة عشر یوماً وهذا بمنزلة مالو حلف لا یسکن الکوفة فمرّ بها مسافراً فنوی اربعة عشر یوماً لا یحنث فان نوی خمسة عشر یوماً یحنث. (بحر ج۲،ص۳۲۴)**

او د صاحبِ نهر او رملي له کلام څخه مخکښې څرگنده شوې ده چه یو اوسیدونکی چه کله له یوه ښار څخه په سفر لاړ شي او اهل و عیال هم هلته پریږدي او د بیرته راتلو اراده ئې هم وي نو په ښار کښې د ده سکونت باقي گڼل کیږي. نو لکه څرنگه چه په دې صورت کښې سکونت باقي گڼل کیږي همدارنگه په داسې صورت کښې اقامت هم باقي گڼل کیږي تر څو چه په اقامت او سکونت کښې لکه څرنگه چه حدوثاً مساوات (یو شان والی) دی همدارنگه زوالاً هم مساوات پکښې باقي پاتې شي.

څرگنده دې وي چه له بقاء ثقل څخه دا مراد دي چه په سامان باندې د ده قبضه هم باقي پاتې وي او که چیرته له چا سره خپل سامان د ودیعت په توگه کښیږدي یا ئې چا ته په عاریت ورکړي نو د داسې سامان بقاء د اوسیدنې او اقامت د بقاء موجب نه گرځي **کما یدل علیه قول محمد الأتی حلف لا یساکن فلاناً فان کان ساکناً معه فان اخذ فی النقلة وهی ممکنة والا حنث قال محمد فان کان وهب له متاعه و قبضه منه و خرج من ساعته ولیس من رأیه العود فلیس بمساکن و کذلک ان اودعه المتاع او اعاره ثم خرج لا یرید العود الخ. (شامی ج۲،س۸۰)**

پس په صورت مسئوله کښې زید چه کله له سفر څخه د ملتان وطن ته ورسیږي نو پخپله مقیم گڼل کیږي او لمونځ به پوره کوي همدارنگه یوه وجه دا هم ده چه د اشتباه په ځای کښې اتمام لازم دی. بله دا چه د اقامت وطن په کوم ځای کښې چه ښځه او بچیان د چا موجود وي محض په عارضي سفر سره نه باطلوالی له دې خبرې څخه هم ښکاره ده چه له عارضي سفر څخه په بیرته کیدو باندې بې د نیت له تجدید (نوي کولو) څخه د ده مسافر والی لرې خبره ده او دا هلته کیدلی

شي چه د ده مخکښيني اقامت باقي وګڼل شي که چيرته په سفر سره د اقامت وطن باطل کيدلی نو دا سړی به د تل لپاره مسافر پاتې کيدلی تر څو ئې چه د پنځلسو ورځو د پاتې کيدلو نيت نه کولی نو ځرګنده شوه چه په محض سفر سره د اقامت وطن نه باطليږي **فقط والله تعالیٰ اعلم**

**عبدالستار نائب مفتی خیر المدارس ملتان ۱۳۸۶/۹/۱ هجری**

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د بنده په نزد دا ځواب صحيح دی څه وخت مخکښې د همدې مسئلې په اړه د خير المدارس او قاسم العلوم ملتان متضاد ځوابونه د خير المدارس له خوا څخه د بنده خوا ته ليږل شوي وو. په هغه وخت کښې هم د دواړو خواوو په دلائلو باندې د غور تر کولو وروسته بنده د خير المدارس ځواب صحيح ګڼلی وو او د هغه مطابق ئې فيصله ليکلې وه **فقط سبحانه وتعالیٰ اعلم.** رشید احمد **۱۵ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۶ هجری**

---

**د دې تحقيق په خلاف د يوه تحرير ځواب په تتمه کښې دی**
**وروسته حضرت صاحب د دې ځواب له خپرونې څخه منع کړې وه د حضرت د تحرير عکس دا دی**
**د فاضل دار العلوم د تحرير هغه ځواب کوم چه دلته ليکلی وو هغه مه خپروئ**

# باب الجمعة و العيدين

## آیا له خطيب څخه پرته بل څوک خطبه ويلی شي؟

**سوال**: که چیرته یو سړی د جُمعې لمونځ ورکړي او بل سړی خطبه ووائي نو داسې کول څه حکم لري؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جائز دی په دې شرط چه د لمانځه ورکوونکی د خطبې په وخت کښې حاضر وي. که په ټولې خطبې کښې او که په څه برخه کښې ئې شريک وي.

و اذا علمت جواز الاستخلاف للخطبة و الصلوٰة مطلقاً بعذر و بغير عذر حال الحضرة و الغيبة وجواز الاستخلاف للصلوٰة دون الخطبة وعكسه فاعلم (الى ان قال) فيشترط كون الخليفة قد شهد الخطبة او بعضها مع اهليته للاقتداء به. (شامية ج۱) فقط والله تعالیٰ اعلم۔ ۲۶ ذی قعده ۱۳۷۱ھجری

## د معذور سړي لپاره په کور کښې د ماسپښين د لمانځه وروسته په جُمعې کښې د شريکيدلو حکم

**سوال**: په کوم سړي باندې چه جُمعه فرض نه وي لکه مسافر، مريض او داسې نور چه په کور کښې د ماسپښين د لمانځه تر ادا کولو وروسته جومات ته ورشي او د جُمعې لمونځ هم ادا کړي نو آيا څه پروا لري او که نه؟ که چيرته د ده دا کار صحيح وي نو آيا د ماسپښين لمونځ ئې د فرضو په ځای دريږي او د جُمعې دوه رکعته ئې د نفلو په ځای او که د جُمعې فرض ئې ادا شو او د ماسپښين لمونځ ئې نفل وګرځيدل؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جُمعې لپاره له کور څخه په وتلو باندې جُمعه فرض شوه او د ماسپښين لمونځ ئې نفل شو. بيا که په جومات کښې د جُمعې لمونځ ونيسي نو ښه تر ښه او که نه نو بيا دې د ماسپښين څلور رکعته فرض او وروستني دوه رکعته سُنت دې دوباره ادا کړي

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ محرم ۱۴۰۳ھجری

## د جُمعې لمونځ چه فاسد شي نو دوباره ادا کول ئې فرض دي

**سوال**: که چيرته د جُمعې لمونځ فاسد شي نو دوباره ادا کول ئې جائز دي او که نه؟

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: دوباره ادا کول ئې فرض دي. قال فى شرح التنوير لو خطب جنبا ثم اغتسل وصلى جاز وفى الشامية تحت (قوله جاز) اى ولا يعد الغسل فاصلا لانه من اعمال الصلوٰة ولكن الاولىٰ اعادتها كما لو تطوع بعدها او افسد الجمعة او فسدت بتذكر فائتة فيها كما فى البحر. (شامية ج۱) فقط و

الله تعالیٰ اعلم.                    ۱۳ ذی قعده ۱۳۷۲ هجری

## په خطبې او د جُمعې په لمانځه کښې د زيات جلاوالي حکم

**سوال**: که چيرته د جُمعې د لمانځه او د خطبې تر منځ زيات جلا والی وشي نو د خطبې بيرته را ګرځول ضروري دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: په خطبې او جُمعې کښې که چيرته معتد به جلاوالی راشي نو د خطبې بيرته را ګرځول ضروري دي.

لما فی الشامية (قوله والخامس كونها قبلها) ای بلا فاصل كثير (رد المحتار، بيان شروط صحة الجمعة ج۱) و ايضاً قال فی شرح التنوير ولو خطب جنبا ثم اغتسل و صلی جاز ولو فصل باجنبی فان طال بأن رجع لبيته فتغدی او جامع واغتسل استقبل خلاصة ای لزوما لبطلان الخطبة، سراج وفی الشامية (قوله جاز) ای ولا يعد الغسل فاصلا لانه من اعمال الصلوة ولكن الاولی اعادتها كما لو تطوع بعدها او افسد الجمعة او فسدت بتذكر فائتة فيها كما فی البحر (شامية ج۱) وايضاً فی شرح التنوير ويكره الفصل بأمر الدنيا، وفی الشامية امّا بنهی عن منكر او امر بمعروف فلا وكذا بوضوء او غسل لو ظهر انهٔ محدث او جنب كما مر بخلاف اكل او شرب حتی لو طال الفصل استأنف الخطبة كما مرّ فافهم. (رد المحتار ج۱، ص۷۷۱) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۵ ذی قعده ۱۳۷۲ هجری

## په جيل (بنديخانه) کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال**: د بنديانو لپاره په بنديخانه کښې د جُمعې د لمانځه ادا کول جائز دي او که نه؟

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: که چيرته د حکومت له خوا څخه په جيل کښې د جُمعې د ادا کولو اجازه وي نو د لاندينې عباراتو له مخې ئې جواز څرګنديږي

فی شرح التنوير فی شروط صحة الجمعة والسابع الاذن العام (الی قوله) فلا يضر غلق باب القلعة لعدو او لعادة قديمة لان الاذن العام مقرر لاهله وغلقهٔ لمنع العدو لا المصلی، وفی الشامية تحت (قوله او قصره) قلت وينبغی ان يكون محل النزاع ما اذا كانت لا تقام الا فی محل واحد اما لو تعددت فلا لانه لا يتحقق التفويت كما افاده التعليل تأمل. (رد المحتار ج۱)    فقط والله تعالیٰ اعلم    ۲۸ جمادی الاولی ۱۳۷۳ هجری

## د يوه ښار په ګڼ شمير ځايونو کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال**: د محقق مذهب له مخې د يوه ښار په ګڼ شمير ځايونو کښې د جُمعې د لمانځه ادا کول

جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب و منه الصدق و الصواب** هو: جائز دي البته تر څپله وسه پورې په یوه ځای باندې د لويې اجتماع کوشش باید وشي

قال فی شرح التنویر و تودی فی مصر واحد بمواضع کثیرة مطلقاً علی المذهب و علیه الفتوٰی و قال فی الشامیة و بما ذکرنا اندفع ما فی البدائع من ان ظاهر الروایة جوازها فی موضعین لا فی اکثر و علیه الاعتماد اه فان المذهب الجواز مطلقاً. (ردالمحتار ج۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## په خطبه کښې د حاضرو خلکو لپاره د درود شریف د ویلو حکم

**سوال** څه فرمائي د دین علماء کرام په دې باره کښې چه خطیب کله د (اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ ۔الخ) وائي نو خلک په لوړ آواز سره درود شریف وائي همدارنگه په دعائیه کلماتو باندې آمین هم وائي آیا داسې کول د شریعت له مخې صحیح دي؟ او که چیرته سوکه یا په پټه وویل شي نو جائز به وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په ژبې سره درود شریف ویل جائز نه دي لیکن په زړه کښې ئې ویلی شي

قال فی التنویر اذا خرج الامام فلا صلوٰة ولا کلام الی تمامها و کل ما حرم فی الصلوٰة حرم فیها بلا فرق بین قریب و بعید، و فی الشرح فیحرم اکل و شرب و کلام ولو تسبیحاً او رد سلام او امر بمعروف بل یجب علیه ان یستمع و یسکت و کان ابو یوسف رحمه الله ینظر فی کتابه و یصححه والاصح انه لا بأس بان یشیر برأسه او بیده عند رؤیته منکرا و الصواب انه یصلی علی النبی ﷺ عند سماع اسمه فی نفسه و فی الشامیة ای بان یسمع نفسه او یصحح الحروف فانهم فسروه به و عن ابی یوسف رحمه الله قلباً ایماراً لامری الانصات والصلوٰة علیه ﷺ کما فی الکرمانی قهستانی قبیل باب الامامة و اقتصر فی الجوهرة علی الاخیر حیث قال ولم ینطق به لانه تدرک فی غیر هذا الحال والسماع یفوت. (ردالمحتار ج۱ ص۷۶۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ ربیع الاول ۱۳۷۶ هجری

## د جُمعې تر اوّل آذان وروسته اخیستل او خرڅول ناجائز دي

**سوال** د جُمعې تر لومړي آذان وروسته بیع او شراء (اخیستل او خرڅول) څنگه دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** د جُمعې تر اوّل آذان وروسته بیع او شراء مکروه تحریمي ده. له داسې بیع څخه توبه او بیرته فسخ کول ئې دیانةً واجب دي لیکن قضاءً نه فاسده بیع قضاءً هم واجب الفسخ وي. تر څو چه د جُمعې تر لمانځه مخکښې د تقریر رواج جوړ شوی دی چه له وخې ئې د

لومړي آذان او خطبې تر منځ ډيره لويه وقفه راځي له دې وجې ځخه خلک د لومړي آذان په اوريدو سره د جُمعې د لمانځه لپاره تياري نه کوي د دوی د دې گناه سبب د جومات منتظمين دي د دې لپاره د جومات منتظمين هم سخت گنهگاريږي په منتظمينو لازم دي د لومړي آذان او خطبې تر منځ زيات جلاوالی را نه ولي

قال فی التنوير و کره البيع عند الأذان الاول، وفی الشامية معزيا الی النهر عن النهاية ان فسخه واجب علی کل منهما ايضا صونا لهما عن المحظور وعليه مشی الشارح فی اٰخر الباب ويأتی تمامه.(ردالمحتار ج۳،ص۱۴۰) وقال ابن عابدين رحمه الله تعالٰی فی اٰخر الباب بعد نقل القولين قلت و يمكن التوفيق بوجوبه عليهما ديانة بخلاف البيع الفاسد فانهما اذا اصرا عليه يفسخه القاضی جبراً عليهما.(ردالمحتار ج۳،ص۱۵۰) فقط والله تعالٰی اعلم

۲۵ صفر ۱۳۸٦ هجری

## د اختر د لمانځه د دويم رکعت د رکوع تکبير واجب دی

**سوال** اوريدل شوي دي چه د اختر په لمانځه کښې د دويم رکعت د رکوع تکبير واجب دی آيا دا صحيح ده او که څنگه؟ له حوالې سره ئې وليکئ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب** دا قول صحيح دی قال فی واجبات الصلوة من شرح التنوير و تکبيرات العيدين و کذا احدها و تکبير رکوع رکعة الثانية.(ردالمحتا ج۱،ص۴۳۶)

فقط والله تعالٰی اعلم ۲۰ صفر ۱۳۷٦ هجری

## د اختر تر لمانځه يا خطبې وروسته د دُعاء غوښتلو حکم

**سوال** د اختر د لمانځه يا خطبې ځخه وروسته د دُعاء غوښتنه ثابته ده او که نه؟ بينوا توجروا

الجواب و منه الصدق و الصواب تر خطبې وروسته دُعاء ثابته نه ده. تر لمانځه وروسته ئې د دُعاء د اثبات لپاره دوه حديثونه وړاندې کيږي

۱ - روی البخاری رحمه الله عن ام عطية رضی الله تعالٰی عنها قالت کنا نؤمر ان نخرج يوم العيد حتی تخرج البکر من خدرها حتی تخرج الحيض فيکن خلف الناس فيکبرن بتکبيرهم و يدعون بدعائهم يرجون برکة ذٰلك اليوم وطهرته.(ج۱،ص۱۳۲) وفی رواية فيشهدن جماعة المسلمين و دعوتهم (ج۱،ص۱۳۴) وعند الترمذی رحمه الله تعالٰی ويشهدن دعوة المسلمين(ص۱۰۳)

۲ - عن انس رضی الله تعالٰی عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا كان ليلة القدر نزل جبرئيل عليه السلام فی کبکبة من الملائکة يصلّون علی کل عبد قائم او قاعد يذکر الله عز و جل فاذا کان يوم عيدهم يعنی يوم

فطرهم باهى بهم ملائكته فقال یاملائکتی ما جزاء اجیر وفی عمله قالوا ربنا جزاؤه ان یوفی اجره قال ملائکتی عبیدی وامائی قضوا فریضتی علیهم ثم خرجوا یعجون الی الدعاء وعزتی وجلالی وکرمی وعلوی وارتفاع مکانی لاجیبنهم فیقول ارجعوا قد غفرت لکم وبدلت سیئاتکم حسنات قال فیرجعون مغفوراً لهم. رواه البیهقی فی شعب الایمان. (مشکوٰة ص۱۸۳)

له دغو حدیثونو څخه په استدلال کښې څه خبره شته او د استحباب الدعاء بعد الصلوات په کلیه کښې ئې داخلول هم له دې وجې مخدوش دی چه د اختر تر لمانځه پسې متصل خطبه ده پرته له دې خطبه پخپله هم دعاء ده. برسیره پر دې د اختر تر لمانځه وروسته په دُعاء کښې لاندینې بدعتونه هم شامل کړی شوي دي

۱ - د دُعاء التزام. او په پرینښودونکي باندې سخته نیوکه. چه په دې صورت کښې یو مستحب کار هم واجب الترک ګرځي

۲ - د لاسونو د پورته کولو التزام. تر نوافلو وروسته په دُعاء کښې د لاسونو د پورته کولو مستحب والی متفق علیه دی او تر فرائضو وروسته په دعاء کښې مختلف فیه دی. عدم ثبوت ئې راجح دی. د دې تفصیل د احسن الفتاویٰ په تتمه کښې دی. د اختر لمونځ د فرائضو په حکم کښې دی

۳ - په زوره دعاء کول او په دې باندې دومره التزام چه په یوه حالت کښې هم نه شي پرینښودل کیدلی

۴ - اجتماعیت او د هغه التزام له ۳ څخه زیات

۵ - په دُعاء کښې د امام ائتمام او په دې باندې التزام. په دې باندې سخت والی له پورتني نمبر شمارو څخه کم نه دی. دنو موړي وجوهاتو پربناء له داسې رسمي دعاء څخه ځان ساتنه لازمه ده

فقط والله تعالیٰ اعلم     ۱۹ رمضان ۱۳۷۴ ھجری

## د اختر په لمانځه کښې د تکبیر د پاتې کیدلو حکم

**سوال** له امام څخه سهواً د اختر د لمانځه یو تکبیر پاتې شو. آیا لمونځ کیږي او که نه؟ او که چیرته له مقتدي څخه د تکبیر ویل هیر شي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته د مقتدي تکبیر پاتې شي نو په رکوع کښې دې نه وائي البته که چیرته تر اقتداء وروسته له رکوع څخه مخکښې مقتدي ته دې تکبیراتو موقع په لاس ور نه شي نو له رکوع څخه دې مخکښې وائي که چیرته د قیام په حالت کښې د تکبیر په ویلو سره دا ویره وي چه امام له رکوع څخه پورته کیږي نو رکوع ته دې لاړ شي او د تسبیحاتو په ځای دې

تکبیرونه وائي لیکن د تکبیر لپاره به لاسونه نه پورته کوي که چیرته د تکبیراتو تر پوره کولو مخکښې امام له رکوع څخه پورته شي نو پاتې تکبیرونه ساقط شول .

که چیرته له امام څخه د لومړي رکعت تکبیر پاتې شي ؤ له فاتحه او سورت څخه وروسته ور یاد شي یا د دویم رکعت د رکوع په تکبیر کښې ور یاد شي نو اوس دې تکبیر نه وائي بلکه په سجدهٔ سهو سره دې دا نقصان پوره کړي که چیرته د ډیرې ګڼه ګوڼې له وجې د سجدهٔ سهو په کولو سره په لمانځه کښې د ګډوډۍ ویره وي نو سجدهٔ سهو معاف ده. که چیرته امام د تکبیر لپاره رکوع پریږدي او د قیام خوا ته بیره را وګرځي نو د یوه قول له مخې لمونځ فاسدیږي لیکن عدمِ فساد ئې راجح دی البته په دې صورت کښې به رکوع دوباره نه کوي او که نه نو د لمانځه بیرته را ګرځول به واجب وي که چیرته د سورت له پوره کولو څخه مخکښې تکبیر ور په یاد شي نو تکبیر دې ووائي. سورهٔ فاتحه او بل سورت دې دوباره ووائي او سجدهٔ سهو دې وکړي **وذکر ابن عابدین رحمة الله علیه فی وجوب اعادة القراءة اشکالاً ثم نقل جواباً غیر شاف فلیحرر.**

د اعاده د وجوب په اړه په شامي کښې دا عبارت دی **فی البحر عن المحیط ان بدأ الامام بالقراءة سهواً فتذکر بعد الفاتحة والسورة یمضی فی صلوته وان لم یقرأ الا الفاتحة کبر واعاد القراءة لزوماً لان القراءة اذا لم تتم کان امتناعاً عن الاتمام لا رفضاً للفرض اه.** (رد المحتار ج۱، ص۷۸۱) د دې عبارت له مخې د اعاده د وجوب په موقع کښې درې احتماله دي. تر سورهٔ فاتحه وروسته په شمول د محذوفه حروفو د دیرشو حروفو تر ویلو مخکښې یا د څومره قرائت ویلو چه قصد وي د هغه تر پوره کولو مخکښې. یا له رکوع څخه مخکښې له سرسري پلټنې څخه په دې باره کښې کومه صریحه جزئیه لاس ته را نه غله په ظاهره لومړنی احتمال مراد دی ځکه چه تر فاتحه وروسته د دومره حروفو په ویلو سره قرائت پوره کیږي **فتذکر بعد الفاتحه والسورة** کښې همدغه اندازه مراد ده **وهو معروف فی کلام الفقهاء رحمهم الله تعالی.**

فقط والله تعالی اعلم ۲۵ ذی الحجة ۱۳۸۶ هجری

## تر اول آذان وروسته د خوراک حکم

**سوال** د جُمعې تر اول آذان وروسته مړی یا داسې نور شیان خوړل په داسې حال کښې د خطبې له آذان څخه مخکښې جومات ته رسیدلی شي شرعاً جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته د خوراک شوق زیات وي او له لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته د خوراکي شیانو د خوند د بدلیدو ویره وي نو خوراک کولی شي په دې شرط چه د جُمعې د فوت کیدلو اندیښنه نه وي

قال فی العلائیة سمع النداء وھو یأکل ترکه ان خاف فوت جمعة اومکتوبة لاجماعة وفی الشامیة والاکل ای الذی تمیل الیه نفسه و یخاف ذھاب لذته عذر فی ترك الجماعة کما مرّ فی بابھا. لکن یشکل ما مرّ من وجوب السعی الی الجمعة بالاذان الاول وترك البیع ولو ماشیاً والمراد به کل عمل ینافی السعی فتأمل. (رد المحتار ج۱، ص۷۷۲)

وقال الرافعی رحمه الله (قوله لکن یشکل ما مرّ من وجوب السعی الخ) بتقیید ما مرّ بما ھنا یندفع الاشکال و ذلك لانّ حضور الاکل المذکور حیث کان عذرا فی سقوط واجب الجماعة لشغل بال المصلّی یکون عذرا فی سقوط واجب السعی اذلا فرق بین واجب و واجب بخلاف ما اذا خاف فوت الجمعة او الوقت لفوات الفرض لا الواجب. (التحریر المختار ج۱، ص۱۱۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الاولیٰ ۱۳۸۷ ھجری

## د جُمعې تر اذان وروسته د مسافر لپاره د اخیستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** د جُمعې تر آذان وروسته د مسافر لپاره د شیان اخیستل یا خرڅول یا په هوټل کښې څه خوړل یا څښل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هو، في نفسه جائز دی لیکن له مظنّهٔ تهمت څخه د ځان ساتنې لپاره احتراز ترې واجب دی چا ته څه معلومیږي چه دی مسافر دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ شعبان ۱۳۹۱ ھجری

## د جُمعې لمانځه ته د تلو په وخت په لاره کښې د اخیستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** آیا یو څوک د جُمعې تر اول آذان د جُمعې لمانځه ته د تلو په وخت په لاره کښې پرته له دریدلو څخه په تګ تګ کښې څه سودا کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې کښې اختلاف دی. عدمِ جواز ئې ارجح او احوط دی

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ شوال ۱٤۰۰ ھجری

## د خطبې په حالت کښې په اشارې سره نهی عن المنکر جائز دی

**سوال:** د خطبې تر شروع کیدو وروسته که چیرته یو څوک د سُنتو نیت کول وغواړي نو آیا د هغه منع کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خطبې په حالت کښې نهی عن المنکر جائز نه دی البته په اشارې سره جائز بلکه فرض دی دا حکم له خطیب څخه پرته د بل چا لپاره دی. خطیب ته په ژبې سره نهی عن المنکر فرض دی لهذا که چیرته خطیب یو څوک د سنتو د ادا کولو لپاره تیار ووینې نو په

ژبې سره دې ورته ووائي او که و نه شو نو مقتدي په اشارې سره منع کړي
قال فی العلائیة والاصح لا بأس بان یشیر برأس او یده عند رؤیة منکر. (ردالمحتار ج۱، ص۶۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ذی الحجة ۱۴۰۰ھجری

## د بیع د کراهت لپاره د کلي آذان معتبر دی

**سوال** د جُمعې تر اوّل آذان وروسته اخیستل. خرڅول او نور کارونه ناجائز ګرځي که چیرته له ځو جوماتونوڅخه په مختلفو وختونو کښې ډیر آذانونه واوریدل شي نو اخیستل. خرڅول او داسې نور کارونه کوم وخت ناجائز ګرځي؟ تر ټولو په مخکښې آذان باندې او که تر ټولو په آخرې آذان باندې؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې اړوند کومه صریح جزئیه مې نه ده تر سترګو شوې ځکه چه په مخکښینیون زمانو کښې به په ټول ښار کښې یو ځای د جُمعې لمونځ کیده. لهذا دا به په عامو لمونځونو باندې قیاس کیږي په عامو آذانونو کښې په ژبې سره د ځواب په ورکولو کښې اوّل آذان ته اعتبار ورکول کیږي او اجابت با لقدم (جومات په تلو کښې) د کلي آذان ته اعتبار ورکول کیږي له دې څخه ثابته شوه چه جُمعې ته د تللو په وجوب کښې او د بیع او شراء په کراهت کښې د کلي آذان معتبر دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ذی الحجة ۱۴۰۰ھجری

## له خطبې څخه مخکښې په پټه سره تعوّذ (اعوذ با لله الخ) ویل مسنون دي

**سوال** د آذان له ورکولو یا د خطبې تر ویلو مخکښې یا د وعظ تر کولو وروسته د خدای ﷻ حمد یعنې د وعظ تر کولو مخکښې چه کومه خطبه لوستل کیږي. تر دې مخکښې په پټه یا په زوره (اعوذبالله - الخ) او (بسم الله الرحمٰن الرحیم) ویل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د جُمعې تر اولې خطبې مخکښې دې یواځې اعوذ با لله په پټه سره ووائي په نورو ځایونو کښې اعوذ بالله یا بسم الله ویل سنت نه دي قال فی العلائیة ویبدأ بالتعوّذ سرّاً. وقال ابن عابدین رحمة الله علیه ای قبل الخطبة الاولیٰ. (ردالمحتار ج۱، ص۵۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ شوال ۱۳۸۶ھجری

## د اختر د لمانځه لپاره له ښار څخه د باندې وتل سنت دي

**سوال** څه فرمائي د دین علماء کرام په دې مسئله کښې چه د اخترونو لمونځونه د کلي په داسې جومات کښې چه په هغه کښې سل یا یو نیم سل کسان ځاییږي بې له کراهته صحیح دي او که د اختر د دې اجتماع په باره کښې شرعاً عظیمه اجتماع مطلوب ده؟ او د دې اجتماع اندازه څ.

ده؟ همدارنګه آیا شرعاً دا مطلوب دی چه د عیدګاه حدود دې له ښار څخه د باندې وي؟ که چیرته مطلوب وي نو بیا په موجوده صورت کښې د ملتان د ښار د یوې عیدګاه حدود هم له ښار څخه وتلي نه دي ځکه نن صبا په آبادی کښې د زیاتوالي له وجې ښار له هرې خوا څخه څلور څلور یا پنځه پنځه میله لوی شوی دی د مهربانی له مخې دا مسئله په تفصیل او د دلائلو او براهینو له مخې ولیکئ او د عامو مسلمانانو صحیح لارښوونه وکړئ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : عیدګاه چه له ښار څخه باهر وي دا سنت مؤکد دی ځکه چه نبي کریمﷺ به د تل لپاره د اخترونو لمونځونه له ښار څخه د باندې ادا کول بلکه د معذورو خلکو ئې هم له ځان سره د بوولو اهتمام کاوه. یواځې یو ځل د باران له وجې د باندې ئې تشریف نه شوای وړولی (رواه ابو داؤد فی سننه) د دې لپاره اصل حکم همدغه دی چه د اختر د لمانځه لپاره له ښار څخه د باندې په یوه ځای باندې عظیمه اجتماع وي. په دې کښې د اسلام د شوکت ښکارول هم دي لیکن له لویو ښارونو څخه د باندې وتل مشکل دي. د دې لپاره په ښار د ننې په لوی میدان یا د ضرور په وخت کښې په جومات کښې ادا کول بې له کراهته صحیح دي. لیکن تر حتی الامکانه پورې لازم دي چه په هر کلي کښې له وړو وړو اجتماع ګانو په ځای په یوه ځای باندې د لویې اجتماع کوشش باید وشي

قال فی الدر و الخروج الیها ای الجبانة لصلوة العید سنّة و ان وسعهم المسجد الجامع هو الصحیح و فی الشامیة قال فی الظهیریة و قال بعضهم لیس بسنّة و تعارف الناس ذٰلك لضیق المسجد و کثرة الزحام و الصحیح هو الاوّل اهـ و فی الخلاصة و الخانیة السنّة ان یخرج الامام الی الجبانة و یستخلف غیره لیصلی فی المصر بالضعفاء بناء علی ان صلوة العیدین فی موضعین جائزة بالاتفاق و ان لم یستخلف فله ذٰلك اهـ. (رد المحتار ج۱، ص۷۷۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ ذی الحجة ۱۳۸۸ هجری

## د منبر درجې (زینې یا پوړۍ)

**سوال** که چیرته د منبر درجې (زینې) له دریو څخه کمې یا زیاتې وي نو آیا د داسې منبر استعمالول جائز دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د نبي کریمﷺ منبر درې درجې درلودې د نبي کریمﷺ له منبر سره موافقت اولی دی او کموالی او زیاتوالی هم پکښې جائز دی قال ابن عابدین رحمه الله علیه و منبره ﷺ کان ثلاث درج غیر المسماة بالمستراح. (رد المحتار ج۱، ص۷۷۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ ذی الحجة ۱۳۸۶ هجری

## د اختر تر لمانځه مخکښې د سهار د لمانځه قضائي راګرځول جائز دي

**سوال** د اختر تر لمانځه مخکښې د نفلو ادا کول مکروه دي لیکن که چیرته له چا څخه د سهار لمونځ قضاء شوی وي نو د اختر لمانځه مخکښې ئې له سنتو سره قضائي را ګرځولی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** هو، جائز دي لیکن په کور کښې دې په پټه ادا کړي تر څو چه څوک پرې بد ګمانه نه شي

**فقط والله تعالیٰ اعلم**      **۲۵ ذی الحجة ۱۳۸۶ هجری**

## د اختر لمونځ چه په جومات کښې ادا شي نو په هغه کښې تر زوال وروسته نفل جائز دی

**سوال** په بهشتي زیور کښې دي چه چیرته د اختر لمونځ کیږي هلته د اختر تر لمانځه مخکښې او وروسته نفل لمونځ مکروه دی. نو که چیرته د اختر لمونځ په کوم جومات کښې ادا شي نو د هغې ورځې نفل لمونځونه لکه د ماسپښین نفل او د مازدیګر څلور رکعته غیر مؤکد سنتونه او داسې نور هم په دې جومات کښې مکروه دي او که بې له کراهته پکښې جائز دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په عیدګاه کښې د نوافلو د کراهت وجه دا ده چه د اختر په لمانځه باندې د زیاتوالي وهم پیدا نه شي او د اختر د لمانځه وخت تر زوال پورې دی. د دې لپاره تر زوال وروسته په داسې جومات کښې نفلونه مکروه نه دي

**فقط والله تعالیٰ اعلم**      **۲۵ ذی الحجة ۱۳۸۶ هجری**

## په کارخانه کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال** په کارخانه کښې یو جومات دی چه د جُمعې لمونځ پکښې کیږي او په نورو پنځو لمونځونو کښې د ماسپښین او مازدیګر لمونځونه په باقاعده توګه پکښې ادا کیږي څکه چه له دغو دوه وختونو پرته خلک خپلو خپلو کورونو ته ځي په نورو وختونو کښې چوکیدار او داسې نور کله کله لمونځونه پکښې کوي. له کارخانې څخه کله کله د لمانځه په پلمه خلک غلاوې هم کوي اوس د کارخانې مالک د جُمعې د لمانځه لپاره عامه اجازه نه ورکوي بلکه یواځې په همدې کارخانې کښې چه کوم خلک دننه دي د هغو لپاره اجازه دد آیا په داسې جومات کښې د جُمعې لمونځ جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** دلته له غلو څخه حفاظت مقصود دی د لمونځ کوونکو منع کول مقصود نه دی همدارنګه د باندې خلک په نورو جوماتونو کښې د جُمعې لمونځ ادا کولی شي له دې امله د عامې اجازې نشتوالی د جُمعې د صحت لپاره خلل نه دی په دې جومات کښې د جُمعې

لمونځ کيږي

قال فی الدر تحت شروط الجمعة والسابع الاذن العام من الامام وهو يحصل فتح ابواب الجامع للواردين كافی، فلا يضرّ غلق باب القلعة لعدّ او لعادة قديمة لان الاذن العام قرر لاهله وغلقه لمنع العدو لا المصلّي نعم لولم يغلق لكان احسن كما فی مجمع الانهر. وفی الشامية تحت (قوله او قصره) قلت وينبغی ان يكون محل النزاع ما اذا كانت لا تقام الا فی محل واحد اما لو تعددت فلا لانه لا يتحقق التفويت كما افاد التعليل تأمّل. (رد المحتار ج۱، ص۶۲)      فقط والله تعالیٰ اعلم      ۵ جمادی الاولیٰ ۱۳۸۷ ھجری

## د خطبې په وخت کښې د سنتونو ادا کول جائز نه دي

**سوال** د جُمعې لمونځ کيدونکی دی او بکر د سنتو نيت وتاړه که له ده څخه يو رکعت تير شي يا تير نه شي په دواړو صورتونو کښې به بکر گنهگار وي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په داسې حالت کښې د سنتونو شروع کول جائز نه دي بلکه چه کله هم خطيب منبر ته د تلو لپاره له ځايه جگيږي له همدې وخت څخه لمونځ او هر ډول خبرې ناجائزې دي. البته که چيرته ئې له دې څخه مخکښې سنتونه شروع کړي وي نو په دوه رکعتونو باندې دې سلام واړوي. او که چيرته ئې په دريم رکعت باندې شروع کړی وي نو څلور دې بيا پوره کړي د خطبې په حالت کښې د سنتونو شروع کول گناه ده. توبه دې وکړي او بيا دې وروسته بيا را وگرځوي.      فقط والله تعالیٰ اعلم      ۱۳ جمادی الاولیٰ ۱۳۸۷ ھجری

## تر دويم آذان وروسته په کور کښې هم د سنتونو ادا کول جائز نه دي

**سوال**: که چيرته يو څوک د جُمعې د دويم آذان په وخت پخپل کور کښې څلور رکعته سنت ادا کړي او بيا په خطبه کښې شريک شي نو آيا دا به ورته جائز وي او که نه؟ او آيا دا سنتونه ئې ادا کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** تر دويم آذان وروسته په کور کښې د سنتونو ادا کول مکروه تحريمي دي. دا سنتونه په غير مشروع طريقې سره ادا شوي دي د دې لپاره د قاعدې مقتضی دا ده چه د جُمعې تر فرض وروسته د څلور رکعته سنتو تر ادا کولو وروسته مخکښيني څلور سنتونه بيا ادا کړي. لا يجب قضاء النفل المؤدی فی الوقت المكروه لادائه كما التزم بخلاف السنّة المؤكدة فانه مأمور بادائها فی وقت مشروع فتسن اعادتها.      فقط والله تعالیٰ اعلم      ۲۲ ذی الحجة ۱۳۸۸ ھجری

## د خطبې په وخت کښې ګرۍ ته چابۍ ورکول جائز نه دي

**سوال** د جُمعې خطبه روانه وي. په دې دوران کښې ګرۍ ته چابۍ ورکول په داسې حال کښې چه فکر ئې د خطبې په اوريدلو کښې وي جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** جائز نه دي قال فی التنویر وکل ماحرم فی الصلوٰۃ حرم فیھا. (ردالمحتار ج۱، ص۷۶۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الاولی ۱۳۸۷ هجری

## داسې ځاي کښې دجمعې د لمانځه حکم چه د هغه په ښار والي کښې شک وي

**سوال** په کوم ځای باندې چه شک وي چه د جُمعې لمونځ پکښې کيږي او که نه کيږي آيا په داسې ځای کښې د جُمعې تر لمانځه څلور رکعته د ماسپښين احتياطي لمونځ بايد وشي او که د جُمعې لمونځ پريښودل شي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** د جُمعې د صحت لپاره ښار يا فناء د ښار شرط دی تر څو پورې چه د شرط وجود متيقن نه شي تر هغو پوې جُمعه نه صحيح کيږي لهذا په داسې ځايونو کښې د جُمعې لمونځ بايد ادا نه شي البته که چيرته له مخکښې څخه په دې ځای کښې د جُمعې لمونځ جاري شوی وی نو پکښې شريک شئ او بيا وروسته د ماسپښين څلور رکعته احتياطي لمونځ ادا کړئ ليکن عوامو ته مه وايئ يواځې خواص په دې احتياط باندې عمل وکړئ

فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ ذی القعده ۱۳۸۷ هجری

## د خطبې او اقامت تر منځ د مسئلې د بيانولو حکم

**سوال** تر دويمې خطبې وروسته او تر اقامت ويلو مخکښې د امام لپاره د کومې مسئلې بيانول يا وعظ او نصيحت کول جائز دي او که نه؟ که چيرته جائز وي نو له کراهت سره او که بې له کراهته؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په لنډه توګه د کومې مسئلې بيانول او امر با لمعروف او نهی عن المنکر کول جائز دي اوږد وعظ يا نصيحت کول جائز نه دي

قال فی شرح التنویر فاذا اتم اقیمت ویکره الفصل بامر الدنیا ذکره العینی وفی الشامیة اما بنهي عن منکر اوامر بمعروف فلا. (ردالمحتار ج۱، ص۷۷۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ محرم ۱۳۸۸ هجری

## د مصر د فناء حد (اندازه)

**سوال** له ښار څخه يو دوه ميله لرې يو کلی دی چه آبادي ئې سل يا دوه سوه نارينه وو ته رسيږي دا کلی جلا پخپل نامه سره مشهور دی آيا په داسې کلي کښې د اخترونو لمونځونه جائز

دي او که نه؟ او دا کلی د ښار په فناء کښي شمارل کیږي او که نه؟ او همدارنګه د ښار د فناء حدود تر څومره لرې پورې وي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** داسې کلی د ښار په فناء کښي داخل نه دی. له دې امله د جُمعې او اخترونو لمونځ پکښې جائز نه دی. د ښار فناء هغه ځای ته ویل کیږي چه کوم چه د ښار د ضروریاتو لپاره تاکل شوی وی لکه قبرستان (هدیره) د ګند د اچولو یا د آس ځغلولو یا جنګي مشقونو یا فوځې اجتماع او داسې نورو شیانو لپاره میدان، هوائي میدان. د ریل ګاډي سټیشن او داسې نور د فنا، له ښار سره لګیدنه ضروري نه ده او نه د هغې د مسافې او پراخوالي څه تحدید شته بلکه د ښار د حیثیت په مطابق سره د هر ښار فناء مختلفه وي

قال فی العلائیة او فناؤه وهو ماحوله اتصل به او لا کما حرّره ابن الکمال وغیره لاجل مصالحه کدفن الموتٰی ورکض الخیل والمختار للفتوٰی تقدیره بفرسخ ذکره الولوالجی، وفی الشامیة والتعریف احسن من التحدید لانه لا یوجد ذٰلك فی کل مصر وانما هو بحسب کبر المصر وصغره الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۵۳۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ ذی الحجة ۱۳۸۷ هجری

## په لومړۍ خطبه کښې د لاسونو تړل او په دویمې کښې ئې خلاصول بدعت دي

**سوال** د خطبې په دوران کښې مقتدیان باید په کوم حالت کښې کښیني. زمونږ په علاقې کښې د کښیناستلو دا رواج دی چه کله خطیب خطبه وائي نو مقتدي د تشهد په حالت کښې کښیني او لاسونه تر نامه لاندې تړي او د دویمې خطبې په دوران کښې د تشهد په حالت کښې کښیني او لاسونه په ورنونو باندې اږدي. آیا داسې کښیناستل د شریعت مطابق دی او که مخالف؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د دې په شریعت کښې هیڅ ثبوت نشته لهذا دا کار بدعت دی. د دواړو خطبو په دوران کښې د تشهد په حالت کښې کښیناستل مستحب دي. دواړه لاسونه دې په ورنونو کښیږدي داسې کښیناستل مستحب دي. نور چه څرنګه غواړي هغسې دې کښیني

قال فی الهندیة اذا شهد الرجل عند الخطبة ان شاء جلس محتبیاً او متربعاً او کما تیسر لانه لیس بصلٰوة عملاً وحقیقة کما فی المضمرات، ویستحب ان یقعد فیها کما یقعد فی الصلٰوة کذا فی معراج الدرایة. (عالمگیریة ج۱، ص۱۴۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ رجب ۱۳۸۹ هجری

## په عربو کښې د اختر د لمانځه په ورکولو سره په پاکستان کښې هم د اختر لمونځ ورکولی شي

**سوال** یو صاحب د کراچۍ په جامع جومات کښې خطیب دی هغه په رمضان المبارک کښې

بحرين ته ځي او د اختر لمونځ هم په بحرين کښې وركوي بيا كراچۍ ته راځي نو دلته د رمضان شريف دوه ورځې لا پاتې وي او بيا په كراچۍ كښې هم د اختر لمونځ وركوي آيا نوموړی په كراچۍ كښې دوباره د اختر په لمانځه كښې امامت كولی شي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** د فقهې په كتابونو كښې د دې دوه مثالونه پيدا كيږي يو له غروب څخه وروسته د لمر بيرته را ګرځيدل دويم د رمضان شريف د مياشتې د ليدونكي شهادت يا ګواهي چه رد شي په اولې مسئلې كښې د وخت بيرته راګرځيدل مختلف فيه دی او عدم عود راجح دی او په دويمه مسئله كښې په اتفاق سره د نوموړي سړي د ديرشو ورځو تر پوره كيدو وروسته هم له نورو خلكو سره د ده روزه او اختر لازم دی د لومړني مثال مقتضی له عربو څخه پاكستان ته د راتلونكي سړي په حق كښې عدم عود رمضان او عيد دی او د دويم مثال له مخې په نوموړي باندې روژه او اختر لازم دی په ظاهره د بحث لاندې مسئلې زيات مشابهت له دويم مثال سره څرګنديږي د دې لپاره چه غروب شمس يقيني دی او رؤيت هلال ظنّي دی برسيره پر دې د هر سړي لپاره د احكامو ثبوت د اقامت د ځای كليه او د نبي كريمﷺ دا ارشاد چه **(صومكم يوم تصومون او فطركم يو تفطرون)**.(**رواه الترمذی**) هم د اختر او روژې د وجوب مقتضی دي له دې امله نوموړی سړی پاكستان ته په راتلو سره د اختر په لمانځه كښې امامت كولی شي سره له دې احتياط په دې كښې دی چه د اختر امامت و نه كړي بلكه په بل پسې د اقتداء په صورت كښې لمونځ ادا كړي. **فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۲ رمضان ۱۳۸۹ ھجری**

## د تشريق د تكبيراتو د هيريدلو حكم

**سوال** يواځې لمونځ كوونكی كه چيرته د ذو الحجې په يوولسم تاريخ د ماسپښين تر لمانځه وروسته د تشريق تكبير هير كړي نو د ور ياديدو په وخت كښې به ئې ويل پرې واجب وي او كه نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** هو' واجب دي البته له بناء سره مانع كوم فعل چه وكړي لكه له جومات څخه ووځي يا كومه خبره وكړي يا په قصد سره اودس مات كړي نو تكبير ترې ساقطيږي او كه ئې سهواً اودس مات شي نو بيا دې تكبير ووائي چه له قبلې څخه مخ واړوي نو په دې كښې دواړه روايتونه دي هم د ويلو او هم د نه ويلو د دې لپاره احتياطاً دې تكبير ووائي

قال فی العلائية عقب كل فرض عينی بلا فصل يمنع البناء فلو خرج من المسجد او تكلّم عامداً او ساهياً او احدث عامداً سقط عنه التكبير و فی استدبار القبلة روايتان ولو احدث ناسياً بعد السلام الاصح انه يكبّر ولا يخرج للطهارة فتح.(ردالمحتار ج۱،ص۷۸۶) **فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۲ محرم ۱۳۹۰ ھجری**

## د خطبې د آذان جواب ورکول جائز نه دي

**سوال** د خطبې د آذان ځواب به څنګه ورکول کیږي په ژبې او که په زړه سره؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د خطبې د آذان ځواب په ژبې سره جائز نه دی البته په زړه کښې ځواب ورکولی شي لقوله ﷺ اذا خرج الامام فلا صلوٰة ولا كلام، وقال العلائي رحمة الله عليه، وينبغي ان لا يجيب بلسانه اتفاقاً في الآذان بين يدي الخطيب. (ردالمحتار ج۱، ص۷۴۱)

فقط والله تعالی اعلم ۱۴ جمادی الاولی ۱۳۹۲ھ هجری

## په عیدګاه کښې د اختر د لمانځه د دویم جماعت حکم

**سوال** په یوې عیدګاه کښې د اختر دوه ځلې لمونځونه کیږي او که نه له لسو پنځلسو کسانو څخه د اختر لمونځ تیر شوی دی. ځکه چه دوی عیدګاه ته ناوخته را ورسیدل آیا دا کسان دوباره په همدې عیدګاه کښې د اختر لمونځونه ادا کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په یوې عیدګاه کښې دوباره د لمانځه په ادا کولو سره خو لمونځ صحیح کیږي لیکن د کومو عوارضو له وجې چه په جومات کښې دویم جماعت مکروه دی هغه دلته هم شته بلکه یو قباحت لا بل هم شته چه په انتظام کښې ګډوډي او په عوامو کښې د انتشار ویره ده له دې امله دې دا خلک د عیدګاه په ځای په کوم بل ځای کښې د اختر د لمانځه جماعت وکړي فقط والله تعالی اعلم ۲۴ صفر ۱۳۹۶ھ هجری

## خطبه په منبر باندې په ولاړه ویل سنت دي

**سوال** د منبر په موجودوالي کښې آیا خطیب د منبر څنګ ته د خطبې لپاره دریدلی شي او که نه؟ او که ودریږي نو څه قباحت پکښې شته او که نه؟ آیا د رسول الله ﷺ په مبارک وخت یا تر هغه وروسته د اخترونو او جمعې خطبې په لازمي توګه په منبر باندې ویل کیدلې او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** په منبر باندې په ولاړې خطبه ویل سنت دي د نبي کریم ﷺ او حضراتو خلفاؤ رضی الله تعالی عنهم همدغه معمول وو قال ابن عابدين رحمة الله عليه، ومن السنة ان يخطب عليه اقتداءً به ﷺ بحر وان يكون على يسار المحراب قهستاني. (ردالمحتار ج۱، ص۷۰۰)

فقط والله تعالی اعلم ۲۴ ذی القعده ۱۳۹۶ھ هجری

## د خطیب مخې ته د جُمعې د دویم آذان حکم

**سوال** د جمعې په ورځ له خطبې څخه مخکښې چه کوم آذان ویل کیږي آیا دا ضروري ده چه دا

## د خطبې د آذان جواب ورکول جائز نه دي

**سوال** د خطبې د آذان ځواب په څنګه ورکول کيږي په ژبې او که په زړه سره؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د خطبې د آذان ځواب په ژبې سره جائز نه دی البته په زړه کښې ځواب ورکولی شي لقوله ﷺ اذا خرج الامام فلا صلوة ولا كلام، وقال العلائى رحمه الله وينبغى ان لا يجيب بلسانه اتفاقاً فى الآذان بين يدى الخطيب. (ردالمحتار ج۱، ص۷۶۱)

فقط والله تعالىٰ اعلم ١٤ جمادى الاولى ١٣٩٢ هجرى

## په عيدګاه کښې د اختر د لمانځه د دويم جماعت حکم

**سوال** په يوې عيدګاه کښې د اختر دوه ځلې لمونځونه کيږي او که نه. له لسو پنځلسو کسانو څخه د اختر لمونځ تير شوی دی. ځکه چه دوی عيدګاه ته ناوخته را ورسيدل آيا دا کسان دوباره په همدې عيدګاه کښې د اختر لمونځونه ادا کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په يوې عيدګاه کښې دوباره د لمانځه په ادا کولو سره خو لمونځ صحيح کيږي ليکن د کومو عوارضو له وجې چه په جومات کښې دويم جماعت مکروه دی هغه دلته هم شته. بلکه يو قباحت لا بل هم شته چه په انتظام کښې ګډوډي او په عوامو کښې د انتشار ويره ده. له دې امله دې دا خلک د عيدګاه په ځای په کوم بل ځای کښې د اختر د لمانځه جماعت وکړي

فقط والله تعالىٰ اعلم ٢٤ صفر ١٣٩٦ هجرى

## خطبه په منبر باندې په ولاړه ويل سنت دي

**سوال** د منبر په موجودوالي کښې آيا خطيب د منبر څنګ ته د خطبې لپاره دريدلی شي او که نه؟ او که ودريږي نو څه قباحت پکښې شته او که نه؟ آيا د رسول الله ﷺ په مبارک وخت يا تر هغه وروسته د اخترونو او جمعې خطبې په لازمي توګه په منبر باندې ويل کيدلې او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** په منبر باندې په ولاړې خطبه ويل سنت دي د نبي کريم ﷺ او حضراتو خلفاؤ رضی الله تعالى عنهم همدغه معمول وو قال ابن عابدين رحمه الله ومن السنة ان يخطب عليه اقتداءً به ﷺ بحر وان يكون على يسار المحراب قهستانى. (ردالمحتار ج۱، ص۷۶۰)

فقط والله تعالىٰ اعلم ٢٤ ذى القعده ١٣٩٦ هجرى

## د خطيب مخې ته د جُمعې د دويم آذان حکم

**سوال** د جمعې په ورځ له خطبې څخه مخکښې چه کوم آذان ويل کيږي آيا دا ضروري ده چه دا

آذان به د خطیب مخې ته ویل کیږي او که نبی او کینې خوا ته هم ویل کیږي همدارنګه د لومړي صف په ځای که له صف څخه مخکښې یا وروسته آذان وشي نو آیا داسې کول به صحیح وي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د لومړي صف کوم قید خو چیرته نه دی لیدل شوی البته د فقهي په کتابونو کښې د (أمام المنبر، عند المنبر او بين يدى المنبر) له الفاظو څخه ثابتیږي چه دا آذان باید د منبر مخې ته او نژدې باید وشي **وصرح به القهستانى حيث قال واذا جلس الامام على المنبر اذّن اذاناً ثانياً بين يديه اى بين الجهتين المسامتتين ليمين المنبر او الامام ويساره قريباً منه ووسطهما بالسكون فيشتمل ما اذا اذّن فى زاوية قائمة او حادة او منفرجة. (جامع الرموز ج۱، ص۱۸)** منبر ته نژدې والی دا نه لازموي چه خامخا دې له لومړي صف څخه مخکښې وي

فقط والله تعالىٰ اعلم — ۲۳ رمضان ۱۳۹۸ھجری

## د جُمعي دویم اذان په جومات کښې دننه د کیدو حکم

**سوال** په ابو داؤد کښې یو حدیث دی چه **كان يؤذن بين يدى رسول الله ﷺ اذا جلس على المنبر يوم الجمعة على باب المسجد** له دې څخه ثابتیږي چه د جُمعي دویم آذان هم باید له جومات څخه د باندې وي پرته له دې څخه په جومات کښې د ننه د آذان د کراهت اطلاق هم د دې تقاضا کوي د دې تر څنګ د دې آذان له منبر سره نژدې عام رواج ولې دی؟ له دې تحقیق څخه مو خبر کړئ

**الجواب باسم ملهم الصواب** (**بين يدى**) د نژدې په معنی سره استعمالیږي دا معنی دومره مشهوره او متبادره ده چه د دلیل حاجت نه لري سره له دې د لغت د امام حضرت راغب رحمه الله تحقیق ملاحظه کړئ. دی فرمائي **يقال هذا الشئ بين يديك اى قريباً منك. (مفردات ج۱، ص۱۳۲)**

لهذا په نوموړي حدیث کښې د (**بين يدى رسول الله**) ﷺ الفاظ نصّ دي چه د خطیب مخې ته د آذان توارث او تعامل پخپله نبي کریم ﷺ څخه ثابت دی که چیرته دا الفاظ له حدیث څخه ثابت شوي هم نه وای نو بیا هم د امت متوارث عمل د دې د ثبوت لپاره حجّت دی

په هغې زماني کښې نبوي جومات دومره پراخه نه وو د عمدة القاري په ج۲. ص۳۸۵ کښې دي چه د جومات درې دروازې وې د صحیح البخاري له یوه روایت څخه ثابتیږي چه یوه دروازه منبر ته مخامخ وه **عن ابى نمر انه سمع انس ابن مالك رضى الله عنه يذكر انّ رجلاً دخل يوم الجمعة من باب وكان وجاه المنبر ورسول الله ﷺ قائم يخطب فاستقبل رسول الله ﷺ الحديث (بخارى ج۱، ص۱۳۷)** او قرب باب لره په على الباب سره تعبیرول معروف دی حاصل دا چه دا آذان د نبي کریم ﷺ په مخکښې ده نه

نژدې کيده او د مخې خوا ته د جومات دروازه هم نژدې وه ځکه چه لومړی خو دا جومات دومره وسيع او پراخ نه وو بيا دا دروازه د صحن دروازه هم نه بلکه د مسقف د برخې دروازه وه له دې امله چه د جومات په صحن باندې احاطه نه وه چه په هغې کښې دروازه وای **كما هو ظاهر من رواية ابی داؤد عن ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما كنت ابيت فی المسجد فی عهد رسول الله ﷺ و كنت فتی شابا عزبا و كانت الكلاب تبول و تقبل و تدبر فی المسجد فلم يكونوا يرشون شيئاً من ذلك.** د دې لپاره مؤذن به له دې دروازې څخه هم نژدې وو. يعنې د منبر او هغه ته د مخامخ دروازې په جومات کښې د ننه به آذان کيده **وفی اعلاء السنن وفی العناية وكان الطحاوی يقول المعتبر هو الأذان عند المنبر بعد خروج الامام فانه هو الاصل الذی كان للجمعة علی عهد رسول الله ﷺ و كذلك فی عهد ابی بكر و عمر رضی الله تعالیٰ عنهما. (ج۲، ص۳۸) ونحوه فی الكفاية (ج۲، ص۳۸) فدل علی ان الأذان الثانی محله عند المنبر وهو المراد بين يديه وقال الشيخ واما ان المعتبر لحرمة البيع هو هذا الأذان فهو اجتهاد من الطحاوی و كونه عند المنبر هو نقل منه مقصودنا بايراده امّا اجتهاده فليس بحجة. (اعلاء السنن ج۸، ص۷۹)**

با لفرض که دا و هم منل شي چه دا آذان له جومات څخه د باندې کيده نو د دې وجه دا ده چه په هغه وخت کښې د جمعې لپاره يواځې همدغه آذان کيده د دې لپاره د آواز د رسيدنې په خاطر له جومات څخه د باندې کيده د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کښې چه کله د اول آذان زياتوالی وشو نو په دويم آذان کښې تر غائبينو پورې د آواز د رسيدلو حاجت پاتې نه شو بلکه له دې څخه مقصد يواځې د حاضرينو خبرداری پاتې شو. لکه څرنګه چه حاضرين په جومات کښې د ننه وي له دې امله د هغو په خاطر آذان هم په جومات کښې د ننه وتاکل شو

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۲٤ رمضان ۱۳۹۸ هجری**

## د اختر د خطبې په پيل او په پای کښې په پرله پسې تکبيرونو ويل مستحب دي

**سوال** په بهشتي ګوهر کښې ليکلي دي چه د دواړو اخترونو په خطبو کښې لومړی له تکبير څخه پيل وکړي او په اولې خطبې کښې نهه ځله الله اکبر وائي او په دويمې کښې اوه ځلې. ليکن نن صبا په هيڅ ځای کښې هم په دې باندې عمل نه کيږي په دې باره کښې صحيح مسئله څنګه ده؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د بهشتي ګوهر مسئله صحيح ده د لومړی خطبې په پيل کښې نهه ځله او د دويمې خطبې په پيل کښې اوه ځله او با لکل په آخر کښې څوارلس ځله پرله پسې الله اکبر ويل مستحب دي عام خطيبان له دې څخه ناخبره ده **قال فی التنوير و يبدأ بالتكبير فی خطبة**

العیدین ویستحب ان یستفتح الاولی بتسع تکبیرات تتری والثانیة بسبع ویکبر قبل نزوله من المنبر اربع عشرة.(ردالمحتار ج۱،ص۷۸۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱شوال ۱۳۹۸ھجری

## د جُمعې تر ادا کولو وروسته په بل ځای کښې د خطبې د ویلو حکم

**سوال** یو داسې سړی چه پخپله ده د جُمعې لمونځ ادا کړی وي آیا په بل ځای کښې د جُمعې خطبې ویلی شي او که نه؟بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې باره کښې کومه صریحه جزئیه لاس ته نه ده راغلې البته چونکه د خطبې د صحت لپاره دا شرط نه دی چه په خطیب باندې دې جُمعه فرض وي له دې څخه څرګندیږي چه داسې سړی خطبه ویلی شي

قال في التنویر فان نقل بان خطب صبی باذن السلطان وصلی بالغ جاز هو المختار.(ردالمحتار ج۱،ص۷۶۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳شعبان ۱۳۹۷ھ

## له خطبې څخه مخکښې د وعظ او تقریر رواج

**سوال** د جُمعې تر لمانځه او خطبې څخه مخکښې وعظ او نصیحت کول جائز دي لکه څرنګه چه په عامو جوماتونو کښې تر سره کیږي او که نه؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** هو! جائز دي لیکن په دې کښې یو قباحت خو دا دی چه له خطبې څخه مخکښې د وعظ له وجې د لومړي آذان او خطبې تر منځ ډیر زیات جلاوالی راځي؛ د دې لپاره اکثره خلک تر آذان وروسته هم په کاروبار کښې مشغول وي کوم چه حرام دي د جُمعې تر لومړي آذان فوراً وروسته جومات ته د تلو تیاري کول فرض دي نور ټول کارونه حرامیږي پس عوام په حرامو کښې د مبتلا کولو سبب همدغه د وعظ رسم ګرځیدلی دی چه وبال او ګناه به ئې د جومات په منتظمینو وي بل قباحت ئې دا دی چه کله چیرته یو څوک د تحیة المسجد یا د سنتو مطابق ډیر زر جومات ته په رسیدو سره کوم عبادت کول وغواړي نو په هغه کښې خلل واقع کیږي د دې لپاره بهتره دا ده چه د جُمعې تر لمانځه وروسته وعظ وشي. چه څوک ئې د اوریدو شوقین وي هغه به کښیني

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳صفر ۱۳۹۸ھجری

## ښځې د ماسپښین لمونځ د جُمعې تر لمانځه مخکښې ادا کولی شي

**سوال** په عوامو کښې مشهوره ده چه تر څو پورې په جومات کښې د جُمعې لمونځ پای ته نه وي رسیدلی تر هغو پورې به ښځې په کورونو کښې د ماسپښین لمونځ نه کوي آیا شرعاً د دې خبرې کوم اصل شته؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د دې خبرې هیڅ اصل نشته او دا خبره غلطه ده فقط والله تعالی اعلم

۲۶ شوال ۱۳۹۸ هجری

## د معذور سړي لپاره د جُمعې د لمانځه تر ادا کیدو پورې تاخیر مستحب دی

**سوال** که چیرته بندیانو ته د جُمعې د لمانځه د ادا کولو اجازه نه وي نو هغوی به د ماسپښین لمونځ په ښار کښې د جُمعې د جماعت تر کیدو وروسته کوي او که مخکښې ئې هم ادا کولی شي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د معذورو خلکو لپاره د ماسپښین لمونځ د جُمعې د جماعت تر پای ته رسیدو وروسته ادا کول مستحب دي او مخکښې ادا کول ئې مکروه تنزیهي دی

**قال فی العلائیة و یستحب للمریض تأخیرها الی فراغ الامام و کره ان لم یؤخر هو الصحیح و فی الشامیة (قوله ویستحب للمریض) عبارة القهستانی المعذور وهو اعم (قوله و کره) ظاهر قوله ویستحب ان الکراهة تنزیهیة نهر، و علیه فما فی شرح الدرر للشیخ اسمٰعیل عن المحیط من عدم الکراهة اتفاقاً محمولٌ علی نفی التحریمیة.** (ردالمحتار ج۱ص۷۶۰) فقط والله تعالی اعلم ۵ محرم ۱۳۹۹ھ

## تر قضائي لمانځه وروسته د تشریق د تکبیرونو حکم

**سوال** د تشریق د ورځو قضائي شوي لمونځونه که چیرته یو څوک په غیر د ایام تشریق کښې ادا کوي او همدارنګه که چیرته یو څوک د نور ورځو قضاء شوي لمونځونه د تشریق په ورځو کښې ادا کوي نو آیا په هغه باندې د تشریق تکبیرونه واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې مسئلې کښې څلور صورتونه دي یو اځې په یو صورت کښې د تشریق تکبیرونه واجب دي. په پاتې دریو صورتونو کښې نه دي واجب. د اختر د ورځو قضائي لمونځونه چه د همدې کال د اختر په ورځو کښې ادا کوي نو د تکبیرونو ویل واجب دي

**قال فی العلائیة او قضی فیها منها من عامه لقیام وقته کالاضحیة وقال ابن عابدین رحمه الله المسألة رباعیة فائتة غیر العید قضاها فی ایام العید فائتة ایام العید قضاها فی غیر ایام العید، فائتة ایام العید قضاها فی ایام العید من عام اٰخر، فائتة ایام العید قضاها فی ایام العید من عامه ذٰلك ولا یکبر الّا فی الاخیر فقط کذا فی البحر الخ.** (ردالمحتار ج۱ص۸۶۰) فقط والله تعالی اعلم ۱۲ محرم ۱۳۹۹ هجری

## په اختر کښې د شافعي امام په اقتداء کښې د دولسو تکبیرونو د ویلو حکم

**سوال** د حج په ورځو کښې د اخترونو د لمانځه په موقع باندې که چیرته امام شافعي یا حنبلي

وي او دولس تکبیرونه وائي. نو کوم مقتدیان چه حنفیان وي هغوی ته د امام په خلاف د شپږو تکبیرونو ویل جائز دي؟ او آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په حج کښې د لوی اختر لمونځ خو هسې هم نشته. مسئله یواځې د کوچني اختر د لمانځه په اړه ده. په دې کښې احناف باید چه د امام په متابعت کښې دولس تکبیرونه ووائي بلکه که چیرته امام دیارلس تکبیرونه ووائي نو بیا به ئې هم متابعت کوي البته که چیرته امام له دیارلسو څخه زیات تکبیرونه ووائي نو بیا دې د امام متابعت نه کوي

قال فی العلائیة ولو زاد تابعه الیٰ ستة عشر لانه مأثور، وفی الشامیة (وله الیٰ ستة عشر) کذا فی البحر عن المحیط. وفی الفتح قیل یتابعه الی ثلاث عشرة وقیل الی ست عشرة اھ. (الیٰ قوله) فهذا یؤید القول الاول ولذا قدمه فی الفتح ونسبه فی البدائع الی عامة المشائخ علی ان ضم الثلاث الاصلیة الی الزوائد بعید جدًا لان القراءة فاصلة بینهما فتأمل. (رد المحتار ج۱، ص۷۸۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ صفر ۱۳۹۹ هجری

## د معذورو خلکو لپاره د جُمعې په ورځ د ماسپښین جماعت مکروه دی

**سوال** : آیا د جُمعې په ورځ معذوره خلک د ماسپښین لمونځ په جماعت سره ادا کوی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په ښار کښې د معذورو خلکو لپاره د ماسپښین لمونځ په جماعت سره کول مکروه تحریمي دي له دې امله دوی به یواځې یواځې لمونځونه ادا کوي او د انفراد (یواځې والي) په حالت کښې به هم نه آذان کوي او نه به اقامت وائي قال العلائی رحمه الله وکره تحریماً لمعذور ومسجون ومسافر اداء ظهر بجماعة فی مصر قبل الجمعة وبعدها لتقلیل الجماعة وصورة المعارضة. (رد المحتار ج۱، ص۷۶۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ ربیع الاول ۱۳۹۹ هجری

## د جُمعې په ورځ د معذورو خلکو لپاره د ماسپښین آذان او اقامت مکروه دی

**سوال** : له جُمعې څخه معذور سړی په ښار کښې د ماسپښین د لمانځه لپاره آذان او اقامت کولی شي او که نه؟ بینوا بالبرهان توجروا عند الرحمٰن

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ځینو مستحب ورته ویلي دي لیکن راجح قول دا دی چه مکروه دی

قال ابن نجیم رحمه الله وقیده بالجماعة لما فی التفاریق ان المعذور یصلی الظهر بأذان و اقامة و ان کان لا تستحب الجماعة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۵۴) و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله بغیر اذان و اقامة) قال فی الولوالجیة ولا یصلی یوم الجمعة جماعة بمصر ولا یؤذن ولا یقیم فی مسجد وغیره لصلوٰة الظهر اھ قال فی النهر و

هٰذا اولیٰ ما فی السراج معزیاً الیٰ جمع التفاریق من ان الاذان و الاقامة غیر مکروهین. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ ربیع الاول ۱۳۹۹ھ هجری

## په جواثي نومي کلي کښې د جُمعې د لمانځه تحقيق

**سوال** د فتوى خواب را ورسيده کومه چه د زړه تسلي مو پرې و نه شوه بلکه د نور تفصيل ضرورت هم شته لومړی جُمعه مې د بحرين په يوه ځاى جواثى کښې ادا کړ. د دې علاقې په باره کښې چه آيا دا ښار دى او که چاونی. او په کوم کال کښې دلته د جُمعې لمونځ ادا شوى دى د کتابونو له حوالې سره وليکئ. بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** دا د خصم فريضه ده چه دا ثابته کړي چه جواثى يو کوچنى کلى دى په مطلقه توګه د قريې په لفظ سره استدلال صحيح نه دى ځکه چه د قرآن. حديث او لغت له مخې د دې اطلاق په مدينې منورې باندې ثابت دى. سره له دې په کليو کښې د جُمعې مانعينو تبرعاً د جواثى په ښار والي باندې دا دلائل وړاندې کړي دي

۱ - دلته قلعه وه

۲ - له څلورو زرو څخه زياته آبادي وه

۳ - د امرؤ القيس له شعر څخه ثابتيږي چه يو تجارتي مرکز وو چه په لويې پيمانې سره تجارتي سامانونه پکښې اخيستل او خرڅول کيدل

په جواثى کښې په اتم هجري کال باندې د جُمعې لمونځ قائم شوى دى. تحقيق ئې دا دى چه د عبد القيس رضي الله عنه وفد دوه ځلې راغلى دى. لومړی په اتم هجري کال د مکې له فتحې څخه مخکښې او دويم ځل په سنة الوفود يعنې په نهم هجري کال کښې. (**بذل المجهود، اعلاء السنن، جامع الترمذی و غيرها**) با لفرض که چيرته جواثي يوه وړه علاقه هم ومنل شي نو پوښتنه دا ده چه په دومره اوږدې مودې کښې په کوم بل کلي کښې د جُمعې لمونځ ولې نه دى ادا شوى؟ حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري **ج۸، ص۶۸** کښې له جواثي څخ د عبد القيس د وفد اول وفادة په پنځم هجري کال کښې يا له دې څخه هم مخکښې بللى دى. حالانکه پخپله په اصابه کښې دوه قولونه يعنې اتم هجري کال او لسم هجري کال نقل شوي دي. په فيض الباري کښې لومړی وفادة په شپږم هجري کال او دويم وفادة په اتم هجري کال کښې ليکلى دى. د فتح او فيض د دغو قولونو په هيڅ ځاى کښې ثبوت نه پيدا کيږي. با لفرض که چيرته د حافظ ابن حجر دا قول کوم چه د سِير (تاريخ) د ټولو خاوندانو په خلاف دى ومنل شي نو بيا هم له دې اشکال څخه خلاص نه دى چه تر څلورو پنځو کلونو پورې په يوه علاقې کښې هم د جُمعې لمونځ ولې نه دى ادا شوى؟

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ربیع الآخر ۱۳۹۹ھ هجری

## د هجرت په وخت په قبا کښې د پاتې کیدلو موده

**سوال** د آنحضرتﷺ په قبا کښې د پاتې کیدلو په باره کښې د تاریخ په کتابونو کښې مختلف روایتونه راغلي دي په بخاري شریف کښې تر لسو ورځو څخه زیات او په زړې احسن الفتاوی ص۲۹۶ کښې څلور ویشت ورځې لیکلي دي الغرض په دې باره کښې د تاریخ علماء مختلف دي تر ټولو صحیح روایت کوم یو دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** حافظ ابن حجر رحمه الله د څوارلسو ورځو روایت ته ترجیح ورکړې دی

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ربیع الآخر ۱۳۹۹ھ هجری

## په بني سالم کښې د جُمعې د ادا کولو تحقیق

**سوال** د سیرت او تاریخ په کتابونو کښې له حضرت نبي کریمﷺ څخه په بني سالم کښې د جُمعې د لمانځه ادا کول منقول دي حضرت گنگوهي رحمه الله په اوثق العرى کښې لیکي چه دا روایت صحیح نه دی بلکه دا د راوي غلطي ده په دې اړوند خپله رایه ولیکئ

**الجواب باسم ملهم الصواب** دا روایت د دې لپاره صحیح نه دی چه نبي کریمﷺ د دوشنبې په ورځ قبا ته تشریف یوړ او د صحیح روایت په مطابق هلته څوارلس ورځې پاتې شو نو له قبا څخه د جمعې په ورځ وتل او په لاره کښې د بني سالم په علاقه کښې د جُمعې د لمانځه ادا کول څنګه صحیح کیدلی شي په قبا کښې د پاتې کیدو په اړه د دوه ویشتو او څلور ویشتو ورځو روایتونه هم شته د هغو په مطابق د جمعې په ورځ د وتلو حساب صحیح نه راځي په دوه ویشتو او څلور ویشتو کښې د تطبیق صورت دا دی چه د راتللو او بیرته وتلو ورځې ترې لرې شي نو دوه ویشت ورځې او چه دا دواړه ورځې ورسره حساب شي نو څلور ویشت ورځې راځي لهذا د جُمعې په ورځ د وتلو د تصحیح لپاره دا تاویل صحیح نه دی چه د څلور ویشتو ورځو په روایت کښې د راتللو او وتلو ورځې نه دي ګڼل شوي

برسیره پر دې په بنو سالم کښې د جُمعې د ادا کولو د روایت په خلاف د سیر له بل روایت څخه ثابتیږي چه نبي کریمﷺ په بنو سالم باندې تیر شو او دهغوی له اصرار سره سره هلته کښېناستو نه شو بلکه د خپلې اوښې په باره کښې ئې وفرمایل چه (خلّوا سبیلها فانّها مأمورة) بالفرض که چیرته په بني سالم کښې د جمعې د ادا کولو روایت و هم منل شي نو دا زمونږ په خلاف نه دی ځکه چه بني سالم په خپله د مدینې منورې یوه علاقه ده

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ربیع الآخر ۱۳۹۹ھ هجری

## په خطبه کښې د داسې دريو نارينه وو حضور شرط دی په کومو سره چه جُمعه قائميدلی شي

**سوال** ۱ - که چيرته امام يواځې خطبه ووائي يا يواځې دښځو او ماشومانو په مخکښې خطبه ووائي نو آيا دا ورته جائز دي او که نه؟

۲ - که چيرته د يوه يا دوه نارينه وو په مخکښې خطبه ووائي او له دريو يا تر دريو زياتو کسانو سره لمونځ وکړي نو صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ۱ – نه ؛ جائز نه دی. ځکه چه د جُمعې د خطبې لپاره له امام څخه پرته د دريو داسې نارينه وو چه د جُمعې لمونځ ورسره قائميدلی شي موجودوالی ضروري دی.

قال العلائی رحمه الله والخامس كونها قبلها لان شرط الشئ سابق عليه بحضرة جماعة تنعقد الجمعة بهم ولو كانوا صما او نياما فلو خطب وحده لم يجز على الاصح كما فى البحر عن الظهيرية وقال ابن عابدين رحمه الله (قوله تنعقد الجمعة بهم) بان يكونوا ذكوراً بالغين عاقلين و لو كانوا معذورين بسفر او مرض و قال شارح التنوير رحمه الله بعد ورقتين والسادس الجماعة واقلها ثلاثة رجال ولو غير الثلاثة الذى حضروا الخطبة سوى الامام بالنص لانه لابد من الذاكر والخطيب وثلاثة سواه بنص فاسعوا الى ذكر الله. (ردالمحتار ج ۱، ص ۵۵۷)

۲ – نه ؛ صحيح نه دی. لما مرّ. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲ جمادى الاخر ۱۳۹۹ هجری

## د پورتني سوال په اړوند يو بل سوال

**سوال** : ډيره مننه چه فتوىٰ را ورسيده ليکن شبهه پکښې لرم لږ غوندې د نور وضاحت ضرورت پکښې دی. که چيرته د يوه يا دوو نارينه وو په مخکښې خطبه ووائي او د دريو يا له دريو څخه د زياتو کسانو سره لمونځ وکړي نو لمونځ صحيح دی او که نه؟ په عالمگيري کښې د خلاصه په حوالې سره ليکلي دي چه صحيح دی. د دې ځواب به څه وي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قال فى شرح التنوير وجزم فى الخلاصة بانه يكفى حضور واحد. و قال ابن العابدين رحمه الله تعالى مشى عليه فى نور الايضاح وقال فى شرحه انما اتبعناه لانه منطوق فيقدم على المفهوم اه. اى يفهم من قولهم يشترط حضور جماعة انه لا يصح بحضور واحد و قول صاحب الخلاصة لو حضر واحدا و اثنان وخطب وصلى بالثلاثة جاز منطوق، وفيه نظر فان جعل حضور الجماعة شرطاً منطوق ايضاً لان الجماعة من الاجتماع فتنافى الوحدة وقد جعلت شرطاً والشرط ما يلزم من عدمه العدم تأمل. (ردالمحتار ج ۱، ص ۵۵۸)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۲ جمادى الاخر ۱۳۹۹ هجری

## په خطبه کښې جهر (په زوره ویل) شرط دی

**سوال** خطبه په زوره ویل فرض دي او که سنت؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په خطبه کښې دومره اندازه جهر شرط دی چه ورسره ناست خلک ئې واوریدلی شي

قال ابن عابدین رحمه الله (قوله ولو کانوا صماً او نیاما) اشار الی انه لا یشترط لصحتها کونها مسموعة لهم بل یکفی حضورهم حتی لو بعدوا عنه او ناموا اجزأت والظاهر انه یشترط کونها جهراً بحیث یسمعها من کان عنده اذا لم یکن به مانع شرح المنیة. (رد المحتار ج۱، ص۷۵۸) فقط والله تعالی اعلم ۲ جمادی الثانی ۱۳۹۹ هجری

## په داسې بازار کښې چه کورونه پکښې نه وي د جُمعې لمونځ صحیح نه دی

**سوال** په ځینو علاقو کښې بازار وي لیکن څوک پکښې نه اوسیږي. د څو کلیو په منځ کښې یو بازار دی کوم چه د ورځې خلاص وي او د شپې خلک خپلو خپلو کلیو ته ځي په داسې بازار کښې د جُمعې لمونځ صحیح دی او که نه؟ که چیرته د جُمعې د صحت لپاره په بازار کښې د خلکو مستقل سکونت (اوسیدنه) ضروري وي نو د څومره کسانو؟ دلته په دې کښې اختلاف دی له دې امله په مدلله توګه ئې ولیکئ.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په داسې ځای کښې د جُمعې لمونځ صحیح نه دی. د جُمعې د صحت لپاره دلته د دومره خلکو مستقل سکونت شرط دی چه په عرف کښې ورته قریه یا کلی وویل شي. د اوسیدنې کورونه له یوه او بل سره لګیدلي وي او تر منځ ئې کم تر کمه درې کوڅې یا ګلی مسافه وي لکه څرنګه چه د مصر له تعریف (ما فیه سکك و اسواق) څخه ښکاره دی (لان السکك تکون بین المنازل المسکونة واقل الجمع ثلاث. قال الشرنبلالی رحمه الله علیه فی حد المصر انه بلد له مفت و امیر و قاض مقیمون بها (الی قوله) بلغت ابنیته قدر ابنیة منی و هذا فی ظاهر الروایة. قاله قاضیخان وعلیه الاعتماد. وقال الطحطاوی (قوله مقیمون بها) قید بها لانه اذا لم تعتبر الاقامة لا توجد قریة اصلاً اذ کل قریة مشمولة بحکم کذا فی الشرح (طحطاوی علی المراقی ص۲۷۹) وقال ایضاً ان موضع اقامة المرء حیث یبیت فیه الا تری انك اذا قلت لشخص این تسکن یقول فی محلة کذا. و هو بالنهار یکون بالسوق نقله السید عن العلامة مسکین. (طحطاوی علی المراقی ص۲۳۲)

وقال قاضیخان لا یکون الموضع مصراً فی ظاهر الروایة الا ان یکون (الی قوله) و بلغت ابنیته ابنیة منی (خانیة علی هامش العالمگیریة ج۱، ص۱۷۲) و قال ابن همام رحمه الله علیه قیل فیها ثلاث سکك. (فتح القدیر ج

ص۴۱۱)

علامه طحطاوي رحمه الله فيصله كړې ده چه پرته له اقامت څخه د كلي وجود نه شي پاتې كيدلى او اقامت پرته له بيتوتت (شپې تيرولو) معتبر نه دى ابن همام رحمه الله له عبارت څخه څرګنده شوه چه د منى ابنيه كومه چه معيار تاكل شوې ده په هغې كښې درې كوټې وي بلكه په داسې ځاى كښې كو د څلورو مذاهب په اجماع سره جُمعه صحيح نه ده د اقامت په شرط باندې اجماع ده بلكه د ائمهٔ ثلاثه ؤ رحمهم الله په نزد خو تر اقامت هم پورته شرط استيطان دى **قال العلامة الدردير رحمه الله** و شروط صحتها خمسة اولها الاستيطان و هو اخص من الاقامة لانه الاقامة بقصد التابيد والاقامة اعم. (الشرح الصغير ج۱،ص۴۹۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ جمادى الأخ ۱۳۹۶ هجرى

## د اختر تر لمانځه وروسته د تشريق د تكبيرونو حكم

**سوال**: آيا د اختر تر لمانځه وروسته د تشريق د تكبيرونو ويل جائز دي او كه نه؟ يوه مولوي صاحب د اختر د لمانځه تر وركولو وروسته په لاسپيكر باندې درې ځله اعلان وكړ چه د اختر تر لمانځه وروسته د تشريق تكبيرونه نشته. آيا دا خبره صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر لمانځه وروسته د تشريق تكبيرونه په اتفاق سره ثابت او جائز دي البته په وجوب او استحباب كښې ئې اختلاف دى د وجوب قول ئې ارجح دى مولوي صاحب چه له اعلان څخه مخكښې يو اخې بهشتي زيور كتلى واى نو داسې غلطه خبره به ئې نه وه كړې

قال فى شرح التنوير و لا بأس به عقب العيد لانّ المسلمين توارثوه فوجب اتباعهم و عليه البلخيون. و قال ابن عابدين رحمه الله (قوله و لا بأس الخ) كلمة لا بأس قد تستعمل فى المندوب كما فى البحر من الجنائز و الجهاد و منه هٰذا الموضع لقوله فوجب اتباعهم (قوله فوجب) الظاهر ان المراد بالوجوب الثبوت لا الوجوب المصطلح عليه وفى البحر عن المجتبى و البلخيون يكبّرون عقب صلوة العيد لانها تؤدى بجماعة فاشبهت الجمعة اه و هو يفيد الوجوب المصطلح عليه. (رد المحتار ج۱،ص۷۸۶) و قال العلامة الرافعى رحمه الله (قوله الظاهر ان المراد بالوجوب الثبوت الخ) قال السندى رحمه الله قوله لان المسلمين توارثوه ظاهره ان ذٰلك صنيع الصحابة رضى الله تعالىٰ عنهم و من بعدهم الى اعصارنا فقول السيد احمد ولم يكن فى عهد الصحابة رضى الله تعالىٰ عنهم و الا كانت سنّة لانهم لا يبتدعون من انفسهم خلاف ظاهر عبارة الشرح و قال عقب قوله فوجب اتباعهم ظاهره انه يريد الوجوب المصطلح عليه لا بمعنى الثبوت الحاصل بالاباحة المستفاد من قوله اولاً لا بأس اه (التحرير المختار ج۱،ص۱۱۶) فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۵ ذى الحجة ۱۳۹۹ هجرى

## د دې حديث چه (لا جمعة ولا تشريق الّا فى مصرٍ جامع) تحقيق

**سوال** (لا جمعة ولا تشريق ولا صلوٰة الفطر ولا اضحٰى الا فى مصر جامع او مدينة عظيمة)، آيا دا حديث دى او كه د حضرت علي رضي الله عنه خپل قول دى، دا په كوم حديث كښې دى او آيا صحيح دى او كه نه؟ دا اثر د مرفوع حديث په حكم كښې دى او كه د موقوف په حكم كښې. او آيا د دې سند تر نبي كريم ﷺ پورې رسيږي او كه نه؟ د دې اثر په اړه د صاحبِ هدايه څه موقف دى؟ غير مقلدين حضرات د دې حديث په صحت كښې كلام لري. د دې حديث د تصحيح او د كتابونو د حوالې سخت ضرورت دى. **بينوا بياناً شافياً توجروا اجراً وافياً.**

**الجواب باسم ملهم الصواب** دا حديث مرفوع دى كه چيرته ئې چا ته په حقيقةً رفع كښې څه اشكال وي نو حكماً مرفوع دى (لانه مما لا يدرك بالقياس). د دې حديث په سند باندې اعتراض كول تعصّب او بدخواهي ده.

قال فى اعلاء السنن عن على رضي الله عنه انه قال لا جمعة ولا تشريق الّا فى مصر جامع اخرجه ابو عبيد باسناد صحيح اليه موقوفاً ومعناه لا صلوٰة جمعة ولا صلوٰة عيد كذا فى فتح البارى ورواه عبد الرزاق فى مصنفه انبأ الثورى عن زبيد الايامى عن سعد بن عبيدة عن ابى عبد الرحمٰن السلمى عن على رضي الله عنه قال لا تشريق و لا جمعة الّا فى مصر جامع كذا فى نصب الراية وفى الدراية اسناده صحيح وروى ابن ابى شيبة فى مصنّفه حدّثنا جرير عن منصور عن طلحة عن سعد بن عبيدة عن ابى عبد الرحمٰن انه قال قال على رضى الله تعالىٰ عنه فذكر اللفظ الاول و اسناده صحيح كذا فى عمدة القارى و ذكر الامام خواهر زاده فى مبسوطه ان ابا يوسف رحمه الله تعالىٰ ذكره فى الاملاء مسنداً مرفوعاً الى النبى ﷺ و ابو يوسف امام الحديث حجّة اه كذا فى البناية اى فيكون رفعه حجة لانه زيادة من ثقة فتقبّل.

قوله عن على الخ قلت هٰذا الاثر له طريقان اُخران ذكرهما الزيلعى فى نصب الراية ج١، ص٢١٣ ، رواه عبد الرزاق فى مصنّفه اخبرنا معمر عن ابى اسحٰق عن حارث عن على رضى الله تعالىٰ عنه قال لا جمعة ولا تشريق الا فى مصر جامع انتهٰى ورواه ابن ابى شيبة فى مصنّفه حدّثنا عباد بن العوام عن حجّاج عن ابى اسحٰق عن الحارث عن على رضى الله تعالىٰ عنه قال لا جمعة ولا تشريق ولا صلوٰة فطر ولا اضحٰى الا فى مصر جامع او مدينة عظيمة انتهٰى. قال بعض الناس والاسنادان لا تقوم بهما حجة فان ابا اسحٰق وهو عمرو بن عبد الله الهمدانى السبيعى مكثر عابد ثقة اختلط بآخره كما فى التقريب (ص١٥٩) قلت يا للعجب و لضيعة الادب هل يضعف الحديث لاجل ابى اسحٰق

السبیعی وهو من ائمة التابعین بالکوفة و اثباتهم وصفه الذهبی فی تذکرة الحفاظ له بالحافظ احد الاعلام. (ج ۱، ص ۱۰۸) و قال فی المیزان الا انه شاخ و نسی ولم یختلط و قد سمع منه سفیان بن عیینة و قد تغیّر قلیلاً الی ان قال قال الفسوی و انما ترکوه مع ابن عیینة لاختلاطه اه (ج ۲، ص ۲۹۲) و فیه تصریح بانه لم یختلط و انما تغیّر قلیلاً و التغیّر القلیل و الاختلاط الیسیر لیس بحرج ما لم یکثر منه صرح بذلک الذهبی فی المیزان فی ترجمة هشام بن عروة بما نصه ولا عبرة بما قاله ابو الحسن بن القطّان من انه و سهیل بن ابی صالح اختلطا و تغیرا نعم الرجل تغیر قلیلاً ولم یبق حفظه کهو فی حال شبابه فنسی بعض محفوظه او وهم فکان ماذا اهو معصوم من النسیان و لما قدم العراق فی اٰخر عمره حدث بجملة کثیرة من العلم فی غضون ذلک یسیر احادیث لم یجوّدها و مثل هذا یقع لمالک و لشعبة و لوکیع و لکبار الثقات فدع عنک الخبط و ذر خلط الائمة الاثبات بالضعفاء و المخلطین فهو شیخ الاسلام اه. (ج ۳، ص ۲۵۵) و فیه تصریح ایضاً بان الذی سمع منه بعد تغیّره قلیلاً هو ابن عیینة وحده و انما ترکه من ترکه مع ابن عیینة فقط دون غیره فصار کلام بعض الناس هباءً منثوراً قال بعض الناس و الحارث الاعور مختلف فیه کما تقدم فی الکتاب اه قلت نعم و قد حسنت حدیثه فی غیر ما موضع و زعمت غیر مرة ان الاختلاف فی التوثیق لا یضرّ و العجب ممن یوثق شهر بن حوشب و محمد بن ابی لیلی و حجاج بن ارطاة و رشدین ابن سعد و جبارة بن المفلس فی کتابه ان یتکلم فی الحارث الذی اخرج له النسائی فی مجتباه مع تعنّته فی الرجال ثم قال و معمر اخرج له الجماعة الا ان یحیی بن معین یقول اذ حدّثک معمر عن العراقیین فخالفه الا عن الزهری و ابن طاؤس فان حدیثه عنهما مستقیم فاما اهل الکوفة و البصرة فلا اه کذا فی التهذیب (ج ۱۰، ص ۲۴۵) قلت قد وصفه الذهبی فی التذکرة بالامام الحجّة احد الاعلام عالم الیمن (ج ۱، ص ۱۷۸) و اثنی علیه الائمة قاطبة و قال ابن حبان فی الثقات له کان فقیها حافظاً متقناً ورعا و عده علی بن المدینی و ابو حاتم فیمن دار الاسناد علیهم کما فی التهذیب (ج ۱۰، ص ۲۴۳) فائش یؤثر فی مثله ما ذکره ابن ابی خیثمة عن ابن معین و قد روی معاویة بن صالح عن ابن معین توثیقه مطلقاً علی ان الذهبی کتب علی اسمه علمة صح و هی عنده اشارة الی ان العمل علی توثیق هذا الرجل صرح به فی اللسان (ج ۱، ص ۹) ثم قال الذهبی فی المیزان معمر بن راشد ابو عروة احد الثقات الاعلام له اوهام معروفة احتملت له فی سعة ما اتقن اه. (ج ۲، ص ۱۸۸) و هذا تصریح منه بان العمل علی توثیقه و الاحتجاج بروایته مطلقاً ثم قال بعض الناس و حجاج بن ارطاة تقدم و هو مدلس اه قلت قد وثقته و حسنت حدیثه فی غیر ما موضع من کتابک و اما التدلیس فانما یجعل الحدیث الصحیح مختلفا فیه لا

ضعیفا بالاتفاق فقد قال الحاکم الحدیث الصحیح ینقسم عشرة اقسام خمسة متفق علیها و خمسة مختلف فیها فذکر المتفق علیها اولا ثم ذکر المختلف فیها و قال فهی المرسل و احادیث المدلسین اذا لم یذکروا سماعهم الخ کذا فی تدریب الراوی (ص۳۵) و قد ذکرنا فی المقدمة ان المختلف فیه حسن لا ضعیف و التزم بعض الناس هذا الاصل فی کتابه و قد شحنه و ملأه بقوله ان الاختلاف لا یضره فکیف یضعف الحدیث بسببه ههنا فالحق ان الاسنادین حسنان و لیسا بضعیفین کما زعم و الحجّة بهما قائمة و الاستدلال بروایة ابن ارطاة علی اختصاص تکبیر التشریق بأهل المصر صحیح کما هو اصل المذهب فافهم. و فی عمدة القاری فان قلت قال النووی حدیث علی متفق علی ضعفه و هو موقوف علیه بسند ضعیف منقطع قلت کأنه لم یطلع الا علی الاثر الذی فیه الحجّاج ابن ارطاة و لم یطلع علی طریق جریر عن منصور فانه سند صحیح و لو اطلع لم یقل بما قاله و اما قوله متفق علی ضعفه فزیادة من عنده و لا یدری من سلفه فی ذلك علی ان ابازید زعم فی الاسرار ان محمد بن الاحسن قال رواه مرفوعاً معاذ و سراقة بن مالك رضی الله عنهما اه. (ج۳، ص۲۶۴) قلت و کذا قال الامام ابوبکر الجصّاص فی احکامه روی عن النبی ﷺ انه قال لا جمعة و لا تشریق الا فی مصر جامع و روی عن علی مثله اه (ج۳، ص۴۴۵) و لکن المرفوع لا یثبته المحدّثون فان صح من محمد بن الحسن رحمه الله ما زعمه ابو زید فی الاسرار کان حجة لنا کافیة فان محمداً امام مجتهد و قوله حجة و کذا ان صح ما ذکره خواهرزاده ان ابایوسف رحمه الله تعالی رواه فی الاملاء مرفوعاً مسنداً کما هو الظاهر، علی ان الموقوف فی مثله مرفوع حکما لکونه خلاف القیاس المستمر فی الصلوات فانها لا تختص بمکان دون مکان قال النبی ﷺ جعلت لی الارض مسجداً و طهورا و هو حدیث صحیح اخرجه البخاری (ج۱، ص۲۲) فاقدام علی رضی الله عنه علی نفی الجمعة فی بعض الاماکن و تخصیصها بالمصر الجامع لا یکون الا عن سماع الخ. (اعلاء السنن ج۸، ص۲) فقط والله تعالی اعلم

۱۸ ذی الحجة ۱۳۹۹ هجری

## د ماسپښین د څلور رکعته احتیاطي لمانځه حقیقت

**سوال** احتیاط الظهر څه حقیقت لري؟ د دې لمانځه ایجاد له څه وخت راهیسې شوی دی او دا لمونځ چا ایجاد کړی دی؟ د احتیاط معنٰی څه ده؟ آیا د صحابهٔ کرامو ﷺ او مجتهدینو امامانو په دور کښې هم د دې ثبوت پیدا کیږي؟ که چیرته ئې ثبوت نه پیدا کیږي نو احتیاط الظهر ته بدعت شنیعه باید وویل شي او که نه؟ د حنفیانو په کتابونو کښې ځینې د عدم جواز قائل دي او ځینې د جواز قائل دي د علامه شامي رحمه الله رجحان هم د جواز خوا ته څرګندیږي هیله ده چه فیصله

کوونکی قول ولیکئ بینوابالدلیل اجرکم الجلیل.

**الجواب باسم ملهم الصواب** د احتیاط مطلب دا دی چه د عباداتو په ادا کولو کښې د فساد له شک او شبهې څخه ځان ساتنه وشي د دې اصل له حدیثو څخه ثابت دی قال رسول الله ﷺ **فمن اتقى الشبهات استبرألدينه وعرضه وقال لسودة بنت زمعة ﷺ احتجبي من ابن زمعة لما رأى من شبهة بعتبة بن ابي وقاص،** د فساد د شبهې په وخت کښې د عبادت تکرار د فقهې په نظائرو کښې موجود دی **کا لجمع بين الوضوء والتيمم عند وجود الماء المشكوك والبناء على الاقل عند الشك في تعداد الركعات مع ان فيه احتمال تكرار الركعة والجهر في الثالثة ومنه ماصرحوا به من ندب اعادة الصلوٰة عند توهم الفساد.**

پس د ماسپښين د څلور رکعته احتیاطي لمانځه مطلب دا شو چه چیرته چا ته د جُمعې په صحت کښې شک او شبهه وي نو هلته دې د جُمعې تر لمانځه وروسته د احتیاط له مخې د ماسپښين لمونځ هم ادا شي تر څو چه د فرض ادا کول یقیني وګرځي اود فساد شبهه پاتې نه شي د جُمعې په صحت کښې د شبهې لاندیني وجوهات بیان شوي دي

۱ - د ځینو غیر معروفو خلکو وینا ده چه د حنفیانو په نزد د جُمعې د صحت لپاره د سلطان وجود شرط دی د دې لپاره چیرته چه سلطان نه وي نو هغوی د احتیاط الظهر حکم ورکوي د دوی دا خیال صحیح نه دی ځکه چه د سلطان د وجود شرط یواځې د نزاع (اختلاف او جنګ) د رفع کولو لپاره دی اودمسلمانانو له خوا څخه د جُمعې د امام ټاکنه د دې مقصد د لاس ته راوړلو لپاره کافي دی همدارنګه که چیرته د سلطان وجود د جُمعې د صحت لپاره شرط وټاکل شي نو د بادشاه په نه موجودوالي کښې به د جُمعې نه صحت یقیني وي په دې صورت کښې د جُمعې د ادا کولو او بیا د ماسپښين د احتیاطي لمانځه څه مطلب؟ باید یواځې د ماسپښين د ادا کولو فتوی ورکول شي

۲ - په حنفي مذهب کښې یو مرجوح روایت دا دی چه په یوه ښار کښې په ګڼ شمیر ځایونو باندې د جُمعې لمونځ صحیح نه دی کوم لمونځ چه په یقیني توګه تر ټولو مخکښې ادا شوی وي یواځې هغه به صحیح وي وروسته کیدونکي لمونځونه او په یوه وخت کښې دوه ځایه ادا شوي لمونځونه او په تقدم او تاخر کښې د اشتباه په حالت کښې ادا شوي لمونځونه صحیح نه دي په بحر. شامیه او داسې نورو کښې له قنیه څخه منقول دي چه د دې مرجوح روایت په بناء سره د مرو نومي علاقې خلکو د ماسپښين د احتیاطي لمانځه ابتداء وکړه

د احنافو فقهاؤ په دې کښې اختلاف دی ځینو د مرو د خلکو په تائید کښې د ماسپښين د احتیاطي لمانځه قول وکړ او ځینې د ماسپښين په پرینښودو کښې د احتیاط قائل دي لکن دا اختلاف له مفسدهٔ عارضه څخه په قطع نظر باندې مبني دی. د عقیدې د فساد په صورت کښې د

احتياطي لمانځه په پرېښودو باندې تول متفق دي قال ابن نجيم رحمه الله افتيت مراراً بعدم صلوتها خوفاً على اعتقاد الجهلة بأنها الفرض و ان الجمعة ليست بفرض. (البحر الرائق ج۲، ص۱۲۹) د بنده په خيال کښې د عقيدې له فساد څخه قطع نظر هم په دې صورت کښې د ماسپښين د احتياطي لمانځ قول غير معقول دی ځکه چه د جُمعې د تعدد له وجې د فساد له شبهې څخه معقول صورت دا دی چه په يوه ښار کښې خاص په يوه ځای باندې د جُمعې د ادا کولو اهتمام وشي دا عجيب اهتمام دی چه د جُمعې د لمانځه غوندې د اسلام اهم شعار د شبهاتو په لړې کولو باندې د قدرت درلودلو تر څنګ همداسې مشتبه پرېښودل شي او بيا ئې په ماسپښين سره تدارک (پتی) وشي که چيرته د احنافو علماؤ په نظر کښې د شبهې دا وجه د نظر قابله وي نو د هغه علاج د احتياطي لمانځه په ځای د جُمعې په يو والي باندې وکړئ

۳ - د کوم ځای چه مصريت (ښار کيدل) مشتبه وي په هغه کښې د احتياط الظهر حکم له محيط او کافي څخه منقول دی ونقل المقدسى عن المحيط كل موضع وقع الشك فى كونه مصراً ينبغى لهم ان يصلوا بعد الجمعة اربعاً بنية الظهر احتياطاً حتى لو لم تقع الجمعة موقعها يخرجون عن عهدة فرض الوقت بأداء الظهر وتبعه فى الكافى. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۰) ليکن په دې کښې هم د عدمِ مفسده هم هغه شرط دی قال ابن عابدين رحمه الله بعد بحث طويل نعم ان ادى الى مفسدة لا تفعل جهاراً و الكلام عند عدمها ولذا قال المقدسى نحن لا نأمر بذلك امثال هذه العوام بل ندل عليه الخواص و لو بالنسبة اليهم اه. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۰)

## د کلام خلاصه

يوائې په داسې ځای کښې چه د هغه په مصر توب کښې تردد او شبهه وي يوائې خواصو ته په پټه توګه د احتياط الظهر د ادا کولو اجازه ده. عوامو لره په هر حال له دې څخه منع کول لازم دي دا حکم په هغه صورت کښې دی چه په داسې ځای کښې له مخکښې څخه د جُمعې لمونځ قائم شوی وي که چيرته قائم نه وي نو له سره قائمول ئې جائز نه دي لعدم تيقن شرط الصحة

په فتاوی رشيديه کښې د عبد الوهاب نومي عالم ليکل درج شوی دی چه د احتياط الظهر بدعت يو معتزلي عباسي بادشاه جاري کړی وو. نوموړي ظالم دا حکم کړی وو چه څوک احتياط الظهر ادا نه کړي هغه ته به تعزير ورکول کيږي فقط والله تعالى اعلم ۲۹ جمادى الاولى ۱۴۰۰ هجرى

## تر لومړي آذان وروسته د دين ۲ کار کول هم جائز نه دي

**سوال** د جُمعې تر اول آذان وروسته د ديني کتابونو مطالعه کول يا مسائل او حديث ليکل په

داسې حال کښې چه د خطبې له آذان څخه مخکښې جومات ته ورسیږي جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** تر اول آذان وروسته د جُمعې له تیاري پرته هیڅ کار هم جائز نه دی اګر که هغه دیني کار هم وي **قال فی التنویر وجب السعی الیها وترك البیع بالأذان الاول، وفی الشامیة اراد به کل عمل ینافی السعی وخصّه اتباعاً للأیة. نهر.** (ردالمحتار ج۱، ص۷۷۰)

**فقط والله تعالی اعلم** **۲۹ جمادی الاولی ۱۳۸۷ھ هجری**

## د قضائي لمونځونو او د اختر د لمانځه تر منځ ترتیب واجب نه دی

**سوال** چا چه د سهار لمونځ نه وي کړی او د اختر لمونځ ادا کړي نو آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ او که چیرته د سهار قضائي د اختر تر لمانځه مخکښې را ګرځوي نو یواځې فرض به را ګرځوي او که سنت هم؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د قضائي لمونځونو او د اختر لمانځه تر منځ ترتیب واجب نه دی له دې امله د اختر لمونځ کیږي. له غرمې څخه مخکښې د سهار قضائي چه څوک را ګرځوي نو فرض او سنت دې دواړه را وګرځوي که د اختر تر لمانځه مخکښې وي او که وروسته

**فقط والله تعالی اعلم** **۲۶ ذی الحجة ۱۳۹۱ھ هجری**

## د جنابت په غسل سره د جُمعې د ورځې سنت غسل هم ادا کیږي

**سوال** د جُمعې په سهار کښې چه څوک د جنابت غسل وکړي نو آیا د جُمعې مسنون غسل به دوباره کوي او که په همدې غسل سره د مسنون غسل ثواب هم ورکول کیږي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** همدا غسل ورته کافي دی. د دوباره غسل ضرورت نشته بلکه که چیرته د صفائي مقصد د پنجشنبې په ورځ په غسل کولو سره حاصل شي نو بیا هم کافي دی

**فقط والله تعالی اعلم** **۲۳ جمادی الاولی ۱۳۹۳ھ هجری**

## خطیب ته فتح ورکول جائز نه دي

**سوال** که چیرته خطیب په خطبه کښې غلط شي نو آیا فتح ورکول ورته جائز دي او که نه؟ په لومړي صورت کښې فتح ورکول لازم دي او که صرف سنت یا مستحب دی؟ همدارنګه فتح په داسې وخت کښې ورکول چه خطیب بالکل په خطبه کښې بند پاتې شي یا په هغه وخت کښې هم باید فتح ورکړل شي چه ډیره غلطه خطبه ووائي او دا هم څرګنده کړئ چه که چیرته خطیب فرض خطبه پوره کړي او وروسته بند شي نو اوس فتح ورکول شته او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** لکه څرنګه چه په خطبه کښې د کوم تاکلي مضمون ويل ضروري نه دي. که چيرته په يوه مضمون کښې خطيب بند شي نو بل کوم مضمون دې ووائي له دې امله د فتح د ورکول ضرورت نشته او د خطبې په حالت کښې هر ډول خبرې ناجائزې دي د دې لپاره فتح ورکول هم ناجائز دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ ذی الحجة ۱۳۹٤ هجری

## د خطبې په وخت کښې په لاس کښې د عصا (ټينګۍ يا همسا) نيولو حکم

**سوال** د خطبې په وخت کښې د خطيب لپاره په لاس کښې د عصا نيول څنګه دي؟ آيا سنت دی او که بدعت؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې اړوند د فقهي عبارتونه مختلف دي. د تطبيق صورت ئې دا دی چه في نفسه سُنّتِ غير مؤکده دی ليکن التزام او استمرار ئې مکروه او بدعت دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ شعبان ۱۳۹٤ هجری

## د تشريق تکبيرونه له يو ځل څخه د زيات ويلو حکم

**سوال** تر فرض لمانځه وروسته د تشريق تکبيرونه له يو ځل څخه زيات ويل جائز دي او که د سنتو خلاف دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** ځينې خلاف سنت ورته ويلي دي او ځينو جائز. له اختلاف څخه د ځان ساتنې په خاطر له يو ځل څخه زيات بايد و نه ويل شي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ ذی الحجة ۱۳۹٤ هجری

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال** تکبير تشريق څو ځله ويل واجب دي، يو ځل او که درې ځله؟ په کنز الدقائق کښې دي چه يو ځل ويل ئې واجب دي ليکن که چيرته له يو ځل څخه زيات وويل شي نو فضل دی. د فضل مطلب څه دی؟ آيا په دې سره د درې ځلو سنيّت يا استحباب يا وجوب ثابتيږي او که نه؟ که چيرته يو څوک درې ځله د تشريق د تکبيرونو ويل ضروري وبولي نو د شريعت له مخې به دا سړی ګنهګار وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په کنز الدقائق کښې د فضل لفظ نشته بلکه دا د عيني قول دی راجح قول دا دی چه له يو ځل څخه زيات ځله ويل ئې د سنتو خلاف دی. چه څوک ئې درې ځله ويل ضروري بولي هغه سړی ګنهګار او مبتدع دی. په هغه باندې له دې بدعت څخه توبه کول فرض دي.

قال في التنوير ويجب تكبير التشريق مرّة وفي الشرح وان زاد عليها يكون فضلاً قاله العيني وفي الحاشية

افاد ان قوله مرة بیان للواجب لکن ذکر ابو السعود ان الحموی نقل عن القراحصاری ان الاتیان به مرتین خلاف السنة اه. قلت فی الاحکام عن البرجندی ثم المشهور من قول علمائنا انه یکبر مرة وقیل ثلاث مرات.

(ردالمحتار ج۱، ص۵۸۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ رجب ۱۴۰۰ھ ہجری

## د اختر په لمانځه کښې به مسبوق تکبیرونه څه وخت وائي؟

**سوال** که چیرته یو څوک د اختر په لمانځه کښې له تکبیرات زوائد څخه وروسته له امام سره په رکوع کښې شریک شي نو دا تکبیرات به څه وخت وائي؟ او که چیرته د دویم رکعت په تشهد کښې شریک شي نو داسې مسبوق به تکبیرات زوائد څه وخت وائي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** تر تکبیر تحریمه وروسته دې تکبیرات ووائي. اګر که امام قرائت شروع کړی وي. او که چیرته امام په رکوع کښې پیدا کړي نو تکبیرات دې ووائي او رکوع ته دې لاړ ي. البته که چیرته له امام سره د رکوع د نه نیولو ویره وه نو په رکوع کښې دې پرته له لاس پورته کولو تکبیرونه ووائي. که چیرته د تکبیرونو تر پوره کولو مخکښې امام له رکوع څخه پورته شي نو پاتې تکبیرونه ساقطیږي او که چیرته په دویم رکعت کښې له امام سره شامل شي نو د امام له سلام اړولو څخه وروسته چه کوم رکعت ادا کوي په هغه کښې د پله قرائت څخه وروسته له رکوع څخه مخکښې تکبیرونه ووائي او که چیرته په تشهد کښې له امام سره شریک شي نو بعینه په هغه ډول دې دوه رکعته له تکبیرونو سره ادا کړي لکه څرنګه ئې چه له امام سره ادا کوي

قال فی العلائیة ولو ادرك المؤتم الامام فی القیام بعد ما کبّر کبّر فی الحال برأی نفسه لانه مسبوق ولو سبق بر کعة یقرأ ثم یکبر لئلا یتوالی التکبیرات. وفی الشامیة (قوله فی القیام) ای الذی قبل الرکوع امّا لو ادرکه راکعاً فان غلب علیٰ ظنه ادراکه فی الرکوع کبّر قائماً برأی نفسه ثم رکع والّا رکع و کبّر فی رکوعه خلافاً لابی یوسف رحمه الله تعالیٰ ولا یرفع یدیه لانّ الوضع علی الرکبتین سنة فی محله والرفع لا فی محله وان رفع الامام رأسه سقط عنه ما بقی من التکبیر لئلا تفوته المتابعة ولو ادرکه فی قیام الرکوع لا یقضیها فیه لانه یقضی الرکعة مع تکبیراتها، فتح وبدائع. (ردالمحتار ج۱، ص۵۸۱)

## ښځې په یواځې، صورت کښې د جُمعې او اخترونو لمونځونه نه شي کولی

**سوال** آیا ښځې په یواځې صورت کښې د جُمعې او اخترونو لمونځونه په جماعت سره ادا کولی شي او که نه؟ همدارنګه دوی ته د تراویحو ادا کول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** ښځې په یواځې صورت کښې د جُمعې او اختر لمونځ په جماعت

سره نه شي ادا کولی او په تراویحو کښې د ښځو ځانته جماعت مکروه تحريمي دی.

قال فی الدر المختار فی مبحث الجمعة والسادس الجماعة واقلها ثلاثة رجال وفی الشامية قوله واقلها ثلاثة رجال (الی قوله) واحترز بالرجال عن النساء والصبيان فان الجمعة لا تصح بهم وحدهم لعدم صلاحيتهم للامامة فيها بحال بحر عن المحيط (رد المحتار ج۱، ص۶۱) وفی عيد العلائية تجب صلوتهما فی الاصح علی من تجب عليه الجمعة بشرائطها المتقدمة سوی الخطبة فانها سنة بعدها (رد المحتار ج۱، ص۶۶۳) وفی امامة العلائية ويكره تحريما جماعة النساء ولو فی التراويح. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۸) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۶ ذی قعده ۱۳۸۳ هجری

## د خطبې په حالت کښې د تحيّة المسجد د ادا کولو حکم

**سوال**: دخطبې په دوران کښې د سليک ﷺ له حديث څخه د لمانځه د اداکولو جواز څرګنديږي او له نورو حديثونو سره په تعارض کښې دی. د تطبيق يا ترجيح صورت ئې څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د تطبيق صورت ئې دا دی چه نبي کريم ﷺ په منبر باندې ناست وو ليکن تر اوسه ئې لا خطبه نه وه شروع کړې له خطبې څخه مخکښې ئې حضرت سليک ﷺ ته د دوه رکعتونو د ادا کولو ارشاد وکړ پرته له دې څخه ممکنه ده چه دا واقعه په خطبه کښې د چپ والي له حکم څخه مخکښې وي.

د ترجيح صورت ئې دا دی چه د سليک ﷺ حديث خبر واحد دی او د حضرت ابو هريرة ﷺ حديث چه **(اذا قلت لصاحبك انصت والامام يخطب فقد لغوت)**. مشهور بلکه تقريباً متواتر حديث دی. خبر واحد له حديث مشهور سره د معارضه (ټکر) صلاحيت نه لري چه کله د خطبې په حالت کښې د نهی عن المنکر د فريضې د ادا کولو هم اجازه نشته نو د نفلو اجازه به څرنګه کيدلی شي؟

د دې مفصل تحقيق زما په "نيل المرام بالتزام السكوت عند قراءة الامام" نومي رسالې کښې د احسن الفتاوی د دريم جلد له ۱۴۵ مخ څخه تر ۱۵۰ مخ پورې دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ ربيع الآخر ۱۴۰۲ هجری

## رائے ونډ ته نژدې په تبليغي اجتماع کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال**: د رائے ونډ علاقې ته نژدې چيرته چه تبليغي اجتماع کيږي هغه د اندازې له مخې تقريباً يو نيم يا دوه ميله فاصلې باندې واقع دی. او په منځ کښې فصلونه يا کروندې او داسې نور هم حائل دي او هلته د جُمعې لمونځ قائميږي پوښتنه دا ده چه دا ځای د مصر له فناء څخه شمارل کيږي او که پخپله دا ځای مصر ګڼل کيږي؟ د احقر په زړه کښې له ډيرو ورځو راهيسې دا وسوا دی هيله ده چه ستاسو په خواب سره ئې تسلي وشي. بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د تبليغي اجتماع لپاره داسې ميدان د مصر په حوائجو کښې داخل دی. د دې لپاره دا ځای د مصر په فناء کښې داخل دی او په فناء کښې د جُمعې د صحت لپاره له مصر سره اتصال ضروري نه دی. او د کروندې فصلونه مانع نه دي. لهذا دلته د جُمعې لمونځ صحيح دی. فقط والله تعالیٰ اعلم يوم العرفة ۱۴۰۱ هجری

(د سوال د تفصيل پر بناء د خواب تبديلي په تتمه کښې دی)

## د خطبې د اوږدوالي د کراهت اندازه

**سوال** : الرابع عشر تخفيف الخطبتين بقدر سورة من طوال المفصل (هندية) د دې عبارت مطلب څه دی؟ آيا هره خطبه به همدومره اوږده وي؟ يعنې اوله خطبه به هم د طوالو سورتونو په اندازه وي او دويمه خطبه هم او که دواړه خطبې به د طوال مفصل د يوه سورت په اندازه وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په سوال کښې مذکوره د هنديې له عبارت څخه او د علائيې له جزئيې **وتکره زيادتهما علی قدر سورة من طوال المفصل** څخه ثابتيږي چه د دواړو خطبو مجموعي اندازه ترې مراد ده. د علائيه له عبارت څخه په ظاهره معلوميږي چه د طوال مفصل له سورتونو څخه د تر ټولو کوچني سورت له اندازې څخه زياتوالی مکروه دی. ليکن د هنديې له عبارت څخه ثابته شوه چه تر ټولو لوی سورت مراد دی. **ويؤيده ما نقله ابن عابدين رحمه الله عن القهستاني وزيادة التطويل مکروهة.** (ردالمحتار ج۱، ص۷۵۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴ ربيع الاول ۱۴۰۲ هجری

## په خطبه کښې د حضرت معاويه رضي الله عنه د يادونې حکم

**سوال** : حضرت مولانا دوست محمد قريشي رحمه الله او حضرت مولانا عبد الستار تونسوي مد ظله چه کومې خطبې خپرې کړې دي چه په هغو کښې له حضرت سيده فاطمه رضي الله عنها څخه پرته د نبيِّ کريم ﷺ د نورو دريو لوڼو نومونه هم راغلي دي. او په صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم کښې له نورو صحابه وو سره د حضرت معاويه رضي الله عنه نوم هم راغلی دی. دا خطبې په جمعه کښې ويل جائز دي او که نه؟ او که جائز وي نو يواځې د مباح تر اندازې پورې او که د موجوده حالاتو له مخې افضلې او مؤکدې هم دي؟ که چيرته دا خطبې افضلې او جائزې وي نو زمونږ په عمائدينو متقدمينو او متاخرينو کښې چه کومې خطبې مروّجې وي په هغو کښې د يادو شويو صحابهٔ کرامو نومونه ولې نه وو. همدارنګه دا چه په دغو خطبو سره د اکابرو، سلفِ صالحينو مثلاً حضرت تهانوي رحمه الله له مسلک څخه خو انحراف نه لازميږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په هرې زمانې کښې د خطبو د مضمون په ترتيب کښې په اسلام کښې له پيدا کيدونکو فتنو څخه د اهلِ سنتو د مسلک د حفاظت اهتمام شوی دی. چنانچه د

حضراتو صحابهٔ کرامو ﷺ مبارک نومونه او د هغو لپاره دُعاء او د هغوی مناقب په خطبو کښې په زاوړلو سره د روافضو او خوارجو تردید او د اهلِ سنتو د مسلک اعلان مقصود دی. په مخکښینی زمانې کښې چه کومې فتنې وې د هغو د تردید لپاره د صحابهٔ کرامو ﷺ دنومونو یادول کافي وو کوم چه په چاپ شویو خطبو کښې راغلي دي. د نوي دور یوه نوې فتنه د یوې داسې ډلې ظهور دی کومه چه د اهلِ سنت والي دعوه هم کوي او له حضراتو صحابهٔ کرامو ﷺ سره د عقیدت دعویٰ هم کوي لیکن زړونه ئې له صحابهٔ ﷺ سره له بغض او عداوت څخه ډک دي په ځانګړې توګه د حضرت عثمان او حضرت معاویه رضی الله عنهما په اړه د دوی د زړونو نجاست د دوی له ژبې او قلم څخه په پرله پسې توګه تویېږي. د اهلِ سنتو په مسلک کښې له هیڅ یوه صحابي سره له ادنی څخه ادنی بدګمانی هیڅ ګنجائش او اجازه نشته. د هر یوه صحابي په باره کښې لږ غوندې بدګماني هم د الله تعالی د غضب او د جهنم موجب دی. د دې لپاره دا خلک له اهلِ سنتو څخه خارج دي. او په الحاد کښې د روافضو په لارې باندې روان دي. همدارنګه روافض له حضرت فاطمه رضی الله عنها څخه پرته د نبي کریم ﷺ له نورو مکرّمو لوڼو سره هم بُغض لري. د دې لپاره په دغو فتنو باندې د تردید له مخې په خطبه کښې د حضرت معاویه رضی الله عنه او د نبي کریم ﷺ د بناتو مکرماتو د مناقبو او فضائلو ذکر او د هغوی لپاره د ترضّي د دُعاء معمول باید جوړ شي. په دې سره د حضرت تهانوي قدّس سرّه او نورو اکابرو رحمهم الله له مسلک څخه انحراف لازم نه راځي. بلکه د دوی د مسلک تائید پرې کیږي. له دې امله د هغوی خطبات چه په کومې نظریې باندې مبني دي په هغوی کښې دا زیاتوالی هم د همدې نظریې لاندې شوی دی کوم چه تفصیل ئې پورته بیان شوی دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربیع الاخر ۱۴۰۲ هجری

# النخبة

## فی مسئلة الجمعة و الخطبة

## خطبه په غیر عربي کښې او جُمعه په غیر مصر کښې جائزه نه ده

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

الحمدلله وکفٰی وسلام علی عباده الذین اصطفٰی امابعد!

دا رساله د دوو سوالونو د ځواب مجموعه ده او له دې وجې چه ضروري او مفیده ده خپرېږي. د لومړي سوال ځواب د ورور حضرت مولانا محمد خلیل صاحب لخوا شخه او د دویم سوال ځواب د بنده رشید احمد له خوا شخه دی. والله الموفق للصّواب ویهدی الیه من اناب.

لومړی سوال: آیا د جُمعې د اداء لپاره ښار خاص دی، په کلیو کښې جُمعه ولې نه ادا کیږي؟

دویم سوال: د مطهره شریعت په دې باره کښې څه حکم دی چه د جُمعې خطبه له عربي ژبې پرته په نورو منطقوي ژبو باندې جائزه ده او که نه؟ که چیرته نه وي نو چه کله د خطبې مقصود وعظ وي نو په عربي ژبې باندې د نه پوهیدونکو خلکو په مخ کښې د خطبې په عربي ژبې سره د ویلو څه فائده؟ بینوا بالبرهان اجرکم الرحمٰن.

**د لومړي سوال ځواب:** حامداً ومصلّیاً ومسلّماً!

د سائل دا وینا چه په کلیو کښې د جُمعې لمونځ ولې نه کیږي داسې مثال لري لکه چه یو څوک ووائي چه حج په کراچۍ کښې ولې نه کیږي. لکه څرنګه چه شریعتِ مطهره د حج لپاره مکه معظمه او د اعتکاف لپاره جومات ټاکلی دی همدارنګه د جُمعې د لمانځه لپاره ښار خاص کړی دی. له قرآن، حدیث او حنفي فقه په کلیو کښې د جُمعې له ثبوت څخه ساکت بلکه نافي دي. ﴿یٰۤاَیُّهَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِذَا نُوۡدِیَ لِلصَّلٰوۃِ ـــ الخ﴾ آیت خو لومړی د ځایونو له عموم څخه ساکت دی، دویم دا مهمله قضیه ده کومه چه په حکم کښې د جزئیې معنٰی کوي، دریم په دې کښې موصول د عهد یا د جنس لپاره دی. د استغراق لپاره نه دی. (وذٰلك ان تعریف الذی من بین الموصولات کتعریف ذی اللام فی کونه للعهد تارة والجنس اخرٰی). (میر علی الکشاف ج۱، ص۱۱۶) په مکه کښې د جُمعې فرض کیدل او د دې آیت مدني توب، همدارنګه د نبي کریم ﷺ په وخت د هجرت کښې (د مجتبائي بخاري ج۱، ص۹۱ د روایت په مطابق) په قبا کښې څلورویشت ورځې یا څه کمې پاتې کیدل او په اتفاق سره هلته نه پخپله د جُمعې لمونځ کول او نه بل چا ته ئې امر کول د موصول په عهدي کیدو باندې قوي قرینه ده چه مراد ترې یواځې ښاري مسلمانان دي. همدارنګه په وخت د نزول کښې که چیرته آذان وو نو د (اذا نودی)

مدلول لومړی آذان (بین یدی الخطیب) دی. لومړی آذان د حضرت عثمان رضی الله عنه په وخت کښې ور زیات شو. ګوا که فقهاء کرامو رحمهم الله حکماً دا هم د (نُوْدِیَ) مدلول ګڼلی دی. نو لومړنی مطلب ئې دا شو چه ای مؤمنانو چه کله (بین یدی الامام) (د امام مخې ته) آذان وشي نو د الله د ذکر خوا ته لاړ شئ. نو ښکاره خبره ده چه د خطبې د آذان په اوریدو سره هغه خلک رسیدلی شي کوم چه په مسکن کښې حاضر وي او دا د ښاریانو عادت دی چه د تجارت او داسې نورو مصروفیتونو له وجې اکثره په ښار کښې اوسیږي او خپل کارونه پر مخ بیائي. په خلاف د کلیو د خلکو چه د کرنې او مالداری او داسې نورو د کسب له وجې اکثره له خپل مسکن څخه د باندې کار کوي. د دې قرینې تائید له (ذروا البیع) څخه هم کیږي. د پورتنیو یادو شویو قرائنو له وجې د مسلمه اُمَت هیڅ یو فرد هم د ماسپښین غوندې په هر هر ځای، ښځې او سړي، مقیم او مسافر، مریض او روغ، غلام او آزاد باندې د جُمعې د فرضیت قائل نه دی. په کوم ځای کښې چه شل کسان مقیم نه وي هلته په اتفاق د څلور واړو ائمه ؤ د جُمعې لمونځ فرض نه دی. (فیض الباری ج۲،ص۳۲۳) لهذا د موصول عهدي کیدل نور هم مؤکد وګرځید. د حنفي دلائلو له جملې څخه په بخاري ص۱۲۳ او مسلم کښې دي چه: (عن عائشة رضی الله عنها زوج النبی صلی الله علیه وسلم قالت کان الناس ینتابون الجمعة من منازلهم من العوالی الحدیث). همدارنګه د بخاري شریف په ج۱ص۱۲۲ کښې دي چه: (عن ابن عباس رضی الله عنه ان اول جمعة جمعت بعد جمعة فی مسجد رسول الله صلی الله علیه وسلم فی مسجد عبد القیس بجوائی من البحرین الحدیث). په لومړي جدیث کښې د نبوي زماني تعامل دا څرګندیږي چه د کلي خلک به په خپل خپل نمبر د مدینې ښار ته راتلل او د جُمعې لمونځونه ئې کول. او په کلیو کښې به موجودو اوسیدونکو یواځې د ماسپښین لمونځ کاوه ځکه چه تر مسجد نبوي وروسته لومړنی جمعه په جواثي [1] کښې شوې وه. (کما فی الحدیث الثانی). علامه ابن حجر عسقلاني د حضرت عائشې رضی الله عنها تر حدیث لاندې د قرطبي قول کوم چه د حنفیه ؤ مخالف دی رَدوي او فرمائي: (وفیه نظر لانه لو کان واجباً علی اهل العوالی ما تناوبوا ولکانوا یحضرونها جمیعاً). (فتح الباری ج۲ ص۲۸۹)

همدارنګه په قبا کښې نه پخپل د جُمعې د لمانځه ادا کول او نه بل چا ته ئې امر کول، همدارنګه د حجة الوداع په موقع په عرفات کښې د جُمعې په ځای د ماسپښین د لمانځه ادا کول او په منی کښې د اختر د لمانځه نه ادا کول هم د حنفیه ؤ له دلائلو څخه دی. همدارنګه د صحابهٔ

---

[1] - د عبد القیس وفد په لومړي خل په اتم کال هجري کښې راغلی دی. له دې څخه ثابته شوه چه تر دې مخکښې پرته له نبوي جوماتي څخه په بل هیڅ ځای کښې هم د جُمعې لمونځ نه کیدهٔ ۱۲ رشید احمد

كرامو په ښارونو كښې د منبرونو جوړول او په كليو كښې د جُمعې نه ادا كول هم د دې خبرې ښكاره دليل دى. د آثار السنن په دويم جلد كښې د صحابهٔ كرامو مفصل آثار ملاحظه كړئ. د مذهب د اصولو د كتابونو په ظاهر الرواية كښې مصرح دي چه زمونږ د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله په نزد د جُمعې د ادا كول محل مصرِ جامع (لوى ښار) دى او د جامع په تعريف كښې د فقهاء كرامو اقوال مختلف دي. ليكن راجح هغه كوم چه له امام صاحب رحمه الله څخه منقول دى او عرف ته له نژدې والي پرته د قدر مشترک كيدو په حيثيت سره هم دا د مصر حدّ ګڼل كيدلى شي. د دې لپاره چه حدّ واحد وي او په رسومو او علاماتو كښې تعدد (ګڼوالى) هم جائز دى. لهذا هغه تعريف كوم چه په بنايه كښې له حضرت امام صاحب رحمه الله څخه منقول دى د حد د صلاحيت او اقربيت الى العرف او له امام رحمه الله څخه د منقول والي له وجې راجح دى. هغه دا دى: **(عن ابى حنيفة رحمه الله كل بلدة فيها سكك و اسواق و وال ينصف المظلوم من ظالمه اى يقدر على انصافه و عالم يرجع اليه فى الحوادث كذا فى النهاية.(تعليق آثار السنن ج۲،ص۸۵)** د ښار مدار كه چيرته په عرف باندې و نه ګڼل شي نو په دې سره د صحابهٔ كرامو رضى الله عنهم اجمعين او پخپله د نبي كريم ﷺ تجهيل لازميږي نعوذ با لله من ذٰلک مراراً. د دې لپاره ده ﷺ او صحابهٔ كرامو ﷺ هغه ځايونه ښار وبلل چه په عرف كښې ښار ورته ويل كيدل حالانكه هلته جوماتونه موجود نه وو بلكه پخپله ئې پكښې جوړ كړل. د مقابل لوري له دلائلو څخه د جواثى حديث دى. د جواثى نه قريه كيدل ثابت دى او نه د هغه ځاى د جُمعې اطلاع آنحضرت ﷺ ته كول ثابت دي. د قريې[1] د لفظ اطلاق په بلد باندې هم كيږي **(كما فى قصة خضر و موسٰى عليهما السلام. جمعوا حيثما كنتم)** دا د حضرت عمر رضى الله عنه فرمان دى چه خپلو نائبانو ته ئې كوي. حاكمان اكثره په ښارونو كښې اوسيږي نو مطلب دا شو چه **(جمعوا حيثما كنتم من الامصار)** لكه څرنګه چه مونږ په مرفوع حديث سره استدلال كړى دى، مخالف لورى هم بايد په همدې ډول دليل وړاندې كړي. د مرفوع په مقابله كښې موقوف حديث كار نه وركوي، د دې ډول آثارو تفصيلي ځواب په ۱ عيني شرح بخاري طبع استنبول ج۳،ص۲۶۵، ۲ آثار السنن طبع پټنه ج۲، ص۸۳، ۳ بذل المجهود طبع نامي ميرټه ج۲،ص۱۷.فقط **(حررهٔ احقر محمد خليل غفر لهٗ)** ابن مولانا محمد سليم صاحب لدهيانوى ثم السندى.

---

۱ - مكې مكرمې ته ام القرىٰ ويل شوي دي او په مكه او طائف باندې على رجل من القريتين عظيم. كښې د قريې اطلاق شوى دى. د قريې لغوي معنىٰ هم د مطلق اجتماع د. يقال قريت الماء فى الحوض اه. جمعته ۱۲ رشيد احمد

بسم الله الرحمن الرحيم

**د دویم سوال ځواب**: د جُمعې، اخترونو او داسې نورو خطبې په عربې ژبې کښې ویل سنت او د دې په خلاف په نورو ژبو باندې ویل بدعت دي. **(مصفّی شرح موطا للشاه ولی الله و کتاب الاذکار للنوی و در مختار باب شروط الصلوٰة و شرح الاحیاء للزبیدی)** په غیر عربي ژبه کښې د جائز بلونکو لویه عقلي بناء دا ده چه خطبه تذکیر (نصیحت) دی او نصیحت باید د مخاطبینو په ژبې باندې وي او که نه نو عبث به وي. د دې یو تحقیق ځواب دی او یو الزامي.

**تحقیقي جواب**: د خطبې تذکیر والی مسلم نه دی. پخپله په قرآن او حدیث کښې دې ته ذکر ویل شوي دي. **(فاسعوا الی ذکر الله وذروا البیع)** په حدیث کښې دي چه: **(فاذا خرج الامام حضرت الملائکة یستمعون الذکر. (بخاری ج۱، ص۱۲۱) فاذا خرج الامام طووا صحفهم ویستمعون الذکر. (بخاری ج۱، ص۱۲۷)** او شمس الائمه سرخسي فرمائي: **(ولنا ان الخطبة ذکر انتهی (کتاب المبسوط للسرخسی ج۲، ص۲۶) ولا ینبغی للامام ان یتکلّم فی خطبته بشیء من حدیث الناس لانه ذکر منظوم انتهی. (مبسوط للسرخسی مصری ج۲، ص۲۷)** له پورتني ذکر شوي آیت، روایتونو او عبارتونو ښخه ښرګنده شوه چه خطبه ذکر دی، تذکیر نه دی الا تبعاً. پرته له دې ښخه ګڼ شمیر قرائن د خطبې په یواځې ذکر کیدو باندې په صراحت سره دال دي.

۱ - د امام صاحب رحمه الله په نزد په خطبه کښې یواځې یو ځل تحمید یا یو ځل تسبیح ویل کافي دي. (مبسوط مصري ج۲، ص۳۱) حالانکه په یو ځل تحمید یا یو ځل تسبیح سره تذکیر نه حاصلیږي.

۲ - د فقهاؤ په اتفاق سره خطبه د جُمعې له شرائطو ښخه ګڼل شوی دی. **نقل العلامة ابن الهمام فی فتح القدیر الاجماع علی اشتراط نفس الخطبة. (بحر ج۲، ص۱۰۸)** که چیرته د خطبې مقصد یواځې وعظ او تبلیغ وای نو خطبې لره د جُمعې په شرائطو کښې د داخلولو به هیڅ معنٰی نه وه چه د جُمعې اداء په دې باندې موقوفه وګرځي.

۳ - د جُمعې د خطبې لپاره د ماسپښین وخت شرط دی. **کما فی عامة الکتب والفاظ البحر (لانه) ای وقت الظهر) شرط حتی لو خطب قبله و صلی فیه (ای فی وقت الظهر) لم تصح. (بحر ج۲، ص۱۵۸)** که چیرته د خطبې مقصد خالص ذکر نه وي بلکه وعظ او تبلیغ ترې مقصود وي نو د ماسپښین د وخت ښه تخصیص؟ که چیرته یو څوک له زوال ښخه مخکښې خطبه ووائي او لمونځ تر زوال وروسته وکړي نو آیا د وعظ مقصد ترې نه حاصلیږي؟ حالانکه فقهاء کرام رحمهم الله تعالی په دې صورت کښې پخپله جُمعه صحیح نه ګڼي.

۴ - د خطبې د صحت لپاره يواځې ويل کافي دي د چا اوريدل ورته ضروري نه دي. که چيرته د ځو داسې کسانو چه تول کاڼه وي يا د ويده خلکو په مخکښې خطبه وويله شي او بيا د جُمعې لمونځ وشي نو خطبه ادا کيږي او د جُمعې لمونځ هم صحيح کيږي **كما في البحر وان كانوا صُمًّا او نياما.** که چيرته د خطبې مقصود وعظ او تذکير (نصيحت) وي نو په نوموړي صورت کښې به د خطبې د جواز هيڅ صورت نه شوای کيدلی.

۵ - که چيرته د خطبې تر ويلو وروسته امام په کوم بل کار کښې مشغول شي او د خطبې او لمانځه تر منځ معتد به جلا والی راشي نو د خطبې بيرته را ګرځول ضروري دي. اګر دوباره اوريدونکي خلک هم هغه خلک وي کومو چه مخکښې اوريدلې وي. **كذا ذكره في البحر عن الخلاصة ثم قال وقد صرح في السراج الوهاج بلزوم الاستيناف وبطلان الخطبة هذا هو الظاهر.(بحر ج۲،ص۱۵۹)**

که چيرته يواځې پند او نصيحت د خطبې مقصود وای نو په دې صورت کښې د خطبې د بيرته را ګرځولو څه فائده مقصود ده؟

۶ - فقهاء کرامو د جُمعې خطبه د دوه رکعتونو قائم مقام ګرځولی دی. (بحر ج۲،ص۱۰۸)

۷ - د خطبې اوريدل او د خطبې په وخت کښې چُپ او غلی اوسيدل واجب دي او په ژبې سره درود شريف ويل يا تسبيح او تکبير ويل او د سلام ځواب ورکول ناجائز دي. که چيرته مقصود ترې وعظ او نصيحت وای نو د سلام له ځواب او داسې نورو اذکارو څخه به ولې خلک منع کيدل کوم چه د اوريدو منافي نه دي. همدارنګه که چيرته د خطبې مضمون له مخکښې څخه معلومه وي نو بيا ئې هم اوريدل ولې واجب ګرځول شوی دی؟

له پورتنيو امورو څخه دا خبره په ښه توګه روښانه شوه چه د جُمعې د خطبې اصلي مقصد د شريعت په نظر کښې يواځې د الله تعالی ذکر دی. وعظ او تذکير د دې د حقيقت او مقصد کوم جزء نه دی. ځينې خلک دا شبهه وړاندې کوي چه د خطبې معنٰی يواځې او يواځې وعظ او بس. لهذا څرګنده شوه چه د خطبې لفظ پرته له وعظ څخه يواځې د تکلم لپاره هم استعماليږي. وګورئ په مجمع البحار کښې دي: **خطبه خطبة بالكسر والاسم ايضا بالكسر واما بالضم فمن القول والكلام.** په بل ځای کښې ليکي: **وانا خطيبهم اذا انصتوا اى انا المتكلم من الناس حين سكتوا من الاعتذار فاعتذر بهم ولم يؤذن لغيرى فى التكلم انتهى.**

**الزامي جواب**: قرآنکريم پخپله د قرآنکريم د نصّ له مخې تذکير (نصيحت) دی قال الله تعالی: اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ نو بايد چه دا هم په لمانځه کښې د حاضرينو په ژبې سره ويل کيدلی. پس لکه څرنګه چه د قرآنکريم په عربي ژبې باندې ويل يو تعبدي امر دی همدارنګه خطبه هم په عربي ژبې

باندې تعبدي امر دی
له عربي ژبې پرته د خطبې د جائز بلونکو تر ټولو لويه نقلي بناء دا ده چه امام صاحب په لمانځه کښې په فارسي ژبې سره قرائت جائز بللی دی. د دې خبرې يو ځواب نقلي دی او بل عقلي.

نقلي ځواب: حضرت امام صاحب رحمه الله له دې څخه رجوع کړې ده. **اعلم ان الامام رحمه الله کان اولا يقول ان قراءة القرآن بالفارسية يجوز ثم رجع عنه الی عدم الجواز و هو قولهما قال فی العناية روی ابو بکر الرازی ان اباحنيفة رحمه الله رجع الی قولهما و عليه الاعتماد لتنزله منزلة الاجماع اه.وهو الصحيح کفاية وعليه الاعتماد هداية.(اللآلی المصنوعة فی الروايات المرجوعة ص۱۸)**

**عقلي جواب**: د امام صاحب د دې مرجوع عنه قول بناء دا نه وه چه قرآنکريم تذکير دی له دې امله په غير عربي کښې ويل ئې جائز دي. که چيرته دا بناء وای نو پورتني ياد شوي دلائل به له دې سره متعارض وای. **(وهو باطل)** پس له دې څخه استدلال کول د **(تأويل القول بما لا يرضی قائله)** له جملې څخه دی. د امام صاحب مرجوع عنه قول د هغه سړي په باره کښې وو چه کوم چه په عربي قرائت باندې قادر نه وو. کوم سړی چه په عربي قرائت باندې قادر وي د هغه په اړه امام صاحب رحمه الله په غير عربي کښې د قرائت د جواز قول نه دی کړی. نو معلومه شوه چه د خطبې په اړه هم د امام صاحب رحمه الله مرجوع عنه قول په هغه صورت کښې دی چه کله خطيب د عربي خطبې له ويلو څخه عاجز وي. ځکه چه د امام صاحب رحمه الله په نزد د جُمعې خطبه او قرائت يو حکم لري. د در مختار د شروط الصلوة په بيان کښې دي چه **(وعلی هذا الاختلاف الخطبة وجميع الاذکار)** له دې څخه په ښه توګه څرګنده شوه چه مرجوع عنه قول هم له هغه سړي خاص وو کوم چه له عربيت څخه عاجز وي اوس تر رجوع وروسته په غير عربي ژبې کښې خطبه له عربي ژبې څخه د عاجز سړي لپاره هم جائزه نه ده. لکه څرنګه چه قرائت او آذان په غير عربي ژبې کښې جائز نه دي. پاتې شو دا اعتراض چه کله خلک په خطبه باندې نه پوهيږي نو د ويلو فائده ئې څه ده؟ نو دا اعتراض په قرائت او آذان کښې هم واردېږي. آذان هم بايد پخپلو منطقوي ژبو باندې وشي او د "حی علی الصلوة" په ځای "د لمانځه خوا ته راشئ" بايد ويل شوي وای. که چيرته دا وويل شي چه آذان خو د اعلان لپاره دی او هر سړی په دې پوهيږي چه له دې څخه مقصود د لمانځه اعلان دی. نو ځواب ئې دا دی چه اعلان خو يواځې له دوه دريو کلماتو څخه حاصليږي د دومره اوږده آذان ضرورت څه وو؟ خصوصاً د سهار په لمانځه کښې **(الصلوةُ خَيرٌ مِّن النوم)** ولې ويل کيږي؟ حالانکه د دې په ترجمې باندې هيڅوک نه پوهيږي.

په کومې بلې ژبې باندې د خطبې ترجمه کول هم جائز نه دي ځکه چه په دې سره د خطبې او د

جُمعې د لمانځه تر منځ جلا والی راځي او د جلا والي په راتلو سره د خطبې اعاده ضروري ده. (کما مرّ) همدارنګه د فقهې په کتابونو کښې دي چه د خطبې په لسو شیانو (لکه تحمید، صلوة، دُعاء او داسې نورو) باندې شامل والی سنت دی. او له دې سره سره د خطبې لنډ والی هم سنت دی. اوس که چیرته پوره لس واړه شیان کوم چه په خطبې کښې سنت دي تول ذکر شي او ترجمه ئې هم وشي نو اختصار ئې له منځه ځي بلکه خطبه له دوه چنده څخه هم زیاتیږي. او که چیرته پوره لس شیان ذکر نه شي نو بیا هم د سنتو خلاف شوه. لنډه دا چه په دوه سنتونو کښې د یوه پریښودل خامخا لازم راځي.

د اختصار په نظر کښې ساتلو سره په همدې باندې اکتفاء کوم. وهذه نبذة من المتمسکات الجلیة و المستدلات العلیة و الدرر البهیة فی ترویج السنة السنیة و اتباع ما مضت علیه الامة المرضیة (علیها الرضوان) فعلیکم بالعربیة وایاکم والمبدعات العجمیة. واسمعوا وعوا ومن الله فاتقوا. فقط والله المستعان.

تمقهٔ بهنانه العبد رشید احمد بن مولانا محمد سلیم مدظلهم العالی

لودیانوی ثم خیرپوری غفر الله له ولوالدیه ۱۸ ربیع الاول ۱۳۶۳ھ هجری

## په کلیو کښې د حاکم په اذن یا اجازې سره د جُمعې د ادا کولو تحقیق

**سوال**: ۱ - د احنافو په نزد په لویو کلیو کښې د جُمعې صحت مطلق دی او که د حاکم په اذن یا اجازې پورې اموقوف دی؟

۲ - د حاکم په اذن سره په هر کلي کښې جُمعه جائزه ده او که څه تحدید پکښې شته؟

۳ - د حاکم اجازه د امام صاحب د مذهب په خلاف صحیح ده او که نه؟

۴ - په کلیو کښې د جُمعې د جواز لپاره د حاکم اذن کافي دی او که حکم او قضاء په ضمن د حادثې کښې ضروري دي؟

۵ - لکه څرنګه چه په مصر کښې جماعة المسلمین اتحاد د امیر قائم مقام ګرځي همدارنګه په قریویا کلیو کښې د جماعة المسلمین په اتفاق سره د جُمعې ادا کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱ - قال فی التنویر ویشترط لصحتها المصر وقال العلاء وفی القهستانی اذن الحاکم ببناء الجامع فی الرستاق اذن بالجمعة اتفاقاً علی ما قاله السرخسی واذا اتصل به الحکم صار مجمعاً علیه فلیحفظ وفی الشامیة (قوله وفی القهستانی الخ) تأئید للمتن وعبارة القهستانی وتقع فرضاً فی القصبات و القری الکبیرة التی فیها اسواق قال ابو القاسم هذا بلا خلاف اذا اذن الوالی او القاضی ببناء المسجد الجامع و

اداء الجمعة لان هٰذا مجتهد فیه فاذا اتصل به الحکم صار مجمعاً علیه وفیما ذکرنا اشارة الی انه لا تجوز فی الصغیرة التی لیس فیها قاض ومنبر وخطیب کما فی المضمرات (الی ان قال) فی الجواهر لو صلوا فی القری لزمهم اداء الظهر هٰذا اذا لم یتصل به حکم فان فی فتاوی الدیناری اذا بنی مسجد فی الرستاق بامر الامام فهو امر بالجمعة اتفاقاً علی ما قال السرخسی. (ردالمحتار ج۱، ص۵۳۹)

**د قهستاني د مذکوره عبارت خلاصه دا ده چه قرئ (کلي) په دري ډوله دي:**

۱ - دومره لوی او د داسې وضع او صفت کلی چه هغه په عرف کښې ښار ویل کیدلی شي یعنې اګر که خلک هغه ته کلی وائي لیکن که یو څوک ښار ورته ووائي نو د هغه تکذیب او په هغه باندې انکار و نه شي، داسې کلی په حقیقت کښې مصر یا ښار دی. له دې امله په داسې کلي کښې د جُمعې جواز دحاکم په اذن یا اجازې پورې موقوف نه دی. د قهستاني په عبارت کښې په قصباتو باندې د لویو کلیو عطف تفسیري دی یا اختلاف اسم مع اتحاد المسمّی په بناء باندې دی.

۲ - داسې کلی چه په هغه باندې د مصر اطلاق د عرف له مخې صحیح نه وي، داسې کلي ته چه څوک ښار ووائي نو انکار پرې وشي. په داسې کلي کښې د حاکم په اجازې سره به جُمعه جائزه وي په دې شرط چه دا ځای د جمعې د اقامت لپاره د ائمه ؤ په منځ کښې مجتهد فیه وي.

۳ - دومره کوچنی کلی چه په څلورو مذهبونو کښې د یوه مذهب له مخې هم هلته جُمعهٔ جائزه نه وي. په داسې کلي کښې د حاکم په اذن سره به هم جُمعه صحیح نه وي. **(وفیما ذکرنا اشارة الی انه لا تجوز فی الصغیرة التی لیس فیها قاض ومنبر وخطیب)**. څخه همداسې کلی مراد دی.

۲ - د حاکم په اذن سره په قریو کښې د جُمعې د جواز بناء دا ده چه په مجتهد فیه ځای کښې د حاکم حکم د اختلاف د رفع کولو لپاره وي. له دې څخه څرګندیږي چه په کوم کلي کښې چه د هیڅ یوه امام په نزد هم جمعه جائزه نه وي نو هلته به د حاکم په اذن سره هم جُمعه صحیح نه وي. کما ذکرنا فی الجواب عن السؤال الاول. قال العلامة ابن عابدین رحمه الله علیه ان الحکم بصحة الجمعة مبنی علی کون ذٰلك الموضع محلا لاقامتها فیه. (ردالمحتار ج۱، ص۵۳۹)

د جُمعې د لمانځه د صحت په اړه د ائمه ؤ رحمهم الله اقوال ملاحظه کړئ. قال الحافظ رحمه الله تعالی وجملة ما للعلماء فیه (عدد من تقوم بهم الجمعة) خمسة عشر قول (الی قوله) التاسع، عشرون فی روایة ابن حبیب عن مالك. العاشر، ثلاثون کذٰلك الحادی عشر، اربعون بالامام عند الشافعی. الثانی عشر، غیر الامام عنه. الثالث عشر خمسون عن احمد فی روایة (فتح الباری ج۲، ص۳۵۲) وکذا نقل الشوکانی عن الحافظ رحمه الله تعالی (نیل الاوطار ج۳، ص۲۶۳) وقال ابن رشد القرطبی رحمه الله تعالی ومنهم من اشترط اربعین وهو قول

الشافعي واحمد وقال قوم ثلاثين ومنهم من لم يشترط عددا ولكن رأى انه يجوز بما دون الاربعين ولا يجوز با لثلاثة والاربعة وهو مذهب مالك وحدهم بانهم الذين يمكن ان تتقرى بهم قرية (بداية المجتهد ج۱، ص۱۶۱)

قال العلامة ابو البركات احمد بن محمد بن احمد الدردير في الشرح الصغير على اقرب المسالك الى مذهب الامام مالك وشروط صحتها خمسة اولها الاستيطان وهو اخص من الاقامة لانه الاقامة بقصد التأبيد، الاقامة اعم و اليه اشار بقوله (باستيطان بلد) مبنية بطوب او حجر او غيرهما او استيطان (اخصاص) من قصب او اعواد ترم بحشيش (لا خيم) من شعر او قماش لا الغالب على اهلها الارتحال فاشبهوا المسافرين نعم ان اقاموا على كفرسخ من بلدها وجبت عليهم تبعاً لاهله كما تقدم ومعنى كون الاستيطان شرط صحة انه لولاه ما صحت جمعة لاحد و كما انه شرط صحة هو شرط وجوب ايضاً اذ لولاه لما وجبت على احد جمعة ويشترط لهذا الشرط شرطان الاول كونه ببلد او خصاص كما قدمنا الثاني كونه (بجماعة تتقرى) اى تقام وتستغنى (بهم القرية) عادة بالامن على انفسهم والاستغناء في معاشهم العرفي عن غيرهم ولا يحدون بحد كمأة او اقل او اكثر فلو كانوا لا تتقرى بهم قرية بان كانوا مستندين في معاشهم لغيرهم فان كانوا على كفرسخ من قرية الجمعة وجبت عليهم تبعاً لهم وان كانوا خارجين عن كفرسخ لم تجب عليهم كاهل الخيم.

ولو احدث جماعة تتقرى بهم قرية بلداً على كفرسخ من بلد الجمعة لوجبت عليهم الجمعة استقلالاً.

الشرط الثاني، حضور اثنى عشر رجلاً لصلاتها وسماع الخطبتين واليه اشار بقوله (وحضور اثنى عشر) رجلاً للصلوة والخطبة ويشترط لهذا الشرط شرطان ايضاً الاول ان يكونوا (منهم) اى من اهل البلد فلا تصح من المقيمين لنحو تجارة اذا لم يحضرها العدد المذكور من المستوطنين بالبلد، الثاني ان يكونوا (باقين) مع الامام من اول الخطبة (لسلامها) اى الى السلام من صلاتها اى سلام جميعهم فلو فسدت صلوة واحد منهم ولو بعد سلام الامام بطلت الجمعة.

وفي الحاشية (قوله وحضور اثنى عشر رجلاً) اى غير الامام وان يكونوا مالكيين او حنفيين او شافعيين قلدوا واحداً منهما لا ان لم يقلدوا فلا تصح جمعة المالكي مع اثنى عشر شافعيين لم يقلدوا لانه يشترط في صحتها عندهم اربعون يحفظون الفاتحة بشداتها.

ثم قال المؤلف رحمه الله تعالى الشرط الثالث، الامام واليه اشار بقوله (وامام مقيم) فلا تصح افذاذاً و يشترط فيه الاقامة ولو لم يكن متوطنا كما اشرنا له بالوصف وان يكون هو المخاطب فلو صلى بهم غير

الخاطب لم تصح الا لعذر یبیح کرعاف و نقض وضوء، وجبت انتظاره ان قرب زوال العذر (ثم قال) الشرط الخامس الجامع والیه اشار بقوله (بجامع) فلا تصح فی البیوت ولا فی براح من الارض ولا فی خان ولا فی رحبة دار.
وله شروط اربعة، ان یکون مبنیا، و ان یکون بناؤه علی عادتهم و ان یکون متحداً و متصلا بالبلد و الیه اشار بقوله (مبنی) فلا تصح فیما حوّط علیه بزرب او احجار او طوب من غیر بناء (علی عادتهم) ای اهل البلد فیشمل بناءه من بوص لاهل الاخصاص لا لغیرهم (متحد) بالبلد (فان تعدّد فالعتیق) هو الذی تصح فیه الجمعة دون غیره و المراد بالعتیق ما اقیمت فیه الجمعة ابتداءً ولو تأخر بناؤه عن غیره فالجمعة له (و ان تأخر اداءً) ای وان تأخر داء الجمعة فیه عن الجدید فالصلوٰة فی الجدید وان سبقت فاسدة مالم یهجر العتیق فالجمعة لا تکون الا متحدة فی البلد متی اقیمت لا تصلی بجماعة لا فی العتیق ولا فی غیره و ان صلیت فی غیره قبله فباطلة (متصل ببلدها) حقیقةً او حکماً بان انفصل عنها انفصالاً یسیراً عرفیاً (لا ان انفصل کثیراً) فلا تصح به الجمعة (او خف بناؤه) عن عادة اهل البلد فلا تصح فیه وهذا مفهوم قوله علی عاداتهم.
وفی الحاشیة (قوله او خف بناؤه) ای بان کان اهل البلد یبنون بالاحجار او بالطوب المحروق وبناؤه بالنیء، او کان اهل البلد یبنون بالنیء و بناؤه بالبوص (الشرح الصغیر ج۱ ص۴۹۵ الی ۵۰۱) و قریب من ذٰلك فی الفقه علی المذاهب الاربعة (ج۱، ص۳۸۱)

د جُمعې د صحت لپاره د امام احمد رحمه الله په نزد پنځوس یا څلویښت کسان، د امام شافعي په نزد څلویښت کسان، د امام مالک رحمه الله په نزد دیرش یا شل کسان او کم تر کمه دولس کسان شرط دي. چونکه له ائمۀ ثلاثه ؤ رحمهم الله له جملې څخه د امام مالک رحمه الله په نزد تر ټولو زیاته آسانتیا ده د دې لپاره مونږ د مالکیه وو له شروطو څخه یواځې یو څو شرطونه ذکر کړي دي چه خلاصه ئې په لاندې ډول ده.

## د مالکیه وو د شرائطو خلاصه

۱ - دومره لوی کلی وي چه پخپلو ضروریاتو کښې بلې آبادۍ یا کلي ته محتاج نه وي
۲ - که چیرته دا ډول کلی نه وي نو له داسې ډول کلي څخه د درې میله شرعي فاصلې ترمنځ وي
۳ - کلی به د خیمو کلی نه وي بلکه کورونه وي یا د لرگیو او داسې نورو څپرې وي
۴ - له امام څخه پرته د دې کلي له مستقلو اوسیدونکو څخه کم تر کمه دولس کسه د خطبې له پیل څخه را واخله د جُمعې تر سلام اړولو پورې شریک وي تر دې پورې چه که چیرته په هغوی کښې د یوه سړي لمونځ د امام تر سلام اړولو وروسته هم فاسد شي نو د جُمعې لمونځ باطلیږي. په

دوی کښې د توطن له شرط څخه ثابتيږي چه حرّيت «آزادي»، ذکورة «نارينتوب»، بلوغ، عقل او د جُمعې د فرضيت لائق صحت او داسې نور امور هم ضروري دي.

۵ - دا دولس کسان یا مالکیان وي او یا حنفیان.

۶ - امام به مسافر نه وي.

۷ - چه څوک خطبه ووائي هغه به امامت هم کوي.

۸ - په يوې آبادۍ کښې جُمعه په يوه ځای باندې وشي.

۹ - د جُمعې لمونځ په جومات کښې وشي.

۱۰ - د جومات عمارت د کلي د عامو عمارتونو په نسبت ادنٰى او کم قيمته نه وي.

د بل چا په مذهب باندې د عمل پر بناء باندې په کليو کښې د جُمعې د جواز بلونکي دې اندازه ولګوي چه د جُمعې د صحت لپاره تر ټولو په آسانترين مذهب کښې څومره قيدونه او شرطونه دي. حالانکه مونږ ټول شروط نه دي نقل کړي، د نمونې په توګه مو يواځې يو څو شرطونه را نقل کړل. د شافعي او حنبلي په مذهب کښې خو د پنځوس يا څلويښتو کسانو له شرط سره سره د قراءة خلف الامام غوندې يو څو نور شرطونه هم شته. که چيرته د يوه مذهب هم د ټولو شرائطو لحاظ و نه شي نو جُمعه به په اتفاق سره صحيح نه وي ځکه چه تلفيق «له مختلفو مذهبونو څخه د آسانه شروط را ټولول» په اتفاق سره حرام دی.

۳ - د مقلد حاکم حکم په خلاف د مذهب سره په اتفاق سره نافذ نه وي، په بحر الرائق کښې له امام محمد رحمه الله څخه يو روايت راغلی دی چه که چيرته مقلد قاضي په غلطۍ سره د مذهب په خلاف فيصله وکړي نو نافذيږي ليکن دا روايت مرجوح دی.

د مجتهد حاکم حکم چه د خپل مذهب په خلاف ئې وکړي، په عدم جواز باندې خو ئې اتفاق دی ليکن نفاذ ئې مختلف فيه دی، د امام صاحب رحمه الله په نزد نافذيږي او د صاحبينو په نزد نه. فتوٰى د صاحبينو په قول باندې دی. **قال فی شرح التنویر وان الخلاف خاص بالقاضی المجتهد و اما المقلد فلا ینفذ قضائه بخلاف مذهبه اصلا کما فی القنیة قلت ولا سیما فی زماننا فان السلطان ینص فی منشوره علی نهیه عن القضاء بالاقوال الضعیفة فکیف بخلاف مذهبه. وفی الشامیة ان الفتوٰی علی قولهما بعدم النفاذ فی العمد والنسیان.**

**و ایضا فیها عن التحریر ان قول الامام بالنفاذ لا یوجب حل الاقدام علی هذا الاقضاء نعم وقع فی بعض المواضع ذکر الخلاف فی الحل و یجب ترجیح روایة عدمه اه.(ردالمحتار ج۱،ص۰۰)**

پس د مفتٰى به قول له مخې د مجتهد حاکم په امر سره هم چه د مذهب په خلاف وي د جُمعې

لمونځ صحیح نه دی. دا خو پرېږده چه نن صبا مجتهد با لکل وجود نه لري. له دې امله په کليو کښې د جُمعې د جواز هيڅ صورت نشته بلکه که چيرته دا ثابته شي چه په دې علاقې کښې يو وخت کوم مجتهد حاکم د جُمعه فی القرٰی حکم ورکړی وو نو بيا هم په دې وخت کښې هلته جمعه جائزه نه ده ځکه چه دا قول سره له دې چه مفتیٰ بهٖ نه دی د عدمِ جواز وجه ئې دا هم ده چه د حاکم آمر امر د هغه په وفات سره پای ته رسيږي.

**قال فی الشامية لا يبقٰی الی اليوم الاذن بعد موت السلطان الاٰن بذٰلك الّا اذا اذن به ايضًا سلطان زماننا نصره الله (ج۱، ص۷۵۲) و ايضا فيها فی باب العيدين ان امر الخليفة لا يبقٰی بعد موته او عزله كما صرح فی الفتاوی الخيرية و بنی عليه انه لو نهٰی عن سماع الدعوٰی بعد خمس عشر سنة لا يبقٰی نهيه بعد موته و الله اعلم. (رد المحتار ج۱، ص۷۸۰)**

البته که چيرته شافعي حاکم د خپل مذهب په مطابق په کليو کښې د جُمعې د اقامت امر وکړي نو هلته د احنافو جُمعه هم صحيح کيږي په دې شرط چه بادشاه له دې څخه منع نه وي کړې. بيا د دې حاکم تر مرګ يا معزولوالي يا تبديلي وروسته د عدمِ صحت حکم بيرته را ګرځي.

۴ - له اذن څخه مراد امر دی، يواځې اجازه کافي نه ده. البته قضاء په ضمن د کومې حادثې کښې ضروري نه ده.

**قال فی الشامية و ظاهر ما مرّ عن القهستانی ان مجرد امر السلطان او القاضی ببناء المسجد و اداءها فيه حكم رافع للخلاف بلا دعوی و حادثة و فی قضاء الاشباه امر القاضی حكم كقوله سلم المحدود الی المدعی و الامر بدفع الدين و الامر بحسبه الخ و افتٰی ابن نجيم بأن تزويج القاضی الصغيرة حكم رافع للخلاف ليس لغيره نقضه (قوله و اذا اتصل به الحكم الخ) قد علمت ان عبارة القهستانی صريحة فی ان مجرد الامر رافع للخلاف بناء علی ان مجرد امره حكم. (رد المحتار ج۱، ص۷۴۹)**

۵ - جماعت مسلمين (د مسلمانانو جماعت يا ډله) يوځای په انتظامي امورو کښې د حاکم قائم مقام وي چونکه د جُمعې د صحت لپاره امير مقصوداً شرط نه دی بلکه يواځې په تقديم او تقدم کښې د نزاع (اختلاف جنګ او جګړې) د رفع لپاره دی کوم چه يو انتظامي امر دی. له دې امله په دې کښې د مسلمانانو جماعت د امير قائم مقام ګرځي. په خلاف د صحتِ جمعه فی القرٰی ځکه چه په دې کښې د حاکم په امر سره په يوې مجتهد فيها مسئلې کښې په مقلد باندې د خپل امام له تقليد څخه وتل ضروري ګرځي او د جماعت المسلمين په امر سره د تقليد پرېښودل جائز نه دي. لهذا په دې کښې جماعت المسلمين د امير قائم مقام نه ګرځي. **فقط والله تعالٰی اعلم**

**رشيد احمد ۲۸ ذی القعده ۱۳۸۵ هجری**

## د مخدوم محمد هاشم ټهټوي رحمة الله عليه ليکنه

چون درین زمان توانی در تنفیذ احکام شرع و اقامة حدود بمرتبهٔ غایت رسیده بلکه قدرت آن از قضاة غالباً مفقود گشته ازین سبب اگر بموجب روایات اصل مذهب فتوی داده شود جواز صلوة جمعه که از اعظم شعائر دین است در تمامی بلاد سنده در زیاده از دو سه جا متحقق نشود بلکه در آن هم مشکل پس لابد است که درین باب عمل بروایاتِ دیگر نموده شود تا ظهور شعار دین از دست نرود و چون قاضی اجازت داد بموجب روایة امام محمد و یا بر قول امام شافعی و یا مالك آن نماز باتفاق جائز گردد و اختلاف است در ان که نفاذ قضا در مجتهدات و صیرورة آنها مجمع علیه مخصوص است بحکم قاضی مجتهد کما فی فتح القدیر یا عام است که شامل باشد هر قاضی مقلد را کما اختاره صاحب البحر و لفظه هذا ان القاضی المقلد اذا قضی بمذهب غیره فانه ینفذ و کذا اذا قضی بروایة ضعیفة او بقول ضعیف انتهی و در مثل ما نحن فیه که محل تهمت در قاضی نیست باید که فتوی داده شود بروایة بحر اظهاراً لشعائر الاسلام و لازم نیاید این شبهه که در تقلید شافعی لازم است که جمیع شرائط مذهب شافی را رعایت کرده شود زیرا که این باب از تقلید نیست اصلاً بلکه صحیح می شود این نماز بر جمیع مذاهب از حنفیه و غیرهم و لازم نیاید این شبهه که نفاذ قضا در مجتهدات مشروط است بوجود تقدم دعوی صحیحه و مقضی له و مقضی علیه و الا فتوی باشد نه قضا، زیرا نچه این شرط در معاملات و دعوی است نه در عبادات و لهذا در مضمرات و فتاوی حجة و تاتارخانیة و ابی المکارم این را قضا نام نهاده اند و حکم بصیرورة آن مجمع علیه کرده اند و لازم نیست که اهل آن قریات که در بیوت و ابنیه سکونت دارند قصد دوام اقامة داشته باشند بدلیل آنکه متفق است که کلمه حنفیه بر این که در منی جمعه جائز اس در ایام موسم فقط زیرا نچه منی مصر می شود در ایام بسبب بودن ابنیه و اجتماع مردم و وجود خلیفه و قاضی اگر چه بعد از ایام موسم باقی نمی ماند مصریة او کما فی الهدایة و شروحها و التبیین و البحر و غیرها و قید لا یظعنون صیفاً و لا شتاءً در مذهب شافعی است نه نزد حنفیه و ملوك سنده و هند فرامین خود بتقلید عمل بر مذهب حنفیه نمی نگارند بلکه اطلاق می کنند و المطلق یجری علی اطلاقه و هو تعالی اعلم پس اقامة کنندگان جمعه در آن قریها مأجور و مثاب عند الله می باشند و مانعان نماز جمعه در قریها آثم و بزه گار شوند و هو سبحانه تعالی اعلم بحقیقة الحال

## وتعقبه المخدوم عبد الواحد السیوستانی رحمه الله وقال

ولا یخفی ان المذهب عدم جواز الجمعة فی القری فی الهدایة ولا یجوز فی القری لقوله علیه وآله الصلوة والسلام لا جمعة ولا تشریق ولا فطر ولا اضحی الا فی مصر جامع فی البحر المذهب عدم صحتها فی القری فضلاً عن لزومها وفی التجنیس ولا یجب الجمعة علی اهل القری وان کانوا قریبة من المصر لان الجمعة انما یجب علی اهل الامصار وفی خزانة المفتین فلا یجوز اقامتها فی الرساتیق وفی الخلاصة لم تجب علی اهل القری انتهی والجمعة وان کانت من اعظم شعائر الدین تتحقق اقامتها فی کثیر من امصار السندھ وغیره علی ما هو المفتی به من حد المصر المذکور فی متن التنویر وهو ما لا یسع اکبر مساجده اهله المکلفین بها وفی الدر المختار وعلیه فتوی اکثر الفقهاء لظهور التوانی فی الاحکام انتهی فلظهور التوانی فی تنفیذ احکام الشرع افتوا بذلك فلا حاجة لاجل التوانی الی القول بالعمل علی خلاف المذهب وقد قال فی البحر العجب من المشائخ کیف یختارون خلاف ظاهر المذهب مع انه واجب الاتباع علی مقلدی ابی حنیفة انتهی فترك الواجب مع وجود حد المصر المفتی به لیس بسدید والمفتی به هو عدم جواز قضاء المقلد فی مجتهد فیه لما فی الدر المختار والمقلد متی خالف معتمد مذهبه لا ینفذ حکمه وینقض هو المختار للفتوی وفیه ایضاً القاضی المقلد اذا خالف مشهور مذهبه لا ینفذ حکمه فی الاصح وفیه ایضاً قضی من لیس مجتهدا کحنیفة زماننا بخلا مذهبه عامداً لا ینفذ اتفاقاً فی القنیة القاضی المقلد اذا قضی علی خلاف مذهبه لا ینفذ وفی جامع الفصولین الحنفی لا ینبغی له ان یحکم بخلاف مذهبه الا اذا کان مجتهدا انتهی والعدول عن المفتی به الی القول الضعیف والمرجوح بعید عن قضیة الفقیه وقد قال فی حسب المفتین القاضی والمفتی یأثمان بالروایة المرجوحة انتهی وعلی هذا انما یأثم من قضی بالمرجوح لا من عمل بما هو واجب الاتباع من مذهب الامام. والله اعلم. (بیاض واحدی قلمی)

په سندھ کښې په عمومي توګه په قریو کښې د جُمعې د جواز لپاره د مخدوم تهتوي رحمه الله لیکنه د سند په توګه وړاندې کیږي لیکن غالباً د خواهشِ نفس د خلاف کیدو له وجې د سیوستاني رحمه الله له ځواب څخه سترګې پټیږي. حالانکه دا ځواب د مذهب د نصوصو عین مطابق دی البته په دې کښې د مصر تعریف (ما لا یسع اکبر مساجده ـ الخ) د مصر حد نه دی بلکه رسم دی. د مصر حد دا دی چه په هغه کښې سکک (کوڅې)، اسواق او د ژوندانه د ضروریاتو د پیدا کیدو له وجې هغه په عرف کښې ښار وګڼل شي

د مخدوم سیوستاني له ځواب څخه هم زیات مفصل ځواب د بنده په تحریر په عنوان دې **(جمعة فی القری باذن الحاکم)** کښې دی په دې کښې د مخدوم تهتوي د یوې یوې برخې ځواب موجود دی. برسیره پر دې په دې تحریر کښې دا نه دي ویل شوي چه د سندھ کوم حاکم په کوم کلي کښې د جمعې د اقامت امر کړی وو. دویم دا چه که چیرته په کوم کلي کښې د کوم حاکم له خوا څخه د

جُمعې د اقامت امر ثابت شي نو د هغه تعديه د نورو قريو خوا ته به څرنګه صحيح شي؟ دريم دا چه که چيرته په ټولو قريو کښې د جُمعې د اقامت امر مراد وي نو د دې ثبوت بايد وړاندې شي همدارنګه د داسې امر د صحت او نفاذ لپاره کوم صريح دليل په کار دی. د فقهې عبارتونه خو له خاصې قريې سره متعلق دی. څلورم دا چه د امر کوونکي حاکم په مرګ سره د هغه امر پای ته رسيږي (كما حررناه في موضعه).

بيا د دې ليکنې په دې مضمون باندې چه "د اصل مذهب په مطابق په سنده کښې به هيچرته هم جمعه جائزه نه وي" ډومره تعجب وشي کم دی. حقيقت دا دی چه ځينو حضراتو په اصل حنفي مذهب کښې د مصر په تعريف کښې د تنفيذ الاحكام او اقامة الحدود شرط لګولی دی ليکن محققينو په هغو باندې رد کړی دی چه په اصل مذهب کښې قدرة على تنفيذ الاحكام شرط دی نه پخپله تنفيذ الاحكام. بيا قدرت هم د اکثره احکامو په تنفيذ باندې نه چه د ټولو احکامو په تنفيذ باندې. په آخر کښې دې ته ترجيح ورکول شوی دی چه د يوه حکم په تنفيذ باندې هم قدرت شرط نه دی يواځې داسې مصر والی شرط دی کوم چه په عرف کښې مصر ګڼل کيږي.

قال في شرح التنوير ويشترط لصحتها سبعة اشياء الاوّل المصر وهو ما لا يسع اكبر مساجده اهله المكلفين بها، وعليه فتوى اكثر الفقهاء مجتبى لظهور التوانى فى الاحكام وظاهر المذهب انّه كل موضع له امير و قاض يقدر على اقامة الحدود كما حررناه فيما علقناه على الملتقى وفى الشامية (قوله وعليه فتوى اكثر الفقهاء الخ) و قال ابو شجاع هذا احسن ما قيل فيه وفى الولوالجية وهو صحيح بحر، وعليه مشى فى الوقاية ومتن المختار وشرحه و قدمه فى متن الدرر على القول الأخر و ظاهره ترجيحه و ايّده صدر الشريعة بقوله لظهور التوانى فى احكام الشرع سيما فى اقامة الحدود فى الامصار (قوله و ظاهر المذهب الخ) قال فى شرح المنية و الحد الصحيح ما اختاره صاحب الهداية انه الذى له امير و قاض ينفذ الاحكام ويقيم الحدود و تزييف صدر الشريعة له عند اعتذاره عن صاحب الوقاية حيث اختار الحد المتقدم لظهور التوانى فى الاحكام مزيف بأن المراد القدرة على اقامتها على ما صرّح به فى التحفة عن ابى حنيفة انه بلدة كبيرة فيها سكك و اسواق ولها رساتيق و فيها وال يقدر على انصاف المظلوم من الظالم بحشمته وعلمه او علم غيره يرجع الناس اليه فيما يقع من الحوادث وهذا هو الاصح اه الا ان صاحب الهداية ترك ذكر السكك و الرساتيق لان الغالب ان الامير و القاضى الذى شأنه القدرة على تنفيذ الاحكام و اقامة الحدود لا يكون الا فى بلد كذلك اه (قوله يقدر الخ) افرد الضمير تبعاً للهداية لعوده على القاضى لان ذلك وظيفته بخلاف الامير لما مر وفى التعبير بيقدر رد على صدر الشريعة كما علمته وفى

شرح الشيخ اسمعيل عن الدهلوي ليس المراد تنفيذ جميع الاحكام بل المراد والله اعلم اقتداره على ذلك اه‍ و نقل مثله فى حاشية ابى السعود عن رسالة العلامة نوح أفندى اقول و يؤيده انه لو كان الاخلال بتنفيذ بعض الاحكام مخلاً بكون البلد مصراً على هذا القول الذى هو ظاهر الرواية لزم ان لا تصح جمعة فى بلدة من بلاد الاسلام فى هذا الزمان بل فيما قبله من ازمان فتعين كون المراد الاقتدار على تنفيذ الاحكام و لكن ينبغى ارادة اكثرها و الا فقد يتعذر على الحاكم الاقتدار على تنفيذ بعضها لمنع ممن ولاه و كما يقع فى ايام الفتنة من تعصب سفهاء البلد بعضهم على بعض او على الحاكم بحيث لا يقدر على تنفيذ الاحكام فيهم لانه قادر على تنفيذها فى غيرهم وفى عسكره على ان هذا عارض فلا يعتبر ولذا لو مات الوالى اولم يحضر لفتنة ولم يوجد احد ممن له حق اقامة الجمعة نصب العامة لهم خطيباً للضرورة كما سيأتى مع انه لا امير ولا قاجى ثمة اصلا و بهذا ظهر جهل من يقول لا تصح الجمعة فى ايام الفتنة مع انها تصح فى البلاد التى استولى عليها الكفار كما سنذكره فتأمل. (ردالمحتار ج۱، ص۷۲۴)

صحيح خبره خو دا ده چه د داسې ساقطې ليکنې په کتو سره دا اعتماد کول مشکل ګرځي چه دا په رښتيا سره هم د مخدوم ټهټوي رحمه الله ليکنه ده. د ده د لوړې مرتبې تحقيقات د رښتيا ګواهان دي چه دا تحرير د ده د تفقه له مقام سره لرې نسبت هم نه لري. پرته له دې څخه د تفحص او تتبع تر څنګ د حضرت ټهټوي په هيڅ يوه تصنيف کښې د دې تحرير هيڅ نخښه لاس ته را نه غله.

فقط والله تعالى اعلم — رشيد احمد — ۱۵ شوال ۱۳۵۷ هجرى، يوم الجمعة

## په سنده کښې په کليو کښې د جُمعې د اصلاح يو کوشش

په سنده کښې ځان ته حنفي ويونکي عوام بلکه علماء هم په کليو کښې لمونځونه کوي. بيا ظلم برسيره په ظلم باندې دا چه په داسې ځايونو کښې هم د جُمعې لمونځ ادا کيږي چيرته چه له څلورو مذهبونو څخه په يوه مذهب کښې هم هلته د جُمعې د ادا کولو هيڅ ګنجائش نشته. د دې د اصلاح لپاره زما په خيال کښې دا تجويز راغى چه د سنده د مشهورو علماؤ او مشائخو په حضور کښې حاضر شم او هغوی د دې مسئلې په اړه تر اجتماعي غور وروسته د متفقې فيصلې په کولو باندې تيار کړم. چنانچه ما د شعبان ۱۳۹۸ھ په لومړيو ورځو کښې د سنده په مختلفو علاقو کښې د مشهورو علماؤ او مشائخو په خدمت کښې د حاضريدو لپاره هغوی ته خطونه وليکل. ليکن له هغوی څخه هيچا هم زما د خط ځواب هم را نه کړ بلکه ځينې له ډاره ورپيدل او ځينې زما د خط په ويلو سره واويلاوې وکړې او زما محترم ورور مولانا محمد خليل ته ئې د "مونږ وساته، مونږ وساته" فريادونه شروع کړل. با لآخره له هغوی څخه مايوس او ناهيلې شوم او د هغوی په

دربار کښې مې د حاضرید و اراده منسوخه کړه. د دې کیسې پوره روئیداد په لاندې ډول دی.

## د سنده د علماؤ په نامه مکتوب

دار الافتاء و الارشاد ناظم آباد کراچي

۷شعبان ۱۳۹۸ھ

بسم الله الرحمن الرحيم

مکرمي، السلام علیکم و رحمة الله و برکاته!

دا یو منل شوی امر او د مذهب په کتابونو کښې په صراحت سره راغلی دی چه په کلیو کښې د جُمعې لمونځ جائز نه دی لیکن د سنده اکابر علماء کرام په کلیو کښې د جُمعې لمونځونه کوي. او په دوی کښې دا تعامل له پلار او نیکه څخه را روان دی. د دې برعکس د هند علماء کرام په دې مسئله کښې د حنفي مذهب دومره پابند دي چه چا ته د بیعت د ورکولو او په دې سلسله کښې د داخلولو لپاره په کلیو کښې د جُمعې له ادا کولو څخه د توبې شرط پرې لګوي. د شرعې د حدودو د حفاظت مقتضٰی هم همدغه دی.

دمسئلې د اهمیت له مخې د بنده خیال دا دی چه د سنده له علماء اومفتیانو کرامو سره مخامخ خبرې وکړم او د دوی په دې باره کښې موقف معلوم کړم. که چیرته دوی د جواز قائل وي نو د دوی په دلائلو باندې د اجتماعي غور په کولو سره فیصله وکړو. که چیرته د حنفي مذهب په مطابق عدم جواز ثابت شو نو له سنده څخه د دې منکر (بد کار) د لرې کولو په تدبیرونو باندې غور وکړو.

له دې امله بنده په دې سلسله کښې د ذی القعدې په میاشت ۱۳۹۸ھ کښې د سنده د دیني مدارسو د دورې فکر لري. ستاسو جناب په خدمت کښې به هم انشاء الله حاضري وي. له جناب څخه هیله ده چه په کلیو کښې د جُمعې د جواز په باره کښې که ستاسو په علم کښې کوم دلیل وي یا له تاسو سره د اکابرو کومه لیکنه وي نو را و ئې لیږئ تر څو چه د ملاقات په وخت کښې په هغه باندې د اجتماعي غور په کولو کښې آسانتیا وي. د نوموړي خط په رسیدو سره مو په هر صورت خبر کړئ. وفقنا الله الجميع لما يحب ويرضى، آمين، والسلام عليكم. رشید احمد

## د محترم ورور مولانا محمد خلیل صاحب مکتوب

۱۷شوال المکرم ۱۳۹۸ھجری

محترمه وروره مولوي رشید احمد صاحبه! سلمه الله تعالی!

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته! ستاسو مزاج او طبیعت دې په خیر وي.

د سنده له ځینو مدارسو څخه دا فریادونه را ورسیدل چه تاسو په کلیو کښې د جُمعې په موضو باندې د مناظرې لپاره سفر کوئ.

دغو حضراتو له دې کار سره د سختې کرکې اظهار کړی دی او لیکلي ئې دي چه تاسو باید د زنا، شراب، سود او داسې نورو فواحشو د پوره بندولو لپاره باید کوشش وکړئ ستاسو په نظر کښې تر ټولو لویه ګناه بس په کلیو کښې همدغه د جُمعې لمونځ دی.

**جواب:**

رشید احمد ۲۱ شوال المکرم ۱۳۹۸ھ

بسم الله الرحمٰن الرحیم

اخی المکرم زیدت معالیکم

و علیکم السلام و رحمة الله و برکاته! ستاسو مبارک لیک را ورسید. ما چه د سندهـ د مشهورو مدارسو خوا ته کوم خطونه لیږلي وو د هغو فوټو کاپی. در لیږم تاسو ئې ملاحظه کړئ. ما په دې لیکونو کښې په کلیو کښې د جُمعې د لمانځه په مسئلې باندې د اجتماعي فکر او غور په باره کښې لیکلي دي. زما دا ګومان وو چه هیڅ یو حنفي عالم به د دې د جواز قائل نه وي، یو رسم جوړ شوی دی بس د هغه پالنه کیږي، د دې لپاره زما د دورې اصل مقصد دا وو چه د مذهب په خلاف د دې جوړ شوي رسم او رواج د له منځه وړلو په لارو چارو باندې ټولنیز غور وشي ښائي چه یو داسې لاره را ووځي چه په عوامو کښې د فتنې او د مسلمانانو تر منځ له انتشار څخه په بچ کیدو سره د دې رسم علاج وشي. زما په ګومان د دې دا طریقه وه چه د سندهـ د مشهورو علماؤ له خوا څخه په متفقه توګه باندې دا مضمون خور شي. "په حنفي مذهب کښې جُمعه فی القریٰ جائزه نه ده او د اهلِ حدیثو په مذهب کښې جائزه ده. دواړه خواوې باید له لوړ ظرفیت او له پراخ نظري څخه کار واخلي او پخپل منځ کښې باید له فتنې او فساد څخه ځانونه وساتي. له دې امله چه اهلِ حدیث حضرات په کلي کښې د جُمعې لمونځ وکړي نو حنفي حضرات دې په هغوی اعتراض نه کوي او چه احناف ئې نه کوي نو اهلِ حدیث دې په هغوی اعتراض نه کوي، که چیرته کوم حنفي د جُمعې ادا کول وغواړي نو هغه ته دې په نرمۍ او خوږو خبرو باندې د حنفي مذهب ور وښوول شي، سره له دې که چیرته هغه په ادا کولو باندې ټینګار وکړي نو بیا دې تعرض پرې و نه شي"

د دې ډول مضمون په خپرولو کښې دوه ګټې په لحاظ کښې ساتل شوې وې. یوه دا چه عوامو ته حنفي مذهب معلوم شي او بله دا چه که چیرته کوم حنفي په کلي کښې د جُمعې لمونځ نه کوي نو په هغه باندې دې لعن طعن (بد رد) و نه ویل شي.

لیکن مولانا عبد الهادي صاحب له خط څخه څرګنده شوه چه هغه په دې سلسله کښې د سندهـ له علماؤ څخه مایوس (ناهیلی) دی د دې لپاره چه دا علماء د جُمعې د جواز قائل دي او له اجتماعي غور څخه هم ډډه کوي. له دې امله ما ستاسو د مبارک لیک تر را رسیدو مخکښې د خیر له دې کار څخه د طریقت د یارانو په ګومان د شر د دې کار اراده پریښې وه.

ستاسو په لیک باندې زیات حیران په دې باندې شوم دا حضرات په کومې دیني مسئلې باندې اجتماعي غور او فکر مناظره بولي. غالباً دوی ته دا مغالطه د دې لپاره لویدلې ده چه د هغوی په خوا کښې په شرعي مسائلو باندې د اجتماعي فکر نه کوم دستور شته او نه د هغوی په زړونو کښې د دې کوم اهمیت شته. ددې برعکس زمونږ په ماحول کښې ددې ډیر اهمیت او سخت ضرورت محسوسیږي او د دې حضراتو احساسات ورځ په ورځ زیاتیږي. دار الافتاء و الارشاد، دار العلوم کراچي او نیوټاون د مدرسې مشترک مجلسِ تحقیق په اجتماعي توګه باندې د څو اهمو مسائلو په اړه فیصلې کړي دي او په کتابي شکل کښې خپور شوی دی. په کومو مسائلو کښې چه د رایې اختلاف پای ته نه دی رسیدلی په هغو کښې هم تر آخره پورې په ډیرې مینې او اخلاص سره خبرې وشوې او لیکنه ئې هم په داسې اندازې سره وشوه چه لوستونکو ته د دې مجلس د غړیو اخلاص او پخپل منځ کښې د مینې او تعاون یقین جوړ شي. د دې مثالونه په ماهنامه البلاغ او د حضرت مفتي محمد شفیع صاحب رحمہ اللہ په کتاب جواهر الفقه کښې موجود دي. زمونږ د اجتماعي غور سلسله یواځې د یادو شویو دریو ادارو پورې محدود نه دی بلکه په دې سلسله کښې د ملک او له ملک څخه د باندې نورې ډیرې ادارې شاملې دي او اوس دې سلسلې ته د نورې پراختیا په ورکولو باندې غور روان دی.

په دیني مسئلې باندې اجتماعي غور ته مناظره ویونکي حضرات د خپلو مدارسو د شورئ مجلس او د سیاسي ډلو اجتماع ګانو ته د مناظرې د نامه په ورکولو سره له هغو څخه د کرکې او بیزارې اظهار ولې نه کوي؟

د دغو حضراتو دا وینا چه په کلیو کښې د جُمعې د لمانځه د مسئلې په ځای د زنا، شراب، سود او داسې نورو بدکاریو د پوره مخنیوي لپاره باید کار وشي. په دې اړوند عرض دا دی چه د "الاهم فا لاهم" اصول په واقعي توګه مسلّم (منل شوی دی) دی لیکن د دې مطلب هیڅکله دا نه دی چه تر څو پورې لوی منکر یا لویه ګناه له منځه تللی نه وي تر هغه وخته پورې د واړه منکر یا ګناه د اصلاح فکر کول ګناه دی. که چیرته د دې دا مفهوم وي نو تر ټولو لوی منکر کفر دی له دې امله چه تر څو پورې له ټولې دنیا څخه کفر په کلّي توګه له منځه تللی او ورک شوی نه وي نو تر هغه وخته پورې د زنا، شرابو او داسې نورو منکراتو اصلاح به جائز نه وي

په هر صورت تاسو دا فریاد کوونکي مطمئن کړئ چه ما د هغوی په خدمت کښې د حاضریدلو اراده پریښې ده له دې امله دې هغوی نه پریشانه کیږي. په اصل کښې ما هغوی پخپل ماحول باندې قیاس کړل، که چیرته ما ته له مخکښې څخه دا معلومه وای چه په هغوی کښې د اجتماعي غور او فکر صلاحیت نشته او هغوی دا اجتماعي فکر مناظره ګڼي نو ما د هغوی خوا ته د خطونو په لیږلو سره د هغوی د ویرې او وحشت سبب نه جوړیدم. **وفقنا الله الجميع لما يحب ويرضى، آمين، فقط و**

السلام علیکم.

## الحاق

## په کليو کښې د جُمعې په اړه په يوه کتاب باندې تقريظ

په دې تقريظ کښې ځينې اهمې خبرې راغلي دي له دې امله دا تقريظ د النخبة په رساله کښې الحاق مناسب دی.

بسم الله الرحمن الرحيم

دا خبره منل شوې او متفقه عليه ده چه په حنفي مذهب کښې په کوچنيو کليو کښې د جُمعې لمونځ جائز نه دی. ليکن د تعجب او سخت افسوس ځای دی چه په سنده کښې ځان ته حنفي ويونکي عوام بلکه علماء هم په کليو کښې د جُمعې لمونځونه کوي. بيا ظلم د پاسه په ظلم دا چه په داسې ځايونو کښې هم د جُمعې لمونځونه ادا کيږي چيرته چه په څلورو مذهبونو کښې د يوه مذهب له مخې هم د جُمعې د ادا کولو هيڅ ګنجائش نشته. برسيره پر دې په مصداق د دې چه "د ګناه عذر بد تر له ګناه څخه" دا ويل کيږي چه دا مسئله مجتهد فيها ده د دې لپاره د دې ګنجائش شته. حالانکه په دې کښې لاندينې قبائح شته.

۱ - په بل مذهب باندې د سخت ضرورت په وخت کښې عمل جائز دی او هغه هم د مشهورو او معروفو شرائطو له مخې، په جُمعه فی القرىٰ کښې د کوم ضرورت داعيه ده چه د خپل مذهب په پريښودو سره په بل مذهب باندې عمل کيږي. که چيرته دا ضرورت بيان شي چه د جُمعې په نه ادا کولو کښې فتنه ده نو د دې ځواب دا دی چه د دې فتنې وبال او ګناه د هغو علماؤ په ذمې باندې دی چه کومو چه تر عوامو پورې د صحيح مذهب په رسولو کښې غفلت کړی دی بلکه له مداهنت (چاپلوسي او سُستي) څخه ئې کار اخيستی دی. که چيرته علماء په حنفي مذهب باندې قائم اوسيدلی او عوامو ته ئې هم صحيح مذهب ور ښوولی نو د فتنې به هيڅ امکان هم نه وو.

اوس هم که چيرته د احنافو علماء پرته د لومة لائم (د ملامت کوونکي د ملامت) له ويرې په متفقه توګه باندې د عدم جواز فتویٰ ورکړي او پخپله هم په حنفي مذه باندې د عمل کولو پابند جوړ شي نو فتنه نه شي پاتې کيدلی. الحمد لله تر اوسه پورې هم عوام د علماؤ تابع دي، هو! که چيرته يو څو کسان غير مقلدين د جُمعې لمونځ وکړي نو هغوی دې نه منع کيږي، احناف دې نه ادا کوي او غير مقلدين دې ادا کوي نو په دې کښې څه فتنه ده؟ آخر د لاسونو په پورته کولو، د آمين په زوره ويلو او په امام پسې د قرائت په ويلو کښې خو هم احناف او غير مقلدينو کښې اختلاف دی. دا اختلاف د فتنې باعث ولې نه دی؟ او د دې له ويرې څخه احناف د خپل مذهب په پريښودو سره د غير مقلدينو مذهب ولې نه غوره کوي؟

۲ - په کليو کښې د جُمعې په موجوده رواج سره د حنفي مذهب تحريف، په صاحب مذهب رحمه الله باندې افتراء او په عوامو کښې د مذهب تلبيس منځ ته راځي. له دې امله د علماء کرامو په دې طرز عمل سره عوام دا فکر کوي چه د دوی عمل د حنفي مذهب مطابق دی او د امام اعظم رحمه الله همدغه مذهب دی.

۳ - د علماؤ له دې مداهنت څخه عوامو ته داسې رقعه يا خط په لاس وراغی چه له ټولو قيدونو او شرطونو څخه د آزادی په صورت کښې په داسې ځايونو کښې هم د جُمعې لمونځ ادا کوي په کومو ځايونو کښې چه د يوه مذهب له مخې هم جُمعه جائزه نه وي. بلکه ډير علماء هم په دې کښې مبتلا دي.

۴ - په کليو کښې د جُمعې له گناه پرته بل لوی عذاب دا دی چه د ماسپښين لمونځونه پريښودل کيږي او هغه هم د جُمعې د مقدسې ورځې غوندې ورځ.

د دې لپاره په علماؤ فرض دي چه عوام له صحيح حنفي مذهب څخه خبر کړي او د مذهب په خلاف له عمل څخه ئې د منع کولو هر ممکن کوشش وکړي. الله تعالی دې مولانا عمر دراز صاحب ته د خير بدله ورکړي چه هغه دا اهمه فريضه محسوسه، کړه په دې اړوند ئې د نظر لاندې مفصل کتاب وليکه. الله تعالی دې د هغه محنت قبول کړي او د اُمّت لپاره دې د هدايت سبب وگرځوي او د نورو حنفي علماؤ لپاره دې د عبرت نمونه وگرځوي چه هغوی هم د خپلې فريضې د ادا کولو په لاره کښې پوره کوشش وکړي.

با لخصوص له هغو علماؤ څخه د زړه له کومې څخه هيله ده کوم چه د مداهنت او په کليو کښې د جُمعې د ادا کولو په عمل سره حنفيانو ته دوکه ورکړې ده او په مذهب کښې د تلبيس او تحريف مرتکبين دي چه د خدای لپاره احنافو ته حنفي مذهب ور وښايئ او له تلبيس او دوکې ورکولو له عظيم جرم څخه د توبې اعلان وکړئ. که چيرته خدای مکړه دا عِلماء له دې جرم څخه توبه نه کوي نو په حنفي عوامو باندې فرض دي چه له داسې علماؤ سره په سختۍ سره محاسبه وکړي. او له هغوی څخه په کليو کښې د جُمعې په اړه د حنفي مذهب د اظهار غوښتنه وکړي او هغوی دې ته مجبوره کړي چه هغوی يا خو په حنفي مذهب باندې عمل وکړي او که نه نو حنفيت دې پريږدي او د غير مقلد توب اعلان دې وکړي ځکه چه نيم تيتر او نيم بيټر ښه نه وي.

الله تعالی دې له يوم الحساب څخه مخکښې د رجوع او توبې توفق ورکړي او د آخرت د فکر او د حساب د ويرې هغه درجه دې ور وبخښي کوم چه دنيوي تعلقات او له ځانه جوړ شوي مصالحو له د مسالې غوندې ميده ميده کړي.

والله الموفق وهو المستعان ولا حول ولا قوة الا به . رشيد احمد

دار الافتاء والارشاد ناظم آباد کراچی ۳ صفر ۱۴۰۰ هجری

## په کليو کښې د جُمعې لپاره له مذهب څخه خروج (وتل)

په خدمت دې اقدس محترم المقام حضرت مفتي صاحب مد ظله العالي. السلام عليکم ورحمة الله و برکاته!

په کليو کښې د جُمعې په اړه فتوی ستاسو خدمت ته وړاندې کوم. فاضل محترم د احنافو د مذهب زړور مخالفت کړی دی، د خپل خيال په تائيد کښې ئې څو حوالې هم وړاندې کړې دي، د احنافو د مسلمو او متفقهو اصولو په خلاف ئې فتوی ورکړې ده. هيله ده چه د فتوی ځواب لږ په تفصيل سره وليکئ تر څو چه په کتاب کښې درج کړی شي.

**سوال**: څه فرمائي د دين علماء کرام د دې خبرې په باره کښې چه د احنافو په نزد په قريهٔ صغيره (کوچني کلي) کښې د جُمعې لمونځ صحيح دی او که نه؟ په کوچني کلي کښې د جُمعې د لمانځه په ادا کولو سره د ماسپښين لمونځ له ذمې څخه ساقطيږي او که نه؟ د عدم جواز په صورت کښې چه څوک د جُمعې لمونځ ورکوي او چه څوک ئې کوي ټول به ګنهګار وي او که نه؟

۲ - د لوي کلي او واړه کلي تعريف څه دی؟

۳ د ﴿اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰی ذِکْرِ اللهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ آيت حکم خاص دی او که عام؟

د کتابونو حواله ورسره وليکئ. فقط و السلام

**الجواب و هو الموفق للصدق و الصواب**: ۱ - اولاً د احنافو په نزد په کليو کښې د جُمعې لمونځ جائز نه دی. د دې لپاره چه د جُمعې د وجوب لپاره مصر يا ښار شرط دی. د متونو په ټولو کتابونو کښې دا مسئله له صراحت سره مذکوره ده.

**قال فی الهداية لا تصح الجمعة الا فی مصر جامع او فی مصلی المصر ولا تجوز فی القری الخ.** (هداية ج۱، ص۱۴۸) و **کذا لا يصح اداء الجمعة الا فی المصر و توابعه فلا تجب علی اهل القری التی ليست بتوابع المصر ولا يصح اداءها فيها الخ.** (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۵۹)

له مذکوره عبارتونو څخه څرګنده شوه چه کوم مقام چه پخپله ښار يا د ښار له توابعو څخه نه وي په هغه کښې د جُمعې لمونځ جائز نه دی. ليکن له متاخرينو علماؤ څخه په هندوستان کښې حضرت امام شاه ولي الله رحمه الله او په سندھ کښې حضرت مولانا مخدوم محمد هاشم ټهټوي رحمه الله په کليو کښې د جُمعې له جواز سره سره نه قائيلوونکو ته آثم او ګنهګار هم ويلي دي. چنانچه حضرت شاه ولي الله په حجة الله البالغه کښې د بحث په دوران کښې ليکي: **اقول وذلک لانه لما کان حقيقة الجمعة اشاعة الدين فی البلد وجب ان ينظر الی تمدن و جماعة و الاصح عندی انه يکفی اقل ما يقال فيه قرية لما روی من طرق شتی يقوی بعضها بعضاً خمسة لا جمعة عليهم وعد منهم اهل البادية قال ﷺ الجمعة**

على الخمسين رجلا. اقول الخمسون يتقرى بهم قرية وقال ﷺ الجمعة واجبة على كل قرية، واقل ما يقال فيه جماعة لحديث الانفضاض والظاهر انهم لم يرجعوا والله اعلم فاذا حصل ذلك وجبت الجمعة ومن تخلف عنها فهو الأثم و لا يشترط اربعون الخ. (حجة الله البالغة ج۲، ص۱۰۳) همدارنگه مخدوم محمد هاشم تهتوي رحمه الله پخپلي فتوىٰ كښې په كليو كښې د جُمعې په اړه د بحث په كولو سره ليكي: پس اقامت كنندگان دران قريها مأجور و مثاب عند الله باشند و مانعان نماز جمعه در قريها آثم و بزه گار شوند وهو سبحانه وتعالىٰ اعلم بحقيقة الحال. او په دې فتوىٰ باندې د هغه وخت له علماؤ څخه د مفتي ضياء الدين، مفتي عزت الله، مفتي محمد مقيم، قاضي ابو الحسن، قاضي عبد الرحمٰن، عبد الله عفى عنه لاسليكونه شته. د تفصيل لپاره فتاوىٰ واحدي ص۲۳۸ ملاحظه كړئ.

ثانياً په فتاوىٰ رشيديه كښې دي: البته د شوافعو د مذهب او ځينو محدثينو مطابق جمعه ادا شوه او د ماسپښين لمونځ ساقط شو. او قانون دا دى چه په مجتهد فيها مسئله كښې چه كله قاضي يوې خوا ته فيصله وركړي نو په دې مسئله كښې په نورو مذاهبو باندې هم عمل كول جائز دي. لكه څرنگه چه فتاوىٰ واحدي كښې دي:

نعم لو اذن الوالى او القاضى ان يعقد الجمعة وببناء الجامع فى القرية الكبيرة فيها سوق جاز لما فى المتانة لو اذن الوالى او القاضى ان يعقد الجمعة و ببناء الجامع فى قرية كبيرة فيها سوق جاز بالاتفاق لان عند الشافعى رحمه الله يصلى الجمعة بالقرية التى فيها اربعون حرا بالغا عاقلا مقيما فكان هذا فصلا مجتهداً فيه فاذا اتصل به الحكم والقضاء صار مجمعا عليه ونحوه فى شرح المكارم الخ. (فتاوىٰ واحدى ص۲۳۴)

له مذكوره عبارت څخه څرگنده شوه چه په مجتهد فيه مسئله كښې د قاضي تر قضاء وروسته په اتفاق سره عمل كول جائز دي. نو چه كله جمعه فى القرىٰ د احنافو او شوافعو تر منځ مختلف فيه ده نو مخدوم صاحب او شاه ولى الله صاحب رحمهما الله تعالى تر فتوىٰ وروسته په دې باندې په اتفاق سره عمل كول صحيح دي. خصوصاً په داسې حال كښې چه په ټول ملك كښې جُمعه فى القرىٰ عملاً نافذ دى. اوس ئې بيرته پريښودل د عظيمو مفاسدو حامل كيدلى شي. له دې امله چه چيرته له مخكښې څخه د جُمعې لمونځ جاري وي هغه بايد بند نه شي او چيرته چه په كوم كلي كښې د جُمعې لمونځ جاري نه وي هلته بايد جاري نه شي. چنانچه په كفايت المفتى كښې پوښتنه شوې ده چه په كوچني كلي كښې د جُمعې لمونځ نه كيږي ليكن كه چيرته د نه بندولو په صورت كښې كوم خلك چه د جُمعې لمونځونه وكړي نو د هغوى فريضه [illegible] او كه نه؟ كه چيرته ادا نه شي نو څه به كيږي؟ په كوم ځاى كښې چه جُمعه فرض نه ده هلته . جُمعې په ادا كولو سره د خپل

مذهب له لحاظه د څو مکروهاتو ارتکاب لازمیږي. لومړی: د نفلو جماعت، دویم: د ورځې په نفلو کښې جهر، دریم: د غیر لازم شي التزام، څلورم: د ماسپښین د فرضو د جماعت پرېښودل، پنځم که چیرته یو څوک د ماسپښین لمونځ و نه کړي نو د فرضو پرېښودل چه دا حرام او فسق دی.

**الجواب**: په کلیو کښې د جُمعې د لمانځه نه کیدل په مجتهدینو کښې مختلف فیه ده. د حنفیه ؤ په نزد د جُمعې د جواز لپاره مصر شرط دی لیکن د مصر په تعریف کښې لوی اختلاف دی. البته په کوم ځای کښې چه له پخوا څخه د جُمعې لمونځ قائم دی هلته د جُمعې په پرېښوولو کښې چه کوم مفاسد دي هغه له هغو مفاسدو څخه څو ځله زیات سخت دي کوم چه سوال کوونکي د جُمعې د ادا کولو په صورت کښې ذکر کړي دي. کوم خلک چه جُمعه جائزه بولي د هغوی فرض ادا کیږي. د نفلو جماعت یا د ورځې په نفلو کښې قرائت با لجهر یا د ماسپښین د فرضو ترک نه لازمیږي. (کفایة المفتي ج۳،ص۱۸۵) له دې فتوی څخه ښکاره شوه چه د جمعه فی القری په مسئله کښې د فتنې د دفع کولو د ضرورت له مخې په نورو مذاهبو باندې عمل کول جائز دي خصوصاً په داسې حال کښې چه دا مسئله مختلف فیه ده او د مجتهدینو په اختلاف سره په مسئله کښې تخفیف پیدا کیږي. چنانچه د هدایې په ج۱،ص۲۲ کښې دي چه: **لکان الاختلاف. قال فی العنایة فان اختلاف العلماء یورث تخفیفاً کما سیجیء.** پس د فتنې او فساد په دې دور کښې چه په کوم ځای کښې له پخوا څخه د جُمعې لمونځ جاري دی هغه باید بند نه شي. همدارنګه د دیوبند له علماؤ څخه هم حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوي، مولانا محمد یعقوب نانوتوي اوحضرت شیخ الهند او علامه عبد العلي بحر العلوم رحمهم الله تعالی په کلیو کښې د جمُعې لمونځونه ادا کول. (کفایة المفتی ج۳،ص۱۹۰) مخکښې مفتي کفایت الله صاحب لیکي: **قلت وهذا و ان کان غیر موافق لما علیه الحنفیة و لکنه اشد موافقة للمصالح الاسلامیة الاجتماعیة خصوصا فی هذا القطر و فی هذا الزمان فان اعداء الاسلام یظفرون بمقاصدهم المشؤمة فی قری لا تقام فیها الجمعة و یخیبون فی مواضع اقامة الجمعة و التوفیق من الله عز و جل و حفاظة الاسلام خیر من الاصرار علی ترکها و المسألة مجتهد فیها.** (کفایة المفتی ج۳،ص۲۰۵)

له پورتنیو حوالو څخه ثابته شوه چه هغه کلی چه له پخوا څخه جُمعه پکښې قائمه وي هلته د جُمعې په ادا کولو د ماسپښین فرض ئې له غاړو څخه ساقطیږي او جمعه فی القری ادا کوونکي ګنهګار نه دي.

۲- د مصر یا قصبه کوم ته چه قصبهٔ کبیره ویل کیږي مختلف تعریفونه شوي دي. یو تعریف ئې له امام اعظم رحمه الله څخه منقول دی هغه دا دی: **و روی عن ابی حنیفة انه بلدة کبیرة فیها سکک و اسواق ولها رساتیق وفیها وال یقدر علی انصاف المظلوم من الظالم بحشمه و علمه او علم غیره و الناس یرجعون الیه**

في الحوادث وهو الاصح. (بدائع ج۱، ص۲۶۰)

دويم تعريف ئې دا دی: **وفي العالمگيرية ولادائها (الجمعة) شرائط في غير المصلي منها المصر كذا في الكافي والمصر في ظاهر الرواية الموضع الذي يكون فيه مفت او قاض يقيم الحدود وينفذ الاحكام وبلغت ابنيته ابنية منى هكذا في الظهيرية وفتاوى قاضي خان وفي الخلاصة وعليه الاعتماد كذا في التتارخانية ومعنى اقامة الحدود القدرة عليها هكذا في العناية ج۱، ص۱۵۳)**

دريم تعريف ئې دا دی: **قال سفيان الثوري المصر الجامع ما يعده الناس مصرا عند ذكر الامصار المطلقة وعن عبدالله البلخي انه قال احسن ما سمعت انه اذا اجتمعوا في اكبر مساجدهم لم يسعوا فيه فهو مصر جامع، وعن ابي حنيفة رحمة الله عليه هو ما يجتمع فيه مرافق اهله. (هداية ج۱، ص۱۴۸)**

دا ټول پنځه تعريفونه دي نو د مصر په شرط کښې فقهاوو ډير تنزل کړی دی تر دې پورې چه تر آخري تعريف پورې را ورسيدل او په دې تعريف باندې د خالص کافر حکومت په ښار لکه لندن او داسې نورو ځايونه هم په مصر کښې داخليږي. همدارنګه ډير کلي هم د مصر په دې تعريف کښې داخليږي او په دې تعريف باندې د حنفيه ؤ ډيرو مشائخو هم فتواوې ورکړې دي. او د تنفيذ احکام او اقامت حدود والا تعريف نن صبا په هيڅ يوه ښار باندې هم نه صادقيږي او د حدودو په اقامت کښې د قدرت على التنفيذ تاويل هم صحيح نه دی ځکه چه شرعي حدود د مروّج قانون لاندې ممتنع الاقامة وي تر دې پورې چې د هند وائسرائ هم په رجم باندې قدرت نه لري. له دې امله ده لره د جُمعې د جواز لپاره د حکم مدار ګاکل په هيڅ توګه هم صحيح نه دی. **كذا في كفاية المفتي لمولانا كفاية الله رحمة الله عليه والتفصيل فلينظر ثمة.**

۳ - د احنافو په نزد آيت کريمه په خاصو ځايونو پورې اړه لري په کومو ځايونو کښې چه جُمعه واجبه ده.          **فقط والله اعلم بالصواب.**

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې ليکنه کښې دا منل شوې ده چه په حنفي مذهب کښې د جُمعه في القرىٰ هيڅ جواز نشته. او تر دې وروسته ئې د مذهب د نصوصو په خلاف ئې د څو قولونو اسره اخيستې او د جواز قول ئې کړی دی کوم چه د علم د هيڅ يوه خاوند لپاره نه ښائي. په تنقير او تفتيش سره په هرې مسئلې کښې هر ډول قولونه مختنه راځي ليکن د هغو په بناء باندې له مذهب څخه وتل هيڅکله جائز نه دي. او که نه نو مذهب به يواځې د هلکانو د لوبو شی پاتې شي، هر هوسناکه سړی به د خپل هوس مطابق يو نه يو قول را وباسي او د مذهب د ګلو په باغ کښې به ئې د پيوند لګولو کوشش وکړي کوم چه مذهب پرستي نه بلکه هوىٰ پرستي ده او د الله تعالى د

دي قول چه (أَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلٰهَهُ هَوَاهُ أَفَأَنْتَ تَكُونُ عَلَيْهِ وَكِيلًا. (الفرقان) وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنِ اتَّبَعَ هَوَاهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ اللّٰهِ. (القصص) أَفَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلٰهَهُ هَوَاهُ وَأَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلَىٰ عِلْمٍ ـ الآية (الجاثية) مصداق دی.

انسان د مذهب د غاړکی له غاړې څخه تر ایستلو وروسته داسې مهاره کیږي چه د هغه په مخکښې له لوی څخه په لویې فتنې کښې ابتلاء هم کومه لویه خبره نه وي. د دې لپاره د امن او سلامتی همدا لاره ده چه پرته له سخت ضرورت څخه د امام له قول څخه هیڅکله هیڅکله انحراف و نه شي. د سخت ضرورت تفصیل او د فتوی د جواز شرطونه د بل چا په مذهب باندې په حیلهٔ ناجزه او د بنده د السبک الفرید نومي رسالې کښې چه د احسن الفتاوی له لومړي جلد سره لګیدلې ده ملاحظه کړئ. د مذکوره لیکنې په ځواب کښې پورتنی څو لیکې کافي دي. سره له دې د دې لړ غوندې تجزیه هم کیږي.

**قوله** : په هندوستان کښې حضرت شاه ولی الله رحمه الله الخ.

**اقول** : حضرت شاه ولی الله رحمه الله تعالی د جُمعې د جواز لپاره کم تر کمه د پنځوسو کسانو قریه والی شرط ګڼلی دی او تاسو له دې څخه مطلقاً جواز ثابتوئ. بلکه د سندهـ په داسې کلیو کښې هم جُمعه ادا کیږي چه د څلورو مذاهبو په اجماع سره هلته جمعه صحیح نه ده. په دې باندې هم د سندهـ هیڅ یو عالِم نکیر او ممانعت نه کوي.

**قوله** : او په سندهـ کښې حضرت مولانا مخدوم محمد هاشم ټهټوي رحمه الله الخ.

**اقول** : د دې مفصل ځواب ما مخکښې لیکلی دی کوم چه زما د النخبة د رسالې یوه برخه ګرځیدلې او د احسن الفتاوی جدید په څلورم جلد کښې نژدې چاپیدونکې ده انشاء الله تعالی. د دې په آخر کښې دا خبره هم شته چه د حضرت مخدوم رحمه الله په مطبوعه یا مخطوطه (قلمي) تصنیفونو کښې د دې لیکنې هیڅ ثبوت نه پیدا کیږي او د استدلال په لحاظ سره له داسې ساقط تحریر څخه د مخدوم مقام ډیر لوړ دی.

**قوله** : په فتاوی رشیدي کښې دي چه الخ.

**اقول** : په فتاوی رشیدیه کښې له مذهب څخه د خروج هیڅ جواز هیچرته هم نه دی راغلی.

**قوله** : او دا قانون دی چه په مجتهد فیه مسئله کښې چه کله قاضي په یوه خوا فیصله وکړي نو الخ

**اقول** : په کومې قریې کښې کوم قاضي د جُمعې د اقامت فیصله کړې ده؟ همدارنګه تاسو خو په هر کلي کښې د جواز قائلین یئ. د حاکم په اذن سره د جُمعې د جواز مفصل بحث هم په رسالهٔ النخبة کښې اضافه شوی دی.

**قوله** : نو چه کله د احنافو او شوافعو تر منځ په کلیو کښې د جُمعې لمونځ مختلف فیه دی نو د

مخدوم صاحب او شاه ولی الله صاحب رحمهما الله تر فتوی وروسته په دې باندې په اتفاق سره عمل کول صحیح دي.

**اقول** **من لا یعرف الفرق بین الافتاء والقضاء لا یجوز له الاقتحام فی هذا المقام.** پرته له دې څخه په سنده کښې خو په داسې کلیو کښې هم د جُمعې لمونځونه کیږي چیرته چه د څلورګوني مذهبونو په اجماع سره هیڅ ګنجائش نه لري. تاسو د دې څه تدارک کړی دی؟

**قوله** : په داسې حال کښې چه په ټول ملک کښې جمعه فی القرٰی نافذه ده اوس د دې پریښودل د عظیمو مفاسدو حامل کیدلی شي الخ.

**اقول** : دا د علماؤ د مداهنت او له عوامو څخه د حق د پټولو او د مذهب د تلبیس نتیجه ده. که چیرته اوس هم د دعوت په حکمت او موعظهٔ حسنه باندې عمل وشي او د **وَالْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَالْحَافِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللهِ** لاندې د امر با لمعروف او نهی عن المنکر او د حدودو د حفظ اهتمام وشي نو د فساد هیڅ ویره او خطر نشه. د دې طریقه دا ده چه حنفي علماء کرام او مشائخ عظام په متفقه توګه دا فیصله ولیکي چه "د حنفي مذهب له مخې په کلیو کښې د جُمعې لمونځ صحیح نه دی، او په ځینو قریو کښې په اجماع سره باطل دی. په کلي کښې د جُمعې په ادا کولو سره د ماسپښین فرض نه ساقطیږي، برسیره پر دې له مذهب څخه وتل، په مذهب کښې تلبیس، د نوافلو جماعت، د ورځې په نوافلو کښې به په جهر سره د قرائت او د ماسپښین د جماعت په قصد سره د پریښودلو به ځانته ګناه وي، همدارنګه د قرائت د پټ ویلو وجوب په قصد سره د پریښودلو له وجې دا دوه رکعته نفل به بیا واجب الاعاده وي. له دې امله احناف دې په کلیو کښې جُمعه نه ادا کوي. که چیرته ئې کوم اهلِ حدیث یا حنفي په خلاف د مذهب باندې په ادا کولو باندې ئې مصر وي نو له هغه سره په ټکر کښې مه واقع کیږئ. همدارنګه د جُمعې ادا کوونکي خلک دې د حنفي مذهب مطابق د جُمعې په نه ادا کوونکو باندې کوم اعتراض او طعن او پیغور نه کوي".

بیا دې علماء او مشائخ د دې فیصلې اعلان وکړي او پخپله دې د دې پابند و اوسي، کم تر کمه له دې څخه خو دا ګټه خامخا را ووځي چه د حق د پټونې او په مذهب کښې د تلبیس او تحریف جرم تدارک کیږي او د حق د اظهار فریضه ادا کیږي. عوام دې د حنفي مذهب په باره کښې په غلط فهمۍ کښې نه پاتې کیږي. له دې څخه هم پورته ظن غالب بلکه یقین دی چه د مسلمانانو اکثریت د علماؤ له متفقه فیصلې څخه مخ نه اړوي.

په کلیو کښې د جُمعې د بندولو له موهومه مفاسدو څخه ډارول او د جُمعې د اجازې له موجودو مفاسدو څخه اعراض کیږي، آیا دا صریح تعنّت نه دی؟ په کلیو کښې د جُمعې د اجازې

يوه لويه فتنه دا ده چه په دې بناء باندې په داسې ځايونو کښې هم د جُمعې لمونځونه ادا کيږي چيرته چه په عدم صحت باندې ئې د ائمۀ اربعه ؤ اجماع ده. او په سندهـ کښې ډير داسې ځايونه شته. آيا د هغو وبال او عذاب به د مداهنو علماؤ په غاړې باندې نه وي؟

**قوله** : د ديو بند له علماؤ څخه هم حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوي، مولانا محمد يعقوب نانوتوي او حضرت شيخ الهند او علامه عبد العلي بحر العلوم رحمهم الله تعالى په کليو کښې د جُمعې لمونځونه کول. **(کفاية المفتی ج۳،ص۱۹۰)**

**اقول** : له ما سره کفاية المفتي نشته. له دې امله ما دار العلوم ته ټيليفون وکړ، مفتي عبد الرؤف صاحب د کفاية المفتي څه عبارت په ټيليفون باندې ما ته بيان کړ چه حاصل ئې دا وو چه يوه چا د پهلت د ځاى يو داسې څرنګوالى بيان کړى دى چه له هغه څخه د پهلت کوچنى ښارګوټي توب ثابتيږي او ليکلي ئې دي چه په پهلت کښې مذکوره علماؤ د جُمعې لمونځونه ادا کول. د دې په ځواب کښې حضرت مفتي کفايت الله صاحب رحمه الله فرمائي چه پخپله په سوال کښې د مذکوره څرنګوالي له مخې په دې ځاى کښې جمعه صحيح ده.

ما دا باور و نه شواى کولى چه يو عالِم په نقل کښې د داسې صريح خيانت جرئت وکړى شي د دې لپاره ما مفتي عبد الرؤف صاحب ته وويل چه د کفايت المفتي عبارت نقل کړئ او ما ته ئې را وليږئ تر څو چه زه پرې غور وکړم. چنانچه را ليږل شوى عبارت په لاندې ډول دى:

د مظفر نګر په ضلع (ولايت) کښې يو ځاى د پهلت په نامه دى چه د خلکو ټول تعداد ئې يو ويشت سوه دى، ضروري شيان پکښې پيدا کيږي، شپږ د پرچون دوکانونه، دوه د بزازى دوکانونه، دوه د عطاري دوکانونه، درې د خياطى، پنځه يا شپږ نور مختلف دوکانونه پکښې دي، لس يوولس د قصابي دوکانونه، پنځه شپږ حکيمان دي، له پنځلسو تر شلو پورې حافظان پکښې دي، پنځلس شلو پورې مولوي صاحبان دي، په هفته کښې يوه ورځ بازار وي. څلور جوماتونه دي چه يو پکښې د جامع جومات په نامه مشهور دى، يوه اسلامي مدرسه کومه چه د فيض الاسلام په نامه باندې نوموړ شوې ده، د موچي او بوټونو د خرڅولو هيڅ يو دوکان پکښې نشته، تهانه، ډاکخانه، شفاخانه، سرکاري مکتب هم پکښې وجود نه لري الخ.

**جواب** که چيرته د پهلت همدا حيثيت وي کوم چه په سوال کښې ئې يادونه شوې ده نو دا حيثيت د پهلت د لوى کلي د جوړيدو لپاره کافي دى. له دې امله د جُمعې اقامت پکښې جائز دى الخ.

ما ډير فکر وکړ چه د کفايت المفتي له مذکوره عبارت څخه مخې ته د اينبودل شوي تحرير د استخراج کوم صورت او د محرر (ليکونکي) خوا ته د خيانت له نسبت څخه د حفاظت لپاره له لرې څخه لرې د کوم تاويل ګنجائش را ووخي ليکن تر اوسه پورې زما په ذهن کښې هيڅ يو صورت هم

پيدا نه شو. والله العاصم.

پرته له دې څخه دا منل شوی امر دی چه هر څومره يو لوی محقق د جمهورو په خلاف قول وکړي نو د هغه اتباع جائز نه دی او د جمهورو د مسلک اتباع واجب دی. چه کله د مذهب په دائرې کښې دننه د جمهورو په خلاف د قول اتباع ممنوع دی نو د مذهب په خلاف د قول اتباع به په طريقۀ اولی سره ناجائز وي. چنانچه محقق ابن الهمام رحمه الله مجتهد فی المذهب دی. د ده د تفقه مقام يواځې د احناف د مشائخو تر منځ نه بلکه په ټول عالم کښې منل شوی دی، سره له دې دا هم له مسلماتو څخه دی چه د ده کوم تحقيقات د مذهب په خلاف دي د هغو اتباع جائز نه دی. (شرح عقود رسم المفتی ص۲۵)

**قوله**: مصر يا قصبه (لوی کلي يا کوچنی ښار) کوم چه قريۀ کبيره ويل کيږي، مختلف تعريفونه ئې شوي دي.

**اقول**: د مصر اصل تعريف يعنې حد تام ئې دا دی چه هغه په عام عرف کښې مصر يا ښار وشمارل شي. كما نقله المحرر عن الامام الثوری رحمه الله او په عرفِ عام کښې د مصريت لپاره دا لازم دي چه کوڅې او ګلۍ ولري، په بازار کښې دوه طرفه يو بل ته مخامخ سره لګيدلي دوکانونه وي، پاخه مکانونه وي او د ضرورت اکثره شيان پکښې پيدا شي. له حضرت امام اعظم رحمه الله څخه را نقل شوی تعريف «انه بلدة كبيرة فيها سكك واسواق ولها رساتيق» څخه هم اصل مقصود همدغه دی. په دې تعريف کښې ذکر شوي نور امور او نور تعريفونه د مصر حدِ تام نه دی بلکه رسوم دي کوم چه په هر زمان او مکان کښې بدليږي را بدليږي. د درايت له مخې هم ښکاره او منل شوی دی چه د کومو الفاظو پخپله شريعت کومه مخصوصه معنٰی نه ده ټاکلې هغه په اصل لغت او عام عرف باندې محموليږي. نبي کريم ﷺ له عام عرف څخه جلا د مصر لپاره کومه خاصه معنٰی نه ده متعينه کړې د دې لپاره دا لفظ به په عرفِ عام باندې پاتې کيږي. حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله پخپلو پخپلو زمانو کښې د مصر د علاماتو مطابق مختلف تعريفونه بيان کړي دي له دې امله نه په دغو تعريفونو کښې کوم تضاد شته او نه د دوی په وجود او عدم باندې د مصريت (ښاروالي) مدار دی.

**قوله**: د دې تعريف له مخې په خالص کافر حکومت لکه لندن او داسې نور هم په مصر کښې داخليږي.

**اقول**: د حيرانتيا خبره ده چه نن په دنيا کښې داسې خلک هم شته چه د لندن په مصريت (ښاروالي) کښې شک او شبهه لري.

**قوله**: همدارنګه ډير کلي هم په دې تعريف کښې داخليږي.

**اقول**: مونږ پوره نه ليکلي دي چه والي، مفتي، قاضي، قدرت على اقامة الحدود، عدم الوسعة

في اكبر المساجد، اجتماع مرافق الاهل او داسې نور د مصر حدِ تام نه دی بلکه رسوم دي. د دې لپاره د مصریت وجود او عدم د دغو امورو په وجود او عدم پورې موقوف نه دی. رسوم او علامات په مختلفو زمانو، ځایونو او حالاتو کښې بدلیږي را بدلیږي.

**قوله**: آیت کریمه د احنافو په نزد خاص له هغو ځایونو سره تعلق لري په کومو ځایونو کښې چه جُمعه واجبه ده.

اقول: د آیت د تخصیص یواځې احناف قائل نه دي بلکه په عدمِ عموم والي باندې ئې اجماع ده.

فقط والله العاصم من فتن اتباع الهوٰی، رشید احمد ۲۸ جمادی الاٰخر

## د هوٰی د اتباع لپاره د حاکم د اجازې حیله

**سوال**: په کلیو کښې د جُمعې په مسئله باندې زمونږ په ښار سنګان چه په ایراني بلوچستان کښې واقع دی، پوره اختلاف پیدا شوی دی. په دې وخت کښې د دې ځای د لرمړي صف یعني د مخکښنو علماء کرامو تر منځ اختلاف دی. د یوې ډلې په نزد په هر یوه واړه کلي کښې چه فرماندار وي یعني د صوبې (ولایت) د والي یا د علاقې د علاقه دار یا نائب علاقه دار په تحریري اجازې سره په هر ډول کلي کښې د جُمعې او اخترونو لمونځونه جائز دي ځکه چه په مجتهد فیه مسائلو کښې د حاکم حکم د اختلاف رفع کوونکی دی. او دویمه ډله د دې برعکس د عدمِ جواز قائل دي. د دواړو خواوو لیکنې ستاسو خدمت ته وړاندې کوم. د کرم او مهربانۍ له مخې په دغو باندې د نظر په اچولو سره فیصله ولیکئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې حیلې سره له مذهب څخه وتل هیڅکله جائز نه دي. د دې ډلې په وینا کښې لاندیني غلطۍ دي:

۱ - په کلیو کښې د جُمعې د صحت لپاره له حاکم څخه د اجازې تر لاسه کول کافي نه دي بلکه د حاکمِ له خوا څخه د جُمعې د اقامت امر لازم دی.

۲ - د حاکِم په امر سره هم په هر هر کلي کښې جُمعه جائزه نه ده بلکه یواځې په داسې کلیو کښې جائزه ده چیرته چه په څلورو مذهبونو کښې د یوه مذهب له مخې هلته جمعه صحیح وي. چیرته چه د مذاهبو په اتفاق سره جمعه باطله وي هلته د حاکم په امر سره هم جُمعه جائزه نه ده.

۳ - د حاکم حکم د مذهب په خلاف نافذ نه وي. له دې امله د اقامتِ جمعه فی القرٰی حکم د داسې حاکم له خوا څخه ضروري دی چه د هغه په مذهب کښې ئې جواز موجود وي. د حنفي حاکِم امر صحیح نه دی.

۴ - د حاکم امر یواځې د هغه د ولایت تر حدودو پورې محدود وي. د هغه د ولایت له حدودو څخه د باندې په کلیو کښې جُمعه جائزه نه ده.

۵ - د حاکم آمر په عزل يا مړ کيدو سره د هغه امر هم پای ته رسيږي. تر هغه وروسته د نوي حاکم له امر پرته په کليو کښې به جُمعه جائزه نه وي.

په دغو امورو باندې د دلائلو تفصيل زما په "النخبة فی مسئلة الجمعة و الخطبة" نومي رسالې کښې دی.

په دې زمانه کښې داسې حُکام نشته کوم چه د ديني جذبې لاندې د جُمعې د اقامت حکم ورکړي. همدغه د بلوچستان واقعه ده چه کوم حاکم ته د مولوي صاحبانو يوه ډله وراغله او په کليو کښې د جُمعې د لمانځه د اجازې لپاره حاضر شول. هغه ورته وويل چه تر څو ورځو وروسته د جُمعې لمونځ کوئ؟ هغوی په ځواب کښې وويل چه په هفته کښې يو ځل. حاکم وويل چه ورځئ د ورځې پنځه ځله ئې ادا کړئ. آيا د دين له شعائرو سره د دې لوبې او ټوکو مسخرو عذاب به په دغو مولوي صاحبانو باندې نه وي؟ داسې حاکم پيدا کول ډير مشکل دی کوم چه مسلمان وي او شيعه نه وي، په دين باندې مسخره کوونکی نه وي، غير حنفي وي، بيا هغه ته په کليو کښې د جُمعې د اقامت په حکم صادرولو کښې کوم تردّد (شک) نه وي يعنې يواځې اجازه نه بلکه واجب التعميل حکومتي حکم جاري کړي.

پرته له دې څخه که چيرته د حاکم په حکم سره په کليو کښې د جُمعې لمونځ رواج ش نو عوام دا د ځان لپاره سند جوړوي او د مذکوره شرائطو له رعايتولو پرته په هر ځای کښې د جُمعې لمونځونه کوي. د عوامو د دې گمراهی، او د هغوی د لمونځونو د بربادی، وبال او عذاب به په هغو مولوي صاحبانو وي کوم چه د هوی (نفساني خواهشاتو) لپاره د حاکم د اجازې پلمې لټوي.

په سوال کښې ليکل شوي دي چه په دې مسئله کښې د مخکښنو علماؤ تر منځ اختلاف دی. په دې باندې ډير حيران شوم، داسې ښکاره غلطي او له مذهب سره لوبې له کوم معمولي غوندې صاحبِ علم څخه هم ډيره لرې خبره ده پاتې شوه دا چه د لومړي صف له کوم عالِم څخه د داسې جهالت (ناپوهی) ظهور وشي. که چيرته خدای مکړه په رښتيا هم د هغه ځای د لومړي صف د علماؤ دا حالت وي نو د داسې قوم دې خدای حافظ او نگهبان شي. **فقط والله العاصم من فتن الجهالة فی زیّ العلم.**

**رشيد احمد، ۲ ذی الحجة ۱۳۹۹ هجری**

## په کليو کښې د جُمعې د لمانځه په اړه د زهري د اثر جواب

**سوال**: آيا په کلي کښې د جُمعې د جائزوونکو دا استدلال صحيح دی کوم چه د بخاري شريف په باب الجمعة کښې له يونس څخه روايت دی چه رزيق بن حکم ابن شهاب زهري رحمه الله ته خط وليکه چه آيا زه پخپلې زمکې "ايله" کښې د جُمعې لمونځ وکړم په کوم ځای کښې چه يو څو کسه سوډاني مسلمانان او داسې نور اوسيږي؟ هغه په ځواب ورکړ چه خامخا ئې وکړئ. د جُمعې د

لمانځه مجوزين له دې حديث څخه جواز را اخيستی دی محمد بن شهاب زهري رحمه الله رزيق ته په يوه کوچني کلي ايله کښې د جُمعې د ادا کولو حکم ورکړ. په دې اړوند څو پوښتنې د ځواب غوښتونکي دي:

۱ - په کوم ځای کښې چه امام زهري رحمه الله د جُمعې د لمانځه اجازه ورکړې وه دا ځای کلی وو او که د کوم ښار فناء وو؟

۲ - که چيرته کلی وو نو امام زهري رحمه الله دا فتوی له خپل اجتهاد څخه ورکړې وه؟ آيا دا فتوی د احنافو لپاره د قبول وړ ده په داسې حال کښې چه په کليو کښې د جُمعې د نه جواز په سلسله کښې په صراحت سره حديث شريف موجود دی؟

۳ - او که داسې وو چه په ايله کښې امام زهري رحمه الله له دې امله چه دی پخپله د دې ځای حاکم وو د جُمعې د لمانځه حکم ورکړی وو؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې مختلف احتمالات دي:

۱ - د دې ځای قريه والی ثابت نه دی. د والي له وجود او د خلکو له اجتماع څخه د دې ځای لوی کلی والی راجح دی.

۲ - ممکنه ده چه دا ځای د ايله د ښار فناء وو. او ايله به يو لوی ښار وو.

۳ - د رزيق استيذان (اجازه غوښتنه) په خپلې قيامګاه باندې د جُمعې د اقامت په اړه نه وو بلکه په ايله کښې د جُمعې د حضور په اړه دی.

۴ - د رزيق استفتاء په کليو کښې د جُمعې د لمانځه په اړه نه ده بلکه د امير د اذن په باره کښې دی يعنې امير عمر بن عبد العزيز رحمه الله له خوا څخه په ايله کښې د اقامت جمعه اذن دی. په دې صورت کښې د ايله په حوالي (شاو خوا علاقې) کښې اذن ثابتيږي او که نه؟ د زهري رحمه الله د ځواب حاصل دا دی چه لکه څرنګه چه ستاسو په ايله باندې ولايت د هغه په شاوخوا علاقو باندې شامل دی همدارنګه د جُمعې د اقامت اذن هم د ايله په حوالي باندې شامل دی.

۵ - دا د زهري رحمه الله اثر دی کوم چه حجت نه دی.

پورتني ځوابونه مې تبرعاً وليکل. که نه نو په قريو کښې د جُمعې په نه جواز باندې د قرآن او حديثو په مقابله کښې دا ډول اقوال کوم حيثيت نه لري. د دغو قولونو خوا ته توجه او د ځواب ورکولو کوشش د وخت ضائع کول دي. فقط والله تعالیٰ اعلم رشيد احمد ۱۶ رجب ۱۴۰۱ هجری

(ضميمه په تتمه کښې دی)

# باب الجنائز

## حیاة الانبیاء علیهم السلام

**السؤال:** ماقولکم رحمکم الله فی حیاة الانبیاء علیهم السلام اهی برزخیة اودنیویة؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق و الصواب:** حیاة الانبیاء علیهم السلام برزخیة ولکن بلغت حدّ الکمال فلذا یترتب علیها بعض الاحکام الحیاة الدنیویة من تحریم نکاح الازواج المطهرات وعدم اکل الارض اجسادهم وعدم جریان الارث فی اموالهم۔ فقط والله تعالٰی اعلم۔ ۱۵ جمادی الاولی ۱۳۷۳ھ ہجری

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال:

**سوال**: په قبر کښې د نبي کريمﷺ په حياة باندې رڼا واچوئ ډېره مهرباني به مو وي.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: د روح بقاء خو ظاهره خبره ده په دې کښې هيڅ شک نشته. د ټولو مسلمانانو بلکه د ټولو انسانانو ارواح په اتفاق سره باقي پاتې کيږي او فناء کيږي نه. پس په انبياؤ عليهم السلام يا شهيدانو باندې د احياء د اطلاق خصوصيت د دې لپاره وي چه له حيات څخه مراد عدمِ تعطّل او مرګ په معنٰی د تعطّل سره دی. په عامو محاوراتو کښې هم په تعطّل باندې د مرګ د لفظ اطلاق کيږي. دا نبياؤ عليهم السلام ارواح چونکه په قبر کښې معطّل نه وي بلکه په عباداتو لکه آذان، لمونځ، روژه حج، زکوٰة او داسې نورو باندې مشغول دي له دې امله په هغوی باندې د حيات د لفظ اطلاق شوی دی. او کوم خلک چه په دنيا کښې د خير له کارونو څخه معطّل وو په برزخ (قبر) کښې هم د هغوی ارواح له خير څخه معطّل پاتې کيږي. په دې تعطّل باندې د مرګ د لفظ اطلاق کيږي. د سعيده نفوسو (بختورو ارواحونو) لپاره تر ټولو لوی خوند په عباداتو کښې دی. که چيرته همدا نعمت له هغوی څخه په قبر کښې سلب کړی شي نو دا کار د هغوی لپاره عذاب ثابتيږي ځکه چه د لذّت او عبادت سلبيدل هم يو لوی عذاب دی پس د نبويﷺ د ارشاد په موجب "قرة عینی فی الصلوٰة" دغو سعيده ارواحو ته په قبرونو کښې هم د عبادت نعمت ورکوي او د هغوی سترګې سړول کيږي. لکه څرنګه په دنيوي ژوندانه کښې د خير د اعمالو په زرګونو مراتب دي. همدارنګه په دنيا کښې د اعمالو د تفاوت له وجې په برزخي ژوندانه کښې هم د تعطّل او د خير په اعمالو کښې د مشغول والي مختلفي مرتبې دي. له دې تقرير څخه د نبي کريمﷺ د ارشاد مطلب هم واضح کيږي چه "کله يو څوک په ما باندې درود او سلام وائي په دې وخت کښې الله تعالٰی په ما باندې زما روح را ګرځوي او زه د سلام ځواب ورکوم" د دې مقصد دا دی چه حضورﷺ هر وخت په الهي معارفو کښې مستغرق وي. چه کله څوک سلام پرې وائي نو د

هغه خوا ته توجه کوي. د الهي معارفو څخه د توجه اړول او د دنیا د عالم خوا ته توجه کول ئې د روح په را گرځولو «ردّولو» تعبیر کړی دی. لکه څرنگه چه د حضرت بلال ﷺ په وخت باندې د نه جگیدو په عذر کښې حضور نبي کریم ﷺ وفرمایل: ان الله قبض ارواحکم حین شاء وردها علیکم حین شاء. د ارواحو له قبض څخه مراد دا دی چه د خوب له وجې څخه سړی له دنیوي کارونو څخه معطل وي او له ردّ څخه مراد په دنیوي افعالو یا کارونو کښې اشتغال او عدم تعطل دی. لنډه دا چه انبیاء، شهداء او اولیاء چونکه په قبرونو کښې د خیر له افعالو څخه معطل نهدي د دې لپاره په هغو باندې د احیاء اطلاق شوی دی. باقي دا اعتراض بې ځایه دی چه له قبرونو څخه د آذان او داسې نورو آوازونه ولې نه اوریدل کیږي یا اولیاء له قبرونو څخه په را وتو سره په حج کولو او داسې نورو کارونو په کولو کښې ولې نه تر سترگو کیږي. د دې لپاره چه عالم برزخ له عالم رؤیا سره مشابهت لري. د عیني وجود او ذهني وجود غوندې منامي او برزخي وجود هم یو مستقل وجود دی. لکه څرنگه چه د خوبوړي سړي څنگ ته کښیناستونکي ته هیڅ نه معلومیږي چه په دې وخت کښې ویده سړی په خوب کښې څه ویني حالانکه هغه په خوب کښې کله کله په عذاب کښې وي. ماریا لړم تک ورکوي یا ئې څوک قتل کوي یا په خوب کښې جماع کوي یا میوې او داسې نور ښه ښه خوراکونه کوي یا په خوب کښې حج، زکوٰة، آذان، لمونځ، روژه او داسې نور کارونه سر ته رسوي لیک څنگ ته ورسره ناست سړي ته د یوې ذرې غوندې احساس هم نه کیږي. همدارنگه د عالم برزخ افعال، اعمال او عذاب قبر او داسې نور تفصیلات د دې عالَم له اوسیدونکو څخه پټ او مخفي دي. هکذا افاد مولانا الشاه محمّد انور الکشمیری قدّس الله سرّه العزیز.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ صفر ۱۳۷۳ هجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: نن صبا په پنجاب کښې د حیاة النبي مسئلې ډیر زور اخیستی دی. په هر هر ځای کښې په دې اړه بحثونه په نظر راځي. هیله ده چه په دې اړوند محقق او فیصله کوونکی قول ولیکئ او د خلکو لارښوونه وکړئ. والاجر عند الله الکریم.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: د بنده په خیال کښې دې مسئلې ته دواړو خواوو دومره د اهمیت په ورکولو سره دومره غلو او زیاتی کړی دی چه له حدودو څخه ئې تجاوز کړی دی. د مسئلې دومره اهمیت نه وو چه په دې باندې تر اختلاف او افتراق پورې خلک ورسیږي. او که څه اختلاف پکښې وای نو یواځې به تر علماؤ پورې ئې محدود ساتل ضروري وو. په زرگونو مسائلو کښې د علماؤ د اختلاف مثالونه شته لیکن داسې مسائلو لره د عوامو مخې ته په راوړلو د عامو مؤمنانو ذهنونه مشوّش کول، مناظره کوونکو ته اخطار ورکول، د یوه او بل په خلاف اشتهارونه

لګول او خپرول او په همدې موضوع باندې د جلسې په جوړولو سره د اُمّت د اتفاق دیوال په دې ړول نړول هیڅ جواز نه لري. د علماؤ افتراق (یو له بله جلاوالی) په لازمي توګه دا نتیجه لري چه عوام له دیني علماؤ څخه په متنفر کیدو سره د دین له رسی، رغبت او محبت څخه هم لاس مینځي. د دغو حالاتو له مخې په دې مسئلې باندې د قلم په پورته کولو باندې نه عقل تیار دی او نه طبیعت. مطلق حیات د قرآن په نصّ سره ثابت دی. بس په دې اجمال باندې ایمان لرل فرض دي. د دې تفصیل نه منصوص دی او نه ئې په تفصیل باندې ایمان درلودل ضروري دي او نه مونږ ئې په تحقیق او تدقیق باندې مکلف یو. ما ته دا ویره ده چه د دې په تحقیق پسې کیدل چه ګستاخي نه وي او که نه نو کم تر کمه په غیر ضروري کار کښې د وخت او قوت د ضائع کولو له ګناه څخه خالي نه دی. **قال رسول الله ﷺ من حسن اسلام المرء ترکه مالا یعینه، وقال ﷺ علامة اعراض الله تعالیٰ من العبد اشتغاله بما لا یعینه، وقال ﷺ اللّٰهم انی اعوذ بك من علم لا ینفع و قلب لا یخشع و من دعوة لا یستجاب لها.** د تعوّذ (پناه غوښتلو) له دغو دریو جملو له ترتیب څخه ثابتیږي چه په علم غیر نافع (بې فایدې علم) کښې مشغولیدل د زړه د خشوع د له منځه تللو سبب دی. او د خشوع له منځه تلل د دُعاء د نه قبلیدلو سبب دی. **فقط والله تعالیٰ اعلم** **۳۰ ذی قعده ۱۳۷۷ هجری**

## په جومات کښې د جنازې لمونځ مکروه دی

**سوال**: په جومات کښې د جنازې د لمانځه ادا کول څنګه دي؟ که چیرته جائز نه وي نو په حرمین شریفینو کښې ولې ادا کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بې له عذره په جومات کښې د جنازې لمونځ مکروه تحریمي[1] دی. که جنازه له جومات څخه د باندې وي او که دننه وي. البته که چیرته د لمانځه لپاره کوم بل ځای نه وي نو د عذر له وجې په جومات کښې مکروه نه دی. **قال فی العلائیة و کرهت تحریماً وقیل تنزیهاً فی مسجد جماعة هو ای المیّت فیه (الی ان قال) والمختار الکراهة مطلقاً وفی الشامیة انما تکره فی المسجد بلا عذر فان کان فلا الخ. (ردالمحتار ج۱)** په حرمین شریفینو کښې د جنازې له لمانځه څخه استدلال صحیح نه دی ځکه چه دا د هغوی مسلک دی. **فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۶ ذی قعده ۱۳۷۱ هجری**

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: امام او ښي مقتدیان چه له جومات څخه د باندې وي او پاتې مقتدیان چه په جومات

---

[1] - د تنزیهي کراهت قول راجح دی. تفصیل ئې په تتمه کښې دی.

کښې وي نو آیا د جنازې لمونځ ادا کیږي او که نه؟ د هدایې په حاشیه کښې دا صورت په اتفاق سره جائز دی اذا کانت الجنازة فی المسجد فالصلوة علیها مکروهة باتفاق اصحابنا وان کانت الجنازة والامام وبعض القوم خارج المسجد والباقی فیه لم تکره باتفاق اصحابنا وان کانت الجنازة وحدها خارج المسجد ففیه اختلاف المشائخ رحمهم الله تعالی بعضهم قالوا یکره منهم السید ابو شجاع لما ان المسجد بنی لاداء المکتوبات وقال بعضهم لا یکره لان المعنی الموجب للکراهة وهو احتمال تلویث المسجد مفقود. (هدایه اولین باب الجنائز ص۱۸۱) دې صورت لره د دار العلوم دیوبند مطبوعه دار العلوم کراچي په اصلاحاتو کښې هم بې له کراهته جائز بللی دی د کرم او مهربانۍ له مخې د پورتنې یاد شوې عبارت په رڼا کښې مو له څواب څخه خبر کړئ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د هدایې دا حاشیه له عنایه څخه را اخیستل شوې ده نورو ټولو فقهاء کرامو دا خبره غلطه ګڼلې ده او په دې صورت کښې ئې د جواز با لاتفاق په قول باندې تردید کړی دی

قال العلامة ابن نجیم رحمه الله (قوله ولا فی مسجد جماعة) لحدیث ابی داوٗد مرفوعاً من صلی علی میت فی المسجد فلا اجر له وفی روایة فلا شئ له اطلقه فشمل ما اذا کان المیت والقوم فی المسجد او کان المیت خارج المسجد والقوم فی المسجد او کان الامام مع بعض القوم خارج المسجد والقوم والباقون فی المسجد او المیت فی المسجد والامام والقوم خارج المسجد وهو المختار خلافا لما اورده النسفی کذا فی الخلاصة وهذا الاطلاق فی الکراهة بناء علی ان المسجد انما بنی للصلوة المکتوبة وتوابعها من النوافل والذکر وتدریس العلم وقیل لا یکره وهو مبنی علی ان الکراهة لاحتمال تلویث المسجد والاول هو الاوفق لاطلاق الحدیث کذا فی فتح القدیر فما فی غایة البیان والعنایة من ان المیت وبعض القوم اذا کانا خارج المسجد والباقون فیه لا کراهة اتفاقاً ممنوع. (البحر الرائق ج۲، ص۱۸۶)

**په لاندینې کتابونو کښې هم همدغه فیصله لیکلې ده**

فتح القدیر ج۱، ص۴۶۲، تبیین الحقائق مع حاشیة الشلبی ج۱، ص۲۴۳، نور الایضاح ص۱۲۸، مراقی الفلاح ص۳۲۷، عالمگیریة ج۱، ص۱۶۵، الدر المختار مع رد المحتار ج۱، ص۸۲۷، بذل المجهود ج۵، ص۲۰۲، عمدة القاری ج۴، ص۱۱۷، الکوکب الدری ص۳۱۵، العرف الشذی ص۳۵۱، کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱، ص۴۲۸، فتاوی رشیدیه ص۳۵۲، امداد الفتاوی ج۱، ص۳۳۸، فتاوی دار العلوم دیوبند ج۵، ص۳۰۵، بهشتی گوهر ص۳۳۲ وغیرها من کتب المذهب فی الفقه والحدیث.

غرض دا چه د مړي، امام او ځینو مقتدیانو له جومات څخه د باندې درید و په صورت کښې د عنایه بې له کراهته د جواز په اتفاق سره قول په اتفاق سره صحیح نه دی. ټولو په اتفاق سره دا رد کړی دی. او علامة شامي رحمه الله په رد المحتار او منحة الخالق کښې له نهر څخه د تطبیق صورت را نقل کړی دی چه په اتفاق سره د عدم کراهت قول یواځې د هغو خلکو په حق کښې دی چه کوم چه له جومات څخه د باندې دي، د جنازې کوم لمونځ کوونکي چه په جومات کښې د ننه دي د هغو د لمانځه په باره کښې اختلاف دی او د کراهت خوا ئې راجحه ده.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ذی القعده ۱۴۰۲ هجری

## د جنازې د لمانځه سلام په ټیټ اواز سره د ویلو حکم

**سوال**: یو مولوي صاحب وائي چه د جنازې د لمانځه سلام په ټیټ آواز سره ویل افضل دي. آیا دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې درې قولونه دي:

۱ - دواړه سلامونه به په ټیټ آواز سره وائي.

۲ - یو سلام به په لوړ آواز سره وائي او بل به په ټیټ آواز سره.

۳ - دواړه سلامونه به په لوړ آواز سره وائي.

في نفسه لومړنی صورت افضل دی. لیکن په دریم صورت باندې د عام تعامل له وجې دې ته هم فضیلت حاصل دی. د لومړي صورت غوره کول په عوامو کښې د فتنې او انتشار موجب ګرځي له دې امله له دې څخه احتراز باید وشي.

قال فی العلائیة و یسر الکل الا التکبیر لکن فی البدائع العمل فی زماننا علی الجهر بالتسلیم و فی جواهر الفتاوی یجهر بواحدة و قال ابن عابدین رحمه الله و الذی فی البدائع و لا یجهر بما یقرأ عقب کل تکبیرة لانه ذکر و السنة فیه المخافتة و هل یرفع صوته بالتسلیم لم یتعرض له فی ظاهر الروایة و ذکر الحسن بن زیاد رحمه الله انه لا یرفع لانه للاعلام و لا حاجة له لان التسلیم مشروع عقب التکبیر بلا فصل و لکن العمل فی زماننا علی خلافه اه (ردالمحتار ج۱، ص۸۱۷)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ ذیقعده ۱۴۰۲ هجری

## ښځو ته هدیرې یا قبرستان ته تګ منع دی

**سوال**: د ښځو لپاره هدیرې یا قبرستان ته تلل جائز دي او که ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: ناجائز دي. په حدیث کښې په داسې ښځو باندې لعنت راغلی دی. خصوصاً په دې زمانې کښې په خرافاتو باندې د نظر په اچولو سره په هیڅ حالت کښې د

اجازې ګنجائش نشته. د سدّاللذرائع وحسماً للمادة له مخې په کلي توګه منع کول ئې ضروري دي

قال الخير الرملي ان كان ذلك لتجديد الحزن و البكاء و الندب على ما جرت به عادتهن فلا تجوز و عليه حمل حديث لعن الله زائرات القبور وان كان للاعتبار و الترحم من غير بكاء و التبرك بزيارة قبور الصالحين فلا بأس اذا كن عجائز ويكره اذا كن شواب كحضور الجماعة فى المساجد اه وهو توفيق حسن (رد المحتار ج ۱، ص ۸۴۳) و يعضده المعنى الحادث باختلاف الزمان الذى اشارت اليه عائشة رضى الله تعالى عنها بقولها لو ان رسول الله ﷺ رأى ما احدث النساء بعده لمنعهن كما منعت نساء بنى اسرائيل وهذا فى نساء زمانها فما ظنك بنساء زماننا. فقط والله تعالى اعلم ۱۳ محرم ۱۳۷۲ هجری

## په قبر باندې د قرآنكريم د لوستلو حكم

**سوال**: په قبر باندې د قرآنكريم په تلاوت كولو سره مړي ته ئې ثواب بخښل جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: هو جائز دي. البته په اجرت باندې د قرآنكريم پخپله تلاوت كول او په بل چا باندې ئې تلاوت كول ناجائز دي.

(قوله ويقرأ يٰس) لما ورد من دخل المقابر فقرأ خفف الله عنهم يومئذ و كان له بعدد من فيها حسنات بحر. و فى شرح اللباب ويقرأ من القرآن ما تيسر له من الفاتحة واوّل البقرة الى المفلحون و اٰية الكرسى و اٰمن الرسول و سورة يٰس و تبارك الملك و سورة التكاثر و الاخلاص اثنى عشر مرة او احدى عشر او سبعاً او ثلاثاً ثم يقول اللّٰهم اوصل ثواب ما قرأناه الى فلان او اليهم. (رد المحتار ج ۱) فقط والله تعالى اعلم

۱۳ محرم ۱۳۷۲ هجری

## د پاخه قبر د جوړولو حكم

**سوال**: د علماؤ يا سيدانو قبرونه په پخو خښتو باندې جوړول جائز دي او كه نه؟ په شاميه كښې دي چه وفى الاحكام عن جامع الفتاوٰى وقيل لا يكره اذا كان الميّت من المشائخ والعلماء والسادات.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: په قبر باندې پخه خښته او د چونې لګول جائز نه دي. البته په خټو باندې ئې ګِلول جائز دي

قال فى شرح التنوير ولا يجصص للنهى عنه ولا يطين ولا يرفع عليه بناء وقيل لا بأس به وهو المختار. وفى الشامية (قوله وقيل لا بأس به الخ) المناسب ذكره عقب قوله ولا يطين لان عبارة السراجية كما نقله الرحمتى

ذکر فی تجرید ابی الفضل ان تطیین القبور مکروه والمختار انه لایکره اه. وعزا الیه المصنف فی المنح ایضاً واما البناء علیه فلم ار من اختار جوازه. (شامية ج۱)

د تعمیر په اړه چه کومه جزئیه له قیل سره ذکر شوې ده هغه ضعیفه ده او د صحیح حدیث او له امام څخه د روایت په خلاف ده. عن ابی حنیفة رحمه الله یکره ان یبنی علیه بناء من بیت او قبة او نحو ذٰلك لما روی جابر رضی الله عنه نهی رسول الله ﷺ عن تجصیص القبور و ان یکتب علیها و ان یبنی علیها رواه مسلم. (شامیه ج۱)

په ځانګړې توګه د بدعت او خرافاتو له فتنو څخه په دې ډکه زمانه کښې د ضلالت له دې ډول اسبابو څخه احتراز (پرهیز) ډیر ضروري دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ جمادی الاولیٰ ۱۳۷۲ هجری

## په قبر کښې د خښتې، ډبرې یا تیرې، اوسپنې او داسې نورو د لګولو حکم

**سوال**: په قبر کښې د ضرورت په وخت د سیمټو یا له سیمټو او شګو څخه د جوړې شوې خښتې استعمالول جائز دي او که نه؟ د سیمټو یا له خاورو څخه په پخې شوې خښتې کښې څه فرق شته او که د دواړو حکم یو دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال شارح التنویر رحمه الله ولا بأس باتخاذ تابوت ولو من حجر او حدید له عند الحاجة کرخاوة الارض و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله ولا بأس باتخاذ تابوت الخ) ای یرخص ذٰلك عند الحاجة و الا کره کما قدمناه انفاً قال فی الحلیة. نقل غیر واحد عن الامام ابن الفضل انه جوزه فی اراضیهم لرخاوتها و قال لکن ینبغی ان یفرش التراب و تطین الطبقة العلیا مما یلی المیت و یجعل اللبن الخفیف علی یمین المیت و یساره لیصیر بمنزلة اللحد، و المراد بقوله ینبغی یسن کما افصح به فخر الاسلام و غیره بل فی الینابیع و السنة ان یفرش فی القبر التراب. ثم لم یتعقبوا الرخصة فی اتخاذه من حدید بشیٔ ولا شك فی کراهته کما هو ظاهر الوجه اه ای لانه لا یعمل الا بالنار فیکون کالآجر المطبوخ بها، کما یأتی. (رد المحتار ج۱، ص۸۳۶) و فی شرح التنویر و یستوی اللبن علیه و القصب لا الآجر المطبوخ و الخشب لو حوله امّا فوقه فلا یکره ابن ملك، و جاز ذٰلك حوله بارض رخوة کالتابوت، و فی الشامیة (قوله لو حوله الخ) قال فی الحلیة و کرهوا الآجر و الواح الخشب وقال الامام التمرتاشی هٰذا اذا کان حول المیت، فلو فوقه لا یکره لانه یکون عصمة للسبع و قال مشائخ بخاری لا یکره الآجر فی بلدتنا للحاجة الیه لضعف الاراضی (قوله و جاز ذٰلك) ای الآجر و الخشب (رد المحتار

ج،۱،ص۸۳۸) وفی العلائیة ولا یجصّص للنهی عنه ولا یطین ولا یرفع علیه بناء وقیل لا بأس به وهو المختار. وفی الشامیة (قوله وقیل لا بأس به الخ) المناسب ذکره عقب قوله ولا یطین لانّ عبارة السراجیة کما نقله الرحمتی ذکر فی تجرید ابی الفضل ان تطیین القبور مکروه. والمختار انه لا یکره اه وعزاه الیها المصنّف فی المنح ایضاً. و امّا البناء علیه فلم ار من اختاره جوازه. وفی شرح المنیة عن منیة المفتی المختار انه لا یکره التطیین وعن ابی حنیفة رحمه الله تعالیٰ یکره ان یبنی علیه بناء من بیت او قبّة او نحو ذلك. لما روی جابر رضی الله تعالیٰ عنه نهی رسول الله ﷺ عن تجصیص القبور وان یکتب علیها وان یبنی علیها. رواه مسلم وغیره اه نعم فی الامداد عن الکبریٰ والیوم اعتادو التسنیم باللبن صیانة للقبر عن النبش ورأوا ذلك حسناً وقال ﷺ ما راٰه المسلمون حسناً فهو عندالله حسن اه. (ردالمحتار ج،۱،ص۸۳۹)

**له پورتني عبارتونو څخه لاندیني امور ثابت شول:**

۱ - د قبر په منځ کښې د مړي په شا و خوا کښې پرته له ضرورت څخه د لرګي تختې یا د ړې. ډبرې یا تیږې. د سیمټو خښتې. اوسپنه او په بټیو کښې د پخو شویو خښتو لګول مکروه تحریمي دي.

۲ - که چیرته زمکه ډیره نرمه یا نمجنه وه او د قبر د لویدلو ویره وي نو د ضرورت په اندازه د نوموړي شیانو د لګولو اجازه شته. که چیرته په لرګیو. ډبرو یا د سیمټو په خښتو باندې ضرورت پوره کیده نو په بټیو کښې دې له پخو شویو خښتو او اوسپنې څخه احتراز وکړي. د دې لپاره چه په هغو کښې د اور اثر دی. په ډبره یا د سیمټو په خښته کښې دا قباحت نشته. د داسې ضرورت په وخت کښې لرګیو. ډبرو او اوسپنې په تابوت کښې د کیښودو په صورت کښې د دفن کولو ګنجائش هم شته. البته د اوسپنې له تابوت څخه تر خپله وسه پورې احتراز لازم دی. په هر ډول تابوت کښې بهتره دا ده چه لاندې خاوره ور واچوي او د مړي په دواړو خواوو کښې خامې یا اومې خښتې ولګوي او د سرپوښ د ننه طرف ته ختیه ورکړي.

۳ - د مړي په برسیره طرف یعنې د سوریو په پټولو کښې بې له ضرورته هم د لرګي. ډبرې. د سیمټو ټکره. اوسپنه او داسې نور لګول جائز دي.

۴ - د قبر برسیره طرف په ختیو باندې د ګلولو ګنجائش شته لیکن احتراز ترې بهتر دی.

۵ - د قبر پر سر باندې د سمیټو پلستر او هر ډول خښتې لګول ناجائز دي. د پلستر او بناء ممانعت په صراحت سره په حدیثو کښې راغلی دی. د خښتو لګول هم په بناء کښې داخل دی کوم چه د زینت په غرض سره حرام دی. او د استحکام (د قبر د ټینګوالي) په غرض سره مکروه تحریمي دی چه په ګناه کښې له حرامو سره برابر دی. البته د درندګانو له ویرې د خامو خښتو د لګولو

گنجائش شته فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ رجب ۱۴۰۰ هجری

## په قبر باندې چاردیوالي یا د چوترې جوړول منع دي

**سوال**: په قبر باندې پرته له چت څخه څلور پنځه فټه لوړه چاردیوالي د حفاظت په غرض سره جائزه ده او که نه؟ همدارنګه چوتره جوړول او بیا په هغې باندې برسیره قبر جوړول تر څو چه د باران له سیلاب څخه وساتل شي او د زائرینو د کښیناستو لپاره صفا ځای وګرځي جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په قبر باندې هر ډول آبادي یا بناء د زینت (ښائست) په غرض سره حرامه ده او د استحکام په غرض سره مکروه تحریمي ده. په ګناه کښې مکروه تحریمي هم له حرامو سره برابره ده. د چاردیوالي اګر که د یوې خښتې وي بناء کیدل ظاهره خبره ده. او چوتره بلکه له اصل خاورې څخه زیاته خاوره اچول هم په بناء کښې داخل دي.

قال فی العلائیة ویهال التراب علیه وتکره الزیادة علیه من التراب لانه بمنزلة البناء، وفی الشامیة (قوله وتکره الزیادة علیه) لما فی صحیح مسلم عن جابر رضی الله تعالیٰ عنه قال نهی رسول الله ﷺ ان یجصص القبر وان یبنی علیه، زاد ابو داؤد او یزاد علیه حلیة (قوله لانه بمنزلة البناء) کذا فی البدائع وظاهره ان الکراهة تحریمیة وهو مقتضی النهی المذکور لکن نظر صاحب الحلیة فی هذا التعلیل وقال وروی عن محمد رحمه الله تعالیٰ انه لا بأس بذلك ویؤیده ما روی الشافعی وغیره عن جعفر بن محمد عن ابیه رضی الله تعالیٰ عنه ان رسول الله ﷺ رش علی قبر ابنه ابراهیم ووضع علیه حصباء وهو مرسل صحیح، فتحمل الکراهة علی الزیادة الفاحشة وعدمها علی القلیلة المبلغة له مقدار شبر او ما فوقه قلیلاً. (رد المحتار ج۱، ص۸۳۸) وقال ابن عابدین رحمه الله فی احیاء الموات وان حوطها وسنمها بحیث یعصم الماء یکون احیاء لانه من جملة البناء. (رد المحتار ج۵، ص۳۰۸)

په امداد الاحکام کښې چاردیوالي لره په قبر باندې له بناء څخه خارج بلل غیر ظاهر دی. او که چیرته فرض کړی دا صحیح هم وي چه چاردیوالي له بناء څخه خارج دی نو د عدم جواز وجه ئې دا ده چه په دې کښې د ښائست او د مړي د عظمت له اظهار څخه پرته بل مقصود نه وي. البته په ټول قبرستان باندې د چاردیوالي په تیرولو سره د قبرستان د حدودو تعیین او حفاظت مقصود وي د دې لپاره جائزه ده. پرته له دې څخه په قبر باندې د چاردیوالي رسم او رواج د قبّه جوړولو ذریعه جوړیږي. چنانچه د یو مشهور عالِم په قبر باندې د ځینو حیله جوړوونکو تجویز د ګنبدې غوندې ښکاریدونکې داسې چاردیوالي ده کومه چه له څلورو خواوو څخه بنده وي او یواځې د قبر برسیره طرف ښکاره وي. برسیره پر دې په چاردیوالي کښې د نورو خلکو د حق د لاندې کولو ګناه هم ده.

چاردیوالي احاطه اګر که هر څومره هم کوچنۍ وي نو د دیوالونو لاندې راتلونکې زمکه بې له ضرورته په مشغولولو کښې د نورو حق تلفي ښکاره خبره ده.

د زائرینو لپاره د صفائي په غرض سره د چوترې جوړول کوم شرعي مقصد نه دی او که چیرته د سیلاب ویره وي نو د قبر په منځ کښې د خښتو لګول او د سیمټو په پلستر سره د قبر د سوریو په بندولو سره د حفاظت انتظام کیدلی شي. په دې تدبیر سره قبر له کښیناستلو څخه محفوظ پاتې کیږي او د نخښې د باقي ساتلو لپاره د قبر د سر په طرف باندې کومه ډبره لګول یا لیکلې شوې لوحه او داسې نور لګول کافي دي. که چیرته سیلاب د قبر خاوره یوسي نو په همدې نخښې باندې دوباره د خاورو په اچولو سره قبر صحیح کیدلی شي. سره له دې که چیرته په قبر باندې په رښتیا هم د ډیرو خاورو اچولو ضرورت وي نو د چوترې په ځای د قبر په څلورو خواوو کښې په زمکې باندې خاوره واچوی او د ضرورت په اندازه ئې جګه کړئ. همدارنګه د قبر د ضرورت حفاظت یواځې تر هغه وخته پورې دی تر څو پورې چه مړی خاورې شوی نه وي، تر دې وروسته د حفاظت ضرورت ئې نشته. د دې لپاره د قبر د زیات مضبوط والي اهتمام صحیح نه دی.

قال ابن نجيم رحمه الله لانهما (الأجر و الخشب) لاحكام البناء و القبر موضع البلاء. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۴) فقط والله تعالى اعلم

۲۵ رجب ۱۴۰۰ هجری

## د جنازې په لمانځه کښې د مسبوق حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک د جنازې لمانځه ته لږ ناوخته را ورسیږي نو فوت شوي تکبیرونه به څنګه ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مقتدي باید چه کله ورسیږي نو تکبیر دې ووائي او له امام سره دې شریک شي اګر که امام څلورم تکبیر ویلی وي لیکن سلام ئې نه وي اړولی. نور تکبیرونه دې د امام تر فارغیدو وروسته ووائي. که چیرته د شریکیدو په وخت کښې په دې پوه شي چه دا څووم تکبیر دی نو هغه دُعاء دې ووائي کومه چه امام وائي او په فوت شوي تکبیرونو کښې دې باقي دُعاګانې په ترتیب سره ووائي. که چیرته دا ورته معلومه نه وي چه امام په کوم تکبیر کښې دی نو د لومړي تکبیر دُعاء یعنې ثناء دې ووائي له دې وروسته دې په همدې ترتیب سره دُعاګانې وائي په فوت شوي تکبیرونو کښې که چیرته د دُعاګانو په ویلو سره د جنازې د پورته کولو ویره وي نو دعاګانې دې نه وائي یواځې تکبیرونه دې ووائي او بس. که چیرته جنازه پوره کړی شوه لیکن تر اوسه پورې زمکې ته لا نژدې ده نو تکبیر دې ووائي او که چیرته د پورته کوونکو اوږو ته نژدې شوې وه نو تکبیر دې نه وائي. لمونځ ئې نه صحیح کیږي.

قال فی شرح التنویر و المسبوق ببعض التکبیرات لا یکبر فی الحال بل ینتظر تکبیر الامام لیکبر معه

الافتتاح لما مرّ ان كل تكبيرة كركعة المسبوق لا يبدأ بما فاته وقال ابو يوسف رحمه الله تعالى يكبر حين يحضر كما لا ينتظر الحاضر في حال التحريمة بل يكبر اتفاقاً للتحريمة لانه كالمدرك ثم يكبران ما فاتهما بعد الفراغ نسقاً بلا دعاء ان خشيا رفع الميّت على الاعناق وما في المجتبى يكبر الكل للحال شاذ نهر فلو جاء المسبوق بعد تكبيرة الامام الرابعة فاتته الصلوة لتعذر الدخول في تكبيرة الامام وعند ابي يوسف رحمه الله يدخل لبقاء التحريمة فاذا سلم الامام كبّر ثلاثاً كما في الحاضر وعليه الفتوى ذكره الحلبي اه. والتفصيل في الشامية. فقط والله تعالى اعلم ۲ ذي الحجة ۱۳۷۲ هجری

## د پورتني سوال په اړه يو بل سوال

**سوال**: تاسو د جنازې په لمانځه کښې د مسبوق ټول احکام د امام ابو يوسف رحمه الله په قول باندې فتوی ورکړې ده حالانکه په در مختار کښې ئې د ابو يوسف صاحب قول يواځې په دې صورت کښې مفتی به ليکلی دی چه کله يو سړی له امام سره تر څلورم تکبير وروسته شريک شي. په بهشتي زيور کښې هم همدا ډول دي. لهذا په دې باندې نظر ثاني وکړئ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جنازې په لمانځه کښې د مسبوق په ټول تفصيل کښې د ابو يوسف رحمه الله قول مفتی به دی چه په دې باندې لاندېني شواهد دي.

۱ - د در مختار د عبارت سياق با لخصوص **فلو جاء بعد تكبيرة الامام الرابعة** کښې له تفريعيه فاء څخه ثابتيږي چه تر څلورم تکبير وروسته شرکت کومه مستقله مسئله نه ده بلکه د مسبوق په وړاندېني حکم باندې تفريع دی.

۲ - **قال في الشامية (قوله فلو جاء الخ) هذا ثمرة الخلاف بينهما وبين ابي يوسف رحمهم الله تعالى كما في النهر.** په دې کښې تصريح ده چه تر څلورم تکبير وروسته شرکت مستقله خلافيه مسئله نه ده بلکه د وړاندېني خلاف فرع او ثمره ده.

۳ - **وفيها (قوله لتعذر الدخول الخ) لما مرّ ان المسبوق ينتظر الامام ليكبر معه وبعد الرابعة لم يبق على الامام تكبير حتى ينتظره ليتابعه فيه. قال في الدرر والاصل في الباب عندهما ان المقتدي يدخل في تكبيرة الامام فاذا فرغ الامام من الرابعة تعذر عليه الدخول وعند ابي يوسف يدخل اذا بقيت التحريمة كذا في البدائع اه.**

په دې کښې هم تصريح ده چه تر څلورم تکبير وروسته د شرکت حکم په مخکښيني قاعدې باندې متفرع ده.

۴ ـ وفیها (قوله وعلیه الفتوی) ای علی قول ابی یوسف فی مسألة المسبوق خلافاً لما مشی علیه فی المتن. (رد المحتار ج۱، ص۸۲۱)

په دې کښې مسبوق عام دی کوم چه ټولو صورتونو لره شامل دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳۰ ذی الحجة ۱۴۰۰ هجری

## په څپلیو باندې له پاسه د دریدلو په صورت کښې د جنازې د لمانځه حکم

**سوال**: که چیرته د څپلیو تلی مردارې او دننه او برسیره طرف ئې پاک وي نو چه څوک ئې له پښو څخه وباسي او له پاسه پرې ودریږي او د جنازې لمونځ وکړي. آیا په داسې کولو سره د جنازې لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! صحیح کیږي. هرداسې شی چه د هغه په یوه طرف باندې د نجاست په لګیدو سره ئې بل طرف په نجاست باندې ککړ نه وي د هغه په پاک طرف باندې لمونځ جائز دی. البته د داسې څپلیو په پښو کولو سره لمونځ صحیح نه دی ځکه چه د لمونځ کوونکي په حرکت سره نجس طرف هم حرکت کوي کوم چه د لمانځه مانع دی. البته که چیرته له لاندې څخه تلی ئې هم پاکې وي نو د اغوستو په صورت کښې ئې هم لمونځ صحیح کیږي.

قال فی شرح التنویر فی مفسدات الصلوة وصلوته علی مصلی مضرب نجس البطانة. وفی الشامیة ثم هذا قول ابی یوسف وعن محمد یجوز (الیٰ قوله) وعلی هذا لو صلّی علی حجر الرحی او باب او بساط غلیظ او مکعب اعلاه طاهر وباطنه نجس عند ابی یوسف لا یجوز نظرا الی اتحاد المحل فاستوی ظاهره وباطنه کالثوب الصفیق وعند محمد یجوز لانه صلی فی موضع طاهر کثوب طاهر تحته ثوب نجس بخلاف الثوب الصفیق لان الظاهر نفاذ الرطوبة الی الوجه الأخر اه وظاهره ترجیح قول محمّد وهو الاشبه ورجّح فی الخانیة فی مسألة الثوب قول ابی یوسف بأنه اقرب الی الاحتیاط وتمامه فی الحلیة وذکر فی المنیة وشرحها اذا کانت النجاسة علی باطن اللبنة او الأجرة وصلی علی ظاهرها جاز وکذا الخشبة ان کانت غلیظة بحیث یمکن ان تنشر نصفین فیما بین الوجه الذی فیه النجاسة و الوجه الأخر والا فلا اه وذکر فی الحلیة ان مسألة اللبنة والأجرة علی الاختلاف المار بینهما وانه فی الخانیة جزم بالجواز وهو اشارة الی اختیاره وهو حسنٌ متجه وکذا مسألة الخشبة علی الاختلاف وان الاشبه الجواز علیها مطلقا. ثم ایّده باوجه فراجعه (رد المحتار ج۱) وفی الهندیة ولو خلع نعلیه وقام علیهما جاز سواء کان ما یلی الارض منه نجساً او طاهراً اذا کان ما یلی القدم طاهراً (عالمگیریة ج۱، ص۶۲) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۵ ربیع الاول ۱۳۷۴ هجری

## جومات ته په وقف شوې زمکې باندې د قبر د جوړولو حکم

**سوال**: يوه حجره کومه چه د جومات لپاره وقف ده د جومات متولي په هغې کښې خپل پلار دفن کړی دی. آيا د ده دا کار شرعاً جائز دی؟ او د داسې متولي لپاره شرعاً څه حکم دې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا خيانت دی او د داسې متولي عزل کول واجب دي او په حاکم او عامو مسلمانانو باندې لازم دي چه دا قبر لوټ کړي او مړی ترې وباسي يا قبر له زمکې سره برابر کړي ځکه چه د قبر په پرېښودو سره د جومات د وقف د زمکې تعطل او اشغال با لغير لازميږي قال فی التنوير ولا يخرج منه الا ان تكون الارض مغصوبة او اخذت بشفعة وفی الشرح يخير المالك اخراجه و مساواته بالارض. وفی الحاشيه لان حقه فی باطنها وظاهرها فان شاء ترك حقه فی باطنها وان شاء استوفاه. (رد المحتار ج۱،ص۸۴۰) د شامي له عبارت **واحترز بالمغصوبة عما اذا كانت وقفاً ـ الخ** څخه شبهه مه کوئ ځکه چه دلته له وقف څخه وقف د قبرونو لپاره دی. چنانچه پخپله په شامي کښې بل ځای د دې تصريح شوی دی. قال فی شرح التنوير حفر فدفن فيه آخر ميتاً فهو على ثلاثة اوجه ان الارض للحافر فله نبشه وله تسويته وان مباحة فله قيمة حفره وان وقفاً فكذلك وفی الشامية هذا لو وقفت للدفن فلو على مسجد للزرع والغلة فكالمملوكة تأمل. (ردالمحتار ج۱،ص۱۷۴، كتاب الغصب)

فقط والله تعالى اعلم ۱۳ ربيع الآخر ۱۳۷۵ هجری

## د بل چا په زمکه کښې د مړي د ښخولو حکم

**سوال**: که چيرته يو څوک خپل مړی پرته د مالک له اجازې څخه د بل چا په زمکه کښې ښخ کړي نو د زمکې مالک هغوی د مړي په ايستلو باندې مجبورولی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مړي متولي ته دې وويل شي چه خپل مړی وباسه که چيرته ئې و نه باسي نو د زمکې مالک دا اختيار لري چه قبر را لوټ کړي او مړی ترې را وباسي يا قبر له زمکې سره برابر او يو شان کړي.

قال فی شرح التنوير يخير المالك بين اخراجه ومساواته بالارض. وفی الشامية لان حقه فی باطنها وظاهرها فان شاء ترك حقه فی باطنها وان شاء استوفاه. (ردالمحتار ج۱،ص۸۴۰)

فقط والله تعالى اعلم ۱۳ ربيع الآخر ۱۳۷۵ هجری

## په قبر باندې د سلام اچولو څه فائده؟

**سوال**: د انسان تر فوت کيدلو وروسته روح جنت يا دوزخ ته داخليږي. نو په قبرستان کښې د سلام اچولو ځواب د چا له خوا څخه ورکول کيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مړي د روح تعلق له قبر سره پاتې کیږي. د دې لپاره السلام علیکم ویل کیږي. د تفصیل لپاره کتاب الروح لابن قیم الجوزي او شرح الصدور للسیوطي رحمهما الله تعالی مطالعه کړئ. پرته له دې څخه د مړي له خوا څخه د ځواب ورکول د صحاحو له کتابونو څخه ثابت نه دي اګر که له صحاح پرته د نورو کتابونو په روایتونو کښې شته چه په سندونو کښې ئې کلام دی. د صحاح په روایتونو کښې یواځې د السلام علیکم د ویلو حکم دی چه د دې وجه دا ده چه مړی اګر که نه اوري او نه ځواب ورکولی شي لیکن په قبر باندې دا الفاظ محض د زیارت کوونکي لپاره د عبرت د کیدو له وجې روا دي. چنانچه د (**انتم لنا سلف ونحن لکم خلف وفی بعض الروایات قد یتم اولادکم وآم ازواجکم وتملك اموالکم وقول النبی ﷺ کنت نهیتکم عن زیارة القبور الافزوروها فانها تذکرة الأخرة**) دا جملې د دې مشعر دي چه د اعتبار مقصد ئې د زیارت کوونکي لپاره دی.

**فقط والله تعالی اعلم** **۷ صفر ۱۳۷۵ هجری**

## بې له روحه جسم ته عذاب څرنګه ورکول کیږی؟

**سوال**: په قبر کښې د انسان یواځې فضله باقي پاتې کیږي نو د قبر عذاب په څه شي باندې وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ځینو علماؤ خیال دی چه د قبر عذاب یواځې روح ته وي او د روح تعلق له قبر سره پاتې وي لیکن صحیح دا ده چه عذاب په روح او جسد دواړو باندې وي ځکه چه د مړي په قبر کښې بیرته ژوندی کیدل له قرآن څخه ثابت دي. **قال الله تعالی حکایةً عن قولهم "رَبَّنَا أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ" فان الله تعالی ذکر الموته مرّتین وهما لا تتحققان الا ان یکونا فی القبر حیاة و موت حتی تکون احدی الموتتین ما یتحصل عقیب الحیاة فی الدنیا و الاخری ما یتحصل عقیب الحیاة التی فی القبر (عمدة القاری ج۳، ص۱۶۱)** په روایت کښې د نکیرین په باره کښې د (**یقعدانه**) لفظ او له داسې نورو روایتونه هم د روح په را ګرځیدو باندې دال دي.

پاتې شوه دا پوښتنه چه په جسم باندې د عذاب واقع کیدل موږ ته نه معلومیږي یا د جسم اجزاوې سره بیلې شي او بیا خاورې شي. البته د دې د حل لپاره صوفیهٔ کرامو دا قول کړی دی چه د روح را ګرځیدنه په مادي جسم کښې نه وي بلکه په مثالي جسم کښې وي. لیکن صحیح دا ده چه په همدې جسم مادي کښې روح بیرته اعاده کوي لیکن دا موږ معلومولی نه شو لکه څرنګه چه په خوب کښې چا ته تکلیف وي. بلکه په بیداري کښې چه چا ته د تخیل او تفکر له وجې چا ته غم یا خوشحالي وي موږ ته د هغه علم نه وي.

جسم اگر كه خاورې شي نو بيا هم له احاديثو څخه ثابته ده چه د ملا د تير هډوكى نه خاورې كيږي نو د دې احياء كيدلى شي. با لفرض چه ټول جسم خاورې شي بيا هم د جسم صورت او هيئت بدل شي د هغه اصل ماده خو باقي ده. پس تر خاورې كيدو وروسته هم په دغو اجزاوو كښې په داسې طريقې سره د روح اعاده چه مونږ ئې نه شو معلومولى د خداى له قدرت څخه د باندې نه ده.

قال السيوطى رحمه الله فى شرح الصدور عذاب القبر هو عذاب البرزخ (الى قوله) ومحله الروح والبدن باتفاق اهل السنة وفى فيض البارى قيل العذاب على الروح فقط وقيل على الروح والجسد معاً ومال الى الاول الحافظ ابن قيم رحمه الله و الاقرب عندى هو الثانى و ذهب الصوفية الى انه على الجسد المثالى الخ (فيض البارى ج۲، ص۴۹۲) وايضاً فيه بعد بحث بديع ثم لا حاجة الى اثبات عذاب القبر الى ما قاله الصوفية ان العذاب على البدن المثالى دون المادى وحينئذ لا بعد ان لم نشاهد احداً يعذب فى قبره الخ (فيض البارى ج۲، ص۴۷۶) وفى عمدة القارى ان المصلوب لا بعد فى الاحياء والمسألة منه مع عدم المشاهدة كما فى صاحب السكر فانه حيّ مع انا لا نشاهد حياته كما فى رؤية النبى ﷺ جبريل عليه الصلوة والسلام وهو بين اظهر اصحابه مع ستره عنهم ولا بعد فى رد الحياة الى بعض اجزاء البدن فيختص بالاحياء والمسألة والعذاب وان لم يكن ذٰلك مشاهداً لنا. (عمدة القارى ج۴، ص۱۶۳) وكذا حقق جبل الحديث الحافظ ابن الحجر رحمه الله تعالى ايضاً فى الفتح فراجعه. (فتح البارى ج۳، ص۱۵۲) فقط والله تعالى اعلم ۷صفر ۱۳۷۵ هجرى

## د حشر په ميدان كښې له ښځې او اولاد سره ملاقات

**سوال**: په حشر كښې له ښځې او اولاد سره ملاقات كيږي او كه نه؟ او كه چيرته كيږي نو تر څو مره وخت پورې به باقي پاتې وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال الله تعالى: اِذْ تَبَرَّاَ الَّذِيْنَ اتُّبِعُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا ـ الخ وقال النبى ﷺ المرءُ مع من احب له دې دو آياتونو او احاديثو څخه ثابتيږي چه پخپل منځ كښې به ملاقات وي بلكه خبرې اترې به ئې تر منځه كيږي. وروسته كه چيرته دواړه خواوې د جنت اهل وي نو ملاقات به ئې د تل لپاره وي او كه نه وي نو نه به وي فقط والله تعالى اعلم ۷صفر ۱۳۷۵ هجرى

## د تلاوت په ايصال ثواب سره مړى ته په عذاب كښې تخفيف راځي

**سوال**: چه قرآنكريم تلاوت شي او ثواب ئې مړي ته ور وبخښل شي نو په عذاب كښې ئې كمى راځي او كه نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قرآنكريم تلاوت او بيا ئې مړي ته د ثواب په ور بخښلو سره په

عذاب کښې کمی راځي.

قال الخطابی فیه دلیل علی استحباب تلاوة الکتاب العزیز علی القبور لانه اذا کان یرجی عن المیت التخفیف بتسبیح الشجر فتلاوة القرآن العظیم اعظم رجاء و برکة. (عمدة القاری ج۱، ص۸۷۵) و ایضاً عن انس ﷺ یرفعه من دخل المقابر فقرأ یٰس خفف الله عنهم یومئذ و من زار قبر والدیه او احدهما فقرأ عنده او عندهما یٰس غفر له. (عمدة القاری ج۱، ص۸۷۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ صفر ۱۳۷۵ هجری

## مړي ته د صدقاتو ثوابونه رسیږي

**سوال**: مړي ته چه د خیراتونو او صدقاتو ثوابونه ور وبخښل شي نو هغوی ته رسیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! رسیږي. کما فی شرح الصدور بتخریج الطبرانی عن ابی عمرو قال قال رسول الله ﷺ اذا تصدّق احدکم صدقةً تطوعاً فلیجعلها عن ابویه فیکون لهما اجرها و لا ینقص من اجره شیئاً وان شئت الاطلاع علی مزید الروایات الواردة فی هذا الباب فعلیك بعمدة القاری ج۱، ص۸۷۵ و ص۸۷۶.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ صفر ۱۳۷۵ هجری

## په خود کشي کوونکي (ځان وژونکي) باندې د جنازې د لمانځه حکم

**سوال**: آیا خود کشي کوونکی به مسلمان ګڼل کیږي او که کافر؟ د هغه د جنازې لمونځ جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اګر که خود کُشي ډیره لویه ګناه ده لیکن چه څوک ئې وکړي نو کافر نه دی. د دې لپاره په داسې چا باندې د جنازې ادا کول فرض دي. قال فی شرح التنویر من قتل نفسه ولو عمداً یُغسل و یُصلّی علیه به یُفتی وان کان اعظم وزراً من قاتل غیره. (ردالمحتار ج۱، ص۸۱۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی قعده ۱۳۸۳ هجری

## ځان وژونکي ته د ایصال ثواب حکم

**سوال**: ځان وژونکي ته ایصال ثواب، دُعاء او مغفرت جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: ځان وژونکی فاسق دی، کافر نه دی. له دې امله دُعاء، مغفرت او ایصال ثواب ورته جائز دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذی قعده ۱۳۸۳ هجری

## له کفن ورکولو وروسته د نجاست وتل مضر یا تاوانی نه دی

**سوال**: څه فرمائي د دین بزرګان په دې مسئله کښې که چیرته مړي ته تر غسل او کفن وروسته کوم نجاست ترې ووځي نو آیا دوباره به غسل ورکول کیږي او که نه؟ او که همدغه غسل ئې کافي دی یو ائې دې نجاست ترې پریمینځل شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د غسل بیرته را ګرځول نشته. البته تر کفن ورکولو مخکښې چه نجاست ووځي نو د هغه مینځل ضروري دي او تر کفن ورکولو وروسته چه ووځي نو د هغه مینځل ضروري نه دي که د مړي په بدن باندې وي او که په کفن باندې. پرته له مینځلو ئې د جنازې لمونځ صحیح دی. دا حکم له مړي څخه د وتونکي نجاست دی. که چیرته له بهره نجاست پرې ولګیږي نو د هغه پریمینځل ضروري دي او پرته له مینځلو لمونځ نه صحیح کیږي.

قال فی الشامیة و فی ط عن الخزانة اذا تنجس الکفن بنجاسة المیت لا یضر دفعاً للحرج بخلاف الکفن المتنجس ابتداءً و کذا لو تنجس بدنه بما خرج منه ان قبل ان یکفن غسل و بعدهٔ لا کما قدمناه فی الغسل فیقید ما فی القنیة بغیر النجاسة الخارجة من المیت. (ردالمحتار ج۱،ص۸۱۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ ربیع الآخر ۱۳۸۶ هجری

## په رمضان شریف کښې د مړ کیدو په صورت کښې د قبر له عذاب څخه د امن مسئله

**سوال**: که چیرته د رمضان شریف په میاشت کښې یو ګنهګار مسلمان مړ شي نو د قبر عذاب تر قیامته پورې له ده څخه معاف دی او یو ائې د رمضان تر میاشتې پورې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له کافر څخه یو ائې تر رمضان شریف پورې د قبر عذاب پورته وي او له ګنهګار مسلمان څخه د قیامت تر ورځې پورې پورته وي. پرته له رمضان څخه په بل وخت کښې د مړه کیدونکو هم همدا حکم دی چه په کافر باندې د جُمعې په ورځ او رمضان شریف کښې عذاب نه وي او په ګنهګار مؤمن باندې چه کله جُمعه یا رمضان شریف راځي نو له هغه څخه تر قیامته پورې عذاب پورته کیږي.

قال ابن عابدین رحمه الله فی اٰخر باب الجمعة قال اهل السنة والجماعة عذاب القبر حق وسؤال منکر و نکیر و ضغطة القبر حق لکن ان کان کافرا فعذابه یدوم الی یوم القیٰمة و یرفع عنه یوم الجمعة و شهر رمضان فیعذب اللحم متصلاً بالروح والروح متصلاً بالجسم فیتألم الروح مع الجسد و ان کان خارجاً عنه والمؤمن المطیع لا یعذب بل له ضغطة یجد هول ذٰلك و خوفه والعاصی یعذب و یضغط لکن ینقطع عنه العذاب یوم الجمعة ولیلتها

ثم لا یعودو ان مات یومها او لیلتها یکون العذاب ساعة واحدة و ضغطة القبر ثم ینقطع کذا فی المعتقداد للشیخ ابی المعین النسفی الحنفی من حاشیة الحموی ملخصاً.(ردالمحتار ج۱، ص۶۰۳) فقط والله تعالی اعلم

۱۹ شوال ۱۳۸۶ هجری

## په جُمعه کښې د مړ کېدو په صورت کښې تر قیامته پورې د قبر عذاب معاف

**سوال**: د جُمعې په ورځ یا شپه په مړه کېدونکو باندې یواځې په همدې ورځې باندې عذاب نه وي او که تر قیامته پورې معاف وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مؤمن ته تر قیامته پورې معافي کیږي. البته له کافر څخه یواځې په جُمعه او رمضان شریف کښې د قبر عذاب پورته کیږي.

فقط والله تعالی اعلم ۱۹ شوال ۱۳۸۶ هجری

## په جُمعه او رمضان شریف کښې کافر ته هم د قبر عذاب نه ورکول کیږي

**سوال**: مشهوره ده چه په رمضان المبارک او جُمعه مبارکه کښې له کافر څخه هم د نکیرینو سوالونه او د قبر عذاب سپکیږي. آیا دا صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په جُمعه او رمضان کښې له کافر څخه هم د قبر عذاب پورته کیږي. تر جُمعې او رمضان شریف وروسته بیا شروع کیږي. کذا فی الشامیة فی اٰخر باب الجمعة.

فقط والله تعالی اعلم ۸ رمضان ۱۳۸۷ هجری

## په رمضان شریف کښې د مرګ د فضیلت حواله

**سوال**: په شامي باب الجنائز کښې د (من لا یسئل فی قبورهم) تفصیل دی. په دې کښې په رمضان شریف کښې د مرګ ذکر نشته. له دې امله د دې حواله ولیکئ.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د شامیه د باب الجمعة په آخر کښې په رمضان شریف کښې له مؤمن څخه تر قیامته پورې او له کافر څخه د رمضان شریف تر آخره پورې د عذاب پورته کېدل راغلي دي کوم چه په رمضان شریف کښې مرګ ته هم شامل دی.

فقط والله تعالی اعلم ۸ رمضان ۱۳۸۷ هجری

## د جُمعې په ورځ په مرګ سره د قبر د عذاب په نشت والي باندې د یوه اشکال جواب

**سوال**: کوم مسلمان چه د جُمعې په ورځ مړ شي هغه د قبر عذاب معاف دی. او په حدیث شریف

کښې دي چه قبر د آخرت لومړی منزل دی څوک چه په دې کښې نجات پیدا کړي نو د هغه لپاره راتلونکي منزلونه آسانه کیږي. پوښتنه دا ده چه په جُمعه کښې خو سود خور، شرابي، بدکاره سړی هم مړه کیږي. آیا د هغوی هم مغفرت کیږي او که څنګه؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې لاندیني خوابونه کیدلی شي:

۱ - د نورونصوصوله مخې په دې حدیث کښې له کبائرو (غټو ګناهونو) څخه د اجتناب قید دی.

۲ - ځینې ګنهګاران بې له حسابه هم جنت ته ځي. د هغوی لپاره دا سعادت (نیکبختي) مقدر دی. د جُمعې په ورځ یوائې د همدغو ګنهګارانو مرګ واقع کیږي.

۳ - د جُمعې په ورځ په مرګ سره یوائې د قبر عذاب معاف دی نه د آخرت عذاب. او د حدیث مطلب دا دی چه پرته له جُمعې څخه د عمل په برکت سره د قبر له عذاب څخه بچ شي نو راتلونکي منزلونه به زیات آسانه وي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ جمادی الاولی ۱۳۸۹ هجری

## د جُمعې په شپه کښې د دفن کولو فضیلت

**سوال**: که چیرته یو څوک د پنجشنبې (جمعرات) په ورځ کښې وفات شي لیکن د جُمعې په شپه ښخ کړی شي نو آیا د قبر عذاب ترې معاف دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا وعده د جُمعې په ورځ او د جُمعې په شپه په مرګ باندې دی، په دفن باندې نه دی. البته د قبر عذاب چونکه تر دفن کولو وروسته شروع کیږي او په مسلمان مړي باندې د جُمعې له شپې څخه تر قیامته پورې عذاب پورته کیږي. د دې لپاره دا سې سړی به د قبر له عذاب څخه محفوظ پاتې کیږي.

قال ابن البزاز رحمه الله السؤال فیما یستقر فیه المیت حتی لو اکله سبع فالسؤال فی بطنه فان جعل فی تابوت ایاما لنقله الی مکان اخر لا یسأل مالم یدفن. (بزازیة علی هامش العالمگیریة ج۴ ص۸۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ شعبان ۱۳۸۹ هجری

## په قبر باندې د لوحې د لګولو حکم

**سوال**: په قبر باندې د لوحې لګول او په هغې باندې د مړي نوم او د وفات تاریخ لیکل تر څو چه د مړي قبر په نخښه شي او له وارثانو څخه ورک نه شي جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د علامې (نخښې) په توګه د مړي نوم او د وفات تاریخ لیکل جائز دي. په حدیث شریف کښې په قبر باندې له لیکلو څخه ممانعت راغلی دی او د علامې لپاره په د تیږې یا ډبرې کیښودل ثابت دي. د دې لپاره فقهاء کرامو رحمهم الله د نهې حدیث په غیر ضرورت باندې محمول کړی دی. او د علامې د ضرورت له مخې ئې د لیکلو اجازه پرې ورکړې ده. سره له

دې احتیاط په دې کښې دی چه لوحه د قبر با لکل د قبر په سر و نه لګوي بلکه لږ غوندې لرې ئې ترې ولګوي تر څو چه د حدیث له ظاهر سره مخالفت را نه شي. په لوحې باندې د قرآنکریم آیت، شعر او د مړي مدح او صفت لیکل په هر صورت ناجائز دي. **وتفصیل الکلام فی الشامیة.**

**فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۵ ذی الحجة ۱۳۸٦ هجری**

## د جنازې د غائبانه لمانځه حکم

**سوال**: د جنازې غائبانه لمونځ جائز دی او که نه؟ زید وائي چه جائز دی. نبي کریم ﷺ د نجاشي بادشاه د جنازې غائبانه لمونځ ادا کړی وو. آیا د زید دا خبره صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: عن عمران بن حصین رضی الله تعالیٰ عنه ان النبی ﷺ قال ان اخاکم النجاشی توفی فقوموا صلوا علیه فقام رسول الله ﷺ وصفوا خلفه فکبر اربعاً وهم لا یظنون الا ان جنازته بین یدیه رواه ابن حبان فی صحیحه کذا فی نصب الرایة وفی فتح الباری بعد نقله ما نصّه اخرجه من طریق الاوزاعی عن یحیی بن ابی کثیر عن ابی قلابة عن ابی المهلب عنه ولابی عوانه (فی صحیحه) من طریق ابان وغیره عن یحیی فصلینا خلفه ونحن لا نری الا ان الجنازة قدامنا اه.

قال العلامة العثمانی ویعارضه ما اخرجه الطبرانی واصله فی ابن ماجة من حدیث مجمع بن جاریة فی قصة الصلوة علی النجاشی قال فصففنا خلفه صفین وما نری شیئا ذکره فی فتح الباری ج۲، ص۱۵۲ والتوفیق کما افاده الشیخ بانها کشفت لبعض دون بعض (الی ان قال) فقد اخرج الطبرانی وابن الفریس فی فضائل القرآن وسمویه فی فوائده وابن مندة والبیهقی فی الدلائل کلهم من طریق محبوب بن هلال عن عطاء بن ابی میمونة عن انس بن مالک رضی الله عنه قال نزل جبرئیل علی النبی ﷺ فقال یا محمّد مات معاویة بن معاویة المزنی اتحب ان تصلّی علیه قال نعم فضرب بجناحیه فلم یبق اکمة ولا شجرة الا تضعضعت فرفعت سریره حتی نظر الیه فصلی علیه وخلفه صفان من الملائکة کل صف سبعون الف ملک فقال یا جبرئیل بم نال معاویة هذه المنزلة قال بحب قل هو الله احد وقرائته ایاها جائیا وذاهباً وقائماً وقاعداً وعلی کل حال، ومحبوب قال ابو حاتم لیس بالمشهور وذکره ابن حبان فی الثقات وفی روایة قال جبرئیل فهل لک ان تصلی علیه فاقبض لک الارض قال نعم فصلی علیه وفی روایة فضع جبرئیل جناحه الایمن علی الجبال فتواضعت حتی نظرنا الی المدینة. ذکر الروایات کلها الحافظ فی الاصابة ثم قال قد یحتج به من یجیز الصلوة علی الغائب ویدفعه ما ورد انه رفعت الحجب حتی شهد جنازته اه. (ج٦، ص۱۱٦) قلت ولو کانت الصلوة علی المیت الغائب مشروعة لم یکن لسؤال جبرئیل اتحبّ ان

تصلی علیه وضربه بجناحیه بعد قوله نعم معنی لامکان الصلوٰة علیه بغیر ذٰلك ایضاً و کذا الم یکن لقوله فهل لك ان تصلی علیه فاقبض لك الارض یعنی لعدم الاحتیاج الیٰ ذٰلك للصلوٰة علیه فالحدیث ان ثبت کما زعمه الحافظ فهو حجة لنا لا علینا فافهم. (اعلاء السنن ج۸ص۱۶۳)

له دغو حدیثونو څخه ثابته شوه چه حضرت نجاشي او معاویة بن معاویة مزني رضی الله عنهما باندې نبي کریمﷺ په دې ډول سره د جنازې لمونځ ادا کړی وو چه له لرې څخه د معجزې په توګه د هغوی جنازې د نبې کریمﷺ مخې ته وړاندې شوې وې. له دې امله له دغو دواړو واقعو څخه د جنازې د غائبانه لمانځه په صحت باندې استدلال باطل دی.

با لفرض که چیرته دا معجزه په حدیثو سره ثابته نه وای نو بیا هم دا واقعاتِ د نبي کریمﷺ په خصوصیت باندې محمول کول ضروري دي. د دې لپاره چه ﴿وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ﴾ په مطابق دی د هر صحابي د جنازې په لمانځه باندې ډیر حریص وو. تر دې پورې که چیرته یو څوک به د نبي کریمﷺ له جنازې پرته ښخ کړی شو نو دی مبارک به پرې خبر شو او د هغه قبر ته به وراغی او جنازې لمونځ به ئې پرې کاوه. سره له دې له ده څخه لرې د مقربو صحابهؤ رضی الله عنهم او قراء رضی الله عنهم غوندې په مخصوصو حضراتو باندې ده مبارک د جنازې لمونځ نه دی کړی. دا څرګند دلیل دی چه د جنازې غائبانه لمونځ صحیح نه دی او د حضرت نجاشي او حضرت معاویه بن معاویه مزني رضی الله تعالی عنهما د جنازې لمونځ ئې د معجزې په توګه د خصوصیت پر بناء ادا کړې وه.

فقط والله تعالیٰ اعلم ٢٤ ربیع الآخر ۱۳۸۷ھ هجری

## د لویدلي عمارت تر خاورو او خښتو د لاندې د مړ شوي سړي د جنازې د لمانځه حکم

**سوال** : که چیرته یو څوک د لویدلي کور یا عمارت تر خاورو او خټو لاندې شي او مړ شي او تر ډیر کوشش وروسته هم له هغه ځایه و نه ایستل شي نو د هغه د جنازې لمونځ به څرنګه ادا کیږي. یو ښاغلی وائي چه خاورو او خښتو ته په نژدې دریدلو سره د جنازې لمونځ کیږي. آیا د دوی دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په داسې سړي باندې د جنازې د لمانځه په صحت کښې اختلاف دی. د عدم غسل له وجې قیاس د عدم صحت مقتضی دی. لیکن استحساناً ئې د جواز قول راغلی دی په دې شرط چه د مړي د نه پړسیدو غالب ګومان وي. د شک په حالت کښې په اتفاق سره د جنازې لمونځ پرې صحیح نه دی.

قال فی الدر و ان دفن و اهیل علیه التراب بغیر صلوٰة او بها بلا غسل او ممن لا ولایه له صلّی علی قبره

استحساناً مالم یغلب علی الظن تفسخه من غیر تقدیر هو الاصح وظاهره انه لو شك فی تفسخه صلّی علیه لکن فی النهر عن محمد رحمه الله لا کأنه تقدیماً للمانع، وفی الشامیة (قوله او بها بلا غسل) هذا روایة ابن سماعة والصحیح انه لا یصلی علی قبره فی هذه الحالة لانها بلا غسل غیر مشروعة کذا فی غایة البیان. لکن فی السراج وغیره قیل لا یصلّی علی قبره وقال الکرخی یصلی وهو الاستحسان لان الاولی لم یعتد بها لترك الشرط مع الامکان والأن زال الامکان فسقطت فرضیة الغسل وهذا یقتضی ترجیح الاطلاق وهو الاولی نهر.

**تنبیه**: ینبغی ان یکون فی حکم من دفن بلا صلوة من تردی فی نحو بیر اووقع علیه بنیان ولم یمکن اخراجه بخلاف مالو غرق فی بحر لعدم تحقق وجوده امام المصلی، تأمل (قوله کانه تقدیماً للمانع) الخبر محذوف ای کأنه قال ذلك تقدیماً ای انه دار الامر بین التفسخ المقتضی عدم الصلوة وبین عدمه الموجب لها، فاعتبرنا المانع وهو التفسخ ط اقول وفی الحلیة نص الاصحاب علی انه لا یصلّی علیه مع الشك فی ذلك ذکره فی المفید والمزید وجوامع الفقه وعامة الکتب وعلله فی المحیط بوقوع الشك فی الجواز اه وتمامه فیها. (ردالمحتار ج۱، ص۸۲۷) فقط والله تعالی اعلم.

۲۳ شوال ۱۳۸۸ هجری

## په نا بالغ خنثی (نرښځی) باندې د جناې د لمانځه دُعاء

**سوال**: یو کوچنی پیدا شو او دا پیژندګلوي ئې و نه شوه چه هلک دی او که نجلی. که چیرته په همدې حالت کښې مړ شي نو د جنازې په لمانځه کښې به ئې د هلک دُعاء ویل کیږي او که د نجلی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اختیار لري، که د هلک دُعاء وائي او که د نجلی. دواړه صحیح دي. التذکیر بتأویل المیت والتأنیث بتأویل النفس، فقط والله تعالی اعلم. ۱۰ محرم ۱۳۸۷ هجری

## د مسلمانانو او کافرانو په ګډو مړو باندې د جنازې د لمانځه حکم

**سوال**: که چیرته دوه کسان چه یو ئې مسلمان وي او بل کافر وي په یو ځای وسوځي او مړه شي. او پیژندل ئې مشکل شي چه مسلمان کوم دی او کافر کوم دی. نو د مسلمان د جنازې د لمانځه په اړه څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دواړه مړي دې مخې ته کښیږدي او د جنازې لمونځ دې پرې ادا کړي او نیت دې داسې وکړي چه په دې دواړو کښې کوم یو مسلمان وي د جنازې لمونځ په هغه باندې کوو. کذا فی الشامیة. فقط والله تعالی اعلم ۱۰ محرم ۱۳۸۷ هجری

## چه قبر کښیني نو بیا ئې کیندل او جوړول جائز نه دي

**سوال**: که چیرته یو زوړ قبر کښیني او د خاورو تر اچولو مخکښې چه په کومو خښتو یا ډبرو باندې قبر پټ شوی وي هغه کښته کښیني نو آیا د دغو خښتو په را ایستلو سره قبر دوباره جوړولی شي؟ او آیا په دې صورت کښې مړی را ایستلی او په بل قبر کښې ئې ښخولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قبر په سر دې خاورې واچوي او جوړ دې کړي. د قبر لوټول او د ننې له خوا څخه ډبره او داسې نور صحیح کول یا مړی را ایستل او په بل قبر کښې ئې ښخول جائز نه دي.

قال فی العلائیة ولا یخرج منه بعد اهالة التراب الا لحق آدمی، وفی الشامیة احتراز عن حق الله تعالیٰ کما اذا دفن بلا غسل او صلٰوة او وضع علی غیر یمینه او الیٰ غیر القبلة فانه لا ینبش علیه بعد اهالة التراب کما مرّ. (رد المحتار ج۱، ص۸۳۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۴ ربیع الآخر ۱۳۸۷ هجری

## د دفن په وخت کښې د قبر د لویدلو حکم

**سوال**: مړی په قبر کښې کیښودل شو او د پاسه ئې ډبرې پرې ولګولې خاوره ئې پرې اچوله چه قبر د لاندې له خوا څخه کښیناست. اوس ددغو خاورو بیرته ایستل او بیا ئې جوړول یا مړی بل قبر ته وړل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ډبرې په خاورو کښې پټې شوې وي نو بیرته ئې را ایستل جائز نه دي بلکه همداسې دې خاورې پرې واچوي. البته که چیرته د ډبرو په خاورو کښې تر پټیدو یا لاندې کیدو مخکښې د ډبرې را ایستل او صحیح کول جائز دي او که چیرته په همدې صورت کښې دا قبر د بیا جوړولو قابل پاتې نه شي نو د ضرورت له مخې د بل قبر جوړول جائز دي.

لان کون الحجر منفصلاً عن جسد المیّت سنّة و النبش حرامٌ فلا یرتکب لاجلها قال فی العلائیة ولا ینبش لیوجه الیها، وفی الشامیة ای لو دفن مستدبراً لها واهالوا التراب لا ینبش لانّ التوجه الی القبلة سنّةٌ و النبش حرامٌ بخلاف ما اذا کان بعد اقامة اللبن قبل اهالة التراب فانه یزال و یوجه الی القبلة عن یمینه. حلیة عن التحفة (ردالمحتار ج۱، ص۸۳۷). فقط والله تعالیٰ اعلم ۴ ربیع الثانی ۱۳۸۷ هجری

## د مړي خپلوانو ته د خوراک او ډوډۍ د ورکولو حکم

**سوال**: د مړي وارثانو یا خپلوانو ته تر دریو ورځو پورې د خوراکونو وروړل مستحب دي. که چیرته یوه یا دوه ورځې ئې څوک وروړي او درې ورځې پوره نه کړي نو آیا څه پروا لري او که نه؟

بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مړي د ګاونډيانو او نورو خپلوانو لپاره د مړي د کور خلکو ته يواځې يوه ورځ د خوراک ورول کوم چه د هغوی يوه شپه او يوه ورځ بس چي مستحب دي.

**قال ابن عابدين رحمه الله قال في الفتح و يستحب لجيران اهل الميت و الاقرباء الاباعد تهيئة طعام لهم يشبعهم يومهم و ليلتهم لقوله ﷺ اصنعوا لآل جعفر طعاماً فقد جاءهم ما يشغلهم حسّنه الترمذی و صحّحه الحاکم و لانه برٌّ و معروفٌ و يلح عليهم فی الاکل لان الحزن يمنعهم من ذٰلك فيضعفون اه.** (رد المحتار ج۱،ص۸۴۱) **فقط والله تعالیٰ اعلم** **۱۶ ذی الحجة ۱۳۸۷ هجری**

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال**: زمونږ په ملک کښې يو رواج له ډيرې اوږدې زمانې څخه را روان دی. هغه دا چه کله يو څوک مړ شي نو تر څو ورځو پورې کله کله د مړي خپلوان لکه خسر ګنی او داسې نور تر څلورو پنځو مياشتو پورې د مړي د کور خلکو ته ډوډۍ ګانې يا ميلمستياوې کوي. آيا د داسې ميلمستياوو ثبوت د حديثو او د فقهې په کتابونو کښې شته او که نه؟ د فقهې د کتابونو له مخې د دې کراهت معلوميږي. په قاضي خان کښې دي چه **ولا بأس بان يکون حمل الطعام الی اهل المصيبة و هو فی اليوم الاول غير مکروه لشغلهم بجهاز الميت و فی اليوم الثانی مکروه اذا اجتمعت النياحة لانه اعانة لهم علی الاثم و العدوان.** (**قاضی خان کتاب الحظر و الاباحة ج۳،ص۴۰۵**) او په عزيز الفتاوی ص۲۲۴ باندې ئې ليکلي دي چه نور خپلوان دې د مړي د کور خلکو ته د يوه وخت يا دوه وختونو خوراکونه وليږي. او په عالمګيري کښې دي چه **حمل الطعام الی صاحب المصيبة و الاکل معهم فی اليوم الاول جائز لشغلهم بالجهاز و بعده يکره کذا فی التاتارخانية.** (**عالمګيرية ج۵،ص۳۴۴، کتاب الکراهية**) په ترمذي کښې هم چه کوم حديث را نقل شوی دی په دې کښې هم يوه ورځ د مصيبت وهلي خلکو لپاره د خوراک د تيارولو جواز څرګنديږي. په فتح القدير کښې هم تقريباً په همدې ډول الفاظ راغلي دي. **و يستحب لجيران اهل الميت و الاقرباء الاباعد تهيئة طعام لهم يشبعهم يومهم و ليلتهم.** (**فتح القدير ج۱، ص۴۷۳**) د دغو خلکو د دې ډول خوراکونو د تيارولو مقصد يواځې د مړي د خلکو ډاډګيرنه ده. په دې خوراک کښې شرعي ممنوعات نه وي. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له يوې ورځې څخه زيات د خوراکونو ليږل مکروه دي. په دې رواج کښې په غير معمولي حرج او تکليف کښې له غلو پرته دا قباحت (بدي) هم شته چه عوام دا رواج يو شرعي حکم ګڼلی وي او يا ئې ګڼي کوم چه په شريعت باندې زياتوالی او بدعت دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ رمضان ۱۳۹۹ هجری

## مړ پیدا شوی بچی هم شفاعت کوي

**سوال**: کوم کوچنی چه د مور له نسه مړ پیدا شي آیا د قیامت په ورځ د خپل مور او پلار شفاعت کوي او که نه؟ او که سفارش یا شفاعت یواځې د هغه کوچني په حق کښې ځانګړی شوی دی چه ژوندی پیدا شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مړ پیدا شوی بچی هم د مور او پلار سفارش کوي. قال رسول الله ﷺ ان السقط ليراغم ربه اذا دخل ابويه النار فيقال ايها السقط المراغم ربّه ادخل ابويك الجنة فيجرهما بسرره حتى يدخلهما الجنة وفي حديث أخر والذي نفسي بيده ان السقط ليجر امه بسرره الى الجنّة اذا احتسبته. (ابن ماجة ص ۱۱۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ رجب ۱۳۸۸ هجری

## نابالغ کوچنی ته د ایصال ثواب حکم

**سوال**: نابالغ ته د ثواب په ورلیږلو کښې د نابالغ مړي درجې لوړیږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه نابالغ غیر مکلف وي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نابالغ ته د خپلو نیکیو ثواب ورکول کیږي. له دې ځخه ثابته شوه چه هغه ته بل څوک هم د خپلو نیکیو ثوابونه لیږلی شي. همدارنګه په هغه باندې د جنازې د لمانځه دُعاء هم د هغه لپاره مفیده ده. له دې ځخه هم د ایصال ثواب ګټه ثابته شوه.

قال العلائي في دعاء جنازة الصبي وهو دعاء له ايضاً بتقدمه في الخير لا سيما وقد قالوا حسنات الصبي له لا لابويه بل لهما ثواب التعليم. (ردالمحتار ج ۱، ص ۸۱۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ رجب ۱۳۸۸ هجری

## له قبرستان ځخه جلا د مړي ښخول مکروه دي

**سوال**: د عامو مسلمانانو له هدیرې یا قبرستان ځخه یو څوک جلا ښخول جائز دي او که نه؟ یو ښاغلی د نه جواز قائل دی. آیا دا صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مسلمانانو په عام قبرستان کښې د مړي ښخول مسنون دي. د دې په خلاف په کوم خاص ځای کښې ئې ښخول مکروه دي. د عالم او بزرګ په کومې مدرسې یا جومات یا په کوم بل خاص ځای کښې د ښخولو وبا عامه شوې ده. حضراتو فقهاء کرامو په دې باندې په خصوصي توګه نکیر (منع) کړی دی. په داسې مقتدا حضراتو باندې دا وصیت کول واجب دي چه هغوی تر مړه کیدو وروسته په عام قبرستان کښې ښخ کړی شي.

قال فی شرح التنویر ولا ینبغی ان یدفن المیت فی الدار ولو کان صغیراً لاختصاص هذه السنّة بالانبیاء وفی الشامیة (قوله فی الدار) کذا فی الحلیة عن منیة المفتی وغیرها وهو اعم من قول الفتح ولا یدفن صغیر ولا کبیر فی البیت الذی مات فیه فانّ ذلك خاص بالانبیاء بل ینقل الی مقابر المسلمین اه ومقتضاه انه لا یدفن فی مدفن خاصل کما یفعله من یبنی مدرسة ونحوها ویبنی له بقربها مدفنا. تأمل (رد المحتار ج ۱، ص ۸۳۷) فقط و الله تعالی اعلم ۲۳ شوال ۱۳۸۸ هجری

## د مړه پيدا شوي کوچني د غسل او جنازې حکم

**سوال**: که چيرته کوچنی له پيدا کيدو څخه مخکښې مړ شوی وي يا اسقاط شوی وي نو په عامه توگه هغه ته کډی کيندل کيږي او ښخول کيږي. آيا دا طريقه صحيح ده او که د غسل او کفن په ورکولو سره په هديره کښې بايد ښخ شي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اسقاط په صورت کښې که چيرته د کوچني کوم اندام جوړ شوی وي ليکن ټول جسم ئې پوره نه وي جوړ شوی نو اوبو دې پرې وبهوي او په يوه ټوکر کښې دې ونغاړي او چه چيرته ئې هم ښخوي نو زمکه دې هواره کړي. په غسل، کفن او ښخولو کښې د مسنونې طريقې رعايتول پکښې نشته. اوکه چيرته ئې ټول جسم پوره جوړ شوی وي نو د غسل، کفن او ښخولو کښې ئې په مسنونې طريقې سره اختلاف دی. د مسنونې طريقې قول احوط او دا بل قول ايسر (آسانه) دی. د نوم کيښودل په دواړو طريقوکښې مختلف فيه دی. ليکن اينښودل ئې احوط دی. د جنازې لمونځ پرې نشته. البته که چيرته تر پيدا کيدو وروسته مړ شي نو د جنازې لمونځ به هم پرې کوي او د سنتو په مطابق سره په قبرستان کښې دفن کيږي.

فقط والله تعالی اعلم ۱۰ محرم ۱۳۸۸ هجری

## دعالم مړي په سر باندې د پگړۍ تړل مکروه دي

**سوال**: د مړي په سر باندې د پگړۍ تړل جائز دي او که نه؟ يو مولوي صاحب وائي چه متاخرينو فقهاؤ د هغه مړي په سر باندې چه عالِم وي د پگړۍ تړل بهتر بللي دي. آيا دا صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مړی که عالِم وي او که عامي په هر صورت کښې ئې په سر باندې د پگړۍ تړل مکروه او بدعت دی.

نقل ابن عابدين رحمة الله عليه عن القهستانی والاصح انه تکره العمامة بکل حال کما فی الزاهدی اه. (رد المحتار ج ۱، ص ۸۰۷) فقط والله تعالی اعلم.

۱۰ محرم ۱۳۸۸ هجری

## د جنازې په لمانځه کښې د مړي د ځاى پاکوالى شرط نه دى

**سوال**: د جنازې لپاره د ځاى پاکوالى شرط دى او كه نه؟ او همدارنګه د مړي په ناپاکه ځاى باندې په کیښودو سره د جنازې لمونځ جائز دى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: راجحه دا ده چه د مړي د ځاى پاکوالى شرط نه دى. مړى چه په ناپاکه ځاى کښې ایښى هم وي نو بيا هم د جنازې لمونځ پرې صحيح دى.

قال فى الدر وفى القنية الطهارة من النجاسة فى ثوب وبدن ومكان وستر العورة شرط فى حق الميت والامام جميعاً وفى الشامية (قوله وفى القنية الخ) مثله فى المفتاح والمجتبى معزياً الى التجريد اسماعيل لكن فى التتارخانية سُئل قاضى خان عن طهارة مكان الميت هل تشترط لجواز الصلوة عليه قال ان كانت الميّت على الجنازة لا شك انّه يجوز والا فلا رواية لهٰذا وينبغى الجواز وهٰكذا اجاب القاضى بدر الدين اه. (رد المحتار ج۱، ص۸۱۲) فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۶ صفر ۱۳۸۹ هجرى

## د جنازې په لمانځه کښې د ولي تفصيل

**سوال**: د جنازې د لمانځه په ادا کولو کښې تر ټولو زیات حقدار څوک دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر ټولو مخکښې بادشاه بيا ئې نائب بيا قاضي بيا د جامع جومات امام بيا د کلي د جومات امام په دې شرط چه امام تر ولي افضل وي. د ولاتو تقديم واجب دى او د امام مندوب دى. بيا ولي په ترتيب د ولايت د نکاح سره دى ليکن په دې کښې پلار له زوى څخه مخکښې دى. بيا خاوند بيا ګاونډي. كذا فى العلائية. فقط والله تعالىٰ اعلم. ۱۶ صفر ۱۳۸۹ هجرى

## د کلي امام چه د جنازې لمونځ ورکړي نو ولي ئې د بيرته راګرځولو حق نه لري

**سوال**: که چيرته د کلي امام د ولي له اجازې پرته د جنازې لمونځ ورکړي نو آيا ولي ئې بيرته را ګرځولى شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته امام له ولي څخه افضل وي نو هغه د وړاندې توب حق لري. په دې صورت کښې ولې د جنازې لمونځ بيرته نه شي را ګرځولى.

قال شارح التنوير رحمه الله وان صلّى من له حق التقدم كقاض او نائبه او امام الحيّ او من ليس له حق التقدم وتابعه الولى لا يعيد لانهم اولى بالصلوة منه. (رد المحتار ج۱، ص۸۲۶) فقط والله تعالىٰ اعلم

۱۷ صفر ۱۳۸۹ هجرى

## په ګڼ شمیر مړو باندې د یو ځل د جنازې د لمانځه حکم

**سوال** : په داسې حال کښې چه ډیرې جنازې په یوه وخت کښې سره یو ځای شي نو د جنازې لمونځ به په څه ډول په دوی باندې ادا کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : بهتره دا ده چه په هر یوه باندې ځان ځانته د جنازې لمونځ وکړي، په ټولو باندې یو ځل هم د جنازې لمونځ جائز دی چه درې صورتونه لري. یو صورت دا چه یو مړی د امام مخې ته کیښودل شي د هغه د پښو خوا ته د بل مړي سر او د هغه پښو ته د دریم مړي سر کیښودل شي، دویم صورت دا چه کوم مړی د امام مخې ته وي له هغه څخه د قبلې خوا ته دویم مړی او له هغه څخه د قبلې خوا ته دریم مړی او همداسې نور. د ټولو سینې به د امام مخې ته وي دریم صورت دا چه د لومړي مړي د قبلې خوا ته دویم مړی داسې کیښودل شي چه د لومړي مړي د اوږو په برابر د دویم مړي سر راشي، همدارنګه د دویم مړي د اوږو په برابر د دریم مړي سر راشي او داسې نور. په دریواړو صورتونو کښې به نارینه مړی امام ته نژدې وي بیا هلک او بیا ښځه.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ صفر ۱۳۸۹ ہجری

## مړی د مړ کیدو له ځای څخه بل ځای ته د وړلو حکم

**سوال** : مړی د مړ کیدو له ځایه بل ښار یا ملک ته په وړلو کښې څه تحقیق دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : مړی بل ښار ته وړل مکروه تحریمي دی.

قال فی الشامیة (قوله و لا بأس بنقله قبل دفنه) قیل مطلقاً و قیل الی مادون مدة السفر و قیده محمد رحمه الله علیه بقدر میل او میلین لان مقابر البلد ربما بلغت هذه المسافة فیکره فیما زاد قال فی النهر عن عقد الفرائد وهو الظاهر اه. (رد المحتار ج۱، ص۸۴۰) وقال فی المراقی و کره نقله لاکثر منه ای اکثر من المیلین کذا فی الظهیریة و قال شمس الائمة السرخسی و قول محمد رحمه الله علیه فی الکتاب لا بأس ان ینقل المیت قدر میل او میلین بیان ان النقل من بلد الی بلد مکروه قاله قاضی خان و قال العلامة الطحطاوی رحمه الله علیه مکروه ای تحریماً (طحطاوی ص۳۳۴) وفی منحة الخالق وقد حرم فی التاجیة بالکراهة وفی التجنیس وذکر انه اذا مات فی بلدة یکره نقله الی اخری لانه اشتغال بما لا یفید وفیه تأخیر دفنه و کفی بذلک کراهة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۵)

د مړي په نقلولو کښې د ښخولو ځنډ یا تاخیر او د مړي د خرابیدو له ویرې برسیره نن صبا نور لاندیني مفاسد هم پیدا شوي دي.

۱- په دې باندې التزام شروع شوی دی.

۲- د ډیرو مصارفو او سختو مشکلاتو برداشتول.

۳ - په پلرني قبرستان کښې د ښخولو التزام او په دې باندې د اصرار له کولو څخه دا عقیده ثابته شوې ده چه په یوه ځای کښې ښخیدونکي مړي پخپل منځ کښې ملاقات سره کوي. حالانکه دا عقیده غلطه ده.

۴ - د جنازې په نقلولو کښې عموماً د جنازې د لمانځه د تکرار یعنې دوباره ادا کولو سبب جوړیږي کوم چهناجائز دی فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ ربیع الأخر ۱۳۸۹ھـ هجری

## د پورتني سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: په بهشتي زیور کښې مړی له یوه ښار څخه بل ښار ته نقلول ناجائز لیکلی دی. عامه مشهوره هم په همدې ډول ده. لیکن یو عالم فرمائي چه زما د تحقیق مطابق د مړ کیدو په ځای کښې د مړي ښخول یوائې مستحب دی او بل ښار ته ئې په نقل کولو کښې هیڅ ډول کراهت نشته هیله ده چه په دې باره کښې مدلل ځواب راکړئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال ابن نجيم رحمه الله ولم يتكلم المصنّف على نقل الميت من مكان الى أخر قبل دفنه قال فى الواقعات و التجنيس القتيل او الميت يستحبّ لهما ان يدفنا فى المكان الذى قتل او مات فيه فى مقابر اولئك القوم لما روى من عائشة رضى الله تعالىٰ عنها انها زارت قبر اخيها عبد الرحمٰن بن ابى بكر رضى الله تعالىٰ عنهما وكان مات بالشام وحمل من هناك فقالت لو كان الامر فيك بيدى ما نقلتك و لدفنتك حيث متّ لكن مع هذا اذا نقل ميلاً او ميلين او نحو ذٰلك فلا بأس و ان نقل من بلد الى بلد فلا اثم فيه لانه روى ان يعقوب صلوات الله عليه مات بمصر فحمل الى ارض الشام من مصر ليكون عظامه مع عظام اٰبائه و سعد بن ابى وقاص رضى الله تعالىٰ عنه مات فى ضيعة على اربعة فراسخ من المدينة فحمل على اعناق الرجال الى المدينة اهـ و قال ابن عابدين رحمه الله فى حاشيته على البحر (قوله لانه روى ان يعقوب صلوات الله تعالىٰ عليه الخ) لا يخفى ان هذا شرع من قبلنا ولم تتوفر فيه شروط كونه شرعا لنا كذا فى شرح العلّامة المقدسى و مثله فى شرح الشيخ اسمٰعيل عن الفتح و اوضحه بان من شرط كونه شريعة لنا ان يقصّه الله تعالىٰ او رسوله ﷺ ولم يوجد ذٰلك مع ان ما نقل سعد رضى الله تعالىٰ عنه و ان لم يرد من انكره لكن ورد ما عن عائشة رضى الله تعالىٰ عنها حين نقل اخوها الا ان يقال ذٰلك من بلد الى بلد و نقل سعد دونه لكن ما استدل له به هو من بلد الى بلد فليتأمّل، قال وقد جزم فى التاجية بالكراهة وفى التجنيس و ذكر انه اذا مات فى بلدة يكره نقله الى اخرىٰ لانه

۱ - وفى رواية الترمذى بالحُبشى وهو موضع قريب من مكة . رشيد احمد

اشتغال بما لا یفید وفیه تأخیر دفنه و کفی بذلك کراهة. (البحر الرائق ج۲، ص۹۵) وقال فی حاشیة الدّر (قوله و لا بأس بنقله قبل دفنه) قیل مطلقاً و قیل الی ما دون مدّة السفر و قیّده محمد رحمه الله بقدر میل او میلین لان مقابر البلد ربما بلغت هٰذه المسافة فیکره فیما زاد. قال فی النهر عن عقد الفرائد وهو الظاهر اه و اما نقله قبل دفنه فلا مطلقاً قال فی الفتح و اتفقت کلمة المشائخ فی امرأة دفن ابنها و هی غائبة فی غیر بلدها فلم تصبر و ارادت نقله علی انه لا یسعها ذٰلك فتجویز شواذ بعض المتأخرین لا یلتفت الیه و اما نقل یعقوب و یوسف علیهما السلام من مصر الی الشام لیکونا مع اٰبائهما الکرام فهو شرع من قبلنا و لم یتوفر فیه شروط کونه شرعاً لنا اه ملخصاً و تمامه فیه (رد المحتار ج۱، ص۸۴۰) وقال العلامة الشرنبلالی رحمه الله و کره نقله لاکثر منه ای اکثر من المیلین کذا فی الظهیریة و قال شمس الائمة السرخسی رحمه الله و قول محمد رحمه الله فی الکتاب لا بأس ان ینقل المیت قدر میل او میلین بیان ان النقل من بلد الی بلد مکروه وقاله قاضی خان وقد قال قبله لو مات فی غیر بلده یستحب ترکه فان نقل الی مصر اٰخر لا بأس به لما روی ان یعقوب علیه صلوات الله علیه مات بمصر ونقل الی الشام وسعد بن ابی وقاص رضی الله تعالیٰ عنه مات فی ضیعة علی اربعة فراسخ من المدینة ونقل علی اعناق الرجال الی المدینة قلت یمکن الجمع بأن الزیادة مکروهة فی تغیر الرائحة او خشیتها و تنتفی بانتفائها لمن هو مثل یعقوب علیه السلام او سعد رضی الله تعالیٰ عنه لانهما من احیاء الدارین، وقال الطحطاوی رحمه الله تعالیٰ (قلت الخ) اصله للکمال فانه قال فی رده کلام صاحب الهدایة فی التجنیس انه لا اثم فی النقل من بلد الی بلد لما نقل ان یعقوب ما نصّه ان ذٰلك شرع من قبلنا و لم تتوفر فیه شروط کونه من شرعنا ولان اجساد الانبیاء علیهم السلام اطیب ما یکون حال الموت کالحیاة و الشهداء کسعد رضی الله تعالیٰ عنه لیسوا کغیرهم ممن جیفتهم اشدّ نتناً من جیفة البهائم فلا یلحق بهم اه (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص۳۳۷)

له پورتني تحقیق څخه ثابته شوه چه د مړي د نقلولو عدم جواز له امام محمد رحمه الله څخه ثابت دی او همدا ظاهر المذهب دی. حنفي فقهاء کرام امام ابن همام، شرنبلالي، طحطاوي، حلبي، شامي وغیرهم رحمهم الله د همدې قائل دي. تر دې وروسته د هیڅ یوه حنفي لپاره د جواز قول او په دې باندې له مختلفو واقعاتو څخه د استدلال د نیولو هیڅ ګنجائش نشته. با لخصوص د امام محمد رحمه الله د عدم جواز تر قول وروسته د مقلد لپاره د هیڅ یوه دلیل خوا ته نظر کول جائز نه دي ځکه چه دا د مجتهد وظیفه ده. د دې لپاره د دغو واقعاتو د ځواب ضرورت نشته له کومو څخه چه د جواز شبهه پیدا کیږي. سره له دې په پورتني تحقیق کښې د واقعاتو ځوابونه هم مذکور دي. د مړي دنقلولو په باب کښې ټول د څلورو حضراتو واقعات منقول دي. حضرت یعقوب علیه السلام،

حضرت یوسف علیه السلام، حضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ، حضرت عبد الرحمٰن بن ابي بکر رضی الله تعالی عنهما. د دغو څلورو واقعاتو ځوابونه په ترتیب سره په لاندې ډول دي:

## حضرت یعقوب او حضرت یوسف علیهما السلام

۱ - د دوی د واقعاتو په صحت کښې خبره ده. له هیڅ یوه حدیث څخه ثابت نه دي.

۲ - له مونږ څخه مخکښې شریعت چه تر څو پورې په قرآن یا حدیثو کښې منقول نه وي حجت نه دی. په قرآن یا حدیثو کښې د منقول والي تر څنګ د هغه د حجیّت لپاره دا شرط دی چه زمونږ شریعت د هغه په خلاف نه وي او د بحث لاندې مسئله کښې د مړي په ښخولو کښې د تعجیل (بیړې) حکم دومره مؤکد دی چه په مکروه وختونو کښې هم د جنازې د ادا کولو حکم ورکړ شوی دی او د لویې جمعې د انتظار لپاره په لمانځه کښې ئې د تاخیر اجازه نه ده ورکړې. په بیړې سره د جنازې د ادا کولو حکم په صحیحو احادیثو کښې راغلی دی.

۳ - د نقلولو دا واقعات تر دفن وروسته پورې اړه لري کوم چه د مشائخو رحمهم الله په اتفاق سره ناجائز دي.

## حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله تعالی عنه

په دې کښې له یوه ښار څخه بل ښار ته نقلول نشته، د ده انتقال له مدینې منورې څخه د باندې یو میل لرې په زرعي زمکې باندې وشو. قوي احتمال بلکه غالب ګومان دی چه هلته به کوم قبرستان نه وو له دې امله دی مدینې منورې ته راوړل شو.

## حضرت عبد الرحمٰن بن ابي بکر رضی الله تعالی عنهما

حضرت عائشة رضی الله تعالی عنها د صحابه ؤ رضوان الله تعالی علیهم اجمعین له فقهاؤ څخه ده. په دې نقل مکاني باندې د حضرت عائشې ﷺ انکار د دې په عدمِ جواز باندې قوي دلیل دی.

ځینو بیا د څلور واړو واقعاتو مشترک ځواب داسې ورکړی دی چه د حضراتو انبیاؤ علیهم السلام او د صحابه ؤ رضی الله عنهم په جنازو کښې د مړي د خرابیدو اندیښنه نه وه. د دې لپاره چه کله د مړي د خرابیدو ویره نه وي نو له یوه ځای نه بل ځای ته وړل ئې جائز دي. دا ئې د تطبیق صورت بللی دی. لیکن دا د دې لپاره صحیح نه ده چه دا د اسراع د حدیث، د امام محمد رحمه الله د قول او د مشائخو رحمهم الله د اطلاق په خلاف ده. او د حضرت عائشې رضی الله عنها انکار خو په صراحت سره دا تطبیق باطلوي. په مکروه وخت کښې هم د جنازې د ادا کولو حکم دی حالانکه څلور پنځه دقیقې په ناوخته کیدو سره د مړي د خرابیدو هیڅ احتمال نشته. پرته له دې څخه که

چیرته د مړي د نقلولو في نفسه کوم جواز هم وای نو بیا هم په دې زماني کښې د دې دومره اهتمام شروع شوی دی او په دې کښې چه کوم مفاسد پیدا شوي دي د هغو له مخې د دې هیڅ جواز نشته. د دغو مفاسدو تفصیل د روښي ځواب په آخر کښې دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳۰ رجب ۱۴۰۰ھ هجری

## نابالغ ته د مرگ په غسل کښې باید اودس ورکړل شي

**سوال**: آیا نابالغ کوچني ته تر مړ کیدو وروسته په غسل کښې اودس ورکول کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نابالغ ته هم باید اودس ورکړل شي.

قال فی الشامیة (قوله ویوضأ من یؤمر بالصّلوٰة) خرج الصبی الذی لم یعقل لانه لم یکن بحیث یُصلّی قاله الحلوانی وھٰذا التوجیه لیس بقوی اذ یقال ان ھٰذا الوضوء سنّة الغسل المفروض للمیّت لا تعلق لکون المیت بحیث یصلّی اولا کما فی المجنون شرح المنیة و مقتضاہ انه لا کلام فی ان المجنون یوضأ و ان الصّبی الذی لا یعقل الصلوٰة یوضأ ایضاً علی خلاف ما یقتضیه توجیه الحلوانی من انهما لا یوضئان. (رد المحتار ج۱، ص۸۰۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ ربیع الآخر ۱۳۸۹ھ هجری

## د قبرونو د زیارت مسنونه طریقه

**سوال**: قبرستان ته په کومه ورځ تلل بهتر دي او قبرستان ته په تلو سره د مړیو لپاره د دُعاء، مغفرت او ایصال ثواب مسنونه طریقه څه ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: په هفته کښې یوه ورځ باید قبرستان ته سړی لاړ شي. د پنجشنبې، جُمعې او دوشنبې ورځې بهترې دي. قبرستان یا هدیرې ته په داخلیدو سره داسې سلام ووایئ: (اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِيْنَ وَاِنَّا اِنْ شَآءَ اللّٰهُ بِكُمْ لَاحِقُوْنَ وَنَسْئَلُ اللّٰهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ) بیا د مړي د پښو له خوا څخه د مخ څیرې ته مخامخ ودریږي او تر ډیره ځنډه دې دعاء وکړي. که چیرته ئې غوښتل چه کښیني نو په ژوند کښې له مړي سره د تعلق مطابق نژدې یا لرې کښیني. چه څومره ئې په وس کښې هغومره تلاوت دې وکړي خصوصاً سورهٔ بقره تر مُفْلِحُوْنَ پورې، آیة الکرسي، اٰمن الرسول، سورهٔ یٰس، سورهٔ ملک، تکاثر او سورهٔ اخلاص دولس یا یوولس یا اوه یا درې ځله تلاوت کړي او ثوابونه دې په مړي پسې وبخښي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ ربیع الثانی ۱۳۸۹ھ هجری

## نابالغ ته د نزع (ځنکدن) په وخت کښې د سورهٔ یٰسین د تلاوت حکم

**سوال**: د نابالغ بچي د ځنکدن په وخت کښې هغه ته د سورهٔ یٰسین ور اورول ځنګه دي؟ آیا د

ثواب باعث گرځي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مړی که بالغ وي او که نابالغ په هر صورت کښې د نزع په وخت کښې د سورهٔ يٰسين تلاوت ورته کول مستحب دي.

قال في الشامية (قوله و يندب قراءة يٰس الخ) لقوله ﷺ اقرءوا على موتاكم يٰس، صححه ابن حبان قال المراد به من حضره الموت. (رد المحتار ج۱، ص۶۹۷) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ ربيع الآخر ۱۳۸۹ھ هجری

## د جنازې د لمانځه تکرار جائز نه دی

**سوال**: په يوه مړي باندې د جنازې ګڼ شمير لمونځونه جائز دي او که نه؟ ځينې خلک د حضرت حمزه ﷺ د جنازې له لمانځه څخه په جواز باندې استدلال کوي. آيا د دوی دا استدلال صحيح دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: د جنازې په لمانځه کښې تکرار جائز نه دی. البته که چيرته د ولي له اجازې پرته ادا شوی وي نو ولي ئې د بيرته را ګرځولو حق لري. په دې صورت کښې هم چه کومو خلکو اوله جنازه کړې وي هغوی ته له ولي سره دوباره ادا کول جائز نه دي.

قال في العلائية ليس لمن صلى عليها ان يعيد مع الولى لان تكرارها غير مشروع (رد المحتار ج۱، ص۸۲۶) و قال العلامة العثماني رحمه الله تعالى كان ابن عمر رضى اله تعالى عنهما اذا انتهى الى جنازة قد صلى عليه دعا و انصرف ولم يعد الصلوة، قال ابو عمر في التمهيد هذا هو الصحيح المعروف من مذهب ابن عمر من غير ما وجه عن نافع و قد يحتمل ان يكون معنى رواية من روى انه صلى عليه انه دعا له لان الصلوة دعاء و قال مالك وابو حنيفة و اصحابهما لا تعاد الصلوة على الجنازة ولا يصلى على القبر و هو قول الثوری و الاوزاعی و الحسن بن حی و الليث. (اعلاء السنن ج۸، ص۲۱۸)

په حضرت حمزه ﷺ باندې د جنازې د لمانځه تکرار د حضرت حمزه ﷺ خصوصيت وو يا هر ځل د نورو شهيدانو رضی الله عنهم سره ئې په اېښودلو په ده باندې د لمانځه مقصود نه وو بلکه د لمانځه د ځای او د نيکانو د څنګ لوري توب د برکت لپاره ئې هر ځل له بل شهيد سره اېښودل کيده. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ ربيع الثانی ۱۳۸۹ھ هجری

## مړی چه په کور کښې اېښی وي بيا هم خوراک او څښاک جائز دی

**سوال**: اوريدلي مو دي چه د ګاونډي په کور کښې تر څو پورې مړی اېښی وي تر هغه وخته پورې خوراک کول صحيح نه دي اګر که هر څومره لوږه پرې لګيدلې وي. شرعاً د دې څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: د دې هیڅ ثبوت نشته. بلکه پخپله د مړي د کور د خلکو لپاره هم له خوراک څخه د پرهیز شرعاً هیڅ حکم نشته. د تکلیف او غم له وجې چه خوراک و نه شي کړی نو دا بله خبره ده. نن صبا دا یو رسم جوړ شوی دی او د دې دومره اهتمام شروع شوی دی چه مړی په کور کښې ایښی وي نو خوراک کول ګناه بولي. د دې لپاره د دې رواج پریښودل واجب دي. په تکلف سره دې څه نا څه خوراک وکړي. په عزیزانو، خپلوانو او ګاونډیانو باندې لازمه ده چه د مړي د کور په خلکو باندې د ترغیب او اصرار له مخې خوراک وکړي. **فقط والله تعالیٰ اعلم** ۱۳ صفر ۱۳۸۷ هجری

## په قبر کښې چه څه سامان پاتې شي نو بیرته لوڅول ئې جائز دي

**سوال**: که چیرته د کوم مړي د ښخولو په وخت کښې څه پیسې یا سامان په قبر کښې پاتې شي نو د قبر دوباره لوڅول او د خپل سامان را اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! جائز دي. **قال ابن عابدین رحمه الله علیه ولو بقي فیه متاع لانسان فلا بأس بالنبش، ظهیریة (ردالمحتار ج۱، ص۸۳۷)**. **فقط والله تعالیٰ اعلم** ۲۴ صفر ۱۳۸٦ هجری

## د نیک مړي له جنازې سره تلل له نفلو څخه بهتر دي

**سوال**: آیا یواځې د نیک او پرهیزګار سړي له جنازې سره تلل له نوافلو څخه بهتر دي او که د هر مسلمان د جنازې همدا حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: مړی چه ګاونډي وي یا د چا خپل وي یا نیک او صالح وي نو د هغه له جنازې سره تر قبرستانه پورې تلل تر نوافلو بهتر دي. **قال فی العلائیة الاتباع افضل من النوافل لو لقرابة او جوار او فیه صلاح معروف. (ردالمحتار ج۱، ص۸۴۰) والله تعالیٰ اعلم** ۲۳ شوال ۱۳۸۸ هجری

## له ښخولو مخکښې د بیرته تللو لپاره له ولي څخه د اجازې د اخیستلو حکم

**سوال**: آیا د جنازې تر لمانځه وروسته که څوک وغواړي چه لاړ شي نو د مړي له خپلوانو څخه د اجازې ضرورت شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: هو! مستحب دي. **قال قاضی خان رحمه الله علیه ولا یرجع عن الجنازة قبل الدفن بغیر اذن اهلها. (خانیة ج۱، ص۹۱) فقط والله تعالیٰ اعلم.** ۲۳ شوال ۱۳۸۸ هجری

## په ښځه او خاوند کښې یو د بل مړي ته د کتلو او غسل ورکولو حکم

**سوال**: که چیرته په ښځه او خاوند کښې یو مړ شي نو بل هغه ته کتلی یا لاس لګولی یا جنازه ئې پورته کولی یا په قبر کښې کښته کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: ښځه دا هر څو کولی شي لیکن خاوند ښځې ته کتلی شي لیکن غسل نه شي ورکولی، او بې له حائله لاس هم نه شي ور لګولی. جنازه ئې پورته کولی شي او په قبر کښې ئې هم کښته کولی شي. قال فی التنویر ویمنع زوجها من غسلها ومسها لا من النظر الیها علی الاصح وهی لاتمنع من ذلك.(رد المحتار ج۱، ص۸۰۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ جمادی الثانی ۱۳۹۳ هجری

## د کفارو د نابالغو کوچنیانو حکم

**سوال**: د کفارو نابالغه کوچنیان به جنت ته ځي او که نه؟ او له هغوی څخه په قبر کښې سوال او ځواب وي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب**: په دغو دواړو امورو کښې اختلاف دی. حضرت امام اعظم رحمه الله په دواړو مسئلو کښې توقف کړی دی او همدا منل شوې هم ده. کذا فی الشامیة. فقط والله تعالیٰ اعلم

۹ ربیع الاول ۱۳۸۹ هجری

## په قبر باندې د دُعاء لپاره د لاسونو د پورته کولو حکم

**سوال**: مړي ته د ثواب رسولو په خاطر په قبر باندې د لاسونو په پورته کولو سره دُعاء کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: هو جائز دي. کما ورد فی حدیث مسلم.

البته د بزرګانو په مزار باندې به لاسونه نه پورته کوي تر څو چه د قبر له خاوند څخه د غوښتلو ایهام نه وي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ ذی الحجة ۱۳۹۰ هجری

## د جنازې په لمانځه کښې د قبر مخته راتلل مکروه نه دي

**سوال**: د جنازې لمونځ د کوم مزار یا قبر مخې یا شا ته ادا کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب**: هو! جائز دي. نبي کریم ﷺ پخپله په قبر باندې د جنازې لمونځ ادا کړی دی. په فقهه کښې هم همدا حکم راغلی دی چه که یو څوک پرته د جنازې د لمانځه نه ښخ شي نو د مړي له پرسیدو یا شړیدو مخکښې د هغه په قبر باندې دې د جنازې لمونځ وکړي. په نورو لمونځونو کښې قبر ته مخامخ یا ښی او کیڼې خوا ته دریدل ځکه مکروه دي چه په هغه کښې د غیر الله یعنې د مړي د عبادت احتمال دی. (فیکره التوجه والتیامن والتیاسر کالصورة). د جنازې په لمانځه کښې چه پخپله مړی مخې ته کیښودل کیږي نو د قبر مخته راتلل به په طریقهٔ اولی سره جائز وي. فقط و الله تعالیٰ اعلم.

۲۳ ربیع الاول ۱۳۹۰ هجری

## د جنازې په لمانځه کښې د دُعاء د رکنیت تفصیل

**سوال**: کوم سړی چه د جنازې د لمانځه دُعاء ئې زده نه وي او يواځې نيت وکړي او په امام پسې همداسې ودرېږي. آيا د داسې سړي د جنازې لمونځ کيږي او په مړي پسې ئې ثواب رسيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: هو لمونځ ئې کيږي او مړي ته ئې ثواب هم رسيږي. د جنازې په لمانځه کښې د دُعاء رکنيت مختلف فيها دی. علامه شامي رحمه الله رکنيت ته ترجيح ورکړی دی ليکن د عذر په وخت کښې دا رکن په اتفاق سره ساقطيږي. **فقط والله تعالیٰ اعلم** **غرۂ ربيع الثانی ۱۳۹۱ھ هجری**

## په عيدګاه کښې د جنازې د لمانځه حکم

**سوال**: په کوم ځای که چه پنځه وخته لمونځ نه ادا کيږي او نه د جُمعې لمونځ پکښې ادا کيږي بلکه يواځې د اخترونو لمونځونه ادا کيږي يعنې په عيدګاه کښې د جنازې لمونځ کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! کيږي. **فقط والله تعالیٰ اعلم** **غرۂ ربيع الآخر ۱۳۹۱ھ هجری**

## د جنازې په لمانځه کښې د ښځې محاذاة د جنازې د لمانځه فاسدوونکی نه دی

**سوال**: که چيرته د جنازې په لمانځه کښې کومه ښځه د سړی په خوا کښې ودريږی نو آيا په دې صورت کښې د سړی د جنازې لمونځ صحيح کيږی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جنازې په لمونځ کښې د ښځې محاذاة مفسد نه دی، فقط والله تعالی اعلم. ۲۶شعبان ۱۳۹۲ھ هجری

## په نبي کريم ﷺ باندې د جنازې لمونځ څنګه ادا شوی دی؟

**سوال**: آيا د نبي کريم ﷺ د جنازې لمونځ د جماعت په توګه ادا شوی دی او که يواځې يواځې؟ که چيرته له جماعت سره ادا شوی وي نو امامت ئې چا کړی دی؟ او که چيرته يواځې يواځې ادا شوی وي نو په دې کښې څه نکته يا حکمت دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: په حضور نبي کريم ﷺ باندې صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په انفرادي توګه د جنازې لمونځ ادا کړی دی. يوه ډله به حجرې شريفې ته داخله شوه او هر يوه به خان ځانته لمونځ ادا کړ. چه کله به دا ډله فارغه شوه او وبه وتله نو بله ډله به داخله شوه.

روی الترمذی رحمه الله تعالی عن سالم بن عبيد رضی الله تعالی عنه فی حديث طويل، قالوا لابی بکر رضی الله تعالی عنه يا صاحب رسول الله انصلی علی رسول الله ﷺ قال نعم، قالوا و کيف، قال يدخل قوم فيکبرون و

يدعون و يصلّون ثم يخرجون ثم يدخل قوم فيكبرون و يصلّون و يدعون ثم يخرجون حتى يدخل الناس الحديث (شمائل مع السنن ص۶۰۰) قال القاضى عياض الصحيح الذى عليه الجمهور انّ الصلوٰة على النبى ﷺ كانت صلوٰة حقيقية لا مجرد الدعاء فقط و اجيب عمّا اعتل به الاوّلون بأنّ المقصود من الصلوٰة عليه عود التشريف على المسلمين مع ان الكامل يقبل زيادة التكميل نعم لا خلاف انه لم يؤمهم احد عليه كما مرّ لقول على رضى الله تعالىٰ عنه هو امامكم حيّا و ميتا فلا يقوم عليه احد الحديث رواه ابن سعد. (زرقانى ج۸، ص۲۹۲)

علماؤ په نبي كريم ﷺ باندې بې له جماعته د جنازې د ادا كولو څو وجوهات بيان كړي دي:

۱- زرقاني د حضرت علي رضى الله عنه قول را نقل كړى دى چه نبي كريم ﷺ د ژوندانه د حالت غوندې تر فوت كيدو وروسته هم پخپله امام دى.

۲- امامت د وخت د خليفه حق وي و تر دې وخته پورې هيڅوک خليفه مقرر نه وو.

۳- نبي كريم ﷺ دا وصيت كړى وو چه تر تجهيز او تكفين وروسته د مختلفو ګروپونو په شكل كښې حجرې شريفې ته په داخليدو سره په ما باندې بې له جماعته د جنازې لمونځ ادا كړى. و قد ورد فى بعض الروايات انه ﷺ كان اوصى على الوجه المذكور و لذا وقع التأخير فى دفنه. (حاشية الشمائل لابى الطيب السندى) فقط والله تعالىٰ اعلم. ٤ ربيع الاخر ۱۳۹۳ هجرى

## د جنازې لمونځ بايد تر سنتو وروسته ادا شي

**سوال**: كه چيرته جنازه په داسې وخت كښې تياره شي چه د وخت فرض لمونځ شوى وي ليكن خلكو لا سُنت نه وي ادا كړي. آيا د جنازې لمونځ به له سنتونو څخه مخكښې ادا كوي او كه له سنتونو څخه تر فارغيدو وروسته؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: په دې كښې اختلاف دى چه د جنازې لمونځ دې تر سُنتو مخكښې ادا شي او كه وروسته؟ په دې زمانه كښې تر سُنتو وروسته ادا كول مناسب دي ځكه چه له دين څخه د غفلت د زياتوالي له وجې چه خلک د جنازې لپاره تر فرضو وروسته ووځي نو د مؤكدو سُنتونو د پريښودلو ويره ده. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۹ ربيع الاخر ۱۳۹۳ هجرى

## د جنازې په لمانځه كښې په يوه سلام باندې اكتفاء (بسوالى) جائز نه دى

**سوال**: آيا د جنازې په لمانځه كښې كينې خوا ته سلام نه اړول جائز دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: د جنازې په لمانځه كښې دواړو خواوو ته سلام اړول واجب دي. له دې امله په يوې

خوا باندې اکتفاء کول جائز نه دي. قال الشرنبلالی رحمه الله و يسلم وجوباً بعد التكبيرة الرابعة. (مراقی الفلاح مع حاشية الطحطاوی ص۳۲۱) و قال الطحطاوی رحمه الله (قوله و سننها اربع الخ) الاولی ان يذكر الواجب قبل السنن وهو التسليم مرتين بعد الرابعة كما ذكره بعد. (طحطاوی علی المراقی ص۳۲۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ جمادی الاخر ۱۳۹۳ هجری

## مړي ته به خپل خپلوان غسل ورکوي

**سوال**: مړي ته د غسل ورکولو اجرت (مزدوري) اخيستل جائز دي او که نه؟ په داسې حال کښې چه بې له اجرته چا غسل نه ورکاوه. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته پرته له يوه سړي څخه بل هيڅوک غسل ورکوونکی نه وي نو هغه ته اجرت اخيستل جائز نه دي ځکه چه په ده باندې غسل ورکول فرض عين دی. او که چيرته نور غسل ورکوونکي هم وي نو بيا اجرت جائز دی. كذا فی العلائية ليکن دا فرضيت بايد د مړي خپل خپلوان سر ته ورسوي. خپل عزيز او دوست ته پخپله غسل نه ورکول او نورو ته ئې ور سپارل د ډير نه سړيتوب، بې غيرتی او کبر دليل دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ شعبان ۱۳۹۳ هجری

## د مړی د لمبولو او ښخولو اجرت

**سوال**: د مړي غسل ورکوونکو او ښخوونکو ته اجرت ورکول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: هو! جائز دي. البته که چيرته پرته له يوه سړي څخه نور څوک موجود نه وي نو لکه څرنگه چه په همدې يوه سړي باندې د مړي غسل ورکول او ښخول فرض عين دی له دې امله د اجرت اخيستل ورته جائز نه دی. قال فی شرح التنوير و الافضل ان يغسل الميّت مجاناً، فان ابتغی الغاسل الاجرة جاز ان كان ثمة غيره و الّا لا لتعينه عليه. و ينبغی ان يكون حكم الحمال و الحفار كذلك. سراج. (رد المحتار ج۱، ص۸۰۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۳۰ ربيع الاخر ۱۴۰۰ هجری

## د مړي د مخ ښکارولو رواج

**سوال**: مړي ته د کفن تر ورکولو وروسته د هغه د مخ د ښکارولو رسم او رواج شرعاً څه حکم لري؟ بينوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: په دې رسم او رواج کښې لاندې فسادونه دي. له دې امله پرېښودل ئې واجب دي:

۱ - په ځينو علاقو کښې د مړي مخ ته کتل د اجر او ثواب باعث گڼل کيږي حالانکه په شريعت کښې د دې هيڅ اصل نشته. لهذا دې کار لره ثواب گڼل بدعت دی. او که چيرته ئې ثواب هم و نه

بولي نو په دې سره د دې بدعت ترویج او تائید کیږي
۲ - شرعي حکم دا دی چه مړي ته د غسل د ورکولو او کفن ورکولو په وخت کښې له کم څخه کم خلک هلته موجود وي او هغه به هم د مړي له خپلوانو او دوستانو څخه وي تر څو چه خدای مکړه که چیرته په مړي کښې کوم عیب یا تغیر پیدا شي نو هغه افشاء یا خپور نه شي. د مخ د ښکارولو رسم د شریعت د دې حکم او حکمت په خلاف دی.
۳ - که چیرته مړی کوم مشهور شخصیت وي نو د هغه د مخ په ښکارولو کښې څو ساعته وخت لګیږي. حالانکه د مړي په ښخولو کښې تاخیر جائز نه دی.
۴ - د مخ د ښکارولو د رواج دا نتیجه ده چه د مړي تصویرونه اخیستل کیږي او په اخبارونو کښې شائع کیږي چه په دې کښې د تصویر د لعنت او عذاب څخه پرته د مړي په څیره کښې د تغیر اشاعت دی کوم چه حرام دی.
نن صبا دا قبیح او بد رواج په خواصو او علماؤ کښې هم عام رواج شوی دی. د دې لپاره له دې څخه د احتراز (ځان ساتنې) وصیت کول واجب دي. د وصیت د نه کولو په صورت کښې به د دې وبال او ګناه په مړي باندې هم وي. والله الحفیظ.فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ ربیع الاخر ۱۳۹۴ هجری

## د شیعه په جنازه کښې شرکت جائز نه دي

**سوال** : د شیعه د جنازې په لمانځه کښې د سُنّي سړي شرکت د شریعت له مخې څنګه دی؟ په داسې حال کښې چه د "جنګ" په نامه اخبار کښې زمونږ د ځینو علماء کرامو د شریکیدو خبر خپور شوی دی. که چیرته د شیعه په جنازه کښې شرکت جائز وي نو خیر. او که نه وي د دغو علماؤ د شرکت مطلب څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب** : وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ الآية (۹.۸۴)
مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ الآية (۹.۱۱۳)
د شیعه ګانو کفر ښکاره دی او په مذکوره آیتونو کښې په صراحت سره د کفارو د جنازې له ادا کولو، د هغوی قبرونو ته له تللو او د هغوی لپاره د مغفرت له غوښتلو څخه منع شوې ده. که چیرته د شیعه د جنازې په لمانځه کښې د کوم عالِم د شرکت خبر خپور شوی وي نو له هم هغه عالم څخه ئې باید د وضاحت غوښتنه وشي. د اخبار خبر اعتبار نه لري.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ محرم ۱۳۹۳ هجری

## د جنازې لپاره دریدل جائز نه دي

**سوال** : د مړي د تعظیم لپاره دریدل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه جائز نه دي. قال فی شرح التنویر ولا یقوم من فی المصلی لها اذا رأها قبل وضعها ولا من مرّت علیه هو المختار وما ورد فیه منسوخ. زیلعی. (ردالمحتار ج۱، ص۸۳۳)

فقط والله تعالی اعلم ۱۳ ذیقعده ۱۳۹٤ هجری

## د جنازې په څادر باندې د قرآني آیتونو لیکل جائز نه دي

**سوال**: نن صبا په جنازې باندې داسې څادرونه اچول کیږي چه په هغو باندې قرآني آیتونه او کلمې لیکل شوې وي. آیا په جنازې باندې د داسې څادرونو اچول صحیح دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې هیڅ ثبوت نشته. او د بې ادبۍ ویره پکښې ده. د دې لپاره د داسې څادرونو اچول په مړي باندې جائز نه دي.

فقال ابن عابدین رحمة الله علیه عن الفتح انه تکره کتابة القرآن و اسماء الله تعالی علی الدّراهم و المحاریب و الجدران وما یفرش وما ذاك الا لاحترامه وخشیة وطئه ونحوه مما فیه اهانة فالمنع هنا بالاولی مالم یثبت عن المجتهد او ینقل فیه حدیث ثابت فتأمل. (ردالمحتار ج۱، ص۸۴۷)

فقط والله تعالی اعلم ٦ محرم ۱۳۹۵ هجری

## د خنثی مشکل (نربنځي) د غسل تفصیل

**سوال**: که چیرته خنثی مشکل (نربنځی) مړ شي نو آیا هغه ته به نارینه غسل ورکوي او که ښځه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر څو پورې چه کیدلی شي نربنځی په ټولو احکامو کښې د نارینه یا د ښځې په حکم کښې شماریږي. که چیرته په هغه کښې د نارینتوب علامې زیاتې وي لکه ږیره ئې وي. یا د نارینه غوندې ئې متیازې کولې. یا له ده څخه کومې ښځې حمل واخیست. نو دی به نارینه ګڼل کیږي. او که چیرته د ښځې علامې پکښې زیاتې وي لکه یا حامله شوه. یا ئې تیونه ښکاره شول یا حیض ورته راغی یا ئې د ښځې غوندې متیازې کولې نو بیا ښځه ګڼل کیږي. که چیرته ئې د متیازو دواړه ډوله ځایونه درلوده نو بیا له کوم ځایه څخه چه اول متیازې را ووځي هغه ته به اعتبار ورکول کیږي. که چیرته ئې حالت همداسې شکمن پاتې وي چه له هیڅ یوې وجې څخه چا د هغه نارینتوب یا ښختوب ته ترجیح نه شوای ورکولی نو دې ته خنثی مشکل ویل کیږي. که چیرته خنثی مشکل له د څلورو کالو یا له دې څخه د کم عمر وي نو هغه ته ښځه هم غسل ورکولی شي او نارینه هم او که له څلورو کلونو څخه ئې عمر زیات وي نو بیا به تیمم ورکول کیږي.

قال فی شرح التنویر ویتیمم الخنثی المشکل لو مراهقاً والا فکغیره فیغسله الرجال والنساء وفی الشامیة

(قوله والافكغيره) اى من الصغار والصغائر قال فى الفتح الصغير والصغيرة اذالم يبلغها حدّ الشهوة يغسلهما الرجال والنساء وقدره فى الاصل بان يكون قبل ان يتكلّم اه. (رد المحتار ج۱،ص۸۰۶) وفى شروط الصلوة من العلائية عن السراج لاعورة للصغير جدا ثم مادام لم يشته فقُبل ودُبر ثم تغلظ الى عشر سنين ثم كبالغ، و فى الشامية (قوله لاعورة للغير جداً) وكذا الصغيرة كما فى السراج فيباح النظر والمس كما فى المعراج قال ح و فسره شيخنا بابن اربع فما دونها ولم ادر لمن عزاه اه اقول قد يؤخذ مما فى جنائز الشرنبلالية ونصه واذالم يبلغ الصغير و الصغيرة حد الشهوة يغسلهما الرجال و النساء و قدره فى الاصل بان يكون قبل ان يتكلّم اه. (رد المحتار ج۱،ص۳۷۸) والله تعالىٰ اعلم ٦ جمادى الثانى ١٣٩٥ هجرى

## په شپه کښې د مړي د ښخولو حکم

**سوال**: په شپه کښې د مړې ښخول جائز دي او که نه؟ يو مولوي صاحب وائي چه جائز نه دي. او په دليل کښې دا حديث وړاندې کوي. لا تدفنوا موتاكم بالليل الّا ان تضطروا (ابن ماجة ص۱۱۰، باب ماجاء فى الاوقات التى لا يصلّى فيها على الميت ولا يدفن) نو آيا د نوموړي مولوي صاحب دا خبره صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په شپه کښې د مړې ښخول پرته له شک او شبهې څخه جائز دی.

قال فى العلائية لا يكره الدفن ليلاً (رد المحتار ج۱،ص۸۴۷) وقال النووى رحمه الله قال جماهير العلماء من السلف والخلف لا يكره (الدفن ليلاً) و استدلوا بانّ ابابكر الصديق رضى الله تعالىٰ عنه و جماعة من السلف دفنوا ليلا من غير انكار وبحديث المرأة السوداء او الرجل الذى كان يقم المسجد فتوفى بالليل فدفنوه ليلاً اه (نووى على صحيح مسلم ج۱،ص۳۰۶) وروى الترمذى رحمه الله عن ابن عباس رضى الله تعالىٰ عنهما انّ النبى ﷺ دخل قبراً ليلاً فاسرج له السراج فاخذه من قبل القبلة وقال رحمك الله ان كنت لاوّاها تلّاءً للقرآن (ترمذى ج۱،ص۱۲۱) وروى ابن ماجة رحمه الله تعالىٰ انّ رسول الله ﷺ ادخل رجلاً قبره ليلاً و اسرج فى قبره (ابن ماجة ص۱۰۹) وفى جمع الفوائد عن القزوينى انه دفن صلى الله عليه وسلّم وسط الليل من ليلة الاربعاء.

له پورتني روايتونو څخه پرته د جنازې د تاخير د كراهت روايتونه هم په شپه کښې د ښخولو په جواز باندې دليل دي. د دې لپاره محدّثينو د نهى د روايت مختلف ځوابونه وركوي.

۱ - په دې روايت کښې ابراهيم بن يزيد ضعيف دى ليكن دا ځواب د دې لپاره كافي نه دى چه د نهى په اړه په صحيح مسلم کښې هم يو حديث شته: عن جابر بن عبد الله رضى الله عنه ان النبى ﷺ خطب

**يوماً فذكر رجلاً من اصحابه قبض فكفن في كفن غير طائل وقبر ليلاً فزجر النبي ﷺ ان يقبر الرجل بالليل حتى يصلّى عليه الا ان يضطر انسان الى ذلك. وقال النبي ﷺ اذا كفن احدكم اخاه فليحسن كفنه. (صحيح مسلم ج۱،ص۳۰۶)** د صحيح مسلم په دې روايت كښې چونكه تفصيل زيات دى د دې لپاره د ابن ماجه روايت كه څيرته صحيح هم ومنل شي نو هغه به په دې تفصيل باندې محمولېږي او د هغه به هم همغه ځوابونه وي كوم چه د مسلم د روايت دى.

۲ - ځينو خلكو به مړي ته سم كفن نه وركاوه او د دې حركت د پټولو لپاره به ئې مړى په شپه كښې ښخاوه. له دې څخه ئې منع وفرمايله. د حديث الفاظ **فكفن في كفن غير طائل** او **اذا كفن احدكم اخاه فليحسن كفنهٔ** په دې توجيه باندې پوره دليل دى.

۳ - د شپې په وخت كښې د جنازې په لمانځه كښې كم خلك شريكېږي. دا ځواب هم له **(حتّٰى يصلّى)** څخه را اخيستل شوى دى. **(اى يصلى عليه بجمع كثير)** د دې دا مطلب نه دى چه د جمع كثير (د ګنو خلكو د يو ځاى كيدو) په خاطر د ورځې انتظار وكړئ بلكه دا مطلب دى چه تر خپله وسه پورې د شپې له راتلو څخه مخكښې بايد ځانونه فارغ كړئ. كه څيرته سره له كوششه شپه شوه نو بيا د سهار انتظار مه كوئ. د **(الا ان تضطروا)** همدا مطلب دى.

۴ - **(حتّٰى يصلّى عليه)** معروفه صيغه ده او د فاعل ضمير د نبي كريم ﷺ خوا ته راجع دى. كله كله داسې وشول چه ځينې مړي په شپه كښې ښخ كړى شول او د تكليف په خيال سره ئې نبي كريم ﷺ ته خبر ور نه كړى شو. په دې باره كښې ده ﷺ دا وفرمايل چه په ورځ كښې د ښخولو كوشش وكړئ تر څو چه دى ﷺ هم په هغه باندې د جنازې لمونځ ادا كړى شي ځكه چه د ده ﷺ لمونځ د خاص رحمت سبب دى.

۵ - د بنده په ګومان دا نهى د شفقت په بناء سره هم كيدلى شي چه د شپې په ښخولو كښې له تكليف څخه پرته له قبر څخه د كوم موذي (ضررناک) ځناور د را وتلو احتمال دى. چه له هغه څخه د ټک وركولو ويره هم شته او د مړي لپاره ئې د بد فالۍ په نيولو سره د خلكو په ګناه كښې د مبتلا كيدو انديښنه هم شته.

په هر صورت حاصل دا دى چه له د شپې له راتلو څخه مخكښې بايد د مړي د ښخولو كوشش وشي. سره له دې كه څيرته شپه شي نو بيا د سهار انتظار جائز نه دى.

**فقط والله تعالى اعلم**

**۱۹ جمادى الاولى ۱۳۹۶ هجرى**

## تر دفن وروسته په دُعاء کښې د لاسونو پورته کول مستحب دي

**سوال**: مړي تر ښخولو وروسته په قبر باندې څه وخت پاتې کېدل او دُعاء کول خو ثابت د ليکن په دې دُعاء کښې د لاسونو د پورته کولو تصريح چيرته په نظر نه دی راغلی. لهذا په دې باره کښې مونږ له خپلو لوړو تحقيقاتو څخه خبر کړئ چه د دې وخت په دعاء کښې د لاسونو پورته کول ثابت دي او که نه؟ که چيرته ثابت نه وي نو د لاسونو پورته کول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قاعدې د مقتضاء له مخې د لاسونو پورته کول مستحب دي. او د قبرونو د زيارت په وخت کښې د رفع يدينو ه ثبوت څخه هم د دې تائيد کيږي. ليکن د اکابرو د عدمِ رفع د تعامل له مخې د رفع يدينو د قول او عمل همت مې نه شواي کړی. په همدې بناء سره په "احسن الفتاویٰ جديد جلد اول" کښې د ردّ البدعات په باب کښې د لاسونو د نه پورته کولو فتویٰ ليکل شوې ده. تر دې وروسته په حديث کښې د رفع اليدينو تصريح لاس ته راغله. قال الحافظ رحمه الله: وفي حديث ابن مسعود رضي الله عنه رأيت رسول الله ﷺ في قبر عبد الله ذي البجادين الحديث. وفيه فلما فرغ من دفنه استقبل القبلة رافعاً يديه. اخرجه ابو عوانة في صحيحه. (فتح الباری ج۱۱، ص۱۲۲) اوس د لاسونو د پورته کولو په استحباب کښې هيڅ تامل (شک) پاتې نه شو. د دې لپاره د نه پورته کولو له فتویٰ څخه رجوع کوم. البته په دې سره د اجتماعي دُعاء د بدعت ثبوت نه را ووځي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ ربيع الاول ۱۴۰۰ هجری

## په قبر باندې د اوبو د شيندلو حکم

**سوال**: په قبر کښې چه کله خلک مړی ښخ کړي نو له ټولو کارونو څخه تر فارغيدو وروسته په آخر کښې د تلو په وخت په قبر باندې اوبو پاشي او ټولو خواوو ته بيا خاوره اچوي يا کله هم چه په کوم قبر باندې فاتحه لوستل کيږي نو اوبو خامخا پرې اچوي. آيا داسې کول صحيح دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قبر د خاورې د ټينګولو په غرض سره د اوبو پاشل مندوب دي ليکن ضروري ګڼل ئې يا په مستقله توګه د ثواب کار ګڼل ئې بدعت او ګناه دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ شوال ۱۳۹۶ هجری

## مړی په قبر کښې په ښي اړخ باندې څملول سُنت دي

**سوال**: تاسو په وصيت نامه کښې ليکلي دي چه مړی په قبر کښې د سنتو مطابق په ښي اړخ باندې څملوئ. ستوني ستاق څملول او يواځې مخ ئې د قبلې خوا ته د ګرځولو رواج او دستور غلط دی. يو مولوي صاحب فرمائي چه د عام دستور مطابق ستوني ستاق څملول او يواځې مخ ئې د قبلې خوا ته په ګرځولو سره هم سنت ادا کيږي، په ښي اړخ باندې څملول ئې مستحب دي نه

سنت او په دې باندې د دُر مختار حواله ورکوي چه په دې کښې (ینبغی کونه علی شقه الایمن) دی. په دې باره کښې څه وليکئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د درمختار جمله (**وینبغی کونه علی شقه الایمن**) د تنویر د عبارت (**و یوجه الیها**) شرح او تفسیر دی. مقصد ترې دا دی چه د قبلې د استقبال درې صورتونه دي. په بنې اړخ باندې. په کيڼ اړخ باندې. ستوني ستاق څملول او قبلې خوا ته د پښو اوږدول او د سر لږ غوندې جګول لکه څرنګه د مریض په لمانځه او د مړي په غسل کښې بیانیږي. د دغو دريواړو صورتونو څخه پرته د قبلې د استقبال بل هيڅ صورت نشته. پس په مروج دستور کښې د قبلې استقبال نه میندل کیږي. دې لپاره په حديث او فقه کښې له دې څخه ممانعت راغلی دی. (**کما سیأتی**). د دفن په وخت کښې په دغو دريواړو صورتونو کښې يواځې لومړی صورت مسنون دی. د تنوير عبارت لکه څرنګه چه دريواړو صورتونو ته شامل دی د دې شارح ته د دې د وضاحت ضرورت ور پيښ شو. د (**ینبغی**) لفظ يواځې د استحباب لپاره مخصوص نه دی بلکه د فقهاؤ په عباراتو کښې د وجوب لپاره هم استعماليږي. (**کما صرحوا به**). د متن. شرح او د ابن عابدين رحمه الله حاشیه د دريواړو د مجموعي عبارت حاصل دا دی چه په قبر کښې په ښي اړخ باندې په څملولو کښې د وجوب قول هم شته. ليکن د راجح قول مطابق مسنون دی. چنانچه دا مفهوم د نورو کتابونو په عباراتو کښې ډير څرګند دی.

قال فی الهندية ويوضع فی القبر علی جنبه الايمن مستقبل القبلة كذا فی الخلاصة (عالمگيرية ج۱،ص۱۶۶) و قال العلامة الحلبی رحمه الله ويوجه الميت فی القبر الی القبلة علی جنبه الايمن ولا يلقی علی ظهره (غنية المستملی ص۵۵۳) وقال الشرنبلالی رحمه الله ويوجه الی القبلة علی جنبه الايمن بذلك امر النبی ﷺ وفی حديث ابی داؤد البيت الحرام قبلتكم احياء واموا تاً وقال الطحطاوی رحمه الله بذلك امر النبی ﷺ عليّاً رضی الله تعالی عنه لما مات رجل من بنی عبد المطلب فقال يا علیّ استقبل به القبلة استقبالاً وقولوا جميعاً باسم الله وعلی ملّة رسول الله وضعوه لجنبه ولا تكبوه علی وجهه ولا تلقوه علی ظهره كذا فی الجوهرة وفی الحلبی ويسند الميت من ورائه بنحو تراب لئلا ينقلب اه (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص۳۳۴) وقال الامام ابن الهمام رحمه الله تعالی لحديث علیّ رضی الله تعالی عنه هذا غريب واستؤنس له بحديث ابی داؤد والنسائی ان رجلاً قال يا رسول الله ما الكبائر؛ قال هی تسع فذكر منها استحلال البيت الحرام قبلتكم احياء واموا تاً والله اعلم (فتح القدير ج۱،ص۴۷۱) وقال ابن نجيم رحمه الله ووجه الی القبلة بذلك امر النبی ﷺ ويكون علی شقه الايمن كما قدمناه (بحر ج۲،ص۱۹۳) و

قال الامام الکاسانی رحمه الله و یوضع علی شقه الایمن متوجها الی القبلة لما روی عن علی رضی الله تعالی عنه انه قال شهد رسول الله ﷺ جنازة رجل فقال یا علی استقبل به استقبالاً (الی قوله) و لا تلقوه لظهره (بدائع الصنائع ج۱،ص۳۱۹) فقط والله تعالی اعلم غرة شعبان ۱۴۰۰ هجری

## د داسې مړي حکم چه اسلام او کفر ئې معلوم نه وي

**سوال**: په دې اوس باران او سیلاب کښې چه کوم لاشونه پیدا شول له هغو ځخه په ځینو لاشونو کښې دا شبهه ده چه د کافرانو دي او که د مسلمانانو؟ ځکه چه د برساتي ویالې او کندې په کناره کښې هندوان هم اوسیدل. آیا د دغو مشکوکو خلکو د جنازې لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته په مړي کښې د مسلمان والي کومه نخښه پیدا شوه نو هغه به مسلمان شمارل کیږي او که چیرته کومه علامه پکښې پیدا نه شي نو په دار الاسلام کښې د اوسیدو له وجې هغه مسلمان ګڼل کیږي. له دې امله د غسل په ورکولو سره ئې جنازه ادا کیږي. احتیاط په دې کښې دی چه یقیني مسلمانان او مشکوک مړي یو ځای کینبودل او په هغو باندې په دې ډول د جنازې لمونځ باید وشي چه په هغو کښې یواځې په مسلمانانو باندې د جنازې نیت وشي.

قال فی شرح التنویر لو لم یدر امسلم ام کافر ولا علامة فان فی دارنا غسل وصلی علیه والا لا، اختلط موتانا بکفار ولا علامة اعتبر الاکثر فان استووا غسلوا واختلف فی الصلوة علیهم ومحل دفنهم، وفی الشامیة وقیل یصلی ویقصد المسلمین لانه ان عجز عن التعیین لا یعجز عن القصد کما فی البدائع، قال فی الحلیة فعلی هذا ینبغی ان یصلی علیهم فی الحالة الثانیة ایضاً ای حالة ما اذا کانت الکفار اکثر (الی قوله) کما قالت به الائمة الثلاثة وهو اوجه قضاء لحق المسلمین بلا ارتکاب منهی عنه اه ملخصاً (رد المحتار ج۱،ص۸۰۵) فقط والله تعالی اعلم

۱۷ رجب ۱۳۹۷ هجری

## په سیلاب کښې مړه کیدونکو ته د غسل ورکول فرض دي

**سوال**: په سیلاب کښې چه د کومو مسلمانانو لاشونه پیدا شي نو هغوی ته دوباره غسل ورکول کیږي او که د سیلاب غسل ورته کافي دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسې مړیو ته غسل ورکول فرض دي. پرته له غسل ورکولو سره ئې هم جنازه صحیح کیږي لیکن غسل نه ورکوونکي به ګنهګار وي. د لمانځه د صحت لپاره د سیلاب غسل کافي دی. کذا فی العلائیة. فقط والله تعالی اعلم ۱۷ رجب ۱۳۹۷ هجری

## د ښځې له نوکانو څخه د رنګ یا پالش له لرې کولو پرته ئې غسل او د جنازې لمونځ صحیح نه دی

**سوال**: فرض کړئ کومه خور د خپلو نوکانو د رنګولو یا پالش لګولو عادت لري او په په همدې حال کښې مړه شي. چه کله ښځو هغې ته غسل ورکاوه نو ور پام ئې نه وو چه د نوکانو رنګ ئې لرې کړي او د غسل له ورکولو وروسته معلومه چه د نوکانو رنګ هم هغسې پکښې پاتې شو نو آیا اوس به دوباره غسل ورکوي او که نه؟ یو ځای همداسې څوک مړه شوه او د غسل ورکولو په وخت کښې چا دې خوا ته توجه ور نه کړه وروسته چه ولیدل شو نو ورته وویل شول چه اوس به همداې پاتې وي. اوس هیڅ هم نه شي کیدلی له دې وجې همداسې به ښخیږي. نو په داسې صورت کښې به د شریعت له مخې څه باید وشي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د رنګ لرې کول او یواځې د نوکانو مینځل کافي دي. د ټول غسل د اعادې ضرورت نشته. د پالش لرې کول او د نوکانو پریمینځل فرض وو. پرته له لرې کولو ئې غسل نه صحیح کیږي له دې امله د جنازې لمونځ ئې نه دی شوی. کوم جاهل چه دا مسئله ورکړې ده چه اوس ئې د مینځلو ضرورت نشته هغه سخت ګنهګار دی. په هغه توبه کول فرض دي. **فقط و الله تعالیٰ اعلم**

**۲۰ شعبان ۱۳۹۷ هجری**

## د جنازې په لمانځه کښې تر سلام مخکښې د لاسونو د پریښودلو حکم

**سوال**: د جنازې په لمانځه کښې تر آخري تکبیر وروسته او تر سلام مخکښې لاسونه باید پریښودل شي او که تر سلام اړولو وروسته؟ عام دستور خو د سلام تر اړولو وروسته د لاسونو د پریښودلو دی. لیکن یو عالِم فرمائي چه تر څلورم تکبیر وروسته د لاسونو په پریښودو سره سلام باید واړول شي. آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د تکبیرونو تر ختمیدو وروسته او له سلام اړولو څخه مخته باید لاسونه پریښودل شي. **فی صفة الصلٰوة من التنویر وهو سنة قیام له قرار فیه ذکر مسنون، وفی الشرح فیضع حالة الثناء وفی القنوت وتکبیرات الجنازة.** (ردالمحتار ج۱، ص۴۵۵) له دې کلیې څخه ثابتیږي چه تر سلام مخکښې باید لاسونه پریښودل شي. پرته له دې څخه **(و تکبیرات الجنازة)** له تخصیص څخه هم همدغه مفهوم را ووځي او په لاندیني جزئیاتو کښې د دې تصریح دی. **فی خلاصة الفتاوٰی ولا یعقد بعد التکبیر الرابع لانه لا یبقی ذکر مسنون حتی یعقد فالصحیح انه یحل الیدین ثم یسلم تسلیمتین.** (عزیز الفتاوٰی ج۱، ص۳۶۳) **وقال العلامة اللکنوی رحمه الله علیه ومن ههنا یخرج الجواب عما سئلت فی سنة ست وثمانین ایضاً من انه هل یضع مصلی الجنازة بعد التکبیر الاخیر من تکبیر اته ثم یسلم ام یرسل ثم یسلم و هو انه**

ليس بعد التكبير الاخير ذكر مسنون فيسن فيه الارسال.(سعاية ج۲،ص۱۵۹)

د سنده د يوه مشهور مفتي مولانا احمد هالاني په "فتاوی محمديه" قلمي نسخې کښې دا جزئيات دي ولا عقد بعد التكبير الرابعة فالصحيح ان يحلل اليدين ثم يسلم كذا فى الظهيرية و الخانية و الذخيرة اه. جواهر القلوب. ويرسل بعد الرابعة يديه لانه ليس بعدها ذكر كما فى الجلابى اه. روح البيان. ولا عقد بعد التكبير الرابعة لانه لا يبقى ذكر مسنون فالصحيح ان يحلل اليدين ثم يسلم تسليمتين كذا فى ... وى الحسامى و الوجيز اه. رسالة مستقلة. د فتاوی محمديه له دغو حواله جاتو څخه د خانيه له ... سري پلټنې څخه دا صريحه جزئيه لاس ته را نغله او نور کتابونه خو پيدا کيږي نه. واما ما وجّه ... عزيز الفتاوٰى بقوله لكن قد يقال ان التسليمتين بعد التكبير الرابع ذكر مسنون فجوابه ان الوضع سنة قيام له قرار ولذا الاوضع فى القومة مع اشتمالها على ذكر مسنون.

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۵ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## د مړي په غسل کښې د لوټو د استعمالولو حکم

**سوال** په "بهشتي زيور" يعنې جنتي کالي کښې دي چه مړي ته د غسل ورکولو په وخت کښې ... جاء په لوټو سره ورکړی شي او بيا په اوبو سره پريمينځل شي. ليکن په "امداد الفتاویٰ" کښې دي چه د مړي لپاره د لوټې استعمال ثابت نه دی. په دواړو کښې کومه يوه فتوی صحيح ده؟ ...و توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** د فقهې په کتابونو کښې د مړي لپاره د استنجاء حکم په صراحت سره راغلی دی. د دې لپاره د که چيرته د لوټو د استعمال په صراحت سره حکم که پيدا هم نه شي ... بيا هم چونکه د استنجاء مسنونه طريقه همدا ده چه تر لوټو وروسته اوبو استعمال شي او په دې اطلاق کښې مړی هم داخل دی. لهذا د ده لپاره به هم د لوټې استعمال مسنون وي.

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۵ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## د مړي سر چه کينې خوا ته وي نو د جنازې لمونځ ئې صحيح دی

**سوال** د جنازې د لمانځه لپاره که چيرته په غلطۍ سره مړی سرچپه کيښودلی شي يعنې سر ئې کينې خوا ته او پښې ئې خوا ته. له لمانځه څخه تر فارغيدو وروسته د دې غلطۍ معلومات وشي ... آيا د جنازې لمونځ به دوباره کوي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب** د جنازې لمونځ ئې صحيح شوی دی. د دوباره را گرځولو ضرورت ئې نشته البته په قصد سره د مړي دا ډول کيښودل د سنتو د خلاف ورزي له وجې مکروه دي که چيرته په غلطۍ سره وي نو هيڅ کراهت پکښې نشته. قال فى شرح التنوير وصحت لو وضعوا الرأس موضع الرِّجلين واساؤا

ان تعمدوا (ردالمحتار ج۱، ص۸۱۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## د جنازې د لمونځ کوونکو مخې ته د تیریدلو حکم

**سوال** : د جنازې لمونځ کیدونکی دی او مخې ته کومه سُتره هم نه وي. نو آیا له مخې څخه تیریدل ئې جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب** : مخې ته د تیریدو ممانعت د عامو لمونځونو لپاره دی. د جنازې په لمانځه کښې له مخې څخه تیریدل جائز دي. همدارنګه د امام مخې ته د جنازې سُتره شته او د امام سُتره د مقتدیانو لپاره کافي ده. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## د جنازې په لمانځه کښې چه سلام هیر شي نو لمونځ کیږي

**سوال** : د جنازې په لمانځه کښې چه امام تر څلورم تکبیر وروسته د سلام اړول هیر کړي نو آیا لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د جنازې په لمانځه کښې سلام فرض نه بلکه واجب دی. په عامو لمونځونو کښې د واجبو ترک د سجدهٔ سهو موجب وي لیکن د جنازې په لمانځه کښې سجدهٔ سهو نشته. له دې امله لمونځ صحیح کیږي او بیرته را ګرځول ئې واجب نه دي.

قال الشرنبلالی رحمه الله ویسلم وجوباً بعد التکبیرة الرابعة (مراقی الفلاح مع حاشیة الطحطاوی ص۳۲۱) و قال الطحطاوی رحمه الله علی (قوله وسننها اربع الخ) الاولی ان یذکر الواجب قبل السنن وهو التسلیم مرتین بعد الرابعة کما ذکره بعد (طحطاوی علی المراقی ص۳۲۰) وفی المراقی ولو سلّم الامام بعد الثلاثة ناسیاً کبر الرابعة ویسلم، وفی الحاشیة ولم یبینوا هل یجب علیه سجود السهو؟ (طحطاوی ص۳۲۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ شوال ۱۳۹۸ هجری

## د جنازې په لمانځه کښې د څلورم تکبیر د هیریدلو حکم

**سوال** : امام د جنازې په لمانځه کښې تر دریو تکبیرونو وروسته په هیره سره سلام واړاوه، د نتحې په ورکولو سره ئې څلورم تکبیر ووایه او بیا ئې سلام واړاوه. نو آیا دا لمونح صحیح شو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په نوموړي صورت کښې لمونځ صحیح شو. قال الشرنبلالی رحمه الله ولو سلم الامام بعد الثلاثة ناسیاً کبر الرابعة ویسلم وقال الطحاوی رحمه الله ولم یبینوا هل یجب علیه سجود السهو. (حاشیة الطحطاوی علی المراقی ص۳۲۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ربیع الاول ۱۳۹۹ هجری

## د جنازې په لمانځه کښې به کوم ځای ته سړی ګوري؟

**سوال**: دجنازې په لمانځه کښې به سړی کوم ځای ته ګوري؟ د سجدې ځای ته او که لاسونو ته؟

**الجواب**: په دې اړوند کومه صریحه جزئیه مې له نظره نه ده تیره شوې. د قاعدې مقتضیٰ دا ده چه لکه د نورو لمونځونو غوندې په جنازه کښې هم باید د سجدې ځای ته وکتل شي. د لمانځه په مختلفو ارکانو کښې د نظر لپاره د مختلفو ځایونو له تعیین څخه اصل مقصد د خشوع او خضوع پیدا کول دي. په یوه ځای باندې د نظر په ساتلو سره یکسوئي پیدا کیږي کوم چه په خشوع کښې معین (امدادګری) دی. له قیام، رکوع، سجدې او قعدې څخه په هر رکن کښې چه په کوم ځای باندې د نظر ساتل طبعاً آسانه وو بلکه د طبعي حالت موافق وو د هغه تعیین شوی دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ ذی الحجة ۱۳۹۸ هجری

## شیعه ته د غسل او کفن ورکولو حکم

**سوال**: که چیرته شیعه مړ شي او بل کوم شیعه موجود نه وي نو آیا مسلمان هغه ته غسل او کفن ورکولی شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: هو! ده ته به مسلمان غسل او کفن ورکوي. لیکن د سنتو په مطابق به ئې نه ورکوي بلکه اوبو دې پرې وبهوي او په ټوکر کښې دې ونغاړي خاورې دې پرې را واړوي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری

## د قبر په سر باندې د قرآني آیت لیکل جائز نه دي

**سوال**: دقبرپه سرپه لوحې باندې دمړي نوم اوقرآني آیت لیکل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نوم لیکل ئې جائز دي لیکن د قرآني آیت په لیکلو کښې بې ادبي ده. له دې امله جائز نه دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری

## په مړي باندې له رواج شوي منکراتو څخه د احتراز وصیّت واجب دی

**سوال**: نن صبا د چا په مړ کیدو باندې چه وارثان ئې کوم خرافات کوي لکه د مړي د مخ د ښکارولو رسم او داسې نور. آیا په مړي باندې هم د دې ګناه وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په مړي باندې د ډیرو منکراتو عام رواج جوړ شوی دی لکه:

۱ - د مړي د مخ د ښکارولو رسم.

۲ - د مخ د ښکارولو لپاره څو ساعته د جنازې د کیښودل.

۳ - د عزیزانو او خپلوانو لپاره د جنازې په لمانځه کښې ځنډ او تاخیر.

۴ - د ډیرو خلکو د یو ځای کیدو په خاطر په جومات کښې د فرض لمانځه د جماعت انتظار

۵ - د مړي عکسونه اخيستل
۶ - دعکسونو په اخبارونو کښې خپرول.
۷ - جنازه له يوه ځای څخه بل ځای ته وړل.
۸ - د جنازې لمونځ څو څو ځله ادا کول.
۹ - د جنازې د لمانځه غائبانه ادا کول.
۱۰ - له عام قبرستان څخه جلا په مخصوص ځای کښې د مړي ښخول.
۱۱ - د قبر په شاوخوا کښې چارديوالي يا چوتره جوړول.
۱۲ - د ايصال ثواب لپاره د سنتو خلاف اجتماع ګانې.
۱۳ - تعزيتي جلسې جوړول
۱۴ - د مړي په مناقبو کښې د غير واقعي (دروغجنو) حالاتو خپرول او داسې نور.

نن صبا د دغو منکراتو وباء تر دې اندازې پورې خپره شوې ده چه علماء او صلحاء هم پکښې مبتلا دي بلکه د مشهورو مذهبي رهبرانو په جنازو کښې د دغو منکراتو ارتکاب څو چنده زيات وي. په دغو حالاتو کښې چه کوم سړي ته دا ويره وي چه د هغه په انتقال باندې د هغه ناعاقبت انديش، د آخرت له فکر څخه بې خبره، د دنيوي نوم او نشان وړې وارثان، نالائق معتقدين، ناخلف خلفاء او د دين په شکل کښې بې دينه عناصر په هغه باندې داسې ظلمونه کوي او تر مرګ وروسته هغه په دې ډول رسوا کوي نو په داسې سړي باندې وصيت واجب دی چه د هغه په انتقال باندې داسې محظورات او شرعي ممنوعات هيڅکله هيڅکله تر سره نه شي. بلکه په تجهيز او تکفين، د جنازې لمونځ، دفن، ايصال ثواب او داسې نور کارونه ټول د سنتو په مطابق ادا شي. که چيرته داسې وصيت و نه کړي نو سخت ګنهګار او د عذاب مستحق به وي. د صحيح بخاري شريف حديث **تعذيب الميت ببكاء اهله عليه** په متعلق مشهوره توجيه دا ده چه د ده په ژوند کښې د چا په مړينې باندې د نوحې (ژړا او فرياد) د ګناه د علم باوجود هغه له دې څخه ممانعت نه دی کړی او داسې وصيت و نه کړي نو هغه ته به عذاب ورکول کيږي. په وصيت کښې د دغو منکراتو د تفصيل په ليکلو سره دې خلک منع کړي. په ځانګړې توګه په ديني رهبرانو او مقتداء حضراتو باندې د دې وصيت وجوب نور هم زيات مؤکد دی. **فقط والله المستعان وهو الموفق ولا حول ولا قوة الا به.**

**۱۵ صفر ۱۳۹۹ھ هجری**

## د شافعي امام په اقتداء کښې د جنازې په لمانځه کښې د پنځم تکبير د ويلو حکم

**سوال:** زيد حنفي دی. ده د جنازې په لمانځه کښې په شافعي مسلکه امام پسې اقتداء وکړه. د

شوافعو په نزد په جنازه کښې پنځه تکبیرونه دي. نو آیا حنفي به په پنځم تکبیر کښې هم د هغه اقتداء کوي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د حنفي په شافعي پسې اقتداء خو صحیح ده لیکن په پنځم تکبیر کښې به د هغه متابعت نه کوي بلکه خاموش یعنې غلی به درېږي او بیا دې له امام سره یو ځای سلام واړوي.

قال فی الشامیة او بمن یری تکبیرات الجنازة خمساً لا یتابعه لظهور خطئه بیقین لان ذٰلك كله منسوخ بدائع. (رد المحتار ج۱، ص۵۸۰) وفی العلائیة ولو کبر امامه خمساً لم یتبع لانه منسوخ فیمکث المؤتم حتی یسلم معه اذا سلم به یفتی. (رد المحتار ج۱، ص۸۱۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ صفر ۱۳۹۹ھ ہجری

## د شافعي امام په اقتداء کښې د جنازې په تکبیرونو کښې د لاسونو پورته کول مستحب دي

**سوال** : زید حنفي دی. ده د جنازې په لمانځه کښې په شافعي مسلکه امام پسې اقتداء وکړه. د شافعیانو په نزد د جنازې په لمانځه کښې د لاسونو پورته کول شته. نو آیا حنفي به په رفع یدینو کښې د امام متابعت کوي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : حنفي ته د جنازې د لمانځه په تکبیرونو کښې د شافعي امام متابعت کول مستحب دي.

قال ابن عابدین رحمه الله اقول یؤخذ منه ان الحنفی اذا اقتدی بشافعی فی صلوة الجنازة یرفع یدیه لانه مجتهد فیه فهو غیر منسوخ لانه قد قال به ائمة بلخ من الحنفیة (رد المحتار ج۱، ص۵۸۰) وفی شرح التنویر یرفع یدیه فی الاولی فقط وقال ائمة بلخ فی کلها. قال ابن عابدین رحمه الله (قوله وقال ائمة بلخ فی کلها) وهو قول الائمة الثلاثة وروایة عن ابی حنیفة رحمه الله تعالی کما فی شرح درر البحار والاول ظاهر الروایة کما فی البحر وفی حاشیته للرملی ربما یستفاد منه ان الحنفی اذا اقتدی بالشافعی فالاولی متابعته فی الرفع ولم اره اه اقول ولم یقل یجب لان المتابعة انما تجب فی الواجب او الفرض وهذا الرفع غیر واجب عند الشافعی رحمه الله تعالی (رد المحتار ج۱، ص۸۱۶) فقط والله تعالیٰ اعلم

۴ ربیع الاول ۱۳۹۹ھ ہجری

## د مسلمان په جنازه کښې د کافر د شرکت حکم

**سوال** : په کلي کښې یو غیر مسلم یعنې کافر اوسیږي. نو آیا دی د مسلمانو له مړي سره د مسلمانانو قبرستان ته تللی شي او که نه او آیا خاورې پرې اچولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نه ! جائز نه دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴ ربیع الاول ۱۳۹۹ھ ہجری

## د کافر په جنازه کښې د مسلمان د شریکیدلو حکم

**سوال**: د غیر مسلم له مړي سره مسلمان ته د هغه د مړي د سوځولو یا نورو مراسمو د په ځای کولو ځای ته تلل جائز دي او که نه؟ په داسې حال کښې چه دا مسلمان د غیر مسلمو په کلي کښې اوسیږي یا په بل ځای کښې اوسیږي او له کافر سره ئې کاروبار وي. شرعاً د دې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: نه تلل ورته جائز نه دي. بلکه تعزیت ورته کولی شي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱٤ ربیع الاول ۱۳۹۹ هجری

## جنازه په بل ځای کښې په کیښودلو سره د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال**: نن صبا رواج دی چه په جوماتونو کښې د قبلې په طرف له محراب څخه د باندې د جنازې د کیښودلو لپاره چوتره جوړوي او په محراب کښې په همدې طرف باندې کړکۍ یا دروازه پریږدي. امام په محراب کښې د ننه دریږي او د جنازې لمونځ ورکوي. آیا په دې ډول لمانځه کښې کوم کراهت شته او که نه؟ چه جنازه د باندې وي او امام په جومات کښې دننه وي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په جومات کښې د جنازې لمونځ په هر حال کښې مکروه دی که جنازه په جومات کښې د ننه وي او که د باندې. البته باران او داسې نورو عذر وي یا د باندې ځای نه وي نو په جومات کښې د جنازې لمونځ جائز دی.

په داسې صورت کښې که چیرته جنازه د باندې وي نو بهتره دا ده چه امام او څو کسه مقتدیان له جومات څخه د باندې په چوتره کښې ودریږي ځکه چه جنازه له یوې وجې د امام په حکم سره دی. او یواځې د امام په جلا ځای کښې دریدل مکروه تنزیهي دي. قال ابن عابدین رحمه الله علیه (قوله لانه کالامام من وجه) لاشتراط هذه الشروط وعدم صحتها بفقدها او فقد بعضها. (ردالمحتار ج۱، ص۸۱۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۷ صفر ۱٤۰۰ هجری

## د تعزیت (فاتحه خوانی) مسنونه طریقه

**سوال**: د تعزیت صحیح طریقه کومه یوه ده؟ په دې کښې د ورځو تعیین او زیاتوالی به د سنتو په خلاف وي او که نه؟ څو ملګري یا د کلي خلک او داسې نور چه د ډلې په شکل کښې راشي نو یوه دُعاء د ټولو لپاره قائم مقام جوړیدلی شي او که نه؟ یا د مجلس د ټولو خلکو له خوا څخه کافي ده او که نه؟ د تعزیت په دُعاء کښې د لاسونو پورته کول څنګه دي؟ د تعزیت عملي یا قولي طریقه کومه چه د سیدنا او سید الانبیاء علیه اعطر التحیة و السلام څخه ثابته ده که چیرته ئې بیان کړئ نو د ډیرو کسانو لپاره به د لارې مشال وګرځي انشاء الله تعالی ځکه چه بنده د تبلیغي جماعت د

ډلې غونډې د دین ضروري او اهمه خبره په هر مجلس کښې بیانوي. یواځې د منبر او استیج منتظر نه وي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : تعزیت تر دریو ورځو وروسته جائز نه دی. البته غائب سړی چه تر دریو وروسته راشي نو بیا ئې هم کولی شي. د ډلې په شکل کښې د راتللو اهتمام صحیح نه دی که په ناڅاپي توګه څه کسان سره یو ځای شي نو پروا نه کوي. د هر یوه لپاره په مستقله توګه تعزیت سُنت دی. البته که چیرته د یوې کورنۍ کوم مشر سړی وي او له هغه سره د هغه ماتحته خلک هم وي نو یواځې د مشر تعزیت کافي دی. د تعزیت دُعاء دا ده. **اعظم الله اجرك واحسن عزاءك وغفر لميّتك.** له دې څخه زیات مضمون هم بیانولی شي کوم چه غم ورسره سپک شي، تسلي او د آخرت فکر ورسره پیدا شي. د تعزیت په دُعاء کښې د لاسونو پورته کول بدعت دي.

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ ربیع الآخر ۱۴۰۰ هجری**

**(په دې باندې اشکال او ځواب ئې په تتمه کښې دی)**

## د جنازې په لمانځه کښې د سورهٔ فاتحه د لوستلو حکم

**سوال** : څه فرمائي الله تعالیٰ ﷻ او د هغه رسول حضرت محمد ﷺ د یوه مسلمان په جنازه کښې د سورهٔ فاتحه د لوستلو په باره کښې چه که چیرته و نه لوستل شي نو مکمل دلائل ئې څه دي؟ همدارنګه په دې مسئله کښې د بخاري شریف دا دواړه روایتونه هم په لحاظ کښې وساتئ:

۱..**عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب.**

۲..**عن ابن عباس رضي الله عنه انه صلّى على جنازة فقرأ بفاتحة الكتاب قال ليعلموا انها سنة. بينوا توجروا.**

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د جنازې په لمانځه کښې اصل مقصود د الله تعالیٰ حمد او ثناء، په نبي کریم ﷺ باندې درود او د مړي لپاره دُعاء ده. د دې لپاره که چیرته سورهٔ فاتحه د حمد او ثناء په نیت سره ولوستل شي نو صحیح دي، د تلاوت په نیت سره ئې مه لولئ.

په سوال کښې له یادو شویو روایتونو څخه لومړنی روایت د مطلق لمانځه په اړه دی. د جنازې له لمانځه سره هیڅ تعلق نه لري. د جنازې لمونځ په ډیرو حکمونو لکه رکوع، سجده، تشهد او داسې نورو کښې له عامو لمونځونو څخه مختلف دی. د دې لپاره په عامو لمونځونو باندې د دې قیاس کول صحیح نه دي. په دې حدیث باندې مفصل بحث زما د **(نیل المرام بألتزام السکوت عند قراءة الامام)** نومي رساله کښې دی. پ دویم روایت کښې له حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما څخه د سورهٔ فاتحه لوستل منقول دي، ده سورهٔ فاتحه د ثناء اودُعاء په قصد سره لوستلې وه همدارنګه دده داویل چه د سورهٔ فاتحه ویل سنت دي داهم په همدې معنی باندې ده چه په دې کښې

حمد او ثناء ده او د جنازې په لمانځه کښې حمد او ثناء سنت ده. په دې باندې لاندیني شواهد دي:

۱.. عن سعيد بن ابي سعيد المقبري عن ابيه انه سأل ابا هريرة رضي الله عنه كيف نصلي الجنازة فقال ابو هريرة رضي الله عنه انا لعمر الله اخبرك اتبعها من اهلها فاذا وضعت كبرت وحمدت الله وصليت على نبيه ثم اقول اللهم انه عبدك وابن عبدك وابن امتك الحديث. (موطا امام مالك ص ۲۰۹) د دې حديث رجال د صحاح سته ؤ رجال دي. البته د سعيد په حافظه کښې د هغه له وفات کيدو څخه څلور کاله مخکښې څه فرق راغلی وو. (تقريب ص ۷۰) ليکن امام مالک رحمه الله غوندې شخصيت څخه دا ډيره لرې خبره ده چه تر فرق وروسته دې له هغه څخه روايت کړی وي.

په دې روايت کښې تر تکبير وروسته د حمد او ثناء ذکر دی، د سورهٔ فاتحه هيڅ ذکر نشته. له دې څخه ثابته شوه چه د ابن عباس رضی الله عنهما په اثر کښې د سورهٔ فاتحه لوستل د دُعاء په قصد سره مقصود دی او که نه نو په روايتونو کښې به تعارض لازميږي.

۲ - که چيرته د ابن عباس رضی الله عنهما نيت د قرائت وای نو تر هر تکبير وروسته به ئې سورهٔ فاتحه ويلی ځکه چه د جنازې د لمانځه هر تکبير د رکعت مرتبه لري. او سورهٔ فاتحه د لمانځه په هر رکعت کښې ويل کيږي.

۳ - له حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه په صحيح سند سره دا هم مروي دي چه ده تر سورهٔ فاتحه وروسته بل سورت هم لوستلی دی. (اعلاء السنن ج ۱، ص ۱۵۷) له دې څخه ثابته شوه چه ده سورهٔ فاتحه او يو بل سورت دواړه د ثناء او دُعاء په نيت لوستلي دي. له دې امله چه د جنازې په لمانځه کښې د قرائت په غرض سره له فاتحې سره د سورت د يو ځای کولو هيڅوک قائل نه دي.

۴ - حضرت عمر، حضرت علي، عبد الله بن عمر، فضالة بن عبيد، ابو هريره، جابر بن عبد الله، واثلة بن الاسقع و غيرهم رضی الله تعالی عنهم به د جنازې په لمانځه کښې د سورهٔ فاتحه قرائت نه کاوه. (المدونة الكبرى ج ۱، ص ۱۵۸) چه کله دا جليل القدر صحابهٔ کرام رضی الله تعالی عنهم به قرائت نه کاوه حالانکه ابن عباس رضی الله عنهما له دغو حضراتو څخه علم حاصل کړی وو. نو د ده په فعل او قول کښې په لازمي توګه سورهٔ فاتحه د دُعاء په نيت سره مراد ده.

۵.. قال ابن وهب و قال مالك ليس ذلك بمعمول به في بلدنا انما هو الدعاء ادركت اهل بلدنا على ذلك.

(المدونة الكبرى ج ۱، ص ۱۵۹) په مدونهٔ کبرٰی کښې دا هم منقول دي چه قاسم بن محمد، سالم بن عبد الله، ابن المسيب، ربيعه، عطاء بن ابي رباح او يحيٰی بن سعيد رحمهم الله غوندې د علم غرونه هم د جنازې په لمانځه کښې قرائت نه کاوه. پس که چيرته د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په قول کښې له سنت څخه بعينه د فاتحه سنت والی مراد واخيستل شي نو په امام مالک او نورو اجلهٔ

صحابهؤ او تابعينو باندې د دې مخفي پاتې کېدل له قياس څخه ډير لرې دی.
يو بل روايت په ابن ماجه کښې له أمّ شريک انصاريه رضی الله عنها څخه په دې الفاظو راغلی دی: **امرنارسول الله ﷺ ان نقرأعلی الجنازة بفاتحة الکتاب.** د دې روايت مختلف خوابونه دي

۱ - د دې سند مختلف فيه دی. **(اعلاء السنن ج۸،ص۱۵۵)**

۲ - أمّ شريک انصاريه په تعيين کښې ډير اختلاف دی. **(اصابه ج۸،ص۲۳۷)**

اګر که د صحابهؤ جهالت تاواني نه دی ليکن د اجله صحابه وو په مقابله کښې د مجهول قول د قبول ور نه دی. بالخصوص په داسې حال کښې چه د جنازې امور د ښځو په نسبت په سړو باندې زيات واضح کيږي.

۳ - د امر د صيغې دلالت په وجوب باندې مسلّم يعنې منل شوی دی. ليکن د امر د لفظ دلالت په وجوب باندې مسلّم نه دی. د حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما اثر له دې څخه قوي دی. او په دې کښې د سنتو لفظ دی. لهذا په دې روايت کښې د امر لفظ په ندب باندې محمولیږي. او که نه وي نو دا حديث به د ابن عباس رضی الله تعالی عنهما له اثر سره د ټکر له وجې غير معتبر وي. **فان الضعيف لايصلح لمعارضة القوی،** بيا د ندب امر هم د دُعاء په قصد سره دی. **کماحرّرنا.فقط والله تعالیٰ اعلم.**

**۲۵ جمادی الآخر ۱۴۰۰ هجری**

## د مړې ښځې په لمبولو کښې د ستر حد او اندازه

**سوال** : د مړې ښځې د لمبولو په وخت کښې د هغې په ټول بدن باندې د ټيکري يا جامې اچول ضروري دي او که د نارينه غوندې يو اځې له نامه څخه تر زنګنونو پورې پټول ئې کافي دي؟

**الجواب** : ښځه به له ښځې څخه دومره پرده کوي لکه څرنګه چه يو نارينه ئې له بل نارينه څخه کوي. له دې امله په ښځې باندې به د لمبولو په وخت کښې يو اځې له نامه څخه تر زنګنونو پورې د ټيکري يا بل شي اچول کافي دي.

**قال فی الدر و تستر عورته الغليظة فقط علی الظاهر من الرّواية و قيل مطلقاً الغليظة و الخفيفة و صحّحه الزيلعی وغيره،وقال ابن عابدين رحمه الله تحت(قوله صححه الزيلعی وغيره)وفی الشرنبلالية وهذا شامل للمرأة و الرجل لانّ عورة المرأة للمرأة کالرجل للرجل.(ردالمحتار ج۱،ص۸۰۰)فقط والله تعالیٰ اعلم**

**۴ رجب ۱۴۰۰ هجری**

## د مرګ په غسل کښې د حائضه ښځې په خوله کښې د اوبو د اچولو حکم

**سوال** : د حيض يا نفاس په حالت کښې مړې شوې ښځې ته د غسل ورکولو په وخت کښې په

خوله او پزې کښې ئې د اوبو اچول ضروري دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د جنابت، حيض يا نفاس په حالت کښې چه مرګ واقع شي نو بيا به هم د غسل ورکولو په وخت کښې به ئې خولې او پزې ته اوبو اچول صحيح نه دي. البته په غاښونو او پزې باندې ئې چه لوند ټوکر تير شي نو بهتره ده ليکن ضروري نه ده.

قال فی شرح التنویر ویوضأ من یؤمر بالصلوۃ بلا مضمضۃ واستنشاق للحرج وقیل یفعلان بخرقۃ، وعلیه العمل الیوم، ولو کان جنباً او حائضاً او نفساء فعلا اتفاقا تتمیما للطهارۃ کما فی امداد الفتاح مستمداً من شرح المقدسی وقال ابن عابدین رحمه الله (قوله ولو کان جنباً الخ) نقل ابو المسعود عن شرح الکنز للشلبی ان ما ذکره الخلخالی ای فی شرح القدوری من ان الجنب یمضمض ویستنشق غریب مخالف لعامة الکتب اھ. قلت و قال الرملی ایضاً فی حاشیة البحر اطلاق المتون والشروح والفتاوی یشمل من مات جنباً ولم ار من صرح به لکن الاطلاق یدخله والعلة تقتضیه اھ وما نقله ابو السعود عن الزیلعی من قوله بلا مضمضة واستنشاق ولو جنباً صریح فی ذلك ولکنی لم اره فی الزیلعی (قوله اتفاقاً) لم اجده فی الامداد ولا فی شرح المقدسی (رد المحتار ج۱، ص۸۰۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ رجب ۱۴۰۰ هجری

## چه سړي نه وي نو يواځې ښځو ته د جنازې د لمانځه حکم

**سوال** : که چيرته هيڅ يو نارينه موجود نه وي نو آيا ښځې د جنازې لمونځ ادا کولی شي او که نه؟ که چيرته ئې کولی شي نو ښځه به څنګه امامت کوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ښځې دې يواځې يواځې د جنازې لمونځونه وکړي. د جنازې په لمانځه کښې جماعت واجب نه دی. د دې لپاره بهتره دا ده چه ښځې دې جماعت نه کوي بلکه جلا جلا دې لمونځونه وکړي. ليکن ټولې دې په يو ځل د جنازې لمونځ وکړي. د يوې تر فارغيدو وروسته به بله شروع پرې نه کوي. او جماعت ئې بې له کراهته ورته جائز دی. په دې صورت کښې به امام د ښځو د صف په منځ کښې دريږي. د نارينه امام غوندې به له صف څخه مخکښې نه دريږي

قال فی العلائیة ویکره تحریماً جماعة النساء ولو فی التراویح فی غیر صلوۃ الجنازۃ لانها لم تشرع مکررۃ فلو انفردن تفوتهن بفراغ احداهن وفی الشامیة (قوله لانها لم تشرع مکرّرۃ الخ) قال فی الفتح واعلم ان جماعتهن لا تکره فی صلوۃ الجنازۃ لانها فریضة وترك التقدم مکروه فدار الامر بین فعل المکروه لفعل الفرض او ترك الفرض لترکه فوجب الاول، بخلاف جماعتهن فی غیرها، ولو صلین فرادی فقد تسبق احداهن فتکون صلوۃ

الباقيات نفلا و التنفل بها مكروه فيكون فراغ تلك موجباً لفساد الفريضة لصلوة الباقيات كتقييد الخامسة السجدة لمن ترك القعدة الاخيرة اه ومثله فى البحر و غيره. و مفاده ان جماعتهن فى صلوة الجنازة واجبة حيث لم يكن غيرهن، و لعلّ وجهه الاحتراز عن فساد فرضية صلوة الباقيات اذا سبقت احداهن و فيه ان الرجال لو صلّوا منفردين يلزم فيها مثل ذٰلك، فيلزم عليه وجوب جماعتهم فيها مع ان المصرّح به ان الجماعة فيها غير واجبة فتأمل (رد المحتار ج۱، ص۵۲۸) وقال الرافعی رحمه الله (قوله ومفاده ان جماعتهن فى صلوة الجنازة واجبة الخ) انما يتم بارجاع ضمير لانها فريضة للجماعة كما فعل فى حاشية البحر و هو خلاف الظاهر بل هو راجع لصلوة الجنازة فانّها فرض كفاية على كلّ منهنّ قال السندى نقلاً عن شرح المنية و يستحب ان يصلّين منفردات و تجوز جماعتهن اه فمراد الفتح و غيره من الوجوب معناه اللغوى اى ثبت الاوّل و يكون مقدّما على الترك لا على الانفراد المستحب (التحرير المختار ج۱، ص۷۲) قلت و يمكن الجواب عن اشكال ابن عابدين رحمه الله بان يشرعن فى الصلوة معاً و لا اعتبار للفراغ متعاقباً لان الابقاء ليس له حكم الابتداء بل يظهر بعد التأمل انه لو شرعت الاخرىٰ قبل فراغ الاولىٰ فلا اشكال فيه ايضاً. فقط والله تعالىٰ اعلم

۱۱ رجب ۱۴۰۰ هجری

## په بحري جهاز (بېړۍ) کښې د وفات شوي سړي حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک په بېړۍ کښې فوت شي نو آیا فوراً به ئې سمندر ته اچوي او که تر کنارې یعنې د وچې تر څنډې پورې به ئې د راوړلو کوشش کوي او بیا به ئې په وچه کښې ښخوي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د کنارې تر رسیدو پورې په مړي کښې د کوم ډول تغیر د راتلو اندیښنه نه وي نو په وچه کښې دې ښخ کړی شي او که نه نو سمندر ته دې واچول شي سمندر ته ئې د اچولو په وخت کښې کوم دروند یا وزني ډبره یا بل شی ورسره تړل بهتر دي تر څو چه مړی ښکته کښېني او د اوبو سر ته را نه شي.

قال فى العلائية مات فى سفينة غسل و كفن و صلّى عليه و القى فى البحر ان لم يكن قريباً من البر. و فى الشامية (قوله و القى فى البحر) قال فى الفتح و عن احمد رحمه الله يثقلك ليرسب و عن الشافعية كذٰلك ان كان قريباً من دار الحرب و الا شد بين لوحين ليقذفه البحر فيدفن اه (قوله ان لم يكن قريباً من البر) الظاهر تقديره بان يكون بينهم و بين البر مدة يتغير الميت فيها ثم رأيت فى نور الايضاح التعبير بخوف الضرر به. (رد المحتار ج۱، ص۸۳۶) فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۵ رجب ۱۴۰۰ هجری

الباقیات نفلا و التنفل بها مکروه، فیکون فراغ تلك موجباً لفساد الفریضة لصلوٰة الباقیات کتقیید الخامسة السجدة لمن ترك القعدة الاخیرة اه ومثله فی البحر وغیره، ومفاده ان جماعتهن فی صلوٰة الجنازة واجبة حیث لم یکن غیرهن، و لعلّ وجهه الاحتراز عن فساد فرضیة صلوٰة الباقیات اذا سبقت احداهن و فیه ان الرجال لو صلّوا منفردین یلزم فیها مثل ذلك، فیلزم علیه وجوب جماعتهم فیها مع ان المصرّح به ان الجماعة فیها غیر واجبة فتأمل (رد المحتار ج۱، ص۵۲۸) وقال الرافعی رحمه الله (قوله ومفاده ان جماعتهن فی صلوٰة الجنازة واجبة الخ) انما یتم بارجاع ضمیر لانها فریضة للجماعة کما فعل فی حاشیة البحر و هو خلاف الظاهر بل هو راجع لصلوٰة الجنازة فانّها فرض کفایة علی کلّ منهن قال السندی نقلاً عن شرح المنیة و یستحب ان یصلّین منفردات و تجوز جماعتهن اه فمراد الفتح و غیره من الوجوب معناه اللغوی ای ثبت الاوّل و یکون مقدّما علی الترك لا علی الانفراد المستحب (التحریر المختار ج۱، ص۱۲۷) قلت و یمکن الجواب عن اشکال ابن عابدین رحمه الله بان یشرعن فی الصلوٰة معاً و لا اعتبار للفراغ متعاقباً لان الابقاء لیس له حکم الابتداء بل یظهر بعد التأمل انه لو شرعت الاخریٰ قبل فراغ الاولیٰ فلا اشکال فیه ایضاً. فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۱ رجب ۱۴۰۰ هجری

## په بحري جهاز (بېړۍ) کښې د وفات شوي سړي حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک په بېړۍ کښې فوت شي نو آیا فوراً به ئې سمندر ته اچوي او که تر کنارې یعنې د وچې تر څنډې پورې به ئې د راوړلو کوشش کوي او بیا به ئې په وچه کښې ښخوي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د کنارې تر رسیدو پورې په مړي کښې د کوم ډول تغیر د راتلو اندېښنه نه وي نو په وچه کښې دې ښخ کړی شي او که نه نو سمندر ته دې واچول شي. سمندر ته ئې د اچولو په وخت کښې کوم درونډ یا وزني ډبره یا بل شی ورسره تړل بهتر دي تر څو چه مړی ښکته کښیني او د اوبو سر ته را نه شي.

قال فی العلائیة مات فی سفینة غسل و کفن و صلّی علیه و القی فی البحر ان لم یکن قریباً من البر، و فی الشامیة (قوله و القی فی البحر) قال فی الفتح و عن احمد رحمه الله یثقلك لیرسب و عن الشافعیة کذلك ان کان قریباً من دار الحرب و الاشدین لوحین لیقذفه البحر فیدفن اه (قوله ان لم یکن قریباً من البر) الظاهر تقدیره بان یکون بینهم و بین البر مدة یتغیر المیت فیها ثم رأیت فی نور الایضاح التعبیر بخوف الضرر به. (رد المحتار ج۱، ص۸۳۶) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ رجب ۱۴۰۰ هجری

## مړی چه خاورې شي نو په همدې قبر کښې د بل مړي د ښخولو حکم

**سوال**: په حرمين شريفينو کښې دا دستور دی چه په زړو قبرونو کښې نوي مړي ښخوي. آيا دا طريقه جائزه ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چه کله اولنی مړی خاورې شي نو په همدې قبر کښې د بل مړي ښخول جائز دي.

قال فی الشامية قال الزيلعی ولو بلی الميّت وصار تراباً جاز دفن غيره فی قبره وزرعه والبناء عليه اه. قال فی الامداد يخالفه ما فی التتارخانية اذا صار الميّت تراباً فی القبر يکره دفن غيره فی قبره لان الحرمة باقية. وان جمعوا عظامه فی ناحية ثم دفن غيره فيه تبرکاً بالجيران الصالحين ويوجد موضع فارغ يکره ذلك اه قلت لکن فی هذا مشقة عظيمة فالاولی اناطة الجواز بالبلا اذ لا يمکن ان يعد لکل ميت قبر لا يدفن فيه غيره وان صار الاول تراباً لاسيما فی الامصار الکبيرة الجامعة والالزم ان تعم القبور السهل والوعر علی ان المنع من الحفر الی ان لا يبقی عظم عسير جدا وان امکن ذلك لبعض الناس لکن الکلام فی جعله حکما عاماً لکل احد فتأمل (رد المحتار ج۱، ص۸۳۵) فقط والله تعالی اعلم ۲۶ رجب ۱۴۰۰ هجری

## د مړي په خوله کښې د مصنوعي غاښ د پاتې کېدلو حکم

**سوال**: يو سړی مړ شو او په خوله کښې ئې مصنوعي غاښ وو چونکه د غسل ورکولو په وخت کښې پرته له تکليف څخه نه ايستل کېده. که چيرته همدا غاښ ئې په خوله کښې پاتې شي نو شرعاً څه قباحت پکښې شته او که نه؟ او که چيرته غاښ ډېر قيمتي وي او د مړي له خولې څخه ايستل ئې هم ډېر په تکليف سره کېده نو آيا د داسې غاښ ايستل جائز دي او که نه؟ په لومړي صورت کښې که چيرته په خوله کښې د غاښ د پرېښودلو ګنجائش وي نو آيا د مړي په غسل او ښخولو کښې خو کوم فرق نه راځي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته د غاښ له خولې څخه ايستل مشکل وي او د زيات محنت په کولو سره د مړي بې حرمتي کېده نو همداسې دې پرېږدي. په غسل او ښخولو کښې ئې کوم فرق نه راځي. د مال له حرمت (قدر او مرتبه) څخه د مړي حرمت زيات دی. قال فی العلائية ولو بلع مال غيره ومات هل يشق قولان والاولی نعم فتح. وفی الشامية وان کان حرمة الآدمی اعلی من صيانة المال لکنه زال احترامه بتعديه کما فی الفتح ومفاده انه لو سقط فی جوفه بلا تعد لا يشق اتفاقاً. (رد المحتار ج۱، ص۸۴۰) فقط والله تعالی اعلم ۲۷ رجب ۱۴۰۰ هجری

## د حضرت عائشېؓ د حضرت عمر قبر ته د بې پردې نه تللو روايت

**سوال**: حضرت عائشهؓ د نبي كريمﷺ تر رحلت وروسته روضې مباركې ته بې پردې ورتله او د حضرت ابو بكر صديقؓ تر انتقال وروسته هم د هغه قبر ته بې پردې ورتله. چه كله حضرت عمر فاروقؓ تر انتقال وروسته هلته ښخ شو نو په باقاعده توگه چه كله هم ورتلله نو پرده به ئې كوله. يو ښاغلى وائي چه دا پرده ئې د حضرت عمرؓ له وجې شروع كړه. د دې لپاره چه حضرت عمرؓ نامحرم وو او تر مرگ وروسته ئې هم د ژونديو غوندې ليدل كاوه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له دې څخه يواځې احترام مقصود وو، تر مرگ وروسته ليدل ثابت نه دي. قال الطيبى فيه ان احترام الميت كاحترامه حيًا. (مرقاة ج۴، ص۱۱۷)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۷ ذى الحجة ۱۴۰۰ هجرى

## د لحد ژوروالې

**سوال**: مشهوره ده چه فرښتې مړي لره په قبر كښې د حساب او كتاب لپاره كښينوي له دې امله لحد بايد دومره ژور وي چه په هغه كښې مړى په آسانى سره كښيناستلى شي. آيا دا خبره صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا خالص جهالت دى. فرښتې مړى په ظاهري قبر كښې نه بلكه په عالم برزخ كښې كښينوي. د لحد يا شق ژوروالى بايد دومره وي چه په هغه كښې مړى د سنتو مطابق په څنگ باندې څملول شي. پورتنى سطحه به ئې هم له مړې څخه جلا ليكن د مړي له جسم سره به با لكل نژدې وي تر څو چه قبر له لويدو څخه او مړى له درندگانو څخه په حفاظت كښې پاتې شي. ولا يمس السقف الميّت. (طحطاوى على المراقى ص۳۳۳)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۷ محرم ۱۴۰۱ هجرى

## د جنازې د لمانځه لپاره د جومات د جماعت د انتظار رواج

**سوال**: نن صبا په عمومي توگه دا رواج دى چه د جنازې د لمانځه لپاره د كلي په جومات كښې د وختي لمانځه د جماعت لپاره انتظار كيږي. د لمانځه په ټاكلي وخت باندې جنازه د جومات خوا ته راوړل كيږي او د فرض لمانځه له جماعت څخه تر فارغيدو وروسته د جنازې لمونځ ادا كوي. شرعاً د دې څه حكم دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا رواج د شرعې خلاف دى. د جنازې په لمانځه كښې د دې لپاره تاخير كول چه خلك زيات شريک شي مكروه دى. په جنازه كښې تعجيل (بيړه) دومره مؤكد دى چه په مكروه وختونو كښې هم د جنازې د ادا كولو اجازه وركړى شوې ده. يعنې چه په مكروه وخت

کښې جنازه تیاره شي نو په همدې وخت کښې دې ادا کړي او د مکروه وخت د تیریدو انتظار دې نه کوي. د دې رسم یوه خرابي دا ده چه خلک په جوماتونو کښې د ننه د جنازې د لمانځه ادا کول شروع کړي دي کوم چه مکروه دی. تحریماً او تنزیهاً قولان مصححان.

والله تعالیٰ اعلم ۷ محرم ۱۴۰۱ هجری

## د مړې خوا ته د قران کریم دتلاوت حکم

**سوال**: د مړی خوا ته تر لمبولو مخکښې د قرآنکریم تلاوت جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مړی چه په جامو کښې پټ کړی شي نو څنګ ته ئې په تلاوت کولو کښې هېڅ حرج نشته. او که نه نو مکروه دی. او تر لمبولو وروسته په هر صورت هیڅ کراهت پکښې نشته. فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ محرم ۱۴۰۱ هجری

## مړي ته د غسل ورکوونکي سړي لپاره لامبل مستحب دي

**سوال**: مړي ته تر غسل ورکولو وروسته په لمبوونکي باندې غسل واجب دی، که سنت او که مستحب؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: مستحب دی. کذا فی الشامیة. فقط والله تعالیٰ اعلم. ۸ محرم ۱۴۰۱ هجری

## د فرض عمل ایصال ثواب

**سوال**: د فرضو ایصالِ ثواب جائز دی او که نه؟ یعنې فرض دا چه فرض هم د سړي ادا کیږي او مړي ته ئې هم ثواب رسیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې اختلاف دی. والراجح الجواز، نقل فی الشامیة عن البحر انه لا فرق بین الفرض والنفل وعن جامع الفتاوی قیل لا یجوز فی الفرائض. (رد المحتار ج۱، ص۸۴۴)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ ربیع الآخر ۱۴۰۱ هجری

## تر مړ کیدو وروسته د تلقین حکم

**سوال**: د مړي تر ښخولو وروسته د قبر خوا ته تلقین کول څه حکم لري؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: د دې جواز مختلف فیه دی. لهذا احتراز (ځان ساتنه) بهتر او منل شوی دی. با لخصوص د عقیدې د فساد په دې دور کښې د دې اجازه نشته.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ ربیع الآخر ۱۴۰۱ هجری

# فصل فی الشهید

## په حادثه (پیښه) کښې د مړه کیدونکو خلکو حکم

**سوال**: له ریل ګاډي یا موټر څخه چه ولویږي یا ټې ووهي یا ګاډی له څه شي سره ټکر شي او ټوک ټکښې مړ شي نو آیا داسې سړی به شهیدِ اصغر شمیرل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! دا شهادت شهادتِ صغری دی. د شهیدانو دنیوي احکام په ده باندې جاري کیږي نه لیکن په آخرت کښې به د شهیدانو له جملې څخه حسابیږي انشاء الله تعالی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ذی الحجة ۱۳۸۶ هجری

## شیعه شهید نه شي بلل کیدلی

**سوال**: د محرم د میاشتې په دې لسمه کښې چه کوم مسلمانان د هندوانو په لاس مړه شول آیا دا خلک شهیدان دي او که نه؟ ځینې وائي چه که شهادتِ کبری نه وي نو شهادتِ صغری خو به وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: د شهادت لومړنی شرط اسلام دی. شعیه مسلمان نه دی له دې امله د دوی مرګ نه شهادتِ صغری دی او نه کبری بلکه د جهنّم اور دی. د شیعه مذهب تفصیل زما د "حقیقتِ شیعه" نومي رسالې کښې دی. (دا رساله د احسن الفتاوی په اول جلد کښې شائع شوی دی، مرتب)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ محرم ۱۳۸۷ هجری

## په بمباري کښې د شهید شویو خلکو حکم

**سوال**: په جنګ کښې د هوائي حملو په دوران کښې چه کوم مسلمانان شهیدان شي آیا هغوی د غسل ورکول ضروري دي او که نه؟ حقیقي شهید چا ته ویل کیږي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ښاري آبادیو باندې په هوائي حملو کښې په شهید شویو خلکو باندې د شهادت دنیوي احکام جاري کیږي. هغوی ته غسل نه ورکول کیږي. د شهادت دنیوي احکام چه په کومو خلکو باندې جاري کیږي د هغوی تفصیل په بهشتي ګوهر کښې دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ ذی قعده ۱۳۹۱ هجری

## د مسلمانانو په خپل منځې جنګ او جګړې کښې د مړه کیدونکو خلکو حکم

**سوال**: د دوه مسلمانو ډلو تر منځ جګړه راغله او په دوی کښې نه هیڅ یوه ډله باغیان وو او نه قطاع الطریق (غله). او نه حربیان وو بلکه ټول مسلمانان وو. او د مسلمانانو په یوه کلي کښې سره

اوسيدل. ليکن يوه ډله بالکل ظالمه وه او بله مظلومه. له مظلومې ډلې څخه دوه کسان په غير جارحه آلې باندې قتل کړی شول او دواړه هم هلته د جنګ په ځای کښې مړه شول. نه ئې کومه خبره وکړه او نه ئې نور څه وکړل. البته د يوه سړي قاتل هم معلوم شو او د دويم سړي قاتل معلوم نه شو بلکه د ډلې په هر غړي باندې د قتل شبهه کيدلی شي. اوس پوښتنه دا ده چه په دغو مړه شويو کښې به کوم يوه ته غسل ورکول کيږي او کوم يوه ته نه ورکول کيږي؟ تر ټولو زيات وضاحت په شامي کښې دی ليکن په ځينو عبارتونو کښې ما تطبيق نه شوای کولی. د شامي د عبارت وضاحت هم وکړئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دواړو ته به غسل نه ورکول کيږي. د غسل په اړه د شامي عبارت په هغه صورت کښې دی چه ظلم متيقن نه وي. **قال ابن عابدين رحمه الله: و مفاده انه لو كانت احدى الفرقتين ظالمة للاخرى بأن علموا حالهم لا يغسل من قتل من الاخرى و ان جهل قاتله عيناً لكونه مدافعاً عن نفسه وجماعته تأمل.** (ردالمحتار ج۱ ص۸۴۹) **فقط والله تعالى اعلم** ۲۰ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## د پورتني سوال په اړوند يو بل سوال

**سوال**: د شهيد په باره کښې د شامي په دغو دواړو عبارتونو کښې په ظاهره ټکر ښکاريږي. په دغو کښې تطبيق څرنګه ورکول کيږي. مثلاً د درمختار عبارت **(بل قصاص)** لاندې علامه شامي ليکي: **(اما اذا لم يعلم قاتله فسيأتى انه يغسل)**. دلته شامي په دې صورت کښې ليکلي دي چه غسل دې ورکړ شي. بيا د ماتن او شارح عبارت **(و كذا يكون شهيداً)** د تشريح په کولو سره په آخر کښې ليکي: **و مفاده انه لو كنت احدى الفرقتين ظالمة بان علموا حالهم لا يغسل من قتل من الاخرى و ان جهل قاتله عيناً.** **(شامية ج۱ ص۸۵۸)** يو ځای خو ئې داسې مقتول ته چه قاتل ئې معلوم نه وي د غسل ورکولو ليکلی دی. او بل ځای ئې همدې د نه غسل ورکولو ليکلی دی. آيا د تطبيق دا صورت کيدلی شي چه له لومړي عبارت څخه هغه مقتول مراد دی چه قاتل ئې بالکل معلوم نه وي او له دويم عبارت څخه هغه مقتول مراد دی چه عيني او ځانګړی قاتل خو ئې معلوم نه وي ليکن د ډلې په حيثيت سره معلوم دی. يا دا چه لومړی مقتول مظلوم نه دی او دويم مظلوم دی.

د مسئلې صورت دا دی چه د دوه مسلمانو ډلو تر منځ جګړه راغله. په هغوی کښې د يوې ډلې خلک د بلې ډلې دوه کسان په ظلم سره قتل کړل. په داسې حال کښې چه په قتل کښې غير جارحه آله وه او د قاتل ډله ظالمه وه، د مقتول ډله مظلومه وه. همدارنګه دا هم څرګنده ده چه په مړه شويو کښې د يوه قاتل معلوم دی او د بل نامعلوم دی. اوس په داسې صورت کښې دغو مړه شويو ته

غسل ورکول کیږي او که نه؟ با لکل په همدې صورت کښې ستاسو ځواب په تیرې فتوی چه په ۲۰ شعبان ۱۳۹۹ھجری کښې مو لیکلې وه چه دواړو ته به غسل نه ورکول کیږي. اوس پوښتنه دا ده چه په داسې حال کښې چه د جګړې دواړه اړخونه مسلمانان وي او په یوې خوا کښې یو کس په ظلم سره قتل شي نو هغه ته به په هغه وخت کښې غسل نه ورکول کیږي چه په جارحه آلې سره وي او که چیرته له هغوی څخه کوم یو په ظلم په جارحه آلې سره قتل کړی شي نو داسې مقتول ته د غسل نه ورکولو خبره چیرته لیکلې ده؟ تاسو د شامي عبارت چه **ومفاده انه لو کانت احدی الفرقتین ظالمة للاخری بأن علموا حالهم الخ** لیکلی دی لیکن د شرح وقایې عبارت **واما مقتول غیر هؤلاء وهو مسلم قتله مسلم غیر باغ وغیر قطاع الطریق فانه یکون شهیدا عند ابی حنیفة رحمه الله اذا قتل بحدید ظلماً** به څه ځواب وي؟ ځکه چه په دې کښې خو د شهید لپاره له ظلم پرته د قتل با لحدید شرط دی. همدارنګه د فتح القدیر ج۱،ص۴۷۱ په حاشیه کښې لیکلي دي چه: **والقید بالحدید انما هو اذا کان القتل من المسلمین.** که چیرته د قتل با لحدید قید په دې صورت کښې نه وي نو د دې د یادونې څه فائده. او د دې محمل څه دی. که چیرته دا قید لغو وي نو د لغویت ئې څه دلیل دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : اصل مدار په دې باندې دی چه قتل د دیت موجب وي نو غسل واجب دی او که نه وي نو نه دی. له دې امله د شامیه عبارت **اما اذا لم یعلم قاتله فسیأتی انه یغسل** کښې هغه قتل چه د دیت موجب وي مراد دی. **(بأن وجد فی محلّه)**. چنانچه د ماتن قول **ویغسل من وجد قتیلا فی مصر فیما یجب فیه الدیة ولم یعلم قاتله** کښې د همدې بیان دی. او د اب عابدین په قول **(فسیأتی)** کښې د همدې خوا ته اشاره ده.

د شرح وقایه په عبارت کښې د هغه مقتول حکم دی چه غیر مدافع وي. کوم چه په شامي او داسې نورو کښې هم دی. او د شامي په مذکوره عبارت کښې د مدافع مقتول حکم دی.

**فلا منافاة. قال ابن نجیم رحمه الله بقی من قتل مدافعاً عن نفسه او عن ماله او عن اهل الذمة من غیر ان یکون القاتل واحداً من الثلاثة فی الکتاب فانّ المقتول شهید کما صرح به فی المحیط وعطفه علی الثلاثة و جعله سبباً رابعاً ولا یمکن دخوله تحت قوله او قتله مسلم ظلماً لان المدافع المذکور شهید بأی آلة قتل بحدیدة او حجر او خشب کما صرّح به فی المحیط ومقتول المسلم ظلماً لا یکون شهیدا الا اذا قتل بحدیدة کما قدمناه (البحر الرائق ج۱،ص۱۹۷) وقال ابن عابدین رحمه الله وقال فی النهر کونه شهیداً وان قتل بغیر محدد مشکل جداً لوجوب الدیة بقتله. فتدبره معنا النظر فیه اه قلت یمکن حمله علی ما اذا لم یعلم قاتله عیناً. کما**

لو خرج علیه قطاع طریق او لصوص او نحوهم و فی البحر عن المجتبی اذا التقت سریتان من المسلمین و کل واحدة تری انهم مشرکون فاجلوا عن قتلی من الفریقین قال محمد رحمه الله لا دیة علی احد و لا کفارة لانهم دافعون عن انفسهم و لم یذکر حکم الغسل و یجب ان یغسلوا لان قاتلهم لم یظلمهم اه. و مفاده انه لو کانت احدی الفرقتین ظالماً للأخری بأن علموا حالهم لا یغسل من قتل من الاخری و ان جهل قاتله عیناً لکونه مدافعاً عن نفسه و جماعته تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۸۵۰) و قال فی منحة الخالق و الجواب عن اشکاله ان هذا القاتل ان کان مکابراً فی المصر لیلاً فسیأتی انه بمنزلة قاطع الطریق و ان کان لصاً نزل علیه لیلاً لیقتله او یأخذ ماله فهو بمنزلته ایضاً کما فی النهر و علی کل فلا دیة فی قاطع الطریق فقوله لوجوب الدیة ممنوع و علی کل فهو شهید و لا اشکال تدبر (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۷)

د علامه ابن عابدین رحمه الله په (لو کانت احدی الفرقتین ظالمة للاخری) کښې د عدم وجوب دیت توجیه په (لکونه مدافعاً) سره کول او د ده د (بحر عن المجتبی) جزئیه له (اذا التقت سریتان - الخ) څخه استنباط د بنده په خیال کښې د تأمل محل (ځای) دی. د دې لپاره چه په مقیس علیه کښې قاتل هم مدافع دی. له دې امله په دې باندې د دیت عدم وجوب ظاهر دی. لیکن په مقیس کښې قاتل مدافع نه دی. یواځې مقتول مدافع دی. غالباً ابن عابدین رحمه الله په آخر کښې په (تأمل) سره د همدې خوا ته اشاره کړې ده.

پس د بحث لاندې صورت کښې د دیت د عدم وجوب او د شهادت د ثبوت صحیح توجیه هم هغه ده کومه چه ابن عابدین رحمه الله په منحة الخالق کښې بیان کړې ده. یعنې داسې قاتلین په حکم دې قطاع الطریق کښې دي او د دوی مدافعت د جهاد په حکم کښې دی.

فقط والله تعالی اعلم

۱۲ شوال ۱۳۹۹ هجری

# کتاب الزکوٰة

## بل ښار ته د زکوٰة د لیږلو حکم

**سوال**: زید خپل زکوٰة او سرسایه د خپل ښار مسکینانو ته نه ورکوي بلکه لرې لرې ښارونو ته ئې لیږي. آیا د ده داسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بل ښار خوا ته د زکات لیږل مکروه تنزیهي دی. لیکن هلته که چیرته کوم خپلوان مسکین وي یا د خپل ښار له مسکینانو څخه یو څوک زیات حاجتمند یا زیات نیک وي. یا د دین طالب العلم وي یا بل ځای ته په لیږلو باندې عامو مسلمانانو ته زیاته ګټه وي نو هیڅ کراهت پکښې نشته بلکه د خپلوانو حق د خپل ښار له مسکینانو څخه زیات دی.

کره نقلها الا الی القرابة بل فی الظهیریة لا تقبل صدقة الرجل و قرابته محاویج حتی یبدأ بهم فیسد حاجتهم، او احوج او اصلح او اورع او انفع للمسلمین او من دار الحرب الی دار الاسلام او الی طالب العلم وفی المعراج التصدق علی العالم الفقیر افضل اوالی الزهاد او کانت معجلة قبل تمام الحول فلا یکره خلاصة. (الدر المختار ج۲)

وعن ابی هریرة رضی الله عنه مرفوعا الی النبی ﷺ انه قال یا امة محمد و الذی بعثنی بالحق لا یقبل الله صدقة من رجل وله قرابة محتاجون الی صلته و یصرفها الی غیرهم و الذی نفسی بیده لا ینظر الله الیه یوم القیامة اه رحمتی و المراد بعدم القبول عدم الاثابة علیها وان سقط بها الفرض لان المقصود منها سد خلة المحتاج وفی القریب جمع بین الصلة والصدقة. (رد المحتار ج۲، کتاب الزکوٰة) فقط والله تعالی اعلم. ۳ ذیقعده ۱۳۷۱ هجری

## مسکین ته د قرض په معافو کولو سره زکات نه ادا کیږي

**سوال**: د یوه سړي په کوم مسکین باندې قرض دی. هغه خپل پوروړي ته وویل چه ما خپل قرض تا ته په زکات کښې در معاف کړ نو آیا زکات ئې ادا شو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: د قرض په معاف کولو سره زکات نه ادا کیږي. صحیح صورت ئې دا دی چه نوموړي سړي ته زکات ورکړي او په قرض کښې دې بیرته ترې را واخلي. که چیرته ئې بیرته ور نه کړي نو په زوره ئې هم ترې اخیستلی شي. که چیرته د بیرته نه ورکولو ویره وي نو هغه ته دې وویل شي چه یو څوک د ځان له طرفه د زکات د وصولولو او بیا له هغه څخه د قرض د ادا کولو وکیل جوړ کړي.

لما فی شرح التنویر واعلم ان اداء الدین عن الدین والعین عن العین وعن الدین یجوز و اداء الدین عن العین

وعن دين سيقبض لا يجوز وحيلة الجواز ان يعطى مديونه الفقير زكوة ثم يأخذها عن دينه ولو امتنع المديون مدّ يده واخذها لكونه ظفر بجنس حقه فان مانعه رفعه للقاضى. وفى الشامية تحت (قوله واعلم) وفى صورتين لا يجوز الاولى اداء الدين عن العين كجعله ما فى ذمة مديونه زكوة لماله الحاضر. (رد المحتار ج ۲) فقط والله تعالى اعلم

۱۵ ذيقعده ۱۳۷۲ هجرى

## د زکات له حسابه د چا د قرض د ادا کولو حکم

**سوال**: يو غريب سړى پوروړى دى. که چيرته په زکوٰة سره د هغه امداد وشي نو دا ويره ده چه پخپله ئې له ځان سره کښېږدي او خپل قرض به ادا نه کړي. آيا له هغه څخه د قرض د لرې کولو په خاطر د زکوٰة روپۍ پخپله د پور غوښتونکي ته ورکول جائز دي؟ آيا مسکين ته دا ويل ضروري دي چه ستا قرض زه د زکوٰة له روپو څخه ادا کوم او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مسکين په اجازې سره که چيرته د هغه قرض د زکوٰة له روپو څخه ادا شي نو جائز دي. مسکين ته دا ويل ضروري نه دي چه د زکاته له حسابه ئې ادا کوم.

فقط والله تعالى اعلم ۲۰ رجب ۱۴۰۱ هجرى

## له قرض څخه چه فارغ يا خلاصل نصاب له چا سره نه نو زکوٰة پرې فرض نه دى

**سوال**: که چيرته له يو چا سره د زکات نصاب وي ليکن همدومره يا له دې څخه زيات قرض په هغه باندې وي نو آيا په داسې سړي باندې زکات واجب دى او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته له قرض يا پور څخه فارغ او خلاص مال د نصاب اندازې ته ور نه رسيږي نو زکات پرې واجب نه دى. البته که چيرته د زکات تر واجبيدو وروسته پوروړى شو نو د زکات فريضه ترې نه ساقطيږي. قال فى التنوير وسببه ملك نصاب حولى تام فارغ عن دين له مطالب من جهة العباد. وقال فى الشرح سواء كان لله كزكوٰة وخراج او للعبد ولو كفالة او مؤجلا الخ وفى الشامية. (قوله فارغ عن دين) وهذا اذا كان الدين فى ذمته قبل وجوب الزكوٰة فلو لحقه بعد لم تسقط الزكوٰة لانها ثبتت فى ذمته فلا يسقطها ما لحق من الدين بعد ثبوتها جوهرة. (شامية ج ۲)

فقط والله تعالى اعلم غرهٔ ذى الحجة ۱۳۷۲ هجرى

## مهر مؤجل د زکات د وجوب مانع دى

**سوال**: د زيد په ذمې باندې د هندې مهر پور دى. تحقيق غوښتونکي خبره دا ده چه معجل يا

مؤجل دين د زكات د وجوب مانع دى او كه نه؟ كه چيرته د ادا كولو نيت وي يا نه وي په دواړو صورتونو كښې څه فرق شته او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په فتح القدير، طحطاوي، بدائع او داسې نورو كښې څلور قولونه راغلي دي:

۱ - دَين (پور يا قرض) كه مؤجل وي يا معجل، مهر وي يا بل شى، په هرصورت كښې د زكات د وجوب مانع دى.

۲ - مؤجل دَين د زكات مانع نه دى كه مهر وي يا بل شى.

۳ - يوازې مهر مؤجل مانع نه دى.

۴ - خاوند چه د مهر د ادا كولو عزم ولري نو مانع دى او كه و نه لري نه مانع نه دى.

اولنى قول راجح معلوميږي. او علامه حصكفي رحمه الله تعالى همدې قول لره غوره كړى دى.

**وان نقل عن الجواهر القهستانى تصحيح الثانى ورجح بعض الاكابر الثانى اولاً والرابع ثانياً.**

**فقط والله تعالى اعلم ۲ صفر ۱۳۹۹ هجرى**

## د زكات په روپو باندې د مدرسې تعمير (ابادول) جائز نه دي

**سوال**: د زكات په روپو باندې د اسلامي مدرسې تعمير جائز دى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: نه جائز نه دى. **قال فى شرح التنوير لا يصرف مال الزكوة الى بناء نحو مسجد وفى الشامية كبناء القناطير و السقايات و اصلاح الطرقات و كرى الانهار و الحج و الجهاد و كل ما لا تمليك فيه. زيلعى (ردالمحتار ج۲، ص۸۵)**

**فقط والله تعالى اعلم ۹ ذى قعده ۱۳۷۴ هجرى**

## د زكات له روپو څخه د تنخواه د وركولو حكم

**سوال**: د زكات له مال څخه د اسلامي علومو معلم (ښوونكي) ته تنخواه وركول جائز دي او كه نه؟ په داسې حال كښې چه ښوونكى د نصاب خاوند نه وي. بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: معلم اګر كه مسكين وي بيا هم هغه ته د زكات له مال څخه تنخواه وركول جائز نه دي.

**قال فى الهندية ولو نوى الزكوة بما يدفع المعلم الى الخليفة ولم يستأجره ان كان الخليفة بحال لو لم يدفعه يعلم الصبيان ايضا اجزأه و الا فلا و كذا ما يدفعه الى الخدم من الرجال و النساء فى الاعياد و غيرها بنية الزكوة كذا فى معراج الدراية. (عالمگيرية ج۱، ص۹۰)**

**فقط والله تعالى اعلم ۹ ذيقعده ۱۳۷۴ هجرى**

## غني طالب عالم ته زكات وركول جائز نه دي

**سوال**: غني (مالدار) طالب عالم كوم چه د علم د طلب له وجې له كسب څخه عاجز يعنې پاتې وي د زكات مستحق دى او كه نه؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسې طالب علم ته د زكات وركول صحيح نه دي.

واما ما ذكر فی شرح التنوير من ان طالب العلم يجوز له اخذ الزكوة ولو غنياً الخ فهو غير معتمد عليه كما قال فی الشامية معزيا الی الطحطاوی ونصها وهذا الفرع مخالف لاطلاقهم الحرمة فی الغنی ولم يعتمده احد قلت وهو كذلك والاوجه تقييده بالفقير ويكون طلب العلم مرخصاً لجواز سؤاله من الزكوة وغيرها وان كان قادراً علی الكسب اذ بدونه لا يحل له السؤال كما سيأتی ومذهب الشافعية والحنابلة ان القدرة علی الاكتساب تمنع الفقر فلا يحل له الاخذ فضلاً عن السؤال الا اذا اشتغل عنه بالعلم الشرعی. (ردالمحتار ج۲، ص۸۱) فقط و الله تعالی اعلم ۲۰ جمادی الأخر ۱۳۷۵ هجری

## په بدائع كښې "في سبيل الله" ته عام نه دي ويل شوي

**سوال**: مولانا آزاد د "في سبيل الله" لفظ عام بللی دی. ټولو قرباتو ته ئې شامل بولي. يعنې تمليک ضروري نه دی، پس د جومات په جوړولو، مدرسې او داسې نورو كښې ئې لګول جائز دي. حواله د بدائع الصنائع وركوي، امين احسن اصلاحي او د جماعت اسلامي نور غړي هم د بدائع عبارت وړاندې كوي. آيا واقعي هم دا جزئيه په بدائع كښې شته؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: قال فی البدائع واما قوله تعالی و "فی سبيل الله" عبارة عن جميع القرب فدخل فيه كل من سعی فی طاعة الله وسبيل الخيرات اذا كان محتاجاً وقال ابو يوسف رحمه الله المراد منه فقراء الغزاة ـ الخ په دې عبارت كښې ښكاره ده چه دومره عموم مقصود نه دی چه د تمليک شرط پكښې ورک شي بلكه له دې څخه مقصود د هرداسې فقير تمليک دی چه كوم چه په يو ډول دخير په كار كښې لګيدلی وي. او په دې تعميم (عاموالي) سره په هغو قولونو باندې رد مقصود دی په كومو كښې چه ځينې خاص ډولونه ترې مراد اخيستل شوي دي. صاحب بدائع كه چيرته د تمليک د قول په مقابله كښې دا قول راوړلی نو له دې څخه استدلال كيدلی شوای ليكن په بدائع كښې داسې نه دی بلكه د تمليک د څو خاصو صورتونو په مقابله كښې ئې دا هم د تمليک يو عام صورت بيان كړی دی په در مختار او رد المحتار كښې ئې هم د بدائع جزئيه د خاصو تمليكاتو په مقابله كښې بيان كړی دی كه چيرته د نفس تمليک انكار پكښې وای نو خامخا به يوه فقيه د دې تصريح كولی. ومافی كتاب الخراج لابی يوسف رحمه الله من تفسير "فی سبيل الله" باصلاح طرق المسلمين فهو مخالف

لمانقل عنه ائمة الفقه رحمهم الله تعالى كما قدمنا عن البدائع و لم ينقله صاحبه محمد رحمه الله و هو اعلم بمذهبه، وهذا دليل على وقوع الخطأ في نسخة كتاب الخراج وهو كتاب غير مخدوم فلا يجوز الاعتماد على ما فيه من خلاف الكتب المخدومة. فقط والله تعالى اعلم ۱۲ ذی الحجة ۱۳۷۵ هجری

## د زكات نصاب

سوال: كه چيرته له چا سره سره زر له اوه نيمو تولو څخه كم وي نو په هغه باندې زكات فرض دی او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: د سرو زرو نصاب اوه نيمې تولې چه مساوې دی له ۸۷/٤۷۹ گرامه سره، د هغه سړي لپاره دی چه له چا سره يواځې او يواځې سره زر وي. سپين زر، د تجارت مال او نقدې روپۍ هيڅ ورسره نه وي. همدارنگه د سپينو زرو نصاب دوه پنځوس نيمې تولې چه مساوي دی له ٦۱۲/۳۵ گرامه سره، په هغه صورت كښې دی چه يواځې سپين زر وي. سره زر، د تجارت مال او نقدې روپۍ با لكل ورسره نه وي. كه چيرته له سپينو يا سرو زرو سره نور د زكات مالونه هم وي نو د ټولو قيمت لگول كيږي. كه چيرته د ټولو قيمت د ۸۷/٤۷۹ گرامه سرو زرو يا ٦۱۲/۳۵ گرامه سپينو زرو له قيمت سره برابر وي نو زكات فرض دی.

د زكات د نصاب خلاصه دا ده چه سره زر اوه نيمې تولې = ۸۷/٤۷۹ گرامه يا سپين زر دوه پنځوس نيمې تولې =٦۱۲/۳۵ گرامه، يا د تجارت مال يا نقدې روپۍ يا د همدغو څلور شيانو يا په دوی كښې د ځينو شيانو مجموعه د سرو يا سپينو زرو د مذكور وزن له قيمت سره برابر وي. د تجارت له مال څخه هغه شيان مراد دي چه د تجارت په نيت سره اخيستل شوي وي او همدا نيت تر آخره پكښې پاتې وي. كه چيرته د كوم شي د اخيستلو په وخت كښې د تجارت نيت نه وي يا وروسته ئې د تجارت نيت بدل شي يا د اخيستلو په ځای په كومې بلې ذريعې سره كوم شی په لاس ورشي اگر كه ئې د اخيستلو په وخت كښې د تجارت نيت وي. په دې ټولو صورتونو كښې زكات نشته.

**تنبيه**: د بنده تحقيق د مندرجې رسالې "بسط الباع لتحقيق الصّاع" په مطابق د سپينو زرو نصاب ٦۸۰/٤ گرامه او د سرو زرو ۹۷/۲ گرامه جوړيږي. د صدقة الفطر لپاره هم هغه تحقيق د رجح والي تر څنگ احوط هم دی. ليكن د زكات په نصاب كښې د كم وزن په اخيستلو كښې احتياط دی. د دې لپاره دلته عام او مشهور وزن ليكل شوی دی.

فقط والله تعالى اعلم ٦ ذيقعده ۱۳۸۳ هجری

## د زکات مصرف

**سوال**: سړی چه څومره مال ولري نو د زکات اخیستل ورته جائز نه دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: سپین زر، سره زر، د تجارت مال او په کور کښې د ورځنې استعمال له شیانو څخه د زیات سامان قیمت لګول او له هغه سره د نقدو روپو جمع کول. د دغو پنځو شیانو مجموعه یا له هغو څخه د ځینو قیمت چه له **۸۷/۴۷۹** ګرامه سرو زرو یا **۶۱۲/۳۵** ګرامه سپینو زرو له قیمت سره برابر شي چه له چا سره وي نو داسې سړی زکات نه شي اخیستلی. له دریو جوړو څخه زیاتې جامې، رادیو، ټیپ او تلویزون غوندې خرافات په انساني حاجاتو کښې داخل نه دي، له دې امله ددغو شیانو قیمت هم په حساب کښې ورسره لګول کیږي. **في اضحية الشامية وصاحب الثياب الاربعه لو ساوى الرابع نصاباً غنى و ثلاثة فلا. لان احدها للبذلة و الأخر للمهنة و الثالث للجمع والوفد والاعياد. (ردالمحتار ج۵،ص۲۱۹) فقط والله تعالى اعلم ۶ ذیقعده ۱۳۸۳ هجری**

## د زکات په نصاب باندې د کال د تیریدو مطلب

**سوال**: زه د روژې د میاشتې په لومړۍ ورځ باندې زکات ادا کوم. که چیرته د شعبان په آخر کښې څه پیسې لاس ته راشي نو آیا په هغو باندې هم زکات شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تاسو چه د قمري میاشتې په کوم تاریخ باندې د نصاب خاوند ګرځیدلي یئ. د تل لپاره به همدا تاریخ ستاسو د زکات د حساب لپاره ټاکلی پاتې وي. په همدې تاریخ کښې چه له تاسو سره سره زر، سپین زر، د تجارت مال او نقدې روپۍ چه څومره هم وي اګر که یوه ورځ مخکښې هم تاسو ته په لاس دراغلي وي په ټولو باندې به زکات فرض وي. د زکات حساب به د تل لپاره په همدې تاریخ وي. نور چه کله غواړئ ادا کوه ئې. که چیرته د کال په منځ کښې د نصاب په اندازې سره مال پاتې نه شو لیکن په ټاکلي تاریخ کښې بیرته نصاب پوره شو نو بیا هم زکات فرض دی. البته که چیرته په منځ کښې مال بالکل پاتې نه شي نو اوس بیا چه له کوم تاریخ څخه د نصاب خاوند جوړ شئ هغه به ټاکل کیږي. که چیرته د نصاب خاوند د جوړیدو قمري تاریخ در یاد نه وي نو تر غور او فکر وروسته چه په کوم تاریخ باندې غالب ګومان راشي نو هغه به ټاکل کیږي. که چیرته د یوه تاریخ هم غالب ګومان را نه شي نو پخپله کوم قمري تاریخ وټاکئ.

**فقط والله تعالى اعلم ۶ ذیقعده ۱۳۸۳ هجری**

## د تنګ لاسي سړي د ښځې زمکه له اصلي حوائجو څخه ده

**سوال**: زمونږ په ملک ښځې ته په مهر کښې د کور له سامانونو او جامو پرته زمکه او د خرماؤ

ونې هم ورکوي او دا زمکه او ونې د خاوند په تصرف کښې وي هغه د دې زمکې حاصل پخپلې ښځې او اولاد باندې لګوي. آيا په دې صورت کښې ښځه غنيه شميرل کيږي او که نه؟ که چيرته خاوند تنګ لاسى وي يا په وس کښې ښه وي په دواړو صورتونو کښې به فرق وي او که نه؟ په شامي کښې دي چه: سئلت عن المرأة هل تصير غنية بالجهاز الذى تزف به الى بيت زوجها والذى يظهر مما مر ان ما كان من اثاث المنزل وثياب البدن واوانى الاستعمال مما لا بد لامثالها منه فهو من الحاجة الاصلية وما زاد على ذلك من الحلى والاوانى والامتعة التى يقصد بها الزينة اذا بلغ نصابا تصير به غنية. (ج۲، ص۸۸) په دې کښې دا اشکال دی چه د بدن جامې په خاوند باندې خو د واجبو نفقاتو له جملې څخه دی نو د ښځې په اصلي حوائجو کښې ولې ګڼل شوي دي؟ که چيرته جامې په اصلي حوائجو کښې داخلې دي نو د ښځې خوراک هم په خاوند باندې د واجبې نفقې د کيدو تر څنګ د ښځې په اصلي حوائجو کښې به داخل وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ښځې نفقه اګر که په خاوند باندې واجبه ده ليکن په دې کښې د سقوط احتمال شته. چنانچه د خاوند د تنګ لاسي کيدلو يا د ښځې د نه غوښتلو يا د غوښتلو تر څنګ د مودې په تيريدو سره نفقه ساقطيږي. له دې امله د خاوند د تنګ لاسي په حالت کښې د ښځې زمکه که چيرته د دې له مصارفو څخه زيات حاصل نه ورکوي نو هغه د ښځې په اصلي حوائجو کښې داخليږي. همدارنګه د ښځې کور هم د خاوند د تنګ لاسي په حالت کښې د هغې په اصلي حوائجو کښې داخله ده حالانکه دا هم د واجبو نفقاتو له جملې څخه ده. كما فى اضحية الشامية والمرأة موسرة بالمعجل لو الزوج مليا وبالمؤجل لا وبدار تسكنها مع الزوج ان قدر على الاسكان. (رد المحتار ج۵، ص۲۱۹) په سوال کښې د کور د اسبابو او د بدن د جامو او داسې نورو په اړه د شامي په جزئيه کښې د خاوند د تنګ لاسي قيد د دې لپاره نشته چه له ښځې سره د دغو شيانو په موجودوالي کښې له خاوند څخه ئې غوښتنه عرفاً نه کيږي بلکه دا ښه خبره نه ګڼي. د دې لپاره دا شيان په هر صورت کښې د ښځې په اصلي حوائجو کښې شماريږي که خاوند ئې تنګ لاسى وي او که په وس کښې ښه وي. فقط والله تعالى اعلم يوم العاشوراء ۱۳۸۵ هجرى

## د مهر د دَين له وجې د ښځې د غناء تفصيل

**سوال**: د ښځې د خپل خاوند په ذمې باندې مهر واجب دی. له دې ښځې سره نه څه شی نشته آيا زکات ورکول کيدلی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته مهر معجل وي او خاوند په وس کښې ښه وي نو ښځه غنيه ګڼل کيږي. داسې ښځې ته زکات ورکول جائز نه دي. او که چيرته خاوند بې وسه وي يا مهر

مؤجل وي نو زکات ورکول کیدلی شي. **فی اضحیة الشامیة و المرأة موسرة بالمعجل لو الزوج ملیاً و بالمؤجل لا.(ردالمحتار ج۵،ص۳۱۹)** **فقط والله تعالیٰ اعلم** **یوم العاشوراء ۱۳۸۵ هجری**

## د نوټ په ذریعې سره د زکات د اداء کیدو حکم

**سوال**: که چیرته په زکات کښې مسکین یا فقیر ته کاغذي نوټ ورکړل شي نو زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د یوې روپۍ نوټ پخپله مال دی. په دې سره د زکات په صحت کښې هیڅا ته هم څه اشکال نشته. البته له یوې روپۍ څخه غټ نوټ د مال رسید دی. لیکن رسیدي نوټ چه کله فقیر ته ؤرکول شي نو دا په حکومت باندې حواله شوه. که چیرته فقیر له حکومت څخه د دې نوټ روپۍ وصول کړې نو په دې وخت کښې زکات ادا کیږي. **قال فی الشامیة فی صورتین لا یجوز الاولیٰ اداء الدین عن العین کجعله ما فی ذمة مدیونه زکوٰة لماله الحاضر بخلاف ما اذا امر فقیراً بقبض دین له علی اٰخر عن زکوٰة عین فانه تجوز لانه عند قبض الفقیر یصیر عیناً فکان عیناً عن عین، (رد المحتار ج۲،ص۱۳)** او که چیرته ئې له حکومت څخه د وصول کولو په ځای له بل چا څخه د نوټ روپۍ یا مال واخیست نو اګر که د فقیر په دَین باندې قبضه را نه غله لیکن د دَین په عوض باندې ئې قبضه راغله )**وللعوض حکم المعوض)** لهذا زکات ادا کیږي. په دې باندې اشکال کیدلی شي چه فقیر په حکومت باندې د دَین په عوض کښې که څه واخیستل نو دا تصرّف ئې د (**تملیك الدین من غیر من علیه الدین بالعوض)** کیدو له وجې نه صحیح کیږي. د دې ځواب دا دی چه اخیستل او خرڅول په بدل د دَین علی الحکومة باندې نه وي بلکه عقد خو په مطلقه توګه تر سره کیږي. لیکن وروسته نوټ ورکوي او د ثمنو حواله په حکومت باندې کیږي. پس په نوټ باندې اخیستل شوی مال اګر که په ابتداء کښې د دَین عوض نه دی لیکن په انتهاء کښې د دَین د عوض یا بدل کیدو له وجې دا د (**للعوض حکم المعوض)** په کلیه کښې داخلیدلی شي. که چیرته فقیر دا نوټ چا ته د هبې یا اجرت یا د دَین د ادا کولو پهٔ توګه ورکړي نو ده د زکات دَین له حکومت څخه پخپله د وصولولو په ځای بل چا ته په حواله کولو سره هغه لره په قبض باندې مسلط کړ. پس که چیرته دا بل سړی له حکومت څخه دَین وصول کړي نو ګوا که لومړی ئې د فقیر له خوا څخه وکالةً په دې باندې قبض کړی دی. تر هغه وروسته ې د خان لپاره قبض کړ (**قال فی الشامیة و الحیلة اذا خاف ذٰلك ای منع الفقیر عن اخذ الدین ما فی الاشباه و هو ان یوکل المدیون خادم الدائن بقبض الزکوٰة ثم بقضاء دینه فیقبض**

الوكيل صار ملكاً للموكل ولا يسلم المال للموكل الا فى غيبة المديون لاحتمال ان يعزله عن وكالة قضاء دينه حال القبض قبل الدفع. (رد المحتار ج۲، ص۱۳) وايضاً فى بيوع الشامية (قوله لا يجوز من غيره) اى لا يجوز تمليك الدين من غير من عليه الدين الا اذا سلطه عليه واستثنى فى الاشباه من ذلك ثلاث صور اذا سلطه على قبضه فيكون وكيلاً قابضاً للموكل ثم لنفسه الثانية الحواله الثالثة الوصية. (رد المحتار ج۴، ص۱۸۵)

او که چيرته ئې د حکومت په ځای په بل چا باندې دا نوټ وچلاوه يا څه واخيستل نو د (للعوض حکم المعوض) د قاعدې له مخې په دې صورت کښې هم زکات ادا کيږي. البته که چيرته نوټ ورک شي يا وسوځي نو زکات نه ادا کيږي. لهذا احتياط په دې کښې دی چه په زکات کښې رسيدي نوټ ورنه کړل شي. سره له دې که چيرته ورکړل شي نو د زکات د صحتِ اداء حکم پرې لګول کيږي ځکه چه د ورکيدو يا سوځيدو احتمال ډير لږ دی. پرته له خالص ثبوت څخه لږ احتمال معتبر نه دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ ربيع الاول ۱۳۸۶ هجری

## د زکات غوښتل او پخپله غوښتونکي ته د زکات ورکول حرام دي

**سوال**: زيد يو ديندار سړی دی او د واجبو صدقاتو مستحق دی. آيا ده ته د عُشر، سرسايه او داسې نورو واجبو صدقاتو سوال کول او بيا ئې اخيستل ورته جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د کوم سړي سره چه د يوې ورځې خوراک موجود وي، يا په کټې باندې قدرت ولري نو د خوراک لپاره د ده سوال کول حرام دي او داسې سړي ته څه ورکول هم حرام دي. نور ضروريات لکه جامه، مکان او داسې نور هم په دې باندې قياس کړی چه د ضرورت په اندازه د درلودو په صورت سوال کول ورته حرام دي. نن صبا د نجونو د جهيز د جوړولو لپاره د زکات د غوښتلو عام رواج جوړ شوی دی. شرعاً دا په ضرورت کښې داخل نه دی له دې امله سوال ناجائز دی. البته پرته له سوال څخه پخپله که څوک څه ورکړي نو پروا نه لري. حضراتو فقهاء کرامو د دين مسکين طالب العلم ته د سوال کولو اجازه ليکلې ده ليکن دا د هغې زمانې خبره ده چه په عوامو کښې د دين له علم څخه نفرت او کرکه نه وه. د ديني علم او د هغه له زده کوونکو او ښوونکو څخه د نفرت او کرکې په دې دور کښې طالبِ علم ته هم د سوال کولو اجازه نشته ځکه چه په دې کښې د دين تذليل او تحقير (سپکاوی) دی. له مالدارو خلکو څخه استغناء او د توکّل علیٰ الله د برکتونو د تفصيل لپاره زما "صيانة العلماء عن الذل عند الاغنياء" نومي رساله چه د احسن الفتاویٰ په اول جلد کښې درج ده ملاحظه کړئ.

قال فى العلائية ولا يحل ان يسأل شيئا من القوت من له قوت يومه بالفعل او بالقوة كالصحيح المكتسب و

يأثم معطيه ان علم بحاله لاعانته على المحرم. (رد المحتار ج۲، ص۷۶) و فى الشامية و يكون طلب العلم مرخصا لجواز سؤاله من الزكوة و غيرها و ان كان قادراً على الكسب اذ بدونه لا يحل له السؤال كما سيأتى و مذهب الشافعية و الحنابلة ان القدرة على الاكتساب تمنع الفقر فلا يحل له الاخذ فضلاً عن السؤال الا اذا اشتغل عنه بالعلم الشرعى. (ردالمحتار ج۲، ص۶۵) فقط والله تعالى اعلم ۱۷ جمادى الآخر ۱۳۸۶ هجرى

## فقير ته په زكات كښې د لاس ته ورغلي شي استعمال د غني لپاره جائز نه دى

**سوال**: كه چيرته كوم فقير ته د زكات له حسابه كوم كتاب وركړل شي نوآيا د غني لپاره د هغه استعمال جائز دى او كه نه؟ په فتاوىٰ رشيديه كښې د لاندينۍ مسئلې له مخې د دې ناجائز والى ثابتيږي:

**مسئله**: د طلباؤ خوراک كوم چه له يوه ځايه مقرر وي او له هغه ځايه ئې راوړي. آيا د نصاب خاوند ته دا خوراک د طلباؤ د رغبت په مطابق جائز دى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**جواب**: د طلباؤ كوم خوراک چه تاكل شوى وي كه چيرته له واجبو صدقاتو لكه كفاره، عشر، نذر او زكات څخه نه وي نو له طلباؤ سره ئې د هغوى په اجازې سره غني سړى هم خوړلى شي. او كه چيرته په هغوى كښې د يوه طالب خوراک مقرر وي نو چه كله هغه طالب يو څوک مالک جوړ كړي نو غني ئې په دې وخت كښې خوړلى شي او له طالب سره يو ځاى د غني لپاره خوراک صحيح نه دى. فقط. (فتاوٰى رشيديه ص۴۸۵، مطبوعهٔ قرآن محل) د دې په خلاف په ديوبند، سهارنپور، مدرسهٔ امينيه دهلي، فتحپوري دهلي، دار العلوم نانک واړه كراچي، او مولانا ظفر احمد صاحب تهٔنو الله يار د صورت مذكوره په خلاف د جواز فتوىٰ وركړې ده. دا فتاوىٰ هم ستاسو په خدمت كښې ده. تاسو مونږ پخپل تحقيق سره ونازوئ. و الاجر عند الله الكريم.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د فتاوىٰ رشيديه مسئله صحيح ده. فقير چه د زكات مال غني ته اباحةً يا عاريةً وركړي نو د هغه لپاره حلال نه دى. البته تر تمليک (مالک ګرځولو) وروسته ورته حلاليږي.

قال فى العلائية فى باب موت المكاتب و عجزه و طاب لسيده و ان لم يكن مصرفا للصدقة ما ادى اليه من الصدقات فعجز لتبدل الملك و اصله حديث بريرة رضى الله تعالى عنها هو لكِ صدقة ولنا هدية كما فى وارث شخص فقير مات عن صدقة اخذها وارثه الغنى و كما فى ابن سبيل اخذها ثم وصل الى ماله وهى فى يده اى الزكوة و كفقير استغنى وهى فى يده فانها تطيب له بخلاف فقير اباح لغنى او هاشمى عين زكوة اخذها لا يحل لان الملك

لم یتبدل، وفی الشامیة (قوله لان الملک لم یتبدل) لان المباح له یتناوله علی ملک المبیح ونظیره المشتری شراءً فاسداً اذا اباح لغیره لا یطیب له ولو ملکه یطیب، هدایة (ردالمحتار ج۵، ص۸۰)

وفی التبیین وتبدل الملک کتبدل العین فصار کعین اُخر والیه اشار النبی ﷺ فی حدیث بریرة رضی الله تعالیٰ عنها هی لها صدقة ولنا هدیة. (طحطاوی علی الدر ج۳، ص۶۴) حدیث څخه ثابته شوه چه حلت د تبدلِ ملک له وجې د هدیې په سبب سره وشو نه په صورت د اباحت. له مذکوره عبارت څخه پرته په هدایه، عنایه، فتح القدیر، بحر، هندیه، طحطاوي علي المراقي، زیلعي او داسې نورو د فقهې په ټولو کتابونو کښې دامسئله له وضاحت سره راغلې ده. جواز ورکوونکي حضرات د فتوٰی د لیکلو په وخت د دغو کتابونو خوا ته رجوع نه ده کړې. **فقط والله تعالیٰ اعلم** ۱۸ شعبان ۱۳۸۷ هجری

## په پراویډنټ فنډ باندې د زکات حکم

**سوال** : څه فرمائي علماء کرام د پراویډنټ فنډ (تقاعد، هغه روپۍ چه حکومت ئې د نوکر له تنخواه څخه کرځوي او د نوکرۍ په پای ته رسیدو سره ئې په یو ځائي توګه ورکوي) په باره کښې چه په هغه باندې زکات کله واجبیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د حکومتي پراویډنټ فنډ او د شخصي کمپنیو په پراویډنټ فنډ کښې څه فرق وي چه له وجې به ئې په احکامو کښې هم فرق وي. په حکومتي پراویډنټ فنډ کښې حکومت مستأجر دی او ملازم یا نوکر اجیر دی. د فنډ روپۍ د مستاجر (حکومت) په قبضه کښې وي او د اجیر قبضه پرې نه وي. د قبض د نشتوالي له وجې په باقاعده توګه په حکومت باندې دین دی. له دې امله په هغه باندې زکات فرض نه دی. تر وصولیدو وروسته هم په هغه باندې د تیرې شوې مودې زکات فرض نه دی بلکه په راتلونکي کښې به زکات پرې فرض وي. **لانه دین ضعیف کدین المهر ولا یقاس علی دین اجرة الارض والدار والعبد فانه دین متوسط لان منفعة المال مال من وجه و الحر لیس بمال فدین اجرته لیس بمقابل للمال الحقیقی ولا الحکمی علی ان الدین المتوسط ایضاً کالدین الضعیف فی عدم وجوب الزکوٰة علی الراجح.** البته که چیرته په دې فنډ کښې ملازم په کوم بیمه یا انشورنس (هغه شرکتونه چه له خلکو څخه د یوې ټاکلې مودې یا د ژوند تر آخره پورې روپۍ د وکالت په توګه اخلي) کمپنۍ کښې حصه واخلي نو اوس به د بیمه کمپنۍ قبضه به د اجیر خوا ته منسوبیږي او کمپنۍ به د وکیل په مرتبه کښې وي، او د وکیل قبض د موکل قبض شماریږي. له دې امله د اجیر په قبضهٔ کښې د راتلو له وجې هر کال د هغه د زکات ادا کول فرض دي.

د شخصي شرکتونو پراویډنټ فنډ د یوه مستقل شرکت په حواله کښې ورکول کیږي چه په هغه

کښې د ملازمینو یو نمائنده وي. دا شرکتونه چونکه د ملازمینو وکیلان وي له دې امله د کمپنۍ قبضه به د ملازم قبضه ګڼل کیږي. والله تعالیٰ اعلم ۵شوال ۱۳۸۸ھ هجری

## په قرض (پور) باندې د زکات د وجوب تفصیل

**سوال** : د یوه سړي په چا باندې له څو کلونو راهیسې پور دی. آیا په قرض غوښتونکي باندې د دې روپو زکات فرض دی او که نه؟ د وصولیدو په صورت کښې به تیرو شویو کلونو زکات به هم پرې فرض وي او که یوائې د راتلونکو کلونو؟ د مهربانۍ له مخې په قرض باندې د زکات احکام په تفصیل سره ولیکئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د شریعت په اصطلاح کښې قرض یوائې هغه مال ته ویل کیږي چه کوم چه پخپل جنس کښې د بیرته ورکولو په صورت کښې چا ته ورکړ شوی وي لیکن په عام عرف کښې هر واجب الذمه روپو ته قرض ویل کیږي کوم چه د شریعت په اصطلاح کښې دَین ورته وائي. د صاحبینو رحمهما الله په نزد په هر ډول دَین باندې زکات فرض دی لیکن حضرت امام اعظم رحمه الله د دَین درې ډولونه بیانوي:

۱ - قوي دَین: له دې څخه هغه روپۍ مراد دي کومې چه چا ته نقدې ورکړ شوې وي یا د تجارت د مال په بدل کښې پرې واجب شوې وي. یا د داسې څارویو عوض یا بدل وي په کومو چه زکات فرض دی. په داسې دَین باندې زکات فرض دی لیکن د زکات ادا کول هلته پرې فرض کیږي چه د څلویښتو درهمو (یو درهم = ۳/۴۰۲ ګرامه سپین زر) په برابر وصول شي. د دَین د وجوب له وخت څخه د کال په پوره کیدو باندې په څلویښتو درهمو کښې به یو درهم زکات واجب وي.

۲ - دَین متوسط: هغه دَین کوم چه د مال په بدل یا عوض کښې په چا باندې واجب شوی وي لیکن دا مال د تجارت نه وي. په دې باندې د زکات د وجوب په اړه له امام اعظم رحمه الله څخه دوه روایتونه دي، یو دا چه د قوي دَین غوندې په دې باندې هم زکات فرض دی لیکن د اداء د وجوب لپاره د څلویښتو درهمو په ځای د دوه سوه درهمو قید دی. د دوه سوه درهمو په اندازه په وصولیدو باندې په هغو باندې د تیرو شویو کلونو د زکات ادا کول هم فرض دي. دویم روایت دا دی چه په متوسط دَین باندې زکات فرض نه دی. بلکه د دوه درهمو تر وصولیدو وروسته د کال په پوره کیدو باندې زکات به پرې فرض وي. د تیرو شویو کلونو زکات نشته. دا روایت راجح دی.

۳ - ضعیف دَین: هغه دَین دی چه د مال په بدل یا عوض کښې نه وي لکه د مَهر دین. په دې باندې تر وصولیدو مخکښې زکات فرض نه دی. بعینه هغه حکم ئې دی کوم چه د متوسط دَین په دویم روایت کښې تیر شو.

## د ځمکې، کور او داسې نور د اجرت دَین

چونکه د مال ګټه هم له یوې وجې مال دی. د دې لپاره د کور، ځمکې او د نورو مالونو د اجرت د دَین په اړه له حضرت امام اعظم رحمه الله څخه درې روایتونه راغلي دي: یو دا چه د اجرت دَین ضعیف دَین دی. دویم دا چه د اجرت دَین متوسط دَین دی. دریم دا چه د تجارت د مال اجرت قوي دَین دی. پس د غیر تجارت د مال د اجرت په اړه یوازې دوه روایتونه شول. یو ضعیف او بل متوسط. له دغو دواړو څخه د یوه ترجیح نه دی راغلی. لیکن د نتیجې له مخې کوم فرق پکښې نشته. د دې لپاره د راجح قول مطابق متوسط دَین هم د ضعیف دَین په حکم کښې دی. کما مر، د تجارت د مال د اجرت په اړه د دریواړو روایتونو له جملې څخه د دوو روایتونو په تصحیح کښې اختلاف دی. له دې امله دې لره قوي دَین ګڼل احوط دي او متوسط ګڼل ئې اوسع دي.

## د ملازم د تنخواه دَین

د اُجرت د دَین په اړه مذکوره روایتونه د مال د اجرت په باره کښې دي. ملازم مال نه دی. د دې لپاره د تنخواه دَین د مَهر غوندې دَین ضعیف دی.

## ورثه ؤ ته په میراث کښې پاتې شوی دَین

که چیرته قرض غوښتونکی وفات شي او د ده دَین د هغه د وارثانو خوا ته وګرځي نو د وارث په حق کښې دا دَین متوسط دَین دی. اګر که د اصل میّت (مړي) دَین قوي ولې نه وي.

**تنبیه**:

۱ - د اداء د وجوب لپاره له قوي دَین څخه څلویښت درهمه او له متوسط او ضعیف دَین څخه دوه سوه درهمه د وصولیدو شرط. همدارنګه په قوي دَین کښې د دَین د وجوب له وخت څخه او په متوسط او ضعیف دَین کښې تر قبض وروسته د کال د تیریدلو شرط په هغه صورت کښې دی چه له هغه سره له دَین څخه پرته نور د زکات مالونه نه وي. که چیرته د زکات له مالونو څخه نور کوم شی هم موجود وي لکه څرنګه چه په عمومي توګه داسې وي نو په هغه کښې دا تفصیل دی چه که چیرته له ده سره پرته له دَین څخه د زکات مال د نصاب په اندازه موجود دی نو له هر ډول دَین څخه کم یا زیات چه څومره هم وصولیږي هغه له مخکښیني نصاب سره شاملیږي. او له هغه سره یو ځای د همدې وصول شوي دَین زکات به هم واجب الاداء وي او که چیرته د زکات مال په اندازه د نصاب نه وي لیکن له دَین قوي سره په یو ځای کولو سره نصاب پوره کیږي نو له قوي دَین څخه چه کله دومره اندازه وصول شي چه له مخکښیني موجود مال سره په یو ځای کولو باندې د څلویښتو درهمو په برابر شي نو په زکات کښې به د یوه درهم ادا کول واجب وي. او چه کله نصاب پوره شي

له همدې وخت څخه د کال پیل شمیرل کیږي. او له متوسط او ضعیف دَین څخه چه کله دومره اندازه وصول شي چه له مخکښې څخه له موجود مال سره په یو ځای کولو د دوه سوه درهمو سره برابر شي له همدې وخت څخه د نصاب خاوند ګڼل کیږي. تر دې وروسته د کال په پوره کیدو باندې د زکات ادا کول واجب دي.

۲ - په قوي دَین کښې د څلویښتو درهمو قید په دې باندې مبني دی چه د یوه نصاب تر کامل کیدو وروسته زیاتی مال چه تر څو پورې د څلویښتو درهمو له قیمت سره برابر نه وي په هغه باندې د امام رحمه الله په نزد زکات فرض نه دی. ځکه چه له څلویښتو درهمو څخه د کموالي په صورت کښې د درهم له کسر څخه د زکات په ادا کولو کښې حرج دی. د صاحبینو رحمهما الله په نزد تر نصاب وروسته په کم او زیات ټولو کښې زکات شته. (ردالمحتار ج۲،ص۳۹/بدائع ج۲،ص۱۰/البحر الرائق مع الحاشیة منحة الخالق ج۲،۲۰۸/مبسوط ج۲،ص۱۹۶) نن صبا له څلویښتو درهمو څخه په کم مالیت باندې د زکات په ادا کولو کښې هیڅ مشکل نشته بلکه د دې برعکس د څلویښتو درهمو د مالیّت اندازه کول او د هرو دوه سوه درهمو د مالیّت د نصاب په جلا حساب لګولو کښې حرج او مشکل ښکاره دی. له دې امله نن صبا به د صاحبینو رحمهما الله تعالی د قول مطابق به عمل کیږي. احتیاط هم په همدې کښې دی. د دې لپاره له قوي دَین څخه کم او زیات چه څومره هم وصول شي د هغه زکات باید اداء شي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۴ محرم ۱۳۹۹ هجری

## د جماعت اسلامي ډلې ته په زکات ورکولو سره زکات نه ادا کیږي

**سوال**: جماعت اسلامي د ګرځنده شفاخانې په ذریعې سره چه کومو مریضانو ته دوائي ورکوي او دا دوائي له زکات او دقربانۍ له څرمنې څخه دوی یو ځای کوي. اوس پوښتنه دا ده چه د امیر سړي لپاره د داسې دوائي اخیستل او استعمالول جائز دي او که نه؟ او که چیرته ئې کوم غني سړي په هیره سره واخلي نو د زکات ورکوونکو زکات ادا کیږي او که نه؟ او له هر سړي څخه دوی لس نوې روپۍ وصولوي او دوائې د زیات قیمت ورکوي. شرعاً د دې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جماعت اسلامي ته په زکات ورکولو سره شرعاً زکات نه ادا کیږي. د دې لپاره چه هغوی دا زکات په شرعي صرف کښې نه لګوي. د سرسائې او د قربانۍ د څرمنې هم همدا حکم دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ ربیع الاول ۱۳۸۹ هجری

## د قرض په نامه سره چه زکات ورکړي نو ادا کیږي

**سوال**: زید بکر ته سل روپۍ د زکات په نیت سره ورکړې او د زکات نوم ئې وا نه خیست او دا ئې وویل چه په دغو روپو باندې خپل کار وکړئ، چه کله تا پیدا کړې بیا ئې راکړه. د زکات نوم ئې

څکه وا نه خیست چه بکر د زکات اخیستل ښه نه ګڼل. اوس یو کال دوه کاله وروسته بکر زید ته سل روپۍ بیرته ورکړې نو زید به دا روپۍ بل مسکین ورکوي او که څه به کوي؟ او په دې ډول سره زکات ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا زکات ادا شوی وو نو د دې لپاره بیرته اخیستل ئې جائز نه دي او بکر ته ئې بیرته ورکول لازم دي. که چیرته د زکات ښکارول مناسب نه وي نو بکر ته دې داسې ووائي چه ما خپل پور درته معاف کړ یا مې د هدیې په توګه درکړې وې. **قال ابن عابدین رحمه الله علیه فلو سماها هبة او قرضاً تجزیه فی الاصح.** (شامیة ج۱، ص۱۱۶) فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ رجب ۱۳۸۹ هجری

## د حج لپاره په جمع شویو روپو کښې د زکات حکم

**سوال**: یو سړی هر کال د رمضان د میاشتې په لومړۍ تاریخ زکات باسي. سږ کال حج ته د تلو نیت لري له دې امله ئې حج ته د تلو لپاره ئې پیشګي روپۍ درې زره شپږ سوه دوه څلویښت روپۍ جمع کړې. اوس توقع ده چه د شعبان په میاشت کښې به لاړ شي. لهذا چه کومې روپۍ ئې د حج لپاره جمع کړې دي د هغو زکات به باسي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ټګ او راتګ کرایه او د ښوونکي او داسې نورو د فیس لپاره چه کومې روپۍ جمع شوي دي په هغو کښې زکات نشته. له دې څخه په زیاتو کښې کومې چه د نوټ په صورت کښې ده ته بیرته ورکول کیږي له هغو څخه د رمضان تر اول تاریخ پورې چه څومره روپۍ بچت شي په هغو کښې زکات فرض دی، چه کومې ئې لګولي دي په هغو کښې نشته.

**قال فی الشامیة اذا امسکه لینفق منه کل ما یحتاجه فحال الحول وقد بقی معه منه نصاب فانه یزکی ذلک الباقی وان کان قصدهُ الانفاق منه ایضاً فی المستقبل لعدم استحقاق صرفه الی حوائجه الاصلیة وقت حولان الحول.**

(ردالمحتار ج۲، ص۷) فقط والله تعالیٰ اعلم غرهٔ شعبان ۱۳۹۲ هجری

## د تیرو شویو کلونو د زکات د ادا کولو طریقه

**سوال**: یوه سړي د دوه دریو کلونو زکاتونه نه دي ادا کړي. اوس به دی د دویم او دریم کال د زکات د ادا کولو په وخت کښې د ټولې سرمایې زکات ادا کوي او که د لومړي کال د زکات تر ایستلو وروسته به پاتې زکات ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لومړي زکات تر منفي کولو وروسته چه څومره روپۍ پاتې شي د دویم کال زکات دې ترې ورکړي. بیا چه تر دې وروسته څومره روپۍ پاتې شي د دریم کال زکات دې ترې ورکړي

قال في التنوير وسببه ملك نصاب حولي تام فارغ عن دين له مطالب من جهة العباد. وقال في الشرح سواء كان لله كزكوة وخراج وفي الشامية (قوله كزكوة) فلو كان له نصاب حال عليه حولان فلم يزكه فيهما لا زكوة عليه في الحول الثاني (رد المحتار ج۲، ص۵) وفي البدائع اذا كان لرجل مائتا درهم او عشرون مثقال ذهب فلم يؤد زكوته سنتين يزكي السنة الاولى وليس على للسنة الثانية شيء عند اصحابنا الثلاثة رحمهم الله تعالى و عند زفر يؤدي زكوة سنتين. (بدائع الصنائع ج۲، ص۷) فقط والله تعالى اعلم ۱۴ جمادی الاولی ۱۳۹۶ هجری

## د زکات د روپو په بیلولو سره د سړي د فوت کیدلو حکم

**سوال**: یوه سړي د زکات په نیت سره د زکات روپۍ جلا یا بیلې کړې او یا ئې وکیل ته ورکړې. په دې حالت کښې دی له ادا کولو څخه مخکښې وفات شو نو اوس د دغو روپو حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته مړي د دې وصیت هم کړی وي نو دا روپۍ به په زکات کښې ورکول کیږي په دې شرط چه د ټولې ترکې له یو پر دریمې څخه زیاتې نه وي. او که چیرته ئې وصیت نه وي کړي په ترکه کښې به شمیرل کیږي او د وارثانو تر منځ به تقسیمیږي. **قال في العلائية ولا يخرج عن العهدة بالعزل بل بالاداء للفقراء وفي الشامية فلو ضاعت لا تسقط عنه الزكوة ولو مات كانت ميراثا عنه بخلاف ما اذا ضاعت في يد الساعي لان يده كيد الفقراء بحر عن المحيط. (رد المحتار ج۲، ص۱۳)**

مزکي وکیل د فقیر قائم مقام نه دی او د مزکي (زکات ورکوونکي) په مرګ سره دی معزول شوی دی. د دې لپاره ده ته د دې روپو په زکات کښې د مصرفولو اختیار نشته.

فقط والله تعالی اعلم ۱۴ ذی الحجة ۱۳۹۵ هجری

## د قرض یا پور د وصولیدو هیله چه نه وي نو زکات پرې نشته

**سوال**: د زید په خلکو باندې پورونه دي. تقریباً له دریو کلونو څخه خلک یواځې د ورکولو وعده ورسره کوي لیکن تر اوسه پورې هیچا هم هیڅ نه دي ادا کړي. په دې قرض یا پور باندې څوک ګواه هم نشته. او د پوروړي له ظاهري حالت څخه څرګندیږي چه پور نه ادا کوي. په داسې صورت کښې د همدغو روپو زکات په زید باندې واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د کوم قرض چه د وصولیدو هیله نه وي په هغه باندې زکات فرض نه دی.

فقط والله تعالی اعلم ۵ ذی الحجة ۱۳۹۶ هجری

## په نذر شویو روپو باندې زکات فرض دی

**سوال**: یوه سړي د خپلې ګټې دریمه برخه د الله په نامه نذر کړه. چه کله د رحم وړ کوم سړی ئې په نظر ورته نو د هغه امداد ئې کاوه آیا په دغو روپو باندې به زکات وي کومې چه ده د غریبانو ته د الله په نامه ایښې دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ئې په ژبې باندې د نذر لفظ ویلی وي نو دا نذر پرې واجب شوی دی. د دې حکم دا دی چه په دې باندې زکات فرض دی. لیکن ځانته ادا کول ئې ضروري نه دي بلکه د همدې روپو څلویښتمه برخه د زکات په نیت ورکولی شي او پاتې برخه دې د نذر په حساب صدقه کړي. د زکات په اندازه نذر ترې ساقطیږي. که چیرته دا ټولې روپۍ پرته د زکات له نیت څخه مسکینانو ته ورکړي نو بیا هم په هغو کښې څلویښتمه پخپله په زکات کښې حسابیږي او پاتې په نذر کښې. دا حکم په هغه صورت کښې دی چه د نذر روپۍ ځانته ټاکلې شوي نه وي او که نه نو د مطلق روپو په نذر کښې دا ټولې روپۍ د نذر په نامه باندې صدق کول واجبیږي او زکات به ئې جلا پرې فرض وي. که چیرته پرته د زکات له نیت څخه ټولې روپۍ صدقه کړي نو بیا هم زکات ادا کیږي لیکن د زکات د اندازې په برابر به نوره صدقه د نذر په حساب سره پرې واجبه وي. کذا فی الشامیة، فقط والله تعالیٰ اعلم. ۲۲ ربیع الاول ۱۳۹۸ ہجری

## د ووزو په سیرلیو یعنې کوچني بچیانو باندې د زکات حکم

**سوال**: د ووزو د زکات په نصاب کښې د ووزو سیرلي هم شمیرل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته یوازې سیرلي یعنې د ووزو کوچني بچیان وي نو په هغو کښې زکات نشته. او که چیرته له هغو سره کوم د یوه کال یا تر دې لویه ووزه هم وي نو له هغې سره یو ځای کیږي او په نصاب کښې سیرلي هم معتبر وي او په مجموعه څلویښتو باندې به یوه لویه ووزه فرض وي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ جمادی الاولی ۱۳۹۸ ہجری

## کوم شی د تجارت په نیت سره اخیستل او بیرته د نیت بدلیدل او بیا د تجارت نیت کولو حکم

**سوال**: زید د تجارت په غرض سره یو شی واخیست، په منځ کښې ئې دا اراده پرېښوده او تر دې وروسته ئې بیا د تجارت نیت وکړ نو آیا په دې باندې زکات شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې شي باندې زکات نشته. قال فی شرح التنویر لا یبقی للتجارة ما ای عبد مثلاً اشتراه لها فنوی بعد ذلك خدمته ثم ما نواه للخدمة لا یصیر للتجارة وان نواه لها ما لم یبعه

بجنس ما فيه الزكوة والفرق ان التجارة عمل فلا تتم بمجرد النية. (رد المحتار ج ۲، ص ۱۴)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۸ محرم ۱۳۹۹ھ

## د نابالغ په مال کښې زکات نشته

**سوال**: د نابالغ په مال کښې زکات فرض دی او که نه؟ که چیرته فرض نه وي نو د دې حدیث به څه ځواب وي؟ ان النبی ﷺ خطب الناس فقال الا من ولی یتیماً له مال فلیتجر فیه ولا یترکه حتی لا تأکله الصدقة. (ترمذی ص ۱۱۶) له صدقې څخه څه مراد دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: د نابالغ په مال کښې زکات فرض نه دی ځکه چه دی مکلف نه دی. عن عائشة ﷺ عن النبی ﷺ قال رفع القلم عن ثلاثة عن النائم حتی یستیقظ وعن الصبیّ حتی یحتلم وعن المجنون حتی یعقل اخرجه ابو داؤد والنسائی وابن ماجة ورواه الحاکم فی المستدرک وقال علی شرط مسلم. پرته له دې څخه د ابن عباس او ابن مسعود رضی الله تعالی عنهم په اثر کښې د دې تصریح دی چه د نابالغ په مال کښې زکات نشته.

د حتی یأکله الصدقة دوه ځوابونه دي:

۱ - د دې حدیث په سند کښې مثنٰی ابن صباح راوي ضعیف دی.

۲ - په حدیث کښې له صدقې څخه پخپل ځان باندې نفقه کول مراد دي لکه څرنګه چه له نورو روایتونو څخه مرفوعاً ثابت دي: کما روی احمد بسند جید عن المقدام بن معدیکرب رضی الله تعالی عنه مرفوعاً اطعمت نفسك فهو لك صدقةٌ وروی مثله عن ابی امامة وجابر رضی الله عنهما مرفوعاً په همدې مراد باندې یو واضح دلیل دا هم دی چه د مال استیصال (له منځه تلل او ختمیدل) یواځې په نفقې سره کیدلی شي، په زکات سره استیصال نه شي کیدلی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ جمادی الآخر ۱۳۹۹ھ

## د زکات په مال کښې د هم هغه ځای قیمت معتبر وي چیرته چه مال پروت وی

**سوال**: د زکات په ادا کولو کښې د زکات د مال قیمت به د هغه ځای معتبر وي چیرته چه مزکي (زکات ورکوونکی) اوسیږي او که د هغه ځای چیرته چه مال پروت وي؟ همدارنګه د کال د تیریدو په اړه هم څه نا څه وضاحت وکړئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: چیرته چه مال موجود وي د هم هغه ځای قیمت به معتبر وي.

قال فی شرح التنویر ویقوم فی البلد الذی المال فیه ولو فی مفازة ففی اقرب الامصار الیه فتح، وفی الشامیة

فلو بعث عبدا للتجارة فى بلد اٰخر يقوم فى البلد الذى فيه العبد، بحر (قوله ففى اقرب الامصار اليه) اى الى المفازة وذكر الضمير باعتبار الموضع وعبارة الفتح الى ذٰلك الموضع. قال فى البحر فى الباب الأتى وهٰذا اولى مما فى التبيين من انه اذا كان فى المفازة يقوم فى المصر الذى يصير اليه. (ردالمحتار ج۲،ص۲۴، باب زكوٰة الغنم)

د حولانِ حول (د كال د تيريدو) په اړه كومه خاصه جزئيه مې نه ده ترلاسه شوې. د رد المحتار له لاندينې عبارت څخه يوه كليّه معلومه شوه. چه له هغې څخه معلوميږي چه د كال تيريدل به هم د هم هغه ځاى معتبر وي چيرته چه مال موجود وي. (قوله وكره نقلها) اى من بلد الى بلد اٰخر (الى قوله) ويعتبر فى الزكوٰة مكان المال فى الروايات كلها واختلف فى صدقة الفطر كما يأتى. (ردالمحتار ج۲،ص۷۵، باب المصرف)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۲ صفر ۱۴۰۰ھ

## د سرو زرو په زكات كښې د وجوب د وخت قيمت معتبر دى

**سوال**: د سرو زرو په زكات كښې به د كوم وخت قيمت معتبر وي؟ آيا د وجوب د وخت قيمت او كه د اداء كولو د وخت قيمت؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: د سرو او سپينو زرو په زكات او عشر كښې د وجوب د وخت قيمت معتبر دى. البته د څارويو په زكات كښې د اداء كولو د وخت قيمت اعتبار لري. قال فى التنوير وجاز دفع القيمة فى زكوٰة وعشر وخراج وفطرة ونذر وكفارة غير الاعتاق، وفى الشرح وتعتبر القيمة يوم الوجوب وقالا يوم الاداء وفى السوائم يوم الاداء اجماعاً وهو الاصح. (ردالمحتار ج۲،ص۲۴) فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۰ صفر ۱۴۰۰ھ

## د عشر د ادا كولو تر څنګ د زمكې له حاصل څخه په لاس ته راغليو نقدو روپو كښې زكات فرض دى

**سوال**: يو زميندار له خپلو سل (۱۰۰) منه غنمو عشر ادا كوي او بيا دا غنم خرڅوي او روپۍ ترې جوړوي. نو آيا د كال په تيريدو سره به له غنمو څخه په لاس ته راغلي روپو كښې چه له سرمايې سره يو ځاى شي زكات واجب وي او كه نه؟ كه چيرته واجب وي نو دا دوچنده مالي حق نه جوړيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! زكات پرې فرض دى. د جنس د بدليدو له وجې حكم بدليږي.

فقط والله تعالىٰ اعلم ۹ ذيقعده ۱۴۰۰ھ

## كومو خپلوانو ته چه زكات وركول جائز نه دي د هغو تفصيل

**سوال**: زيد خپلې لور فاطمې ته له خپل جائداد څخه كومه برخه ور نه كړه او په همدې حال

کښې ئې واده هم کړه. اوس د فاطمې اولاد هم شوی دی. آیا زید د فاطمې اولاد ته زکات ورکولی شي او که نه؟ یا داسې فرض کړئ چه زید وفات شوی دی او زمن ئې عمرو او بکر موجود دي او د خور د میراث حق دوی هم ادا نه کړ. نو آیا دوی هم خپلې خور فاطمې یا د هغې اولاد ته زکات ورکولی شي او که نه؟ کومو خپلوانو ته زکات ورکول کیدی شي؟ په تفصیل سره ئې ولیکئ؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: پلار خپلې لور او د هغې اولاد ته زکات نه شي ورکولی. ورور خپلې خور او د هغې اولاد ته زکات ورکولی شي. زکات د وراثت له حق سره هیڅ تعلق نه لري. که د وراثت حق ئې ورکړی وي او که نه په هر صورت کښې به د زکات حکم هغه وي کوم چه بیان شو.

لاندیني خپلوانو ته د زکات ورکول جائز نه دي:

۱ - اصول: یعنې له چا څخه چه پیدا شوی وي لکه مور، پلار، نیکه، انا، د مور پلار، د مور مور او داسې نور.

۲ - فروع: یعنې اولاد، زوی، لور، لمسی، لمسۍ، د لور له خوا لمسی، د لور له خوا لمسۍ او داسې نور.

۳ - خاوند او ښځه یو او بل ته زکات نه شي ورکولی. تر طلاق وروسته چه تر څو پورې د ښځې عدت تیر شوی نه وي زکات ورکول جائز نه دي. قال فی التنویر ولا من بینهما ولاد او زوجیة وفی الشرح ولو مبانة وفی الحاشیة ای فی العدة ولو بثلاث نهر عن معراج الدرایة. (ردالمحتار ج۲ ص۶۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۴ ربیع الثانی ۱۳۸۷ھ

## د زیور (ګینړې) د زکات په اړه یو څو پوښتنې

**سوال**: د ګینړو د زکات په باره کښې څو پوښتنې ستاسو په خدمت کښې دي. له مفصلاً ځواب څخه مو و نازوئ.

۱ - چه په مختلفو وختونو کښې مختلف ډوله زیورات (ګینړې) واخیستل شي نو په هغو باندې به زکات کله فرض کیږي؟

۲ - د زیوراتو د خرید په قیمت باندې به زکات وي او که موجوده قیمت باندې؟

۳ - د زیوراتو په قیمت کښې د ملغلرو او غمیو قیمت او د جوړولو اُجرت هم لګول کیږي او که یواځې د سرو زرو قیمت لګول کیږي؟

۴ - په ګینړو کښې له سرو زرو پرته نور شیان هم ورسره ګډیږي آیا د هغو زکات هم فرض دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: ۱ - له تاسو سره چه په کومه ورځ دومره مال پیدا شي چه سره زر، سپین زر، د

تجارت مال او نقدي روپۍ. د دغو څلورو شيانو يا د ځينو مجموعه يا په دغو کښې چه د کوم شي قيمت د ۶۱۲/۳۵ گرامه سپينو زرو په برابر شي له هغې ورځې څخه تاسو د نصاب خاوند وګرځيدلی. د هغې ورځې قمري (خدايي مياشتې) تاريخ په زړه لرئ. تر يوه کال وروسته چه کله همدغه قمري تاريخ را ورسيږي نو په هغه کښې چه له تاسو سره د يادو شويو څلورو شيانو څومره اندازه موجوده وي په هغې باندې به زکات فرض وي. اګر که کوم شی له نوموړي تاريخ څخه يوه ورځ مخکښې ستاسو په ملک يا تصرف کښې راغلی وي. په دې شرط په همدې تاريخ کښې نصاب پوره وي. يعنې د څلورواړه شيانو مجموعي قيمت له ۶۱۲/۳۵ گرامه سپينو زرو څخه کم نه وي.

۲ - په کوم قمري تاريخ کښې چه کال پوره شي په هغه ورځ چه کوم نرخ وي هغه لګول کيږي.

۳ - يواځې د سرو زرو په قيمت باندې زکات شته. د ملغلرو او غميو او د ګينړو د جوړولو قيمت نه لګول کيږي.

۴ - د ګينړې په جوړولو کښې چه په کوم حساب سره بل شی ګډ شوی وي د همدې ډول ګډ قيراطي سرو زرو قيمت لګل کيږي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ رمضان المبارك ۱۳۸۷ ھ

## د غواوو او ميښو د زکات نصاب

**سوال** : له زيد سره پنځه ديرش ميښې دي چه شيدې نه کوي او بلاربې دي ليکن له زميندارانو سره دي. له چا سره څلور ميښې، له چا سره دوه، له چا سره اته. په دې ډول چه ټولې سره يو ځای شي نو پنځه ديرشو ته رسيږي. او دا ميښې پخپله په ځنګل کښې په څريدلو اکتفاء کوي، په ځينو کال پوره شوی دی او په ځينو نه دی پوره شوی. چه کله دا ميښې لنګيدو ته نژدې کيږي نو بيا ئې کور ته راولي، يا هغوی ته څه مزدوري ورکوي يعنې د مياشتې چه څومره سره وټاکي. نو آيا شرعاً په دغو ميښو باندې زکات شته او که نه؟ که چيرته واجب وي نو څومره؟ او که چيرته له دې څخه زياتې شي نو د زکات به ئې څه حساب وي؟ او همدارنګه د غواوو د زکات څه حساب دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته د هغو له جُملې څخه په ديرشو ميښو باندې کال تير شوی وي نو زکات پکښې واجب دی. په ديرشو ميښو کښې يو کلنی ميښه نر يا ښځه، بيا په څلويښتو باندې دوه کلنی، بيا په شپيتو باندې دوه دانې يو کلنی، بيا په اوياؤ باندې يوه دانه يو کلنی او دوه دانې دوه کلنی، همدارنګه په هرو ديرشو دانو باندې يوه يو کلنی او په هرو څلويښتو باندې يوه دوه کلنی ميښه واجبه ده. او کوم تعداد چه په ديرشو او څلويښتو دواړو باندې تقسيم شي نو په هغه کښې دی اختيار لري چه د ديرشو له حسابه زکات ورکوي او که د څلويښتو له حسابه. مثلاً

په یو سل او شلو میښو کښې که ئې خوښه وي څلور دانې یو کلنې دې ورکړي او که ئې خوښه وي نو درې دانې دوه کلنې دې ورکړي. د غواؤ د زکات هم همدا حکم دی.

قال فی التنویر و شرحه نصاب البقر و الجاموس ثلاثون سائمة غیر مشترکة و فیها تبیع ذو سنة کاملة او تبیعة و فی اربعین مسن ذو سنتین او مسنة و فیما زاد علی الاربعین بحسابه فی ظاهر الروایة عن الامام رحمه الله تعالی و عنه لا شئ فیما زاد الی ستین ففیها ضعف ما فی ثلاثین و هو قولهما و الثلاثة رحمهم الله تعالی و علیه الفتوی بحر عن الینابیع و تصحیح القدوری ثم فی کل ثلاثین تبیع و فی کل اربعین مسنة الا اذا تداخلا کمائة و عشرین فیخیر بین اربع اتبعة و ثلاث مسنات و هکذا. (رد المحتار ج۲،ص۲۰) فقط والله تعالی اعلم

۲۵ شوال ۱۳۸۷ هجری

## د ووزو د زکات نصاب

**سوال:** کومې ووزې چه د باندې څرېږي او د تجارت لپاره نه وي د هغو د زکات حساب څه دی؟ په څومره ووزو باندې یوه ووزه واجبه ده؟ د ووزې او میږې یو حکم دی او که څه فرق پکښې شته؟ په تفصیل سره ئې ولیکئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په څلوېښتو ووزو باندې یو کلنه یوه ووزه یا ووز واجب دی. له څلوېښتو څخه تر یو سل او شلو پورې همدغه یوه ووزه واجبه ده. بیا له یو سل او یو ویشت څخه تر دوه سوو پورې دوه ووزې. بیا له دوه سوه یو (۲۰۱) څخه تر درې سوه نهه نوي پورې درې ووزې. بیا په څلور سوه ووزو باندې څلور ووزې، تر دې وروسته په هرو سلو باندې یوه ووزه واجبه ده. د میږو هم همدغه حکم دی. که چیرته میږې او ووزې سره ګډې وي نو بیا هم همدغه نصاب دی. البته د زکات په ادا کولو کښې دا فرق شته چه په میږو او ووزو کښې چه د کومو تعداد زیات وي زکات به له هم هغه څناور ورکوي. او که چیرته په تعداد کښې دواړه سره برابر وي نو بیا اختیار لري چه له اعلی قسم څخه د ادنی قیمت لرونکی ورکوي او که د ادنی قسم څخه د اعلی یعنې ښه قیمت لرونکی څناور ورکوي.

قال فی التنویر نصاب الغنم ضأنا او معزا اربعون و فیها شاة و فی مائة و احدی و عشرین شاتان و فی مائتین و واحدة ثلاث شیاه و فی اربعمائة اربع شیاه ثم فی کل مائة شاة و یؤخذ فی زکوتها الثنی و هو ما تمت له سنة. و قال ابن عابدین رحمه الله تعالی (قوله لا فی اداء الواجب) لان النصاب اذا کان ضأنا یؤخذ الواجب من الضأن و لو معزا فمن المعز و لو مهما فمن الغالب و لو سواء فمن ایهما شاء جوهرة ای فیعطی ادنی الاعلی او اعلی الادنی کما قدمناه فی الباب السابق (رد المحتار ج۲،ص۲۰) فقط والله تعالی اعلم ۲۵ شوال ۱۳۸۷ هجری

## د اوښانو د زکات نصاب

**سوال** : په زکات کښې د اوښانو نصاب او په هغو باندې د زکات حساب ډیر مشکل دی. تاسو ئې په داسې واضحې طریقې سره ولیکئ چه په آسانی سره سرې پرې پوه شي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : له یوه اوښ څخه تر څلورو اوښانو پورې معاف دي، په څلورو اوښانو کښې زکات نشته. تر دې وروسته د لاندیني حساب له مخې زکات فرض دی.

له ۵ څخه تر ۹ پورې یو کلنه ووزه نر یا ښځه

له ۱۰ څخه تر ۱۴ پورې دوه ووزې نر یا ښځې.

له ۱۵ څخه تر ۱۹ پورې درې ووزې نر یا ښځې.

له ۲۰ څخه تر ۲۴ پورې څلور ووزې نر یا ښځې.

له ۲۵ څخه تر ۳۵ پورې یو کلنه اوښه (بنت مخاض)

له ۳۶ څخه تر ۴۵ پورې دوه کلنه اوښه (بنت لبون)

له ۴۶ څخه تر ۶۰ پورې درې کلنه اوښه (حقه)

له ۶۱ څخه تر ۷۵ پورې څلور کلنه اوښه (جذعه)

له ۷۶ څخه تر ۹۰ پورې دوه کلنې دوه اوښې.

له ۹۱ څخه تر ۱۲۴ پورې درې کلنې دوه اوښې.

له ۱۲۵ څخه تر ۱۲۹ پورې درې کلنې دوه اوښې او یوه ووزه.

له ۱۳۰ څخه تر ۱۳۴ پورې درې کلنې دوه اوښې او دوه ووزې.

له ۱۳۵ څخه تر ۱۳۹ پورې درې کلنې دوه اوښې او درې ووزې.

له ۱۴۰ څخه تر ۱۴۴ پورې درې کلنې دوه اوښې او څلور ووزې.

له ۱۴۵ څخه تر ۱۴۹ پورې درې کلنې دوه اوښې او یوه یو کلنه اوښه.

له ۱۵۰ څخه تر ۱۵۴ پورې درې کلنې درې اوښې.

له ۱۵۵ څخه تر ۱۵۹ پورې درې کلنې درې اوښې او یوه ووزه

له ۱۶۰ څخه تر ۱۶۴ پورې درې کلنې درې اوښې و دوه ووزې.

له ۱۶۵ څخه تر ۱۶۹ پورې درې کلنې درې اوښې او درې ووزې.

له ۱۷۰ څخه تر ۱۷۴ پورې درې کلنې درې اوښې او څلور ووزې.

له ۱۷۵ څخه تر ۱۸۵ پورې درې کلنې درې اوښې او یوه یو کلنه جونګې.

له ۱۸۶ څخه تر ۱۹۵ پورې درې کلنې درې اوښې او یوه دوه کلنه جونګې.

له ۱۹۶ څخه تر ۲۰۴ پورې درې کلنې څلور اوښې یا دوه کلنې پنځه اوښې.

له ۲۰۵ څخه تر ۲۰۹ پورې درې کلنې څلور اوښې او یوه ووزه.

له ۲۱۰ څخه تر ۲۱۴ پورې درې کلنې څلور اوښې او دوه ووزې

له ۲۱۵ څخه تر ۲۱۹ پورې درې کلنې څلور اوښې او درې ووزې.

له ۲۲۰ څخه تر ۲۲۴ پورې درې کلنې څلور اوښې او څلور ووزې.

له ۲۲۵ څخه تر ۲۳۵ پورې درې کلنې څلور اوښې او یوه یو کلنه جونګی.

له ۲۳۶ څخه تر ۲۴۵ پورې درې کلنې څلور اوښې او یوه دوه کلنه جونګی.

له ۲۴۶ څخه تر ۲۵۴ پورې درې کلنې پنځه اوښې.

له ۲۵۵ څخه تر ۲۵۹ پورې درې کلنې پنځه اوښې او یوه ووزه

له ۲۶۰ څخه تر ۲۶۴ پورې درې کلنې پنځه اوښې او دوه ووزې.

له ۲۶۵ څخه تر ۲۶۹ پورې درې کلنې پنځه اوښې او درې ووزې.

له ۲۷۰ څخه تر ۲۷۴ پورې درې کلنې پنځه اوښې او څلور ووزې.

له ۲۷۵ څخه تر ۲۸۵ پورې درې کلنې پنځه اوښې او یوه یو کلنه جونګی.

له ۲۸۶ څخه تر ۲۹۵ پورې درې کلنې پنځه اوښې او یوه دوه کلنه جونګی.

له ۲۹۶ څخه تر ۳۰۴ پورې درې کلنې شپږ اوښې.

په دې نقشه کښې له ۱۵۰ څخه تر آخره پورې له ورکړ شوي تعداد څخه یوه کلیّه حاصله شوه. د دې مطابق تر کومه ځایه چه غواړئ د زرګونو او لکونو اوښانو د زکات حساب لګولئ شئ. د دې کلیّې حاصل دا دی چه تر ۱۵۰ وروسته په هرو پنځو اوښانو باندې یوه ووزه، بیا له پنځه ویشتو څخه تر پنځه دیرشو پورې یو کلنه جونګی، بیا له ۳۶ څخه تر ۴۵ پورې دوه کلنه اوښه، بیا له ۴۶ څخه تر ۵۰ پورې درې کلنه اوښه، تر دې وروسته بیا له نوي سره په هرو پنځو اوښانو باندې یوه ووزه، په ۲۵ باندې یو کلنه اوښه، په ۳۶ باندې دوه کلنه، له ۴۶ څخه تر ۵۰ پورې درې کلنه.

**لارښوونې**:

۱ - چه چیرته ووزه واجبه وي په هغې کښې د یوه کال عمر لازم دی. او په ښځه او نر کښې اختیار لري که ښځه ووزه ورکوي او که نر ووز ورکوي. لیکن په اوښانو کښې د اوښې ورکول لازم دي، د نر اوښ ورکول جائز نه دي. البته د اوښې د قیمت په لګولو سره د هغه په برابر اوښ یا له دې څخه د زیات قیمت اوښ ورکول جائز دي.

۲ - چیرته چه درې کلنې څلور اوښې واجبې وي هلته اختیار لري چه د هغو په ځای دوه کلنې پنځه اوښې ورکوي او که درې کلنې څلور اوښې.

۳ - د زکات مذکوره حساب په هغه صورت کښې دی چه اوښان د تجارت لپاره نه وي او اکثره د باندې څرېږي او په کور کښې نه ساتل کیږي، یا د باندې د څریدنې په نسبت په کور کښې کم

ساتل کیږي. که چیرته د کور ساتنه پرې زیاته وي یا سره برابر وي نو بیا زکات نشته
۴ - که چیرته اوښان د تجارت لپاره وي نو په هغو باندې د مذکوره حساب مطابق ووزې یا اوښې واجبې نه دي بلکه د تجارت د نورو مالونو غوندې به د هغوی په قیمت باندې زکات فرض وي. که د باندې خرېږې او که په کور کښې ساتل کیږي. د تجارت لپاره ئې د کیدو مطلب دا دی چه د اخیستلو په وخت کښې ئې بیرته د خرڅولو نیت ولري. که چیرته تر اخیستلو وروسته د خرڅولو نیت وکړي یا اصل ئې ساتي او دهغوی د نسل دخرڅولو نیت ولري اگرکه داصل داخیستلو په وخت کښې دا نیت ولري او یا وروسته په دغو ټولو صورتونو کښې دا د تجارت مال نه گڼل کیږي.
۵ - کوم اوښان چه د سورلۍ یا بار وړلو لپاره وي په هغو باندې هیڅ ډول زکات نشته.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ ذی الحجة ۱۴۰۲ھ

## د غواؤ او میښو مجموعي تعداد چه د نصاب اندازې ته ورسیږي نو زکات پرې فرض دی

**سوال**: که چیرته له چا سره څه غواوې وي او څه میښې. په دواړو کښې د یوې هم نصاب پوره نه وي. البته د دواړو مجموعي تعداد د نصاب په اندازه دی. یعنې غواوې او میښې چه سره یو ځای کړی شي نو دیرش یا تر دې زیاتې دي. نو آیا په دغو باندې زکات فرض دی او که نه؟ که چیرته فرض وي نو په زکات کښې د غوا ورکول فرض دي او که د میښې؟ او که اختیار لري چه غوا ورکوي او که میښه؟ همدارنگه د ووزې او میږې هم یو حکم دی او که جلا جلا حکم لري؟
بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: غوا او میښه د زکات او قربانۍ په احکامو کښې یو جنس دی. له دې امله د دغو دواړو مجموعي تعداد چه دیرشو ته ورسیږي نو زکات پرې فرض دی. په دواړو کښې چه د کوم جنس تعداد زیات وي په زکات کښې دې له هم هغه جنس څخه ورکړي او که د دواړو تعداد سره برابر وي نو له دواړو څخه دې د اعلیٰ قسم ادنیٰ قیمت لرونکی څناور او له ادنیٰ قسم څخه د اعلیٰ قیمت لرونکی څناور دې ورکړي. د ووزو او میږو هم همدغه حکم دی.

قال فی التنویر نصاب البقر و الجاموس ثلاثون، وقال ابن عابدین رحمه الله علیه (قوله و الجاموس) هو نوع من البقر کما فی المغرب فهو مثل البقر فی الزکوة والاضحیة والربا ویکمل به نصاب البقر و تؤخذ الزکوة من اغلبها او عند الاستواء یؤخذ اعلی الادنی و ادنی الاعلی نهر و علی هذا الحکم البخت و العراب و الضأن و المعز ابن ملك. (رد المحتار ج۲، ص۱۹)    فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴ ذی الحجة ۱۴۰۲ هجری

# کوم څاروي چه په ځنګل او کور دواړو ځایونو کښې خوراک کوي په هغو کښې د زکات حکم

**سوال**: غواوې په ځنګل کښې هم څرېږي او په کور کښې هم خوراک ورکول کیږي. نو آیا په داسې غواوو کښې زکات شته او که نه؟ په داسې حال کښې چه نصاب ئې پوره وي.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: غالب (ډیر) خوراک معتبر دی. که چیرته په ځنګل کښې ډیرې څرېږي نو زکات فرض دی او که چیرته په کور کښې ډیر خوراک ورکول کیږي یا دواړه سره برابر وي نو زکات فرض نه دی. البته که چیرته د تجارت لپاره وي نو د تجارت د مال زکات به فرض وي.

قال فی التنویر هی المکتفیة بالرعی المباح فی اکثر العام لقصد الدر و النسل و الزیادة و السمن فلو علها نصفه لا تکون سائمة، وفی الشرح فلا زکوة فیها للشك فی الموجب، وفی الحاشیة بکسر الجیم وهو کونها سائمة فانه شرط لکونها سببا للوجوب قال فی فتح القدیر العلف الیسیر لا یزول به اسم السوم المستلزم للحکم واذا کان مقابله کثیرا بالنسبة کان هو یسیرا و النصف لیس بالنسبة الی النصف کثیرا و لانه یقع الشك فی ثبوت سبب الایجاب فافهم. (رد المحتار ج۲، ص۱۷) وقال ابن عابدین رحمه الله فلو علوفة فلا زکوة فیها الا اذا کانت للتجارة فلا یعتبر فیها العدد بل القیمة. (رد المحتار ج۲، ص۲۰) فقط والله تعالی اعلم

۱۴ ذی الحجة ۱۴۰۲ هجری

# په کور کښې د خوراک په خوړونکي څناورو باندې زکات نشته

**سوال**: له ما سره څلوېښت غواوې دي کومې چه په کور کښې ئې ساتم. البته کله کله ئې په ځنګل او بیابان کښې څرومه هم. په دغو غواوو باندې څومره زکات فرض دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: د کومو څناورو چه زیاته خوراکه په کور کښې وي او د باندې کم څرېږي په هغو باندې زکت نشته. البته که د تجارت په نیت سره اخیستل شوي وي نو د هغو په قیمت باندې زکات فرض دی. قال فی التنویر هی المکتفیة بالرعی المباح فی اکثر العام. (رد المحتار ج۲، ص۱۶) وفی باب زکوة البقر منه نصاب البقر و الجاموس ثلاثون سائمة، وقال ابن عابدین رحمه الله فلو علوفة فلا زکوة فیها الا اذا کانت للتجارة فلا یعتبر فیها العدد بل القیمة. (رد المحتار ج۲، ص۲۰)

فقط والله تعالی اعلم ۱۴ ذی الحجة ۱۴۰۲ هـ

# د تجارتي څناورو د زکات حکم

**سوال**: مونږ د ووزو تجارت کوو. څلوېښت پنځوس ووزې اکثره را سره موجودې وي. لیکن د

اخیستلو او خرڅولو له وجې بدلیږي را بدلیږي. هیڅ یوه ووزه هم کال نه را سره تیروي. دا ووزې په ځنګل کښې څریږي. آیا په دغو ووزو باندې زکات شته او که نه؟ که چیرته وي نو څو ووزې به واجبې وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: د دغو ووزو په زکات کښې ووزه واجبه نه ده بلکه د تجارت د نورو مالونو غوندې د دغو ووزو قیمت ولګوئ او څلویښتمه برخه ئې په زکات کښې ورکړئ.

**قال فی التنویر فی باب السائمة هی الراعیة المکتفیة بالرعی فی اکثر العام یقصد الدر و النسل و الزیادة و السمن، وفی الشرح عن البدائع لو اسامها للحم فلا زکوة فیها کما لو اسامها للحمل والرکوب ولو للتجارة ففیها زکوة التجارة.(ردالمحتار ج۲،ص۱۷)**

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ ذی الحجة ۱۴۰۲ھ هجری**

## د شیدو د خرڅولو په نیت سره په پالل شویو میښو کښې زکات نشته

**سوال**: زید د شیدو د خرڅولو په نیت سره میښې ساتلي دي چه تعداد ئې په مختلفو وختونو کښې په زیاتیدو روان وي، لیکن کله کله له څلویښتو پنځوسو څخه کم نه وي. زید د هغوی خرڅ او خوراک له ځانه کوي. ټول اخراجات ئې پخپله برداشتوي. چیرته مفت ځنګل ته ئې د څریدو لپاره نه لیږي. د زید لپاره په دې صورت کښې د زکات د ادا کولو څه طریقه ده؟ د میښو ساتونکي اکثره په لیک او لوست نه پوهیږي د دې لپاره د هغوی پوهول آسان نه وي. په آسانه ژبه سره ځواب راکړئ تر څو چه مونږ هغی ښه وپوهولی شو. هر کال په میښو کښې یو ډول مخصوصه بیماري خپریږي او په ټولې علاقې باندې چارپیره شي. په زرګونو میښې مړې کیږي، د هغو هیڅ علاج نه کامیابیږي، داسې خو به نه وي چه دا وباء د زکات د نه ادا کولو له وجې خپریږي؟ د دوی څه طریقهٔ کار دا دی چه شیدې خرڅوي لیکن له هغوی سره څه روپۍ نه جمع کیږي. چه څومره روپۍ په لاس ورځي دوی په هغو باندې نورې میښې اخلي. یو یو د میښو خاوندان د میلنونو روپو مالکان دي لیکن پخپل ځان باندې زکات فرض نه بولي.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا میښې په ځنګل کښې نه څریږي بلکه دوی ته پخپل کور کښې خوراک ورکوي د دې لپاره په هغو باندې زکات فرض نه دی. البته که چیرته د میښو تجارت ئې هم مقصود وي یعنې د میښې د اخیستلو په وخت کښې د هغې د شیدو د خرڅولو تر څنګ پخپله د میښې د خرڅولو نیت ئې هم وي نو په د داسې میښو په قیمت باندې به زکات فرض وي.

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ ربیع الآخر ۱۳۹۹ھ هجری**

## د ووزو د زکات په اړه یو څو پوښتنې

**سوال**: د ووزو د زکات په اړه یو څو پوښتنې ستاسو په خدمت کښې دي. په تفصیل سره

ځوابونه راکړئ:

۱ - دلته د یوه سړي په میراث کښې تقریباً اتیا ووزې پاتې شوي دي او دا ووزې هم په ټولې ترکې کښې حسابول او د ټول جائداد سره له ووزو قیمت لګول او دا قیمت په اوه کسه وارثانو باندې تقسیم شو. آیا اوس به په دغو ووزو کښې زکات وي او که نه؟ په داسې حال کښې چه د هغو قیمت په اوه کسه وارثانو باندې تقسیم شوی دی. او آیا دا ووزې به د یوه وارث په حصه کښې شمیرل کیږي او که د ټولو وارثانو په حصّه کښې به شمیرل کیږي؟

۲ - او که چیرته زکات وي نو د دې کال به نه وي؟ ځکه چه تر اوسه پورې کال پرې تیر شوی نه دی. اګر که د مړي د مِلک له وخت پکه یو کال پرې تیر شوی دی.

۳ - که چیرته دا ووزې تقسیم نه شي بلکه ټول وارثان ئې پخپل منځ کښې مشترکې پریږدي نو آیا زکات به پرې فرض وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱ - چا چه دا ووزې واخیستې په هغه باندې د هغو زکات واجبیږي.

۲ - د اخیستلو له وخت څخه د کال تر تیریدو وروسته زکات فرض دی، البته که چیرته له اخیستونکي سره له مخکښې څخه د ووزو نصاب موجود دی نو دا ووزې له مخکښیني نصاب سره شمیرل کیږي او له هغه نصاب سره د دغو ووزو زکات به هم واجب وي.

۳ - په دې صورت کښې د هر وارث حصه له نصاب څخه کمه پاتې کیږي له دې امله په یوه باندې هم زکات نه فرضیږي. د ووزو نصاب څلویښت ووزې دي.

**نقل ابن عابدین رحمة الله علیه عن البحر تحت (قوله وما بینهما عفو) ولو کان بین رجلین اربعون شاة لا تجب علی واحد منهما الزکوة ولیس للساعی ان یجمعها و یجعلها نصاباً و یأخذ الزکوة منها لان ملك کل واحد منهما قاصر عن النصاب اه.(ردالمحتار ج۲،ص۲۱)** فقط والله تعالی اعلم ۲۲ رجب ۱۳۹۹ هجری

## سید او هاشمي ته زکات ورکول جائز نه دي

**سوال**: که چیرته سید یا هاشمي د انتهائي غربت په حالت کښې وي نو آیا هغه ته په زکات ورکولو سره زکات کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: سیّد او هاشمي ته د زکات په ورکولو سره زکات نه ادا کیږي. آیا د کلي په خلکو کښې دومره میړانه نشته چه پرته له زکات څخه د هغوی حاجت پوره کړي. که چیرته د یوه چا پلار د انتهائي غربت په حالت کښې وي نو آیا هغه ته به د زکات له حساب څخه ورکوي؟

**قال فی شرح التنویر ولا الی بنی هاشم الامن ابطل النص قرابته وهم بنو لهب فتحل لمن اسلم منهم کما تحل لبنی المطلب ثم ظاهر المذهب اطلاق المنع وقول العینی والهاشمی یجوز له دفع زکوته لمثله صوابه لا یجوز نهر**

الخ.(ردالمحتار ج۲،ص۷۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳صفر ۱۳۹۰ھ

## د چا چه پواځې مور سیّده وي هغه ته زکات ورکول جائز دي

**سوال**: که چیرته د کوم سړي یواځې مور سیّده وي او پلار ئې سیّد نه وي نو داسې سړي ته زکات ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! جائز دي. ځکه چه نسب د پلار له خوا څخه وي، د چا چه پلار سیّد نه وي یواځې د والدې له وجې سیّد نه شي جوړیدلی.

قال ابن عابدین رحمة الله علیه ان من کانت امها علویة مثلاً و ابوها عجمی یکون العجمی کفؤا لها و ان کان لها شرف ما لان النسب للاٰباء و لهذا جاز دفع الزکوٰة الیها فلا یعتبر التفاوت بینهما من جهة شرف الام. (رد المحتار ج۲،ص۳۳٦،باب الکفاءة) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳صفر ۱۳۹۰ هجری

## کوم هاشمي چه شجره و نه لري په هغه باندې هم زکات حرام دی

**سوال**: زید له خپل پلار اونیکه څخه دا اوریدلي دي چه زمونږ د نسب سلسله له حضرت عباس بن عبد المطلب رضی الله تعالی سره یو ځای کیږي. لیکن له زید سره کومه مکمله د نسب شجره نشته چه له مخې ئې په صحیح توګه څرګنده شي چه مونږ په رښتیا هم قریشي عباسیان یو. نو په دې صورت کښې زید ته د زکات مال اخیستل په داسې حال کښې چه له زید سره هیڅ شی د زکات د مال نشته، صیح دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نسب د ثبوت لپاره عام شهرت کافي دی. د شجرې درلودل ضروري نه دي. له دې امله د زید لپاره دزکات اخیستل حرام دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ذی الحجة ۱۳۹۸ھ

## چا ته د زکات ورکولو وروسته څرګنده شي چه هغه د مصرف ځای نه وو

**سوال**: زید هاشمي دی او چا زکات ورته ورکړ. نو اوس د زید لپاره څه حکم دی؟ آیا چه چا زکات ورکړی دی هغه ته به ئې بیرته ورکوي او که زکات ئې ادا شوی دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د زکات ورکوونکی د غور او فکر تر کولو وروسته د مصرف د ځای په ګڼلو سره زکات ورکړی وو نو د هغه زکات ادا شوی دی. لیکن زید ته که چیرته دا معلومه شي چه دا د زکات شی دی نو په ده باندې لازمه ده چه ورکوونکي ته ئې بیرته ورکړي.

قال فی شرح التنویر دفع بتحر لمن یظنه مصرفا فبان انه عبده او مکاتبه او حربی ولو مستأمنا اعادها لما مر

وان بان غناه او كونه ذميا او انه ابو او ابنه او امرأته او هاشمي لا يعيد لانه اتى بما فى وسعه حتى لو دفع بلا تحر لم يجز ان اخطأ، وقال ابن عابدين رحمه الله (قوله لمن يظنه مصرفا) اما لو تحرى فدفع لمن ظنه غير مصرف او شك و لم يتحر لم يجز حتى يظهر انه مصرف فيجزيه فى الصحيح خلافا لمن ظن عدمه و تمامه فى النهر (قوله ولو دفع بلا تحر) اى ولا شك كما فى الفتح وفى القهستانى بان لم يخطر بباله انه مصرف اولا وقوله لم يجز ان اخطأ اى تبين له انه غير مصرف فلو لم يظهر له شئ فهو على الجواز و قدمنا لو شك فلم يتحر او تحرى و غلب على ظنه انه غير مصرف.

**تنبيه:** فى القهستانى عن الزاهدى ولا يسترد منه لو ظهر انه عبد او حربى وفى الهاشمى روايتان ولا يسترد فى الولد و الغنى و هل يطيب له فيه خلاف و اذا لم يطب قيل يتصدق و قيل يرد على المعطى اه. (رد المحتار ج۲، ص۴۳) فقط والله تعالى اعلم ۱۵ ذى الحجة ۱۳۹۸ هجرى

## شيعه او قادياني ته د زكات په وركولو سره زكات نه ادا كيږي

**سوال** : آيا شيعه او قادياني ته زكات وركول جائز دي او كه نه؟ او كه څوک ئې وركړي نو آيا زكات ئې ادا كيږي او كه نه؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : شيعه ګان او قاديانيان كافران دي بلكه له نورو كفارو څخه هم بد تر دي او كافر ته زكات وركول جائز نه دي. او همدارنګه قادياني ته زكات وركول سخته ګناه ده. زكات پرې نه ادا كيږي بلكه هغوى ته هر ډول صدقه وركول جائز نه دي.

قال فى شرح التنوير ولا تدفع الى ذمى لحديث معاذ رضى الله تعالى عنه وجاز دفع غيرها وغير العشر والخراج اليه اى الذمى ولو واجبا كنذر و كفارة و فطرة خلافا للثانى وبقوله يفتى حاوى القدسى واما الحربى ولو مستأمنا فجميع الصدقات لا تجوز له اتفاقا بحر عن الغاية وغيرها. (رد المحتار ج۲، ص۶۳) و قال ابن عابدين رحمه الله فى كفارة الظهارات تحت (قوله و مصرفا) قال الرملى و فى الحاوى و ان اطعم فقراء اهل الذمة جاز و قال ابو يوسف رحمه الله لا يجوز و به نأخذ اه قلت بل صرح فى كافى الحاكم بانه لا يجوز و لم يذكر فيه خلافا و به علم انه ظاهر الرواية عن الكل. (رد المحتار ج۲، ص۶۳۳) فقط والله تعالى اعلم. ۲۳ صفر ۱۳۹۰ هجرى

## د زكات له حسابه د خيراتي دواخانې د خلاصولو حكم

**سوال** : مونږ پخپل كلي شيرشاه كنبې د يوې دواخانې خلاصول غواړو چه مصرف ئې د زكات له روپو او د قربانۍ له څرمنې څخه پوره كوو او له دې دواخانې څخه هر سړى ګټه پورته كولى

شي. په دې کښې له مريضانو څخه هم څه روپۍ اخيستل کيږي. او دا روپۍ هم په همدې دواخانې باندې بيرته لګول کيږي. هيله دا ده چه د محمدي شريعت له مخې هر سړی له دې دوا خانې څخه ګټه پورته کولی شي او که نه؟ تاسو پخپل لوړې فرصت کښې د محمدي شريعت له مخې ځواب راکړئ، عين مهرباني به مو وي. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دواخانه کښې د زکات او قربانۍ د څرمنې مصرف يواځې دا دی چه په دې روپو باندې دوائي واخيستل شي او مسکينانو ته مفت ورکول شي. له دې حسابه د دواخانې ډاکټرانو او نورو کار کوونکو ته تنخواوې، د ځای او مکان کرايه، په تعمير، ميز او چوکۍ او داسې نورو مصارفو باندې لګول جائز نه دي. په دې سره زکات نه ادا کيږي. له مسکينانو څخه د دوا روپۍ اخيستل او غنيانو ته دوا ورکول جائز نه دي. په ځينو دوا خانو کښې د زکات له حسابه مريضانو ته وينه ورکول کيږي چه په دې سره هم زکات نه ادا کيږي.

فی اول زکٰوة التنوير هی تمليك جزء مال عينه الشارع من مسلم فقير الخ. (رد المحتار ج۲، ۲) و فی باب المصرف هو فقير و هو من له ادنٰی شیء و مسکين من لا شیء له. (الٰی قوله) يصرف الٰی کلهم او بعضهم تمليکا لا اباحة کما مرّ. (ردالمحتار ج۲، ص۶۸) فقط والله تعالٰی اعلم ۵ جمادی الثانی ۱۳۸۸ هجری

## د زکات مال په جومات باندې د لګولو حکم

**سوال**: د زکات او قربانۍ د څرمنې روپۍ د جومات په تعمير او نورو مصارفو باندې لګول، او د امام او مؤذن تنخواه ورکول، د جومات لپاره د پوزيو اخيستل پرې جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په نوموړو مصارفو کښې دزکات او د قربانۍ د څرمنې روپۍ لګول جائز نه دي. که چيرته ئې ولګوي نو د جومات منتظمين به سخت ګنهګار وي، د زکات ورکوونکو زکاتونه نه ادا کيږي او د دې دنيوي وبال او اخروي عذاب به د جومات په منتظمينو باندې وي.

قال فی التنوير هی تمليك جزء مال عينه الشارع من مسلم فقير الخ. (ردالمحتار ج۲، ص۲) و فی الشرح لا يصرف الٰی بناء نحو مسجد، و فی الشامية کبناء القناطر و السقايات و اصلاح الطرقات و کری الانهار و الحج و الجهاد و کل ما لا تمليك فيه زيلعی. (ردالمحتار ج۲، ص۶۸) فقط والله تعالٰی اعلم ۵ جمادی الآخر ۱۳۸۸ هجری

## د زکات په روپو باندې د ديني کتابونو د چاپولو حکم

**سوال**: مقدس او مطهر شريعت په دې کښې څه وائي چه يو ديني کتاب د زکات په روپو سره چاپ شي او په هغه باندې تاجرانه قيمت ولګول شي او د زکات مستحقينو ته مفت ورکړل شي. د

زکات د روپو له اندازې څخه زیاتې شوې نسخې اهلِ علم حضراتو (کوم چه د زکات مستحقین نه دي) د هدیې په توګه ورکړل شي. نو آیا په دې صورت کښې شرعاً د زکات په ادا کولو کښې څه قباحت (بدي) شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په صورتِ مسئوله کښې بې له شک او شبهې څخه پرته له کوم قباحت او بدي څخه زکات ادا کیږي. بلکه دا د دیني کتابونو د خپرونې بهترینه ذریعه ده.

**فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ رجب ۱۳۹۲ هجری**

## په نصاب باندې د کال تر پوره کیدو مخکښې په لاس ته راتلونکو روپو باندې هم د همدې کال کښې زکات فرض دی

**سوال** : یو سړی هر کال د رجب په میاشت کښې حساب کوي او دخپل مال د زکات ادا کول شروع کوي. د کال په دوران کښې هغه ته نورې نقدې روپۍ هم په لاس ورځي. آیا دا نقدې روپۍ به د روان کال له نصاب سره یو ځای کوي او زکات به ئې ادا کوي او که د راتلونکي کال د رجب په میاشت کښې چه کوم مال او نقدې روپۍ موجودې وي د هغو زکات به ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د کال په دوران کښې وصولیدونکي روپۍ هم له تیر نصاب سره شمارل کیږي او د دې زکات هم د همدې کال په رجب کښې ادا کوي. اګر که په مستقله توګه په دې روپو باندې تر اوسه کال نه دی تیر شوی.

**قال العلائی رحمة الله علیه و المستفاد و لو بهبة او ارث وسط الحول یضم الی نصاب من جنسه فیزکیه بحول الاصل.(ردالمحتار ج۲،ص۲۶) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ شعبان ۱۳۸۹ هجری**

## په حرام مال باندې زکات واجب نه دی

**سوال** : څوک چه په کوم پاکستاني یا بهرني دفتر، بانک، کارخانه یا دوکان کښې نوکري کوي یا ګډوډ سامان خرڅوي یا قاچاق مالونه وړي راوړي او په دې ذریعې سره ئې د نصاب په اندازې سره مال جمع کړی وي، یا د همدومره ملکیت مالک وي. د داسې مال په باره کښې څو پوښتنې دي چه په لاندې ډول دي:

۱ - آیا په دې باندې زکات فرض دی؟

۲ - که چیرته د حرام یا مخلوط (حرام او حلال ګډ) مال زکات ادا کړی شي یا له دې څخه نورې واجبې یا نفلي صدقې ادا شي نو آیا مسکین ته ئې استعمالول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته جمع شوی مال خالصې حرامې وي نو په هغه باندې زکات واجب نه دی. د دې مال که چیرته مالک معلوم وي نو بیرته ئې مالک ته ورکول واجب دي. که

چیرته معلوم نه وي نو دا مال په مسکینانو باندې صدقه کول واجب دي. او که چیرته حلال او حرام سره ګډ وي نو حرام مال دې ترې وباسي چه کوم پاتې شي که چیرته د نصاب اندازې ته ورسیږي نو زکات پرې واجب دی او که نه وي نو واجب نه دی.

قال فی العلائیة ولو خلط السلطان المال المغصوب بملکه ملکه فتجب الزکوة فیه ویورث عنه لان الخلط استهلاك اذا لم یمکن تمییزه عن ابی حنیفة رحمه الله تعالی وقوله ارفق اذ قلما یخلو مال عن غصب وهذا اذا کان له مال غیر ما استهلکه بالخلط منفصل عنه یوفی به دینه والا فلا زکوة کما لو کان الکل خبیثا کما فی النهر عن الحواشی السعدیة وفی الشامیة (قوله کما فی النهر) ای اول کتاب الزکوة عند قول الکنز وملك نصاب حولی و مثله فی الشرنبلالیة وذکره فی شرح الوهبانیة بحثاً وفی الفصل العاشر من التاتارخانیة عن فتاوی الحجة من ملك اموالاً غیر طیبة او غصب اموالا وخلطها ملکها بالخلط ویصیر ضامناً وان لم یکن له سواها نصاب فلا زکوة علیه فیها وان بلغت نصابا لانه مدیون ومال المدیون لا ینعقد سببا لوجوب الزکوة عندنا اه فافاد بقوله وان لم یکن له سواها نصاب الخ ان وجوب الزکوة مقید بما اذا کان له نصاب سواها وبه یندفع ما استشکله فی البحر من انه وان ملکه بالخلط فهو مشغول بالدین فینبغی لا تجب الزکوة اه لکن لا یخفی ان الزکوة حینئذ انما تجب فیما زاد علیها لا فیها. (ردالمحتار ج۲، ص۲۸) ۲٤ شعبان ۱۳۸۹ھجری

## په زکات کښې د حرام مال د ورکولو حکم

**سوال**: د باطلې او فاسدې بیعې ثمن یا روپۍ د بائع (خرڅوونکي) په حق کښې څه حکم لرې؟ یعنې ثمن د ده په نزد امانت دی او که څه بل شی؟ او که چیرته یو څوک باطله بیع وکړي مثلاً باغ د میوې تر ښکارولو مخکښې خرڅ کړي او اخیستونکی څه پیسې هم ورکړي. بیا بائع له دې روپو څخه د حلال مال څه زکات ادا کړي. نو آیا له دې روپو څخه زکات ادا کیږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه تر اوسه پورې بائع له خپل مال سره ګډ کړی نه وي. او که چیرته نوموړې روپۍ له خپل مال سره ګډ کړي او بیا ئې زکات ادا کړی وي نو بیا ئې څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په باطلې بیعې کښې ثمن یا روپۍ د بائع په مِلک کښې نه داخلیږي. له دې امله زکات ترې نه ادا کیږي. البته تر ګډولو وروسته د استهلاک په سبب سره دا روپۍ د ده مِلک ګرځي لیکن په خبیث مِلکیت سره. او د فاسدې بیعې روپۍ بې له ګډولو هم په مِلک کښې داخلیږي او مِلک خبیث دی. له مِلک خبیث څخه د زکات د ورکولو په صحت کښې اختلاف دی. چه څوک صحیح ورته وائي هغوی هم دا عمل حرام او سخته ګناه بولي.

قال ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله وفی شرح الوهبانیة الخ) ولو اخرج زکوة المال الحلال من مال حرام

ذکر فی الوهبانیة انه یجز عند البعض ونقل القولین فی القنیة وقال فی البزازیة ولو نوی فی المال الخبیث الذی وجبت صدقته ان یقع عن الزکوة وقع عنها الخ ای نوی فی الذی وجب التصدق به لجهل اربابه الخ (ردالمحتار ج۲، ص۲۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ جمادی الثانی ۱۳۹۸ هجری

## عامل ته د مقبوض مال تر نیمائي څخه زیات ورکول جائز نه دي

**سوال** : په دې زمانه کښې د زکات عاملینو ته د زکات له حسابه معاوضه ورکول جائز دي او که نه؟ او د دوی د معاوضي کومه شرعي اندازه ټاکلې ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د زکات له عاملینو څخه مراد هغه خلک دي چه د مسلمان بادشاه له خوا له خلکو څخه د زکات د راټولو لپاره ټاکل کیږي. په دې زمانه کښې هم چه د مسلمان حاکم یا بادشاه له لوري کوم عامل وټاکل شي نو هغه د زکات له روپو څخه د کفایت په اندازه څه ورکول جائز دي. د عاملینو کوم خاص اجرت متعین نه دی بلکه د هغه د اهل او عیال د نفقې په مطابق به څه ورکول کیږي لیکن هغه چه کوم مال را جمع کړی دی د هغه له نیمائي څخه زیات څه ورکول جائز نه دي.

قال فی التنویر وعامل فیعطی بقدر عمله، وفی الشرح ما یکفیه واعوانه بالوسط ولکن لا یزاد علی نصف ما یقبضه. (ردالمحتار ج۲، ص۶۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ جمادی الآخره ۱۳۹۱ هجری

## د اسلامي مشاورتي کمیټي (حکومتِ پاکستان) له خوا څخه د زکات په اړه یو څو پوښتنې

۱ - آیا دا د حکومت ذمه واري ده چه زکات به را ټولوي؟

۲ - آیا حکومت له چا څخه د زکات په وصولولو کښې له زوره کار اخیستلی شي؟ او د دې لپاره کوم قانون نافذولی شي؟

۳ - په کوم ډول مال باندې به زکات واجب وي؟ په لاندیني شیانو بانې د زکات د شرح تفصیل بیان کړئ:

۱ - د کارخانه لرونکي په ټول اسباب او سامان باندې؟

۲ - د تجارت په مال باندې؟

۳ - په کرائې باندې په ورکړ شویو کورونو، دوکانونو او نور منقوله او غیر منقوله جائدادونو لکه ټیکسي، رکشې او داسې نورو باندې؟

۴ - بانک فکسډ ډپازټ، سیونګ سرټیفکټ، پرائز بونډ، بیمه؟

۵ - په ګینړو، نقدو او داسې نورو باطني مالونو باندې؟
۴ - آیا کمپنۍ او حصه لرونکي به خان خانته زکاتونه ادا کوي؟
۵ - کومې کمپنۍ او ادارې چه په کلي یا جزوي توګه حکومتي دي په هغو باندې ب د زکات څه صورت وي؟
۶ - په کانونو او معدنونو باندې زکات واجب دی؟
۷ - د زکات د ورکولو په صورت کښې په لاندیني ټکسونو (مالیو) کښې د شرعي نقطهٔ نظر له مخې د ترمیم (کموالي) ضرورت شته او که نه؟ لکه انکم ټیکس، ویلتهـ ټیکس، ګفټ ټیکس، پراپرټي ټیکس، سیلز ټیکس، لینډر یونیو، ډیتهـ ډیوټي، پراویډنټ فنډ او داسې نور.
۸ - د زکات لپاره به د نصاب ټاکنه څه ډول کیږي؟
۹ - د زکات مصارف کوم چه په قرآنکریم کښې (رؤس ثمانیة) دي نن صبا په دې کښې څوک څوک داخل دي او څوک پوک ترې وتلي دي؟ آیا د فوځ مصارف په في سبیل الله کښې داخل دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱ - د زکات وصولول دشریعت له مخې د حکومت په ذمې باندې ضروري نه دی. **قال فی الخازن فی هٰذه الأیة احکام الاول قوله سبحانه تعالیٰ خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً (الی ان قال) فیجوز للامام او نائبه ان یأخذ الزکوٰة من الاغنیاء و یدفعها الی الفقراء. (خازن ج۲، ص۲۸۷)** له دې عبارت څخه ثابته شوه چه د زکات وصولول د حکومت حق دی لیکن د هغه په ذمې باندې لازم نه دی. همدارنګه د فقهاؤ د تصریح مطابق حکومت ته د ظاهري اموالو د زکات اخیستلو حق د حمایت په عوض کښې دی او دا خبره ښکاره او منل شوې ده چه د حق په خاوند باندې خپل حق وصولول شرعاً فرض نه وي بلکه ده ته د خپل حق د پرېښودلو هم اختیار وي. عُشر هم د زکات په حکم کښې دی. او د فقهې په کتابونو کښې د دې تصریح شته چه حکومت عشر او خراج معاف کولی شي، بیا که چیرته د زمکې مالک فقیر وي نو ورته حلال دی او که نه وي نو پخپله دې صدقه کړي. همدارنګه که چیرته حکومت له خلکو څخه د زکات اخیستلو او بیا ئې په فقیرانو باندې د لګولو په ځای هغوی ته پخپله په فقیرانو باندې د لګولو اجازه ورکړي نو په دې کار کښې به دا خلک د حکومت وکیلان وي. له دې امله د دوی دا کار به د حکومت کار ګڼل کیږي.

۲ - که چیرته حکومت د لاندیني شرائطو د پابندۍ یقین ورکړي او د دې اعلان وکړي او د اقتدار خاوندان پخپلو شخصي او اجتماعي امورو کښې د شرعي متابعت عملي ثبوت وړاندې کړي نو حکومت د اموالِ ظاهره ؤ زکات جبراً هم اخیستلی شي. شرائط دا دي:
۱ - د زکات روپۍ به پخپل صحیح مصرف کښې لګوي.

۲ - د اموالِ ظاهرهٔ او د صحيح مصارفو تعيين به د داسې مستندو علماؤ په ذريعې سره کوي چه د هغو په ديانت او فتوىٰ باندې د عوامو اعتماد وي.

۳ - د زکات د وصولولو او په صحيح مصارفو باندې د لګولو لپاره ديانت لرونکي عمله (کارکوونکي) بايد وټاکل شي.

۳ - د زکات مالونه دا دي: څاروي (بشرائطها المعهودة)، د تجارت مالونه، سره زر، سپين زر، نقدې روپۍ. **قال فی التنویر وشرطه حولان الحول وثمنية المال کالدراهم والدنانير او السوم او نية التجارة. (ردالمحتار ج۲،ص۱۱)**

۱ - د کارخانې په مشين، عمارت او داسې نورو باندې زکات نشته. **لانه لا يوجد فيه الشرط المذبور ولذا قال شارح التنوير و کذلك الات المحترفين الا ما يبقى اثر عينه کالعصفر. (ردالمحتار ج۲،ص۹)**

۲ - د تجارت په مالونو باندې زکات فرض دی. **لما مرّ من التنوير**

۳ - په کرايه باندې په ورکړ شوي کورونو، دوکانونو، ټيکسي موټر او داسې نورو باندې زکات نشته. **لفقد الشرط المذکور، وقال فی العلائية ولا فی ثياب البدن واثاث البيت ودور السکنٰی ونحوها قال الطحاوی رحمه الله کحوانيت وخانات يستغلها. (طحطاوی علی الدر ج۱،ص۳۹۲)**

۴ - حصې که ئې د تجارت په نيت اخيستې وي يعنې پخپله د حصو اخيستل او خرڅول ئې مقصود وي نو ټولو حصو په قيمت باندې زکات واجب دی. او که نه وي نو د حصو يواځې په هغه مقدار باندې به زکات وي کوم چه په تجارت کښې لګيدلي وي، د کارخانې په ماشين او عمارت باندې په لګيدل شوي روپو باندې زکات نشته. **لما مر من التفصيل.**

۵ - بانک فکسډ ډپازټ (هغه روپۍ چه په بانک کښې تر يوې ټاکلې مودې پورې ايښودل کيږي او د مودې تر پوره کيدو ئې مخکښې ئې نه شي ايستلی، په دې ډول سره د دې روپو سود هم زيات وي)، سيونګ سرټيفکټ (په سود باندې د عوامو د روپو ساتونکی بانک)، پرائز بونډ (انعامي بانډ) او انشورنس (بيمه) دا ټول شرعاً سودي قرضې دي. په انعامي بانډ کښې له سود پرته قمار هم شته. د دې لپاره په اصلي روپو باندې زکات فرض دی او ټوله ګټه د حراموالي له وجې واجب التصدق ده.

۶ - په ګينړو او نقدې روپو باندې زکات فرض دی. **لما مر من التنوير.**

دا حکم پخپل ذات کښې د زکات د وجوب حکم دی. د حکومت لپاره د وصولولو د حق په لحاظ سره د زکات مالونه په دوه ډوله دي. يو اموالِ ظاهره چه د دغو مالونو زکات حکومت جبراً وصولوي. دويم اموالِ باطنه دي لکه سره، سپين زر، نقدې روپۍ. دا شيان چه تر څو پورې پخپل

اصل مقام باندې پاتې وي اموال باطنه دي. حکومت ته ئې د زکات د وصولولو اختیار نشته. البته له یوه ښار څخه د بل ښار خوا ته د وړلو په صورت کښې د حکومت کار کوونکی (عاشر) به د دغو مالونو زکات وصولوي. **قال ابن عابدين رحمة الله عليه تحت قول الشارح الظاهرة و الباطنة فان مال الزكوة نوعان الظاهر و هو المواشى و ما يمر به التاجر على العاشر و باطن و هو الذهب و الفضة و اموال التجارة فى مواضعها. (ردالمحتار ج٢، ص٣٢) والاموال الباطنة بعد اخراجها من البلد كانها بالاخراج التحقت بالاموال الظاهرة فكان الاخذ فيها للامام. (ردالمحتار ج٢، ص٣٣) وقال العلامة الكاسانى رحمة الله عليه و كذا الجواب فيمن مر على العاشر بالسوائم او بالدراهم او بالدنانير او باموال التجارة فى جميع ما وصفنا الا فى قوله اديت زكوتها بنفسى الى الفقراء. (الى قوله) فيما سوى السوائم انه يقبل قوله ولا يؤخذ ثانياً لان اداء زكوة الاموال الباطنة مفوّض الى اربابها اذا كانوا يتجرون بها فى المصر فلم يتضمن الدفع بنفسه ابطال حق احد. (بدائع ج٢، ص٣٧)**

۴ - د کمپنیو په زکات کښې اختیار دی. اجتماعاً او انفراداً دواړه صورتونه جائز دي.

۵ - کومې کمپنۍ او ادارې چه په کلي توګه حکومتي دي د هغو په هیڅ یوې برخې باندې زکات نشته. او د کومې کمپنۍ چه څه برخه حکومتي ده نو د هغې په سرکاري یا حکومتي برخې باندې زکات نشته یواځې په غیر حکومتي حصو باندې زکات شته. په حکومتي مالونو باندې ځکه زکات نشته چه هغه د چا شخصي مِلکیت نه وي. **كالاموال الموقوفة و غلة الوقف و الاراضى السلطانية.**

۶ - د غیر منطبع شي په کان لکه جواهر او د مائع په معدن لکه پټرولو کښې خمس (پنځمه) نشته. او په منطبع چه غیر مائع وي په هغه باندې خمس واجب دی. البته د زیبق په معدن باندې سره له دې چه مائع دی خمس شته. ځکه چه زیبق د نورو شیانو سره د یو ځای کیدو په صورت کښې د انطباع صلاحیت لري. د صاحبینو رحمهما الله په نزد داسې معدن که په مباحه زمکو کښې پیدا شي یا په مملوکه زمکو کښې یا په کوم کور یا حانوت (دوکان) کښې په هر حال په هغه باندې خُمس واجب دی. د حضرت امام رحمة الله عليه په نزد په کوم کور یا حانوت کښې په پیدا شوي معدن باندې خُمس نشته. د مملوکه زمکې په اړه له حضرت امام رحمة الله عليه څخه دوه روایتونه دي. د وجوب روایت ته ترجیح ورکړ شوی دی.

کوم معدن چه په مباحه زمکو کښې پیدا شي نو هغه د پیدا کوونکي مِلک دی او که په مملوکه زمکو کښې پیدا شي نو هغه د زمکې د مالک مِلک دی. **هٰذا خلص ما هو مشروح فى الكتب المشهورة.**

۷ - دا ټول ټیکسونه په هر حال ناجائز دي. البته د سخت ضرورت په وخت د لاندیني شرائطو له مخې په عارضي توګه د ټیکس د وصولولو ګنجائش شته.

۱ - د حکومت مصارف له تبذیر او اسراف څخه تر پاکولو وروسته دا فیصله وشي چه د ټیکس د اخیستلو ضرورت شته او که نه؟

۲ - د هر سړي آمدني او د هغه د جائزو او ضروري مصارفو تر موازنه یا اندازه کولو وروسته په هغه باندې د ټیکس تجویز وشي.

۳ - د ټیکس په ذریعې سره وصول شوي روپۍ په صحیحو مصارفو باندې ولګول شوي.

۸ - د ۶۱۲/۳۵ ګرامه سپینو زرو قیمت معیار جوړ کړئ، دا عام او مشهور قول دی. د بنده د تحقیق مطابق د سپینو زرو نصاب ۶۸۰/٤ ګرامه دی. د دې تفصیل زما په "بسط الباع لتحقیق الصاع" نومي رسالې کښې دی. لومړنی قول د مشهور والي برسیره د زکات په باب کښې احوط هم دی. د دې لپاره همدا باید معیار جوړ شي. البته د صدقة الفطر په اندازه کښې د بنده تحقیق احوط دی.

۹ - په حقیقت کښې په قرآنکریم کښې یواځې د دریو مصارفو بیان دی. (۱) فقراء (۲) عاملین (۳) مؤلفة القلوب. د مؤلفة القلوب د حکم په منسوخ والي باندې د حضراتو صحابهٔ کرامو رضی الله تعالی عنهم اجماع ده. (مدارک التنزیل، الدر المنثور، فتح القدیر) پاتې یواځې فقراء او عاملین شول. له دغو پرته چه کوم قسمونه په قرآنکریم کښې مذکور دي هغه ټول خاص د فقراؤ مختلف ډولونه دي.

فقیر فوجي ته د تملیک په صورت کښې د امداد په طریقې سره زکات ورکول کیدلی شي. غني فوځي ته ورکول یا د زکات له حسابه تنخواه ورکول او له تملیکه پرته د فوځ په نورو مصارفو باندې د زکات لګول جائز نه دي.

د زکات د صحت لپاره د فقیر د تملیک په شرط باندې اجماع ده.

فقط والله تعالیٰ اعلم ١٤ ربیع الأخر ١٣٩٥ هجری

## له وکیل څخه چه د زکات روپۍ ضائع شي نو زکات ادا نه شو

**سوال** : زید خالد ته د زکات روپۍ ورکړې تر څو کوم مسکین ته ئې ورکړي. وروسته دا روپۍ له خالد څخه ضائع یا هلاکې شوې. په داسې صورت کښې د زید په ذمې باندې چه کوم زکات واجب الاداء وو آیا هغه ادا شوی دی او که نه؟ که چیرته ادا شوی نه وي نو آیا په خالد باندې د زید ته د دې روپو ورکول واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د زید زکات نه دی ادا شوی. که چیرته خالد له غفلت څخه کار نه

وي اخیستی نو خالد به د دې روپو ضامن نه وي. فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ محرم ١٣٩٦ هجری

## د وکیل لپاره د زکات په روپو کښې د ردّ او بدل کولو حکم

**سوال**: یوه سړي بل چا ته د زکات یا نورو واجبو صدقاتو له حسابه څه روپۍ مسکینانو ته د ورکولو لپاره ورکړې. وکیل هغه روپۍ بدلې کړې د مثال په توګه له هغه څخه لس ګونان واخیستل او سل ګون نوټ ئې پکښې کیښود. آیا وکیل ته داسې کول جائز دي او که چه کومې روپۍ ئې ورکړي دي خاص هغه روپۍ مسکینانو ته ورکول ضروري دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: زکات خو ئې ادا کیږي. البته د بدلولو جواز ئې په دې باندې موقوف دی چه د موکل له خوا څخه د بدلولو صراحةً یا دلالةً اجازه موجوده وي. په موجوده عرف کښې اکثره د دې اجازه وي د دې لپاره د صراحةً اجازې ضرورت نشته. سره له دې د صراحةً اجازې اخیستل بهتر دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ شعبان ١٣٩٦ هجری

## د وکیل لپاره د زکات په روپو د څه شي د اخیستلو او ورکولو حکم

**سوال**: آیا وکیل د زکات په روپو سره کوم چی لکه جامه، بوټ، غنم، میوه او داسې نور اخیستلی او مسکینانو ته ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا هم د موکل په اجازې پورې موقوفه ده. که چیرته د هغه لخوا څخه صراحةً یا دلالةً د دې اجازه وي نو جائز دي او که نه وي نو نه دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ شعبان ١٣٩٦ هجری

## مسکین ته د زکات په روپو باندې دکور د جوړولو حکم

**سوال**: یو سړی ډیر غریب دی او زید غواړي چه د زکات په روپو باندې کور ورته جوړ او ور ئې کړي. آیا په دې ډول سره د زکات په روپو باندې کور جوړول او بیا ئې مسکین ته ورکول جائز دي؟ په داسې حال کښې چه فقهاء دا هم فرمائي چه یوه سړي ته دومره زکات ورکول چه فوراً د نصاب خاوند جوړ شي مکروه دي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ئې روپۍ ئې مسکین ته نه وي ورکړې او پخپله ئې کور جوړ او بیا ئې مسکین ته ورکړ نو په دې کښې کوم کراهت نشته. ځکه چه په دې سره دا مسکین د نصاب خاوند جوړ نه شو. دویم صورت ئې دا کیدلی شي چه د کور د جوړولو ټولې روپۍ دې په یو ځای مسکین ته نه ورکوي بلکه څه دې ورکړي، چه کله هغه د کور په جوړولو ولګوي نو بیا دې نورې ورکړي، په دې ډول دې د مسکین د کور جوړول دې پوره کړي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری

## د اصلي حوائجو لپاره په ايښودل شويو روپو کښې زکات فرض دی

**سوال**: له يوه سړي سره څو زره روپۍ جمع دي، په هغو باندې کال هم تير شوی دی ليکن نه کور لري او نه د کور ضروري سامان. تر اوسه ئې واده هم نه دی کړی. او روپۍ هم د دغو ضرورياتو لپاره يو ځای کوي. آيا په ده باندې زکات فرض دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ده باندې زکات فرض دی. البته که چيرته د کال تر پوره کيدو مخکښې د کور د جوړولو سامان يا د کور د ورځني استعمال شيان او داسې نور څه واخلي نو زکات به پرې فرض نه وي.

قال ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله وفسره ابن ملك) فاذا كان معه دراهم امسكها بنية صرفها الى حاجته الاصلية لا تجب الزكوة فيها اذا حال الحول وهي عنده لكن اعترضه في البحر بقوله ويخالفه ما في المعراج في فصل زكوة العروض ان الزكوة تجب في النقد كيفما امسكه للنماء او للنفقة وكذا في البدائع في بحث النماء التقديري اه. قلت واقره في النهر والشرنبلالية وشرح المقدسي وسيصرح به الشارح ايضاً ونحوه قوله في السراج سواء امسكه للتجارة او غيرها وكذا قوله في التاتارخانية نوى التجارة اولا (الى قوله) وكذا ما سيأتي في الحج من انه لو كان له مال ويخاف العزوبة يلزمه الحج به اذا خرج اهل بلده قبل ان يتزوج وكذا لو كان يحتاجه لشراء دار او عبد فليتأمل والله اعلم. (ردالمحتار ج۲،ص۷) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ ذی الحجة ۱۳۹۶ هجری

## په زکات کښې د نقدو روپو په ځای د نورو شيانو ورکول جائز دي

**سوال**: د جدې يو د خير خاوند زما د کمزورۍ او مالي حالت له مخې ما ته په خط کښې ليکلي دي چه که د زکات په ۰پو باندې ستاسو څه خدمت کيدلی شي نو خامخا ئې را ته وليکئ. ما د هغه په ځواب کښې وليکل چه له ما سره څو نقدې روپۍ نشته البته مال يعنې د ديرشو څلويښتو زرو روپو ديني کتابونه راسره شته. که چيرته ئې تاسو مناسب ګڼئ نو له زيات څخه زيات څومره روپۍ را ليږلی شئ نو ما ته ئې را وليږئ. زه د دې ټولو روپو دا کتابونه ستاسو له خوا څخه د زکات په نامه د مدرسې په مستحقو طلباؤ باندې د مدرسې په معرفت سره ويشم. د دې په ځواب کښې چه له جدې څخه کوم ځواب راغلی دی هغه دا دی: "د زکات لپاره چه کومه طريقه د کتابونو د تقسيمولو تاسو ليکلې ده هغه زما په فکر کښې نه راځي، آيا په دې سره زکات ادا کيږي؟ ځکه چه په زکات کښې خو نقدې روپۍ مستحق ته ورکول کيږي په کتابونو سره به ادا نه شي. که چيرته تاسو د دې لپاره د کوم معتبر عالم فتویٰ را وليږئ نو زما به ذهن پرې خلاص

شي" نو اوس عرض دا دی چه کومه خبره چه ما پورته ليکلې ده چه تاسو روپۍ ما ته وليږئ زه د دې ټولو روپو په بدل کښې د مدرسې د مهتمم په ذريعې سره د عربي درسونو په طالبانو باندې کتابونه ويشم. آيا په دې ډول سره د جدې د ملګرې زکات ادا کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: د زکات له حسابه هر شی په جائز او رائج قيمت باندې ورکول کيدلی شي. په دې شرط چه د تمليک په صورت کښې ورکړی شي يعنې فقير د هغه مالک جوړ کړی شي. پس کتابونه که چيرته د مستحقينو طالبانو په ملک کښې ورکړی شي نو زکات ادا کيږي. البته که چيرته ئې د مدرسې لپاره وقف کړئ يا ئې طالبانو ته د مطالعې لپاره عاريةً ورکړئ نو زکات نه ادا کيږي. غالباً سائل ته به له دې خبرې اشتباه ور لويدلې وي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الاولی ۱۳۹۸ ہجری

## د طلباؤ د خوراک د پخولو اجرت د زکات له حسابه ورکول جائز دي

**سوال**: د زکات يا عشر له روپو څخه آشپز ته تنخواه ورکول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: کوم آشپز چه يوائې د طلباؤ لپاره خوراک پخوي هغه ته د زکات او عشر له روپو څخه تنخواه ورکول کيدلی شي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ربيع الاول ۱۳۹۸ ہجری

## خپلوان مسکين ته زکات ورکول زيات ثواب لري

**سوال**: زما يو ورور ډير غريب او مفلس دی او د ټي بي په مرض کښې هم مبتلا دی. هغه هيڅ ګټه او آمدني نه لري، که چيرته زه هغه ته خپل ټول زکات ورکړم نو غاړې مې پرې خلاصيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ده ته د زکات ورکول زيات ثواب لري. ليکن په يوه ځای دومره روپۍ مه ورکوه چه هغه د نصاب خاوند وګرځي. څه روپۍ ورکړه چه کله هغه مصرف کړي نو بيا نورې ورکړه، البته که چيرته هغه عيال داره هم وي نو په يو ځل دومره روپۍ هم ورکولی شې چه په ټول عيال ئې تقسيم شي نو يوه ته هم د نصاب په اندازه ور و نه رسيږي.

قال فی التنویر و کرہ اعطاء فقیر نصاباً الا اذا کان مدیونا او صاحب عیال لو فرقه علیهم لا یخص کلا نصاب و نقلها الا الی قرابة، و قال العلائی رحمة الله علیه بل فی الظهیریة لا تقبل صدقه الرجل و قرابتهٔ محاویج حتی یبدأ بهم فیسد حاجتهم. (ردالمحتار ج۲، ص۷۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الاولی ۱۳۹۸ ہجری

## د زکات له حسابه د مړي تجهيز او تکفين جائز نه دی

**سوال**: د کوم غريب يا نادار په کور کښې چه کوم مړی وشي نو د هغه په تجهيز او تکفين کښې

یا د موټر کرایه که چیرته له اداري سره د زکات روپۍ وي نو له دې روپو څخه پورتنۍ خرڅه پرې کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د زکات له روپو څخه د مړي تجهیز او تکفین جائز نه دی. د ضرورت په وخت کښې داسې صورت کیدلی شي چه د مړي ولي ته کوم چه د زکات مستحق وي د زکات له روپو څخه پیسې ورکړی شي بیا دې هغه په دې روپو باندې د خپل مړي تجهیز او تکفین وکړي.

قال فی التنویر لا الی بناء مسجد و کفن میت و قضاء دینه. (رد المحتار ج۲، ص۶۸) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲ جمادی الأخر ۱۳۹۸ هجری

## یوه چا ته د دومره زکات ورکول مکروه دی چه هغه د نصاب مالک وګرځي

**سوال** : کوم فقیر ته د زکات دومره روپۍ ورکول چه هغه د نصاب خاوند وګرځي مکروه دي. پوښتنه دا ده چه له دې نصاب څخه څه مراد دي؟ آیا د زکات موجب نصاب ترې مراد دی یا هغه نصاب کوم چ د زکات د اخیستلو مانع دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د زکات له اخیستلو څخه مانع نصاب ترې مراد دی. دا کراهت هلته دی چه فقیر د عیال خاوند نه وي. که چیرته دعیال خاوند وي نو هغه ته په یو ځل دومره روپۍ د زکات له حسابه ورکول کیدلی شي چه د هغه په عیال باندې وویشل شي نو هر یوه ته د نصاب په اندازه روپۍ ور و نه رسیږي.

قال فی التنویر و کره اعطاء فقیر نصابا الا اذا کان مدیونا او صاحب عیال لو فرقه علیهم لا یخص کلا نصاب، و فی الشامیة ان دفع ما یکمل النصاب کدفع النصاب قال فی النهر و الظاهر انه لا فرق بین کون النصاب نامیاً او لا حتی لو اعطاه عروضاً تبلغ نصابا فکذلك ولا بین کونه من النقود او من الحیوانات حتی لو اعطاه خمساً من الابل لم تبلغ قیمتها نصابا کره لما مر اه و فی بعض النسخ تبلغ بدون لم و الانسب الاول (رد المحتار ج۲، ص۷۰) فقط والله تعالیٰ اعلم.

۲۵ ذی الحجة ۱۴۰۲ هجری

## مسکین ته دومره زکات ورکول چه په هغه باندې حج فرض شي مکروه دي

**سوال** : آیا که چیرته یوه عالم ته خلک دومره زکاتونه ورکړي چه په هغه سره په عالم باندې زکات فرض شي نو آیا د عالِم لپاره به دا بهتره وي چه دومره زکات وا نه خلي چه په هغه سره حج پرې فرض شي او که دا به بهتره وي چه زکات واخلي او حج پرې وکړي. د لاندیني عبارت څخه خو ئې جواز څرګندیږي. البته افضلیت ئې تاسو محترم ولیکئ. فی شرح التنویر و فی سبیل الله و هو منقطع

الغزالقو قيل الحاج وفي الشامية (قوله وقيل الحاج) اى منقطع الحاج الخ (شامية ج٢ ص٦٣)

**الجواب باسم ملهم الصواب** دومره روپۍ د زکات له حسابه چا ته ورکول چه فقیر پرې د نصاب خاوند وګرځي زمونږ په علاقو کښې د حج له وجوب څخه مخکښې د نصاب خاوند ګرځیدل ښکاره خبره ده. له دې امله دومره روپۍ ورکول چه حج پرې فرض شي په طریقهٔ اولی سره مکروه دی. له منقطع الحاج څخه هغه سړی مراد دی کوم چه د حج لپاره له کوره وتلی وي لیکن په سفر کښې ئې مال ختم شوی وي نو داسې چا ته زکات ورکول بې له کراهته جائز دي. عالم بلکه عامي هم باید دومره زکات وانه خلي

نقل ابن عابدين رحمه الله عن الظهيرية وغيرها عن هشام قال سألت ابا يوسف رحمه الله عن رجل له مأة وتسعة وتسعون درهما فتصدق عليه بدرهمين قال يأخذ واحداً ويرد واحداً اه (ردالمحتار ج٢ ص٦٥)

فقط والله تعالى اعلم ٢٦ جمادى الأخر ١٣٩٨ هجرى

## کوم خلک چه د سیلاب اوبو وهلي وي هغو ته د زکات ورکولو حکم

**سوال** کوم خلک چه سیلاب وهلي وي هغو ته د زکات په روپو باندې د خوراک پخول او ور لیږل یا نقدې روپۍ یا نور سامان لیږل جائز دي او که نه؟ او که څوک ئې ور ولیږي نو آیا زکات ئې ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باس ملهم الصواب** که چیرته غالب ګومان وي چه هغه خلک د زکات مستحقین دي یعني له هغو سره د مانع زکات په اندازه نصاب نه وي نو هغوی ته زکات ورکول جائز دي په دې شرط چه هغوی د دغو شیانو یا روپو مالکان وګرځول شي که چیرته د هغو په ملک کښې ورنه کړی شي بلکه همداسې ئې په هغوی ولګوي نو زکات نه ادا کیږي همدارنګه که چیرته هغوی کښېنول شي او خوراک پرې وشي نو بیا هم زکات نه ادا کیږي د مسکین په ملک کښې ئې ورکول ضروري دي

فقط والله تعالى اعلم ٩ رمضان ١٣٩٨ هجرى

## په تجارتي پلاټ باندې زکات فرض دی

**سوال** ماقولكم رحمكم الله په دې مسئله کښې چه په کراچۍ کښې یو سړی داسې معامله کوي چه پلاټونه اخلي او د تجارت په نیت ئې یو څه وخت پخپلې قبضې کښې ساتي او چه په ګرانه بیه ورته خرڅه شي نو خرڅوي ئې اوس پوښتنه دا ده چه که چیرته پلاټ د تجارت په نیت سره واخستل شي او بیا خرڅ شي او نفع یا ګټه حاصله کړي نو آیا که چیرته د کوم سړي په قبضه کښې څو پلاټونه وي چه قیمت ئې د نصاب اندازې ته ورسیږي نو د پلاټ په قیمت باندې به زکات

واجب وي او که نه؟ چونکه ده د تجارت په نیت سره اخیستی وي له دې امله دا به د تجارت په سامان بانډې قیاسولی شي او که څنګه. او که چیرته د تجارت په عروض یا سامان باندې محمول او مقیس نه شي نو ما به الفرق (د فرق ځای به ئې) به ئې څه وي؟ بینوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: دا د تجارت مال ډی. له دې امله په دې باندې زکات فرض دی، کوم شی هم چه د خرڅولو په نیت سره واخیستل شي هغه د تجارت په مال کښې داخل دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ شوال ۱۳۹۸ هجری

## په مهر کښې چه سامان د تجارت په نیت سره واخلي نو په هغه باندې زکات فرض نه دی

**سوال**: د یوې ښځې مهر مثلاً لس منه غنم وو. هغې د وصولولو په وخت کښې په هغو کښې د تجارت نیت وکړ چه په دې کښې تجارت کوم او خورم ئې نه. نو آیا دا به د تجارت مال ګڼل کیږي او زکات به پکښې وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: یواځې د تجارت په نیت سره زکات نه واجبیږي چه تر څو پورې د تجارت عمل نه وي کړی. **قال فی التنویر وما ملکه بصنعه کهبة او وصیة او نکاح او خلع او صلح عن قود و نواھلها کان له عند الثانی والاصح لا.** (ردالمحتار ج۲، ص۱۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## د مهر په عوض کښې چه د تجارت په نیت سره سامان واخلي نو په هغه باندې زکات فرض دی

**سوال**: یوه ټکړه زمکه کومه چه ما د تجارت په نیت سره اخیستې وه یا د هغې یوه برخه زه خپلې کوروالې ته د مهر د روپو په بدل کښې ورکول غواړم. آیا زما په کوروالې باندې د دې برخې زمکې د زکات ادا کول شته؟ که چیرته ئې هغه د کور د جوړولو یا په کوم بل نیت سره ئې ځان ته وساتي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ستاسو په کوروالې باندې د دې زمکې زکات فرض نه دی که هغه د تجارت نیت پکښې وکړي او که د کور د جوړولو. البته د مهر د روپو په عوض کښې که چیرته له تاسو څخه دا خیستلو په وخت کښې هغې د تجارت نیت پکښې کړی وي نو زکات به فرض وي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ صفر ۱۴۰۰ هجری

## د تمليک حيله

**سوال** : په يوه نوي جوړ شوي جومات کښې د پکي (ببوزي) ضرورت وو. د جومات متولي پخپله هم د زکات مصرف وو، ما د زکات په نيت سره متولي ته ببوزی ورکړ او هغه په جومات کښې د ځان له خوا ولګاوه. آيا زما له خوا څخه به زکات صحيح شوی وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته تاسو د جومات متولي د ببوزي مالک جوړ کړی وي که په جومات کښې د ورکولو په شرط سره يا بې له شرط څخه هغه پخپلې ميړانې پرته د زړه له کومې جومات ته ورکړ نو زکات خو په هر صورت ادا کيږي ليکن د شرط لګولو يا بې له شرطه د ميړانې له مخې جومات ته د ورکولو ګناه به ستاسو وي. او په جومات کښې به د دې ببوزي لګول جائز نه وي. البته که چيرته د زړه له کومې وي نو جائز دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ رمضان ۱۳۹۹ هجری

## د غير آبادي زمکې د زکات لپاره د مانع ګرځيدو تفصيل

**سوال** : يو عيال لرونکی ديني عالِم کوم چه ديني ښوونه او روزونه خاص د خدای لپاره کوي. دی زمکه لري ليکن کومه برخه ئې چه د کرنې قابله ده هغه د ده د عيال د نفقې لپاره کافي نه ده. البته د ټولې زمکې يعنې د کرنې وړ او خرابه برخې دواړو قيمت پنځلس شل زره روپۍ کيږي. آيا داسې ديني عالِم ته زکات اخيستل جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته خرابه زمکه تر آباديدو وروسته يوائې د ده د نفقې د کفايت په اندازه پاتې شي نو زکات اخيستلی شي او که چيرته د ده د کفايت له اندازې څخه زياته شي او زياته شوې برخه ئې د نصاب په اندازه وي نو دا د زکات د اخيستلو مانع ګرځي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ شوال ۱۳۹۹ هجری

## د زکات له روپو څخه قيديانو ته د خوراک ورکولو حکم

**سوال** : د زکات يا نفلي صدقاتو په روپو سره د خوراک پخول او بنديانو ته ئې ليږل جائز دي او که نه؟ ځکه چه په جيل کښې بندي د هر شي محتاج وي، او په مړه ګېډه خوراک په جيل کښې نه ور رسيږي. ليکن په بندي خانې کښې قاتل، غل او بې ګناه خلک هم وي. شرعاً د دې څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : له نفلي صدقاتو څخه بنديانو ته د خوراک ورکولو جائز دي. په زکات کښې تفصيل دا دی چه که چيرته بندي د نصاب خاوند نه وي او هغه د خوراک مالک وګرځول شي نو زکات ادا کيږي. او که چيرته ئې اباحةً پرې وخوري يا ئې مالک جوړ نه کړي نو

زکات نه ادا کیږي. ځکه چه په زکات کښې د فقیر تملیک شرط دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۳ ذیقعده ۱۳۹۹ هجری

## وکیل د زکات روپۍ پخپل ځان باندې نه شي مصرفولی

**سوال**: زید له یوې عزتمنې او علمي کورنۍ سره تړاو لري. د یتیم کیدو په بناء سره ئې مالي حالت د ویلو نه وو او نه دی. سره له دې زید خپل دیني تعلیم پوره کړ او له یوې دیني ادارې سره ئې تعلق اختیار کړ او په یوه جومات کښې ئې د امامت د فرائضو سر ته رسول شروع کړ. د خور او ورور د کفالت په بناء سره څه پورورۍ هم دی. زید ته کله کله خلک واجب یا نفلي صدقات ورکوي چه څوک دا ورته ووائي چه مدرسې ته ئې ورکړه نو زید ئې مدرسې ته ورکوي، چه څوک دا ورته ووائي چه کوم طالب علم ته ئې ورکړه نو زید ئې د خپل صوابدید طالب علم ته ورکوي، کله کله څوک ورته ووائي چه چا ته ئې ته مناسب وګڼې هغه ته ئې ورکړه یا څوک چه ستاسو په نظر مستحق وي هغه ته ئې ورکړه. له چا څخه د بې تکلفي په بناء سره زید داسې تصریح هم پرې کوي چه څوک ئې مستحق وي هغه ته ئې ورکړم؟ که طالب علم وي یا بل څوک، هغه ورته وائي چه هو! چه چا ته ئې ورکوې ور ئې کړه. یوه سړي ته پخپله زید وائي چه ته ما ته پیسې راکړه انشاء الله زه ئې په صحیح ځای کښې درته لګوم او هغه ئې ورکوي. له مذکوره روپو څخه زید څه په مصارفو کښې لګوي، څه د خپلې ناداری او غریبي او قرضداری له وجې پخپله استعمالوي. زید دا مسئله اوریدلې وه چه که چیرته زکات ورکوونکی دا ووائي چه "چا ته دې خوښه وي هغه ته ئې ورکړه" نو د مستحق والي په بناء سره ئې وکیل پخپله هم خوړلی شي. اوس زید ته دا احساس وشو چه د شامي د دې جزئیه چه **ضعها حيث شئت** دا مفهوم نه دی. زید اوس ډیر په فکر او غم کښې ډوب دی چه دا ما څه وکړل. نه خو حساب مې په زړه دی چه د چا چا مې څومره څومره روپۍ پخپله استعمال کړي دي او څو څو روپۍ ئې راکړي دي. که چیرته په غالب ګومان سره اندازه ولګول شي نو پیسې به له کومه شي؟ او نه زکات ورکوونکي خبرولی شم. داخو له مرګ څخه هم مشکله خبره ده. د زید د ظاهري ښه چلن او نیک خوئي په بناء سره خلک ئې ښه سړی ګڼي:

يظن الناس بي خيراً وانّي لشر الناس ان لم يعف عني

**وروسته له دې تفصیله پوښتنې دا دي**:

۱ - که چیرته د زکات ورکوونکو زکات ادا شوی نه وي نو اوس به څه کیږي؟

۲ - د **ضعها حيث شئت** د مفهوم د اداء کولو لپاره په پښتو کښې کوم لفظ په کار راوړل کیږي؟

۳ - د سائل د خصوصیت په بناء سره که کومه ښه معنی ترې ووځي نو "په تیرو توبه او د

راتلونکي لپاره احتیاط" باندې به عمل کیږي. که چیرته و نه ووځي نو حل به ئې څه وي؟ سائل ډیر غریب دی، که چیرته د تیر عمل لپاره په یوه قول باندې توسّع کیدلی شي نو دریغ مه ترې کوئ.

اعطاك الله اجرك مرّتين.

**یادونه** : د "چا ته ئې چه غواړې ور ئې کړئ" په ویلو سره د معطي (زکات ورکوونکي) په ذهن کښې دا وي چه بل چا ته به ئې ورکړي او د اخیستونکي په ذهن کښې دا وي چه په دې سره ما ته هم اجازه پکښې را ووتله. که چیرته د ذهن د دې ټکر اثر ولویږي نو دا هم په ذهن کښې ولرئ. په اختري بهشتي زیور ج۳، ص۳۱ کښې دي چه "البته که چیرته تاسو دا وویل چه څه غواړئ هغه وکړئ او چه چا ته مو خوښه وي هغه ته ئې ورکړئ نو تاسو ته ئې هم اخیستل روا دي". که چیرته عطف تفسیري وي نو ښکاره خبره ده او بل صورت وي نو دا د څه شي ترجمه ده؟ په داسې حال کښې چه په حاشیه کښې هغه جزئیه راغلې ده. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې صورت کښې زکات نه دی ادا شوی. د **ضعها حيث شئت** ترجمه دا ده چه "چه چیرته مو خوښه هلته ئې مصرف کړئ" دا د تملیک جمله ده او "چا ته مو چه خوښه وي ور ئې کړئ" دا د توکیل جمله ده. په عام عرف کښې د بهشتي زیور دویمه جمله په لومړنۍ جملې باندې تفریع ورکول کیږي. یعنې وروسته له تملّک که غواړئ نو پخپل مصرف کښې ئې راوړئ یا ئې بل ته ورکړئ. د تیر عمل د حل هیڅ صورت په نظر نه راځي. یواځې دا تدبیر کیدلی شي چه مزکي (زکات ورکوونکي) ته وویل شي چه "د بې خبرئ په صورت کښې له ما څخه د زکات روپۍ په غیر مصرف کښې لګیدلي دي کوم چه ضمان ئې په ما باندې واجب دی. او له ما سره دومره طاقت نشته چه ستاسو دا قرض اداء کړم، د دې لپاره ما ته د زکات له حسابه دومره روپۍ راکړه او د قرض په حساب کښې ئې بیرته رانه واخله"

فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ ذیقعده ۱۳۹۹ هجری

## وکیل د زکوة روپۍ خپلو خپلوانو ته ورکولی شي

**سوال** : که چیرته یو څوک د زکات د ورکولو لپاره وکیل جوړ کړی شي. نو آیا دا وکیل خپل ذي رحم (زوی، ښځه او داسې نورو) ته دا زکات ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو! ورکولی ئې شي. **قال في الدر** وللوكيل ان يدفع لولده الفقير و زوجته لا لنفسه الا اذا قال ربها ضعها حيث شئت، وفي الشامية (قوله لولده الفقير) واذا كان ولدا صغيرا فلا بد من كونه هو فقيرا ايضا لان الصغير يعد غنيا بغنى ابيه افاده ط عن ابي السعود. (ردالمحتار ج۲، ص۱۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ٤ محرم ۱٤۰۰ هجری

## په زکات کښې د تجارت د مال د خرڅولو قیمت معتبر دې

**سوال**: د تجارت د سامان یعنې رختونه او داسې نورو د حساب لګولو په وخت کښې به د اخیستلو له حسابه او که په کوم نرخ ئې خرڅوي له هغه حسابه به زکات ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د خرڅولو قیمت به لګول کیږي. فقط والله تعالیٰ اعلم.

۹ شعبان ۱٤۰۰ هجری

## د خرڅولو لپاره په جوړ شوي کورونو باندې زکات فرض دې

**سوال**: کومې زمکې یا کورونه چه د تجارت لپاره اخیستل شوي وي یا د خرڅولو لپاره جوړ شوي وي. آیا د هغو په اصلي سرمایې باندې زکات شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د تجارت په نیت سره د اخیستل شویو زمکو، کورونو او د خرڅولو لپاره د جوړ شویو کورونو په موجوده مالیت (قیمت) باندې زکات فرض دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۹ شعبان ۱٤۰۰ هجری

## دچندې په روپو باندې د زکات حکم

**سوال**: د یوه قوم په فنډ یا چنده کښې شل زره روپۍ جمع دي او د دې لپاره جمع کړي دي چه په یتیمانو او کونډو باندې ولګول شي. آیا په دغو روپو باندې زکات شته او که نه؟ دا روپۍ د یوه سړي نه دي بلکه د ټولې وروولۍ چنده ده. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته دا روپۍ د زکات له حسابه جمع شوي وي نو زکات پرې فرض نه دی. او که د عطیې له حسابه وي نو زکات پرې فرض دی. البته د جومات، مدرسې او داسې نورو د عطیې په روپو باندې زکات نشته. د دې تفصیل زما په "الکلام البدیع في احکام التوزیع" نومي رسالې کښې چه د احسن الفتاوی په لومړي جلد کښې هم مندرج دی، کښې دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ رمضان ۱٤۰۰ هجری

## که چیرته د چا له خوا څخه بې دهغه له اجازې زکات ورکړل شي نو نه ادا کیږي

**سوال**: که چیرته یو چا بل چا ته هیڅ و نه ویل او د هغه له اجازې پرته ئې د هغه لخوا زکات ادا کړنو آیا زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه زکات نه ادا کیږي. که چیرته هغه وروسته اجازه هم ورکړي نو بیا هم زکات نه ادا کیږي. او چه څومره روپۍ ئې د هغه له خوا ورکړي وي له هغه څخه د هغو روپو د اخیستلو حق هم نه لري. نقل ابن عابدین رحمه الله علیه عن البحر لو ادی زکوٰۃ غیره بغیر امره فبلغه فاجاز لم یجز

لانها وجدت نفاذاً على المتصدق لانها ملكه ولم يصر نائباً عن غيره فنفذت عليه. (ردالمحتار ج۲، ص۱۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ رجب ۱۴۰۱ هجری

## د چرګو په فارم او د ماهيانو په تالاؤ يا حوض باندې د زکات حکم

**سوال**: که چيرته د چرګو فارم يا د کبانو حوض د تجارت په غرض سره يو نو زکات پرې شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د چرګو د فارم او د کبانو د تالاؤ په زمکې، تعمير او اړوندو سامانونو باندې زکات نشته. د چرګو او چرګوټو د اخيستلو په وخت کښې که چيرته پخپله د همدغو د خرڅولو نيت ئې وي نو د هغو په ماليت (ټول قيمت) باندې زکات فرض دی. او که چيرته پخپله د چرګو په ځای د هغو د هګيو او چرګوټيو د خرڅولو نيت ئې وي نو زکات پرې نشته.

په حوض يا تالاؤ کښې ئې که چيرته کبان يا د کبانو واړه بچي اخيستي وي او ور اچولي ئې وي نو د هغو په قيمت باندې زکات فرض دی. او که داسې نه وي نو نه دی. د چرګانو د فارم او د کبانو د تالاؤ په آمدني باندې په هر صورت کښې زکات فرض دی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ذی الحجة ۱۴۰۲ هجری



﴿وَمَا تَوْفِيقِيٓ إِلَّا بِٱللَّهِ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾

# د بانک له اکاؤنټ (خاتې) څخه

## د حکومت لپاره د زکات د وصولولو حکم

### دکراچۍ د اوسنۍ مسائلو د څېړنې او تحقیق د مجلس له خوا

**لیکنه مولانا محمد تقي عثماني:**

د زکات او عشر آرډیننس (قوانین) د عامو خلکو لپاره با لکل یوه نوې خبره وه. تر اوږدې مودې پورې د غیر مسلمو د حکومت د واکمنۍ له وجې د مسلمانانو په ذهن کښې دا خبره کښیناستلې وه چه لمونځ، روژه، زکات او عشر شخصي عبادتونه دي او حکومت هیڅ تعلق نه ورسره لري پرته له دې څخه د حکومت د کارکوونکو نا اهلي. بې دیني او بد دیانتۍ له مخې د زکات او عشر روپۍ په صحیح او شرعي مصارفو باندې د لګولو په اړه په ځای شکونه او شبهې پورته شوې د ټول ملک معروف او مستند د فتاوٰی له خاوندانو سره په دې باره کښې د پوښتنو یوه سلسله شروع شوه. د اوسني مسائلو د څېړنې مجلس کراچۍ د مسئلې د اهمیت او د عوامو د انتشار له مخې په چټکۍ سره د اجتماعي غور اقدام وکړ چه تفصیل ئې ستاسو په مخکښې دی (مرتب)

**الحمدلله و کفٰی وسلام علی عباده الذین اصطفٰی، اما بعد:** د نوي مسائلو د څېړنې مجلس د ۲۱ شعبان ۱۳۹۹ھ ہجری پخپل اجلاس کښې د زکات او عشر په آرډیننس باندې د تبصرې په کولو سره چه کومه لیکنه ترتیب کړې وه په هغې باندې د رأیې د اظهارولو لپاره د ټول ملک د فتوٰی د مشهورو خاوندانو علماؤ په خدمت کښې لیږل شوې وه. الحمد لله د هغو له جملې څخه پنځلسو حضراتو د دې لیکنې په اصل مسئلې باندې پرته له کوم ترمیم څخه د مجلس له آراؤ سره اتفاق کړی دی او د تصدیق دستخطونه ئې پرې کړي دي او څلور حضراتو ئې له ځینو نکتو سره اختلاف ښکاره کړی دی یا ئې د خپل تردّد اظهار کړی دی. په دې سلسله کښې د دغو حضراتو په دلائلو یا شبهاتو باندې له سره غور وکړ لیکن د غور او تحقیق څخه وروسته په دې مسئله کښې د مجلس رایې بدلې نه شوې. لهذا مناسبه ښکاریږي چه په دې مسئلې باندې لږ په تفصیل سره خبرې اترې وشي

د بانک له خاتو اُو نورو مالیاتي ادارو څخه د زکات په وصولولو باندې چه د کومو شبهاتو

اظهار شوی دی هغه په بنیادي توګه درې شبهې دي:

۱ - حکومت یواځې له ظاهره اموالو څخه د زکات د وصولولو حق لري، له باطنه اموالو څخه حکومت د زکات د وصولولو حق نه لري. بلکه په مالکانو باندې ئې د زکات ادا کول پخپله فرض دي. او نقدې روپۍ چونکه له اموال باطنه ؤ څخه دي د دې لپاره د بانک اکاؤنټونه هم له اموال باطنه ؤ څخه شول او حکومت له هغو څخه د زکات د وصولولو حق نه لري.

۲ - د بانک اکاؤنټونه په اصل کښې د بانک په ذمې باندې د اکاؤنټ جوړوونکو قرضې دي. چه کله دا روپۍ مالک بانک ته ورکړي نو هغه د مالک له ملکیت څخه ووتلې او د بانک په ملکیت کښې داخلې شوې. اوس په اصل مالک باندې هغه وخت زکات واجبېږي چه کله ئې هغه بیرته له بانک څخه واخلي، له دې څخه مخکښې چه کوم زکات د بانک له اکاؤنټ څخه وضع کېږي هغه د اداء له وجوب څخه مخکښې له یوه داسې مال څخه وصولېږي چه په هغه باندې زکات واجب الاداء نه دی او کوم چه د اکانټ جوړوونکي ملکیت نه دی. له دې امله د دې هیڅ جواز نشته.

۳ - د زکات د ادا کولو لپاره د ادا کوونکي نیت ضروري دی او د بانک په اکاؤنټونو کښې د زکات د وضع کولو په وخت کښې اکثره د مالکانو نیتونه نه وي.

په دغو دریواړو مسائلو باندې لاندې لړ غوندې په تفصیل سره بحث کیږي. **والله سبحانه الموفق.**

## اموال ظاهره او اموالِ باطنه

لکه څرنګه چه د مجلس په مخکښیني تحریر کښې د امام ابو بکر جصّاص رحمة الله علیه او د نورو فقهاء کرامو د تصریحاتو په حوالې سره عرض شوی وو. د نبي کریم ﷺ، حضرت ابو بکر صدیق او حضرت عمر فاروق رضی الله عنهما په مبارکې زمانې کښې د اموالِ ظاهره ؤ او اموال باطنه ؤ هیڅ فرق نه وو بلکه له هر ډول د زکات وړ مالونو څخه په حکومتي سطحې سره زکات وصولیده. لیکن د حضرت عثمان غني ﷺ په زمانې کښې چه کله مالونه او آبادي زیاتې شوې او دا اندیښنه پیدا شوه چه د خلکو په شخصي کورونو او داسې نورو کښې د زکات د عاملینو له مداخلې څخه به خلکو ته تکلیف وي او له دې څخه به فتنې پیدا شي نو ده یواځې په حکومتي سطحې سره له اموال ظاهره ؤ څخه د زکات وصولول باقې پرېښوده او د اموالِ باطنه ؤ د زکات په ادا کولو کښې ئې خپل مالکان د حکومت نائبان وبلل.

د حضراتو فقهاء کرامو د تصریحاتو په رڼا کښې دا عرض شوی وو چه د یوه چا مال په "اموالِ ظاهره ؤ" کښې د راتلو لپاره دوه خبرې ضروري دي. یو دا چه د دغو مالونو د زکات د وصولولو لپاره د مالکانو د شخصي خایونو پلټنه ونه شي. بله دا چه هغه مالونه به د حکومت تر حمایت لاندې ... بیا عرض شوی وو چه په بانکونو او نورو مالیاتي ادارو کښې په کیښودل شویو روپو کښې

دا دواړه خبرې موجودې دي. له دې امله هغوی د اموالِ ظاهره ؤ په حکم کښې شمیرل کیدلی شي
په دې باندې ځینو حضراتو دا اعتراض کړی دی چه د کوم مال د ظاهر والي اصل علت "خروج من المصر" (له ښاره د باندې ایستل) دي. چونکه په هغې زمانې کښې د ښار په لارو باندې د حکومت له خوا څخه عاشِر (عشر اخیستونکی) د دې لپاره کښیناوه چه د تیریدونکو د مال او ځان حفاظت وکړي. د دې لپاره له ښار څخه په را وتلو ټول مالونه د حکومت د حمایت لاندې راتلل. او په دې بناء باندې حکومت د هغو زکات وصولاوه. د شخصي ځایونو د تلاشی او پلټنې ضرورت نه کیدل د دې حکم حکمت دی نه علت. له دې امله د حکم مدار به په "خروج من المصر" باندې وي. او لکه څرنګه چه دا علت په بانکونو او مالیاتي ادارو کښې نه لیدل کیږي له دې امله دا په اموالِ ظاهره ؤ کښې په داخلولو سره له هغو څخه په حکومتي سطحې باندې زکات وصولول صحیح نه دي.

مجلس په دې نقطهٔ نظر باندې څو څو ځلې غور وکړ او په دې مسئله کښې ئې د فقهې او حدیثو اړونده مواد مخې ته کیښود لیکن د غور او څیړنې څخه وروسته دا نتیجه مخې ته راغله چه په حکومتي سطحې باندې د زکات د وصولولو لپاره "خروج من المصر" لره علّت ګڼل او په دې باندې د حکم مدار کیښودل صحیح نه دي بلکه اصل علّت هغه دی چه هغه مالونه داسې وي چه له هغو څخه د زکات د وصولولو لپاره د شخصي یا ذاتي ځایونو د پلټنې ضرورت نه وي. د دې دلائل په لاندې ډول دي:

د حدیثو او د فقهې له کتابونو څخه دا خبره ثابته ده چه حضراتو خلفاء راشدینو رضی الله عنهم او تر دوی وروسته خلفاؤ او امراؤ د کلنې تنخواه ګانو او وظائفو د ویش په وخت له همدغو تنخواه ګانو او وظائفو څخه زکاتونه ګرځول. او په دې باندې صحابه ؤ رضی الله عنهم، تابعینو او نورو فقهاؤ یواځې دا نه چه کوم ممانعت ئې و نه کړ بلکه د دې طریقې تصدیق او تائید ئې کړی دی. چنانچه په موطاء امام مالک کښې دا روایت راغلی دی:

قال القاسم بن محمد وكان ابوبكر الصديق رضی الله عنه اذا اعطى الناس اعطياتهم سأل الرجل هل عندك من مال وجبت عليك فيه الزكوة فان قال نعم اخذ من عطائه زكوة ذلك المال وان قال لا، سلم اليه عطاءه ولم يأخذ منه شيئًا. (موطاء امام مالك ص۱۰۳/۱۰۴، الزكوة فى العين من الذهب و الورق و مصنف ابن ابى شيبة ج۳، ص۱۸۳، ما قالوا فى العطاء اذا اخذ، ومصنف عبدالرزاق ج۴، ص۷۶، و كتاب الاموال لابى عبيد ص۶۱۱).

او امام ابو عبید رحمه الله د دې روایت دا الفاظ نقل کړي دي: فان اخبره ان عندهٗ مالاً قد حلت فيه الزكوة قاصه مما يريد ان يعطيهٗ و ان اخبره ان ليس عندهٗ مالٌ قد حلّت فيه الزكوة سلّم اليه عطاءه. (كتاب

الاموال لابی عبید ص۳۱۱، فقره ۱۱۲۵، باب فروض زکٰوة الذهب والورق)

همدارنګه امام ابن ابي شيبه د حضرت عمر ﷺ دا قول را نقل کړی دی چه: عن عبد الرحمٰن ابن عبد القاری و کان علی بیت المال فی زمن عمر مع عبید الله بن الارقم، فاذا خرج العطاء جمع عمر اموال التجارة فحسب عاجلها و آجلها ثم یأخذ الزکٰوة من الشاهد و الغائب. (مصنف ابن ابی شیبة ج۳، ص۱۸۳)

او امام ابو عبید دا روایت له دغو الفاظو سره را نقل کړی دی چه: فکان اذا خرج العطاء جمع اموال التجّار ثم حسبها شاهدها و غائبها ثم اخذ الزکٰوة من شاهد المال علی الشاهد و الغائب. (کتاب الاموال ص۴۲۵، فقره ۱۱۷۸، باب الصدقة فی التجارات والدیون)

حضرت مولانا ظفر احمد صاحب عثماني رحمه الله د دې روایت د راویانو تر تحقیق وروسته لیکي چه: "وسنده حسن". (اعلاء السنن ج۱۲، ص۳۳۰، کتاب السیر باب العطاء یموت صاحبه بعد ما یستوهبه)

بیا د حضت ابو بکر او حضرت عمر رضی الله عنهما په باره کښې دا هم ویل کیدلی شي چه د هغوی په دور کښې د اموالِ ظاهره ؤ او اموالِ باطنه ؤ هیڅ فرق موجود نه ؤ، د دې لپاره ئې له هر ډول مالونو څخه زکات وصولول. لیکن له روایتونو څخه معلومیږي چه حضرت عثمان ﷺ چا چه دا فرق قائم کړی وو د هغه په دور کښې له تنخواه ګانو څخه د زکات د وضع کولو دا سلسله جاري پاتې شوه، چنانچه په موطاء امام مالک کښې راغلي دي: عن عائشة بنت قدامة عن ابیها انه قال کنت اذا جئت عثمان بن عفّان اقبض عطائی، سألنی هل عندك من مال وجبت فیه الزکٰوة؟ قال فان قلت نعم اخذ من عطائی زکٰوة ذٰلك المال و ان قلت لا دفع الیّ عطائی. (موطاء امام مالك ص۱۰۳، و مصنّف عبد الرزاق ج۴، ص۷۷، حدیث نمبر ۷۰۲۹، و کتاب الاُمّ للشافعی ج۲، ص۱۴، طبع بولاق و کتاب الاموال لابی عبید ص۴۱۲، فقره ۱۱۲۷)

همدارنګه له ځینو روایتونو څخه څرګندیږي چه د حضرت علي ﷺ په زمانه کښې هم له تنخواه څخه د زکات د ګرځولو دا سلسله جاره وه. البته د هغه په باره کښې دا صراحت هم شته چه هغه به یواځې د هغو خلکو له اموالِ باطنه ؤ څخه زکات وصولاوه د کومو تنخواه ګاني او وظیفې له بیت المال څخه جاري وې. له نورو خلکو څخه ئې نه وصولاوه. (مصنف ابن ابی شیبة ج۳، ص۱۸۴) د حضرت امیر معاویه ﷺ هم همدا عمل وو. (موطاء امام مالك ص۲۴۳) ابن عباس او ابن عامر رضی الله عنهما هم د دې قائلین وو. (حاشیة موطا امام مالك ص۲۴۳)

همدارنګه له حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چه هغه به د تنخواه د تقسیمولو

په وخت کښې به د خپلې تنخواه زکات هم له همدې تنخواه څخه اخيسته. چنانچه مصنف ابن ابي شيبه کښې دي چه **عن هبيرة قال كان ابن مسعود يزكي عطياتهم من كل الف خمسة وعشرين.(مصنف ابن ابي شيبة ج۳،ص۱۸۴)**

حضرت مولانا ظفر احمد عثماني رحمه الله د دې روايت د راويانو تر څېړنې وروسته فرمائي چه: **فالاسناد حسن.(اعلاء السنن ج۱۲،ص۴۲۹/۴۳۰)**

البته چونکه دلته زکات پخپله له تنخواؤ څخه اخيستل کيده کوم چه د تنخواه لرونکي په ملکيت کښې تر قبضې کولو وروسته راځي. د دې لپاره د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه طريقهٔ کار دا وو چه هغه به مخکښې تنخواه ورکوله او بيا ئې زکات ترې وصولاوه. چنانچه په مصنفٔ عبد الرزاق کښې دي چه: **عن هبيرة بن يريم عن عبد الله بن مسعود قال كان يعطي ثم يأخذ زكوته.(مصنف عبد الرزاق ج۴،ص۷۸، حديث نمبر ۷۰۳۶، باب لا صدقة في مال حتى يحول عليه الحول)** او په معجم طبراني کښې د دې روايت الفاظ دا دي: **كان يعطي العطاء ثم يأخذ زكوته.** او علامه نور الدين هيثمي په مجمع الزوائد کښې د دې روايت په نقل کولو سره ليکي: **رجاله رجال الصحيح خلا هبيرة، وهو ثقة.**

همدارنګه امام ابو عبيد رحمه الله دا روايت له زيات تفصيل او وضاحت سره نقل کړی دی: **عن هبيرة بن يريم قال كان عبد الله بن مسعود يعطينا العطاء في زبل صغار، ثم يأخذ منه الزكوة.(كتاب الاموال ص۴۱۲، فقره ۱۱۲۸، باب فروض زكوة الذهب والورق)** له تنخواؤ او وظيفو څخه د زکات د وصولولو دا سلسله تر خلفاء راشدينو وروسته هم جاري وه. چنانچه مصنف ابن ابي شيبه کښې روايت دی چه: **عن ابن عون عن محمد قال رأيت الامراء اذا اعطوا العطاء زكوه.(مصنف ابن ابي شيبة ج۳،ص۱۸۵)**

د حضرت عمر بن عبد العزيز په زمانه کښې اګر که د اموالِ ظاهره او اموالِ باطنهٔ فرق قائم شوی وو ليکن د هغه په باره کښې هم راغلي دي چه: **عن عمر بن عبد العزيز انه كان يزكي العطاء و الجائزة.(حوالهٔ بالا)**

او په مصنف عبد الرزاق کښې د دې روايت الفاظ دا دي: **عن جعفر بن برقان ان عمر ابن عبد العزيز كان اذا اعطى الرجل عطاءه او عمالته اخذ منه الزكوة.(مصنف عبد الرزاق ج۴،ص۷۸، فقره ۷۰۳۷)**

دا معامله يواځې تر تنخواه ګانو او وظائفو پورې محدوده نه وه بلکه له روايتونو څخه څرګندېږي چه بيت المال باندې به چه د کوم مسلمان کوم مالي حق وو نو د هغه د ادا کولو په وخت کښې د هغه د زکات د وصولولو معمول په قرونِ اولی کښې جاري وو. چنانچه مصنف ابن ابي

شیبه او سننِ بیهقي کښې راغلي دي : عن عمرو بن میمون قال اخذ الوالی فی زمن عبد الملك[1] مال رجل من اهل الرقة یقال له ابو عائشة عشرین الفاً، فادخلت فی بیت المال فلمّا ولی عمر بن عبد العزیز اتاه ولده فرفعوا مظلمتهم الیه فکتب الی میمون ادفعوا الیهم اموالهم وخذوا زکوة عامه هذا، فلولا انه کان مالاً ضماراً اخذنا منه زکوة ما مطی. (مصنف ابن ابی شیبة ج۳، ص۲۰۲، ما قالوا فی الرجل یذهب له المال السنی و اخرجه ایضاً البیهقی فی السنن الکبرٰی ج۴، ص۱۵۰)

حضرت مولانا ظفر احمد عثماني صاحب رحمه الله د دې حدیث د سند تحقیق کوي او فرمائي چه د دې حدیث رجال ثقات دي او سند ئې متصل دی. (اعلاء السنن ج۹، ص۹، باب لا زکوة فی المال الضمار) همدارنګه دا واقعه په اجمالي توګه په بل سند سره په موطاء امام مالک کښې هم راغلې ده او په دې کښې هم د یوه کال د زکات د وصولولو ذکر موجود دی. د دې الفاظ دا دي : ان عمر بن عبد العزیز کتب فی مال قبضه بعض الولاة ظلماً یأمر برده الی اهله و تؤخذ زکوته لما مضی من السنین ثم عقب بعد ذلك بکتاب الا تؤخذ منه الزکوة الا[2] زکوة واحدة فانه کان ضماراً. (موطاء امام مالك ص۱۰۷، الزکوة فی الدین)

په دغو ټولو واقعاتو کښې د نقدې روپۍ زکات په حکومتي توګه وصول شوی دی او هغه هم په عاشر باندې د تیریدو په صورت کښې نه دی او نه د مال له ښار څخه د باندې وړلو په حالت کښې دی. بلکه د حضرت ابو بکر، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله تعالی عنهم طرزِ عمل خو دا وو چه هغوی به د تنخواه ګانو د ورکولو په وخت کښې د هغو مالونو زکات له دغو تنخواه ګانو څخه وصولولې کوم چه د تنخواه لرونکو په کورونو، دوکانونو یا نورو ځایونو باندې د هغوی په ملکیت کښې به وو. دغو حضراتو واجب الاداء زکات له تنخواه ګانو څخه ګرځاوه او پاتې تنخواه ګانې به ئې خلکو ته ور حواله کولې. او حضرت علي، حضرت عبد الله بن مسعود او حضرت عمر بن عبد العزیز له همدغو تنخواه ګانو څخه زکاتونه وصولول ځکه چه که چیرته مالک به له مخکښې څخه د نصاب خاوند وو نو د تنخواه دا روپۍ د مالِ مستفاد د کیدو له وجې زکات به پرې واجب وو. البته دغو حضراتو له تنخواه ګانو څخه د زکات د ګرځولو په ځای لومړی تنخواه ګانې هغو ته ورکولې او بیا ئې بیرته له مالک څخه د زکات روپۍ وصولولې. په هر صورت له هغو

---

۱ - د مصنف ابن ابي شیبه په چاپ شوې نسخې کښې ئې عبد الملک لیکلي دي. لیکن په نورو نسخو کښې او په نورو کتابونو کښې د ولید بن عبد الملک ذکر دی. او هم همغه صحیح دی. ۱۲

۲ - په ځینو هندوستاني نسخو کښې د "الاّ" د لفظ کتابت په غلطۍ سره حذف شوی دی. صحیح عبارت هغه دی کوم چه پورته لیکل شوی دی. (اوجز المسالك ج۳، ص۱۶۲)

نقدو روپو څخه په سرکاري یا حکومتي توګه زکات وصولیده. او دا سلسله په اموالِ ظاهره او باطنه کښې د فرق تر قائمیدلو وروسته هم جاري پاتې وو. بلکه حضرت عمر ابن عبد العزیز له هغو روپو څخه هم زکات وصول کړی دی کوم چه په بیت المال کښې په ظلم سره داخلې شوې وې.

له دې طریقهٔ کار څخه دا خبره با لکل څرګندیږي چه دکوم مال په اموالِ ظاهره کښې د شماریدلو او له هغه څخه په حکومتي سطحې باندې د زکات د وصولولو لپاره له ښار څخه د باندې د هغه وړل ضروري نه دي بلکه اصل خبره دا ده له دې څخه د زکات د وصولولو لپاره د شخصي او ذاتي مقاماتو د تلاشی یا پلټنې ضرورت پیښ نه شي او هغه فی الجمله د حکومت د حفاظت لاندې راغلی وي.

له تنخواه ګانو او داسې نورو څخه د زکات د وصولولو دا طریقه په هغې زمانې کښې هم پرته له کوم نکیر (خنډ) څخه جاري وه او پخپله حنفي فقهاؤ هم د دغو واقعاتو په را نقلولو سره د دې تصدیق او تائید کړی دی. چنانچه د حضرت ابو بکر صدیق او حضرت عثمان رضی الله عنهما له تنخواه ګانو او وظائفو څخه د زکات وصولول پخپله امام محمد رحمه الله هم نقل کړی دی او لیکلي ئې دي: **قال القاسم و کان ابو بکر اذا اعطی الناس اعطیاتهم یسأل الرجل هل عندك من مال قد وجبت فیه الزکٰوة فان قال نعم اخذ من عطائه زکٰوة ذٰلك المال، وان قال لا سلّم الیه اعطاءه. قال محمد و بهذا نأخذ وهو قول ابی حنیفة رحمه الله. (موطا امام محمد ص۱۷۰، باب الرجل یکون علیه الدین هل علیه فیه الزکٰوة)** او تر دې وروسته د حضرت عثمان رضی الله عنه په باره کښې ئې د عائشه بنت قدامة هغه روایت نقل کړی دی کوم چه مخکښې د موطاء امام مالک او داسې نورو په حوالې سره تیر شوی دی.

همدارنګه علامه ابن همام او شمس الائمة سرخسي رحمهما الله د حضرت عمر بن عبد العزیز یاده شوې واقعه چه پکښې د غصب شوي مال د بیرته ورکولو او له هغه څخه د زکات د وصولولو یادونه ده، ذکر کړې ده او په دې سره ئې د ضمار په مال باندې د زکات د نه واجبیدو په مسئله کښې استدلال نیولی دی. **(فتح القدیر ج۱، ص۴۹۰ / مبسوط السرخسی ج۲، ص۱۷۱)** چه له دې څخه څرګندیږي چه له دې مال څخه د یوه کال کوم زکات حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله وصول کړ دا د حنفیهٔ په نزد هم معمول به دی او که نه نو دوی به د دې تردید یا توجیه کړې وای.

بلکه امام طحاوي رحمه الله له یوه عبارت څخه خو دا معلومیږي چه د اموالِ باطنه د زکات په باره کښې هم د حنفیهٔ په نزد امام یا بادشاه پوره اختیار لري که چیرته وغواړي نو د زکات د وصولولو لپاره ئې د مُصدّق په لیږلو سره په سرکاري سطحې باندې له هغو څخه زکات وصول کړي او که وغواړي نو د خپلو مالکانو ته دې وسپاري چه هغوی پخپله د خپلو اموالِ باطنهٔ زکاتونه ادا کړي، چنانچه هغوی په شرح معانی الآثار یو مستقل باب قائم کړی دی: **(باب الزکٰوة**

یأخذها الامام ام لا؟) او په دې کښې ئې د خپل عادت مطابق د نظر د دواړه نقطو تر بیانولو وروسته په آخر کښې لیکي: واما وجهه من طریق النظر فانا قد رأینا هم انهم لا یختلفون ان للامام ان یبعث الی ارباب المواشی السائمة حتّی یأخذ منهم صدقة مواشیهم اذا وجبت فیها الصدقة و کذلك یفعل فی ثمارهم ثم یضع ذلك فی مواضع الزکوات علی ما امره به عزّوجلّ لا یأبی ذلك احد من المسلمین فالنظر علی ذلك ان یکون بقیة الاموال من الذهب والفضة واموال التجارات کذلك......وهٰذا کله قول ابی حنیفة وابی یوسف ومحمد رحمهم الله تعالی (شرح معانی الآثار للطحاوی ج۱،ص۲۶۳/۲۶۴)

دلته امام طحاوي پرته له کوم قید او شرط څخه د امام دا حق بیان کړی دی چه هغه له سپینو، سرو زرو او د تجارت له مالونو څخه د زکات د وصولولو لپاره مصدّق لیږلی شي. دلته هغه د مصر یا غیر مصر هم کوم شرط نه دی لګولی او نه ئې په عاشر باندې د تیریدلو کوم ذکر کړی ی. د امام طحاوي د عبارت دا اطلاق د حنفي فقهاؤ له نورو تصریحاتو سره په ظاهره په ټکر کښې معلومیږي او د یاد شوي پورتني عبارت په سیاق او سباق کښې دا احتمال هم موجود دی چه د هغو دا ټولې خبرې اترې دې (ما مرّ علی العاشر) په متعلق وي. لیکن تر کومه ځایه پورې چه عبارت تعلق لري په هغه کښې هیڅ قید او شرط نشته او وجه النظر هم د اطلاق اقتضاء کوي. له دې څخه دا په ذهن کښې راځي چه د امام طحاوي مقصد دا دی چه د دغو اموالِ باطنه ؤ څخه هم د زکات د وصولولو حق امام لري. البته د هغه مصلحت له مخې کوم چه د حضرت عثمان رضی الله عنه په ذهن کښې وو، چیرته چه د خلکو د شخصي ځایونو د تلاشئ یا پلټنې ضرورت پیدا کیږي هلته مالکانو ته پخپله د زکات د ادا کولو حق ورکړی شوی دی او چیرته چه دا مصلحت داعي نه وي هلته امام د خپل اصل حق په مطابق زکات وصولولی شي. چونکه په عاشر باندې په تیریدونکو مالونو کښې دا ډول هیڅ کومه خرابي نشته د دې لپاره هغه د خپل اصل حق په مطابق له هغو څخه زکات وصولولی شي او که چیرته یو څه نور مالونه داسې وي چه له هغو څخه د زکات په وصولولو کښې دا خرابي نه وي هلته هم د امام اصل حق بیرته را ګرځي او له هغو مالونو څخه زکات وصولولی شي چه مثالونه ئې د تنخواه ګانو، وظیفو او مغصوب مال په سلسلې کښې مخکښې تیر شول بلکه که چیرته په کوم ځای کښې دا معلومه شي چه خلک د خپلو اموالِ باطنه ؤ زکاتونه نه ادا کوي هلته د دې مفسده (خرابي) تر څنګ امام د خپل اصل حق مطابق د دغو مالونو زکات وصولولی شي ځکه چه د زکات د نه ادا کولو مفسده (خرابي) له دې مفسده څخه ډیره بده ده. همدا خبره تقریباً ټولو حنفي فقهاؤ لیکلې ده. مثلا علامه ابن همام لیکي:

(ظاهر قوله تعالی خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً الآیة توجب اخذ الزکوة مطلقاً للامام، و علی هٰذا کان رسول

الله ﷺ والخليفتان بعده فلمّا ولی عثمن وظهر تغير الناس كره ان يفتش السّعاة على الناس مستور اموالهم، ففوّض الدفع الى الاملاك نيابة عنه ولم يختلف الصحابة فی ذلك عليه، وهذا لا يسقط طلب الامام اصلا، و لهذا لو علم اهل بلدة لا يؤدون زكوتهم طالبهم بها. (فتح القدير ج۱، ص۴۸۷)

له دې عبارت څخه څرګنده ده چه په اصل کښې د ټولو مالونو د زکات د وصولولو حق امام ته شته او د اموالِ باطنه په سلسله کښې دا حق د یوه مصلحت له مخې پرېښودل شوی دی او په کلي توګه اوس هم ساقط نه دی ساقط شوی بلکه د دغو مالونو زکاتونه کوم چه مالکان ئې پخپله ادا کوي هغوی ئې هم د امام د نائب په حیثیت سره ادا کوي. په اصل کښې هغوی ته دا اختیار هم نه وو او د همدې لپاره د اموالِ باطنه ؤ د زکات دین لره فقهاؤ له مطالب من جهة العباد ګڼلی دی.

دلته ځینو حضراتو دا شبهه ور لویدلې ده چه امام ابو بکر جصّاص رحمه الله د حضرت عثمان رضی الله عنه د عمل په ذکر کولو سره لیکلي دي: **فجعل لهم اداءها الى المساكين و سقط من اجل ذلك حقّ الامام فی اخذها لانه عقد عقده امام من ائمة العدل فهو نافذ على الامّة.** (احكام القرآن للجصاص ج۳، ص۱۹۰) له دې څخه څرګندیږي چه د حضرت عثمان رضی الله عنه تر دې فیصلې وروسته له اموالِ باطنه ؤ څخه د زکات د وصولولو حق هیڅ‌چا ته پاتې نه شو لیکن د امام جصاص د پوره عبارت په غور سره له مطالعه کولو څخه دا په ذهن کښې راځي چه د امام له حق څخه د هغه مراد داسې حق دی چه له هغه وروسته د مالونو مالکانو ته پخپله د زکات د ورکولو اختیار پاتې نه شي، او د دوی ادائیګي شرعاً تسلیم نه شي. چنانچه له یاد شوي عبارت څخه مخکښې د هغه الفاظ دا دي: **(وقوله تعالىٰ خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً يدل على ان اخذ الصدقات الى الامام، وانه متى اداها من وجبت عليه الى المساكين لم يجزه لان حق الامام قائم فی اخذها فلا سبيل له الى اسقاطه).** له دې جملې څخه په ښکاره توګه څرګندیږي چه هغه د امام د داسې حق یادونه کوي چه د هغه په موجودوالي کښې مالک ته پخپله د زکات ادا کول جائز هم نه وي. بلکه په دې سره زکات هم ادا نه شي. بیا د همدې حق په بره کښې مخکښې لیکي چه چونکه حضرت عثمان رضی الله عنه له عادلو امامانو څخه وو او هغه د اموالِ باطنه ؤ تر حد پورې دا حق ساقط کړ د دې لپاره دا حق اوس ساقط شوی دی[1] چه حاصل ئې دا دی چه تر حضرت عثمان رضی الله عنه

---

[1] - چنانچه د خارویو په باره کښې اوس هم امام همدا ډول حق لري چه د امام په موجودوالي کښې مالک ته پخپله د زکات ورکول جائز نه دي بلکه د ځینو فقهاؤ په نزد په دې ډول سره زکات ادا کیږي هم نه. په مبسوط کښې دي چه: فان قال دفعتها الى المساكين لم يصدق و تؤخذ منه الزكوة عندنا...... ولنا ان هذا حق مالي يستوفيه

مخکښې د خلکو لپاره پخپله له اموالِ باطنه ځخه مسکین ته د زکات ورکول جائز نه وو او زکات ئې نه پرې ادا کیده. حضرت عثمانﷺ دا اختیار هغو ته ورکړ. اوس دا خبره طی شوه چه د داسې مالونو مالکان که چیرته له ځانه زکاتونه ادا کړي نو زکات ئې ادا کیږي. لیکن د دې مطلب دا نه دی چه د امام د اخیستلو حق په کلي توګه ساقط شوی دی. او که اوس وغواړي چه زکات وصول کړي نو نه ئې شي وصولولی. چنانچه د فتح القدیر یاد شوی پورتنی عبارت په دې باندې صریح دی چه **وهذا لا یسقط طلب الامام اصلا.**

د امام جصاص رحمه الله د دې پوره بحث، د نورو فقهاؤ او محدثینو عبارتونو او روایتونو ته تر کتنې وروسته په دې سلسله کښې چه کوم صورتِ حال مخته راځي هغه دا دی چه:

۱ - د آنحضرتﷺ په مبارکې زمانې او د حضراتو شیخینو رضی الله عنهما په زمانو کښې له اموالِ ظاهره او باطنه دواړو ځخه په حکومتي سطحې باندې زکات وصولیده. البته دومره فرق خو خامخا موجود وو چه د څارویو او زرعي (کرنیز) پیداوار د زکات د وصولولو لپاره به ئې مصدّق لیږه او د نقدو او تجارتي مالونو د زکات د وصولولو لپاره ئې د مصدّق د لیږلو په ځای مالکانو ته دا حکم وو چه هغوی پخپله زکاتونه راوړي. لیکن په دواړوه قسمه مالونو کښې د زکات د اداء کولو طریقه همدغه وه چه حکومت ته به ورکول کیده.

۲ - حضرت عمرﷺ له ښار ځخه د باندې تلونکو مالونو په باره کښې دا تبدیلي راوسته چه د هغو د وصولولو لپاره ئې مصدّق مقرر کړ او د نورو باطنه اموالو زکاتونه مخکښې غوندې پخله مالکانو راوړل او ورکول به ئې.

۳ - د حضرت عثمانﷺ په زمانه کښې اموالِ باطنه ډیر شول، آبادي زیاته او خوره شوه او هغه دا محسوسه کړه چه اوس د باطنه اموالو په حکومتي سطحې باندې د وصولولو دا سلسله چه له هغې پرته د زکات ادا کول جائز نه وي، که چیرته په همدې حال پریښودل شي نو د دې لپاره د اموالِ ظاهره ؤ غوندې د مصدّق د مقررولو ضرورت پیښیږي او د خلکو په شخصي ځایونو کښې د دوی له مداخلې ځخه به خلکو ته تکلیف وي. له دې امله ده مالکانو ته اجازه ورکړه چه هغوی د دغو مالونو زکاتونه پخپله ادا کړي.

۴ - د حضرت عثمانﷺ تر دې عمل وروسته خلکو ته د باطنه اموالو د پخپله د زکات د ادا کولو اجازه ورکړل شوه لیکن د زکات د وصولولو حق اوس هم یواځې امام ته دی. چنانچه په دوه صورتونو کښې اوس هم امام د زکات د وصولولو اهتمام کولی شي. یو دا چه د کوم ځای د خلکو

---

الامام بولایة شرعیة، فلا یملك من علیه اسقاط حقه فی الاستیفاء.... ولا یبرأ بالاداء الی الفقیر فیما بینه وبین ربه وهو اختیار بعض مشائخنا. (مبسوط ج۲، ص۱۶۱، ۱۶۲)

په باره کښې چه دا څرګنده شي چه هغوی پخپله زکات نه ادا کوي او دویم دا چه څه مالونه په داسې ډول په اموالِ ظاهره کښې شامل شي چه له هغو څخه د زکات د وصولولو لپاره د شخصي ځایونو د تفتیش او پلټنې ضرورت پیدا نه شي.

۵ - لکه څرنګه چه په مخکښېني زمانې کښې د شخصي ځایونو له پلټنې او تفتیش پرته د مالونو د ظاهر والي چه کوم صورت مخته راتلو هغه دا وو چه مالونه له یوه ښار څخه بل ښار ته د وړلو په وخت کښې به هغه په عاشر باندې تیریده. د دې لپاره فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی د دې صورت حکمونه په تفصیل سره بیان کړي دي او داسې تعبیر ئې کړی دی چه "دا مالونه له ښار څخه په وتو سره په اموالِ ظاهره کښې شامل شوي دي" او کوم مالونه چه په ښار کښې دننه دي هغه اموالِ باطنه دي. له دې امله دا "له ښار څخه د باندې ایستل" د حکم اصل مدار یا د علت د بیان په توګه نه دی بلکه د خپلې زمانې له لحاظه د یوې واقعې بیان دی. او که نه نو د حکم اصل مدار هغه دی چه د کوم په بناء باندې چه اموالِ باطنه لره ئې د حکومتي زکات د وصولولو څخه مستثنی کړې ده، یعنې له پلټنې پرته د دغو مالونو ظاهر والی. چنانچه په قرونِ اولی کښې له هغو مالونو څخه هم زکات وصولیده کوم چه له ښار څخه به د باندې نه وو لیکن له تفتیش او پلټنې پرته به ظاهریده. مثلاً تنخواه ګانې، وظیفې او د حکومت مغصوبه مالونه کوم چه روایتونه ئې مخکښې تیر شوي دي.

دلته ځینو حضراتو دا شبهه ښکاره کړې ده چه ځیني مالونه په حکومت باندې له تفتیش پرته ظاهریده لیکن د دې تر څنګ حکومت له هغو څخه زکات نه وصولاوه، مثلاً په عاشر باندې تیریدونکی که چیرته پخپلو شخصي ځایونو باندې د ایښودل شویو مالونو په باره کښې اقرار کاوه نو د هغو زکات نه وصولیده چه فقهاؤ د دې تصریح کړې ده.

د دې په ځواب کښې عرض دا دی چه د اقرار په ذریعې سره خو له اموالِ باطنهٔ څخه هر مال اموالِ ظاهره جوړیدلی شي لیکن چونکه جزوي واقعات د کلي احکاماتو بنیاد نه شي جوړیدلی او "عاشر" ته دا اختیار نه شو ورکول کیدلی چه هغه کوم مال لره چي وغواړي ظاهر ئې وبولي او له هغه څخه زکات وصول کړي. د دې لپاره ئې هغه ته دا تاکل شوي اصول بیان کړ چه کوم سړی په تاسو باندې له مال سره تیریږي یواځې له هم هغه مال څخه زکات وصولولی شئ کوم چه په دې وخت ستاسو مخې ته راشي او د خلکو په کورونو او دوکانونو کښې چه کوم مالونه دي په هغو باندې تعرّض مه کوئ. تر دې اصولو لاندې "عاشر" ته په کورونو کښې په ایښودل شوي مالونو باندې د تعرض اختیار نه دی ورکړ شوی. او چه کله دا اصولو مقرر شول نو که چیرته په کومې جزوي واقعې کښې که چیرته یوه چا خپل باطني مال په عاشر باندې د اقرار په ذریعې سره ظاهر هم کړي نو دا به یوه استثنائي واقعه وي چه په دې سره اصول بدلیدلی نه شي. د دې لپاره په دې

صورت کښې هم د اصولو په توګه له ده څخه زکات نه وصولیږي
البته که چیرته څه داسې مالونه ومیندل شي چه نوعیت ئې په داسې ډول وي چه ټول تر ټوله
پخپله په حکومت باندې پرته له پلټنې څخه ښکاره شي او حکومت د دغو مالونو په باره کښې
فیصله وکړي چه له دغو ټولو مالونو څخه به زکات وصولیږي نو په دې کښې د شرعي ممانعت
هیڅ دلیل نشته بلکه له تنخواه ګانو، وظیفو او مغصوبه مالونو څخه چه کوم زکاتونه وصولیدل د
دې ښکاره مثال دی.
په نورو الفاظو سره "خروج من المصر" د عاشر لپاره د زکات د وصولولو د اجازې خو علت شته
لیکن د امام لپاره د زکات وصولولو د اختیار علت خو نشته بلکه د ده لپاره علت د مالونو له
پلټنې پرته ظاهریدل دي. چنانچه کوم مالونه چه په داسې ډول وي چه هغه پرته له پلټنې او تفتیش
څخه ظاهر شي له هغو څخه د **(ما مرّ علی العاشر)** غوندې هغه هم د زکات د وصولولو حکم جاري
کولی شي. لکه څرنګه چه د تنخواه ګانو او داسې نورو په معامله کښې شوي دي. همدا وجه ده چه
فقهاء کرامو د **(خروج من المصر)** تذکره **(باب فیمن یمرّ علی العاشر)** کښې خو کوي چه موضوع ئې دا ده
چه عاشر له کومو مالونو څخه زکات وصولولی شي. لیکن په کوم ځای کښې چه د امام د زکات د
وصولولو د اختیار بیان دی هلته په عمومي توګه خروج من المصر لره ئې د علت په توګه نه ذکر
کیږي بلکه هلته علت دا بیانیږي چه له اموالِ باطنه ؤ څخه د زکات په وصولولو کښې د خلکو په
شخصي ځایونو کښې د مداخلې او د هغو پلټنه لازم ګرځي چه له مخې ئې عوامو ته د ضرر او
تکلیف د رسیدو اندیښنه ده. لکه څرنګه چه د فتح القدیر عبارت مخکښې تیر شوی دی او د امام
جصّاص عبارت د مجلس په سابق تحریر کښې نقل شوی دی.

## د بانک د اکاؤنټ (خاتې) د قرض کیدو مسئله

د بانک له اکاؤنټ څخه د زکات په وصولولو باندې دویم اعتراض دا شوی دی چه کله یو څوک
په بانک کښې پیسې ږدي نو شرعاً هغه روپۍ د بانک په ذمې باندې قرض وي. امانت نه وي د
دې لپاره هغه په بانک باندې مضمون (ضمانت کړی شوی) هم وي، او په دې باندې د زیاتو روپو
وصولول سُود وي. او چه کله یو څوک څه روپۍ کوم بل سړي یا ادارې ته د قرض په توګه ورکړي
نو هغه د دې سړي له ملکیت څخه ووځي او د مقروض (پوروړي) په ملکیت کښې داخلیږي. اوس
په دغو روپو باندې د زکات ادا کولو هغه وخت واجبیږي کله چه له پوروړي څخه هغه روپۍ
وصولې شي. له دې څخه مخکښې زکات پرې واجب الاداء نه دی. له دې امله د بانک له اکاؤنټ
څخه د زکات په وضع کولو باندې لومړی اعتراض خو دا دی چه زکات تر واجب الاداء کیدو
مخکښې وضع کیږي او دویم اعتراض دا دی چه هغه زکات له دائن (قرض ورکوونکي) څخه د

وصولولو په ځای د مدیون (پوروړي) له مال څخه وصولیږي حالانکه د دې مثال معهود فی الشرع نه دی چه د یوه سړي زکات د بل چا له مال څخه وصول شي.

**لاندې د دغو دواړو اعتراضاتو تحقیق مقصود دی:**

د دغو دواړو مسائلو د تحقیق لپاره لومړی د بانک د اکاؤنټونو د شرعي حیثیت معلومول ضروري دي.

په دې کښې شک نشته چه د فقهي اعتبار له مخې د بانک اکاؤنټ قرض دی[1] لیکن د دائن د تصرّف له لحاظه دا یو بالکل نوی ډول قرض دی کوم چه د فقهاء کرامو په زمانه کښې موجود نه وو او د دې مثالونه هم په هغې زمانې کښې کم میندل کیږي. له دې امله د زکات په حق کښې د بانک اکاؤنټونه په کلي توګه په نورو دَینونو او قرضو باندې قیاسول به صحیح نه وي. د زکات د وجوب په حق کښې د دَین په منځ کښې د کتلو اصل شی دا دی چه هغه د دائن لپاره تر کومې اندازې پورې مرجوّ الوصول (دائن تر کومې اندازې پوې د دې د وصولوالي هیله لري) دی؟ او په دې باندې د دائن تر کومې اندازې پورې تصرّف برقرار دی؟ په همدې بناء سره فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی د زکات د وجوب په معامله کښې د دَین قوي، دینِ متوسط، دین ضعیف ویش کړی دی او په همدې بناء سره ئې دَین مجحود په مالِ ضمار کښې شامل کړی او هغه ئې له زکات څخه مستثنٰی بللی دی. چه کله مونږ په دې نقطهٔ نظر سره د بانک اکاؤنټونو ته ګورو نو هغه د دَین والي

---

۱ - البته په کومو اکاؤنټونو باندې چه سودي لین دین طی کیږي لکه سیونګ اکاؤنټ یا فکسډ ډپازټ. په دغو کښې یو بل احتمال هم د غور قابل دی او هغه دا چه هغه د شرکتِ فاسده یا مضاربتِ فاسده مال وي ځکه چه فقهاء کرام دا لیکي چه کله چیرته له کوم سړي سره د شرکت یا مضاربت د عقد د کولو په وخت د ګټې د شائع حصې په ځای معیّنه برخه وټاکله شي نو شرکت او مضاربت فاسدیږي. (شامي) او په شرکتِ فاسده او مضاربتِ فاسده په دواړو کښې چه تر څو پورې دواړه خواوې خپل مالونه بیرته وا نه خلي د هغو تر منځ په مِلک کښې (دتیرې صفحې د حاشیې پاتې برخه) شرکت فی المِلک قائمیږي. او دواړه د خپلو خپلو برخو مالک پاتې کیږي. دا روپۍ دَین نه بلکه د تجارت د مال په حکم کښې پاتې کیږي. — او په غیر سودي اکاؤنټونو کښې یو احتمال دا هم شته چه هغه په اصل کښې ودیعت وو لیکن د خلط با لاذن په بناء سره هغه مالِ شرکتِ مِلک وګرځید. چنانچه د درمختار په کتاب الایداع کښې تصریح ده چه ودیعت د خلط بالاذن له وجې شرکتِ مِلک ګرځي. (شامي ج۴، ص۴۹۸) او حضرت تهانوي قدس سرّه سیونګ اکاؤنټ لره په همدې بناء باندې د شرکتِ مِلک مال ټاکلی دی. (امداد الفتاوی ج۳، ص۳۰۹) که چیرته د دغو اکاؤنټونو دا توجیه صحیح وي نو د دغو اکاؤنټونو د دَین کیدو مسئله له منځه ځي لیکن په دې توجیه کښې تأمل دا دی چه د دې په مطابق په دغو اکاؤنټونو کښې اینبودل شوي روپۍ به مضمون نه وي. حالانکه د دواړو خواوو له طرفه مضمون والی شرط وي. فلیتأمل۱۲

تر څنګ په دې معامله کښې له نورو دیونو څخه بالکل ممتاز یا جلا په نظر راځي. چه وجوهات ئې په لاندې ډول دي:

۱ - د عامو قرضو دا حال وي چه د قرض ورکوونکي له قبضې څخه تر وتلو وروسته په هغه باندې د مُقرض هیڅ تصرف باقي پاتې نه وي بلکه هغه د مقروض (چا چه قرض اخیستی وي) په رحم او کرم پورې اړه لري چه کله ئې وغواړي قرض ورکوونکي ته به خپل قرض ورکوي. د دې برعکس د بانک په اکاؤنټونو کښې د مُقرض په غوښتنې باندې په فوري توګه د نه ادا کولو سوال هم نه پیدا کیږي او دا د بانک له خوا څخه یواځې ژبنی اقرار نه وي بلکه د بانکونو پرله پسې بې له خلاف ورزي څخه طرزِ عمل همدا دی چه پرته له دې څخه بانک چلیدلی نه شي. له دې امله دا د قرض هغه ډول دی چه په دې کښې قرض ورکوونکی خپلې روپۍ چه کله وغواړي نو فوراً پرته له تخلف څخه بیرته اخیستلی شي او عملاً هم هغه داسې د اعتماد قابل دی چه لکه څرنګه چه پخپلې همیانۍ کښې ایښودل شوې روپۍ بلکه له دې څخه هم زیات ځکه چه په همیانۍ کښې د روپو د له منځه تللو ویره شته لیکن د بانک په اکاؤنټ کښې دا ویره هم نشته.

۲ - د بانک په اکاؤنټونو کښې ایښودل شوې روپو باندې هر اکاؤنټ جوړوونکی خاص داسې ډول تصرّف کوي لکه څرنګه چه پخپلې الماری کښې په ایښودل شویو روپو کښې تصرّف کوي. په دې وخت کښې د تجارت ټول کارونه د بانک په اکاؤنټونو باندې چلیږي او زیاتره راکړه ورکړه د بانک په ذریعې سره وي.

۳ - په عام عرف کښې هم په بانک کښې د روپو تر ایښودو وروسته هیڅوک دا نه ګڼي چه هغه دا روپۍ چا ته په قرض ورکړی بلکه هغه دا روپۍ خپلې ګڼي او له هغو سره د خپلو روپو غوندې معامله کوي. چه کله یو څوک د خپلو حاضرو او غائبو مالونو فهرست جوړوي د بانک اکاؤنټ په حاضر مال کښې شماري نه په غائب مال کښې.

۴ - د عامو قرضو حال دا دی چه د قرض د معاهدې محرک مستقرض (قرض غوښتونکی) وي لیکن دلته محرک مُقرض (قرض ورکوونکی) وي او د دې اصل منشاء د قرض د ورکولو په ځای د خپل مال حفاظت وي.

د عامو قرضونو په مقابله کښې د بانک د اکاؤنټونو د فرق دا وجوهات په ذهن کښې کښینوئ او په قرضونو باندې د زکات په مسئلې باندې غور وکړئ؛

د بانک له اکاؤنټ څخه د زکات په وصولولو باندې لومړی اعتراض دا کیږي چه په قرض باندې خو اګر که زکات خو فرض وي لیکن ادا کول ئې هلته واجبیږي چه کله بیرته د دائن په قبضه کښې راشي او د بحث لاندې صورت کښې د دائن په قبضه کښې تر راتلو مخکښې زکات ترې وضع کیږي.

په دې سلسله کښې ګذارش دا دی چه په قرضونو باندې د زکات نفس وجوب خو متفق علیه دی. البته امام ابو حنیفه رحمه الله مُقرض ته دا سهولت جوړ کړی دی چه په ده باندې به هلته د زکات ادا کول واجب وي چه کله د قرض روپۍ هغه ته بیرته په لاس ورشي چنانچه چه کله هم د څلویښتو درهمو په اندازه ده ته بیرته په لاس ورشي نو د زکات په توګه د یوه درهم ورکول به پرې واجب وي. د دې سهولت پس منظر او اصل وجه ئې له لاندیني روایتونو څخه څرګندیږي.

١ - امام بیهقي رحمه الله روایت کوي: **عن حمید بن عبد الرحمن ان عبد الرحمن ابن عبد القارئ و کان علی بیت مال عمر رضی الله عنه قال کان الناس یأخذون من الدین الزکوة و ذلک ان الناس اذا خرجت الاعطیة حبس لهم العرفاء دیونهم، وما بقی فی ایدیهم اخرجت زکوتهم قبل ان یقبضوا، ثم دائن الناس بعد ذلک دیوناً هالکة، فلم یکونوا یقبضون من الدین الصدقة الا ما نض منه و لکنهم کانوا اذا قبضوا الدین اخرجوا عنها لما مضی.** **(السنن الکبری للبیهقی ج۴، ص۱۵۰، باب زکوة الدین اذا کان علی معسر او جاحد)** له دې روایت څخه څرګنده ده چه اصلاً د دیونو حکم هم همدا وو چه کال په کال ئې زکات ادا شي که په قبضه کښې راشي او که را نه شي. لیکن چونکه کله کله به خلکو زکات و ایستل او وروسته به قرضې وصول نه شوې. د دې لپاره دا سهولت ورکړی شو چه د قرضو زکات تر وصولیدو وروسته باید اداء شي. لیکن چه کله په قبضه کښې راشي نو د تیرو کلونو زکات هم باید ترې ادا شي. د دې باوجود د صحابه ؤ او تابعینو د یوې لویې ډلې مسلک دا پاتې شو چه که چیرته پوروړی د اعتماد وړ وي نو د زکات د ادا کولو لپاره باید د وصولي انتظار و نه شي بلکه کال په کال دې زکات ادا کوي چنانچه حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت ابن عمر، حضرت جابر بن عبد الله، حضرت جابر بن زید، حضرت مجاهد، حضرت ابراهیم نخعي، حضرت میمون بن مهران، حضرت قتاده او حضرت سعید بن المسیب او داسې نورو رضی الله عنهم مسلک همدا وو. **(کتاب الاموال لابی عبید ص۴۳۳، باب الصدقة فی التجارات والدیون فقره۱۲۳۶، و مصنف عبد الرزاق ج۴، ص۱۰۳، باب لا زکوة الا فی الناض)** همدې ته امام ابو عبید ترجیح ورکړې ده. او همدا د امام شافعي رحمه الله مسلک هم دی. **(نهایة المحتاج ج۳، ص۱۳۰)**

لیکن د امام ابو حنیفه رحمه الله موقف دا دی چه دَین اګر که له هر څومره د اعتماد وړ سړي باندې وي په دې کښې لکه څرنګه چه د نه ادا کولو احتمال هم وي له دې امله تر څو پورې چه هغه د مالک په قبضه او تصرّف کښې را نه شي تر هغه وخته پورې د زکات د اداء وجوب نه وي. د دې لپاره ده د حضرت علي رضی الله عنه له هغه ارشاد څخه استدلال کړی دی کوم چه امام محمد رحمه الله روایت کړی دی. امام محمد رحمه الله فرمائي: **عن علی بن ابی طالب قال اذا کان ذلک دَین علی الناس فلیقبضه فزکاه لما**

مطی، قال محمد وبه نأخذ وهو قول ابی حنیفة. (کتاب الآثار ص۱۰۸) له دې څخه څرګنده شوه چه امام ابو حنیفه رحمه الله په دې مسئله کښې د خپل مسلک بنیاد د حضرت علي رضي الله عنه په دې ارشاد باندې ایښی دی

او د حضرت علي رضي الله عنه دا ارشاد امام بیهقي او امام ابو عبید په دې الفاظو سره روایت کړی دی (عن علي فی الدّین الظنون، قال ان کان صادقاً فلیزکّه اذا قبضه لما مطی). امام ابو عبید د "دَین ظنون" تعریف په دې الفاظو سره کړی دی: هو الذی لایدری صاحبه ایقضیه الذی علیه الدین ام لا؟ (بیهقی ج۴، ص۱۵۰ او کتاب الاموال ص۴۳۰، فقره ۱۲۲۰ و مصنف ابن ابی شیبة ج۳، ص۱۶۳)

او د دې ارشاد تفصیل امام ابن ابي شیبه په دې الفاظو سره روایت کړی دی: عن الحسن قال سئل علی عن الرجل یکون له الدّین علی الرجل، قال یزکّیه صاحب المال، فان تری ما علیه وخشی ان لا یقضی، قال یمهل فاذا خرج ادّی زکوة ماله. (مصنف ابن ابی شیبة ج۳، ص۱۶۲) له دې څخه څرګنده شوه چه په دې باب کښې د حضرت علي رضي الله عنه موقف هغه دی کوم چه د حضرت عبد الله بن عباس او حضرت عبد الله بن عمر او داسې نورو دی. یعنې: ان عبدالله بن عباس وعبدالله بن عمر قالا من اسلف مالاً فعلیه زکوته فی کل عام اذا کان فی ثقة. (السنن الکبرٰی للبیهقی ج۴، ص۱۴۹) او د حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهما مکمل الفاظ دا دي: زکّوا ما کان فی ایدیکم، وما کان من دین فی ثقة فهو بمنزلة ما فی ایدیکم، وما کان من دین ظنون فلا زکوة فیه حتّٰی یقبضه. (بیهقی ج۴، ص۱۵۰، ومصنف ابن ابی شیبة ج۳، ص۱۶۲) د حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهما د دې ارشاد یوه برخه امام محمد رحمه الله هم را نقل کړې ده او په دې سره ئې د دَین په مسئله کښې د مالکیّهٔ په خلاف استدلال کړی دی: عن نافع عن ابن عمر انه قال فی الدین یُرجی، قال زکّه کلّ عام (کتاب الحجة علی اهل المدینة ج۱، ص۴۷۲) له دې څخه دا خبره څرګندیږي چه حنفي فقهاء په دې باب کښې د خپل مسلک بنیاد د حضرت علي او حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهم په اقوالو باندې ایښی دی او د هغوی په نزد اګر که تر قبضې وروسته د زکات وجوب یواځې په دې صورت کښې دی چه کله د دَین وصولیدل مظنون (شکمن) وي. چه چیرته وصولیدل موثق وي هلته د هغوی په نزد د زکات وجوب هم له قبضې څخه مخکښې وي لیکن حنفي فقهاؤ په دې اړخ باندې نظر اچولی دی چه له مشهورو قرضو څخه په هر قرض کښې که هر څومره د اعتماد وړ سړي سره وي، د نه ادا کولو څه نا څه ویره خامخا وي له دې امله هغوی هر قوي دَین لره "دَین ظنون" ګڼلی او دا عام حکم ئې لګولی دی چه په هغه باندې د زکات نفس وجوب خو وي لیکن د قبضې تر کولو وروسته به زکات وجوب الاداء وي

دا پس منظر په ذهن کښې په نیولو سره چه کله مونږ د بانک اکاؤنټ ته ګورو او د عامو قرضونو په مقابله کښې د هغه چه د فرق کوم وجوهات په شروع کښې بیان شول هغو ته په کتو سره دا واضح کیږي چه دا د قوي دَین هغه ډول دی کوم چه د فقهاء کرامو رحمهم الله په زمانې کښې خو یا موجود نه وو یا ئې شاذ او نادر مثالونه وو. او دا ډول دَین هیڅکله "دین ظنون" نه شي ګڼل کیدلی بلکه دا د وصولیدو د یقین، د دائن آزادانه تصرّفاتو او د عام عرف له مخې بالکل په دې ډول سره د دائن په مِلکیت او تقدیري قبضه کښې وي لکه پخپل کور کښې کیښودلی شوی مال له دې امله د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله تعالی عنهما په الفاظو کښې د دې (**بمنزلة ما فی ایدیکم**) اطلاق تر دې زیات په هیڅ یوه دَین باندې نه شي کیدلی.

له دې پرته که چیرته د بانک په اکاؤنټونو باندې د زکات د وجوبِ اداء لپاره د نورو قرضو غوندې د هغوی د نقدیدو د شرط ولګول شي نو له دې څخه دومره عملي مشکلات پیدا کیږي چه د زکات په ښه توګه سره ادا کول به ډیر مشکل شي. امام ابو عبیدخو د عامو دیونو په باره کښې دا هم فرمایلي دي چه. **واِنما اختاروا ومن اختار منهم تزکیة الدین مع عین المال، لانّ من ترك ذٰلك حتّٰی یصیر الی القبض لم یکد یقف من زکٰوة دینه علی حدّ ولم یقم بأدائها، وذٰلك انّ الدین ربّما اقتضاه ربّه متقطعاً کالدراهم الخمسة والعشرة، واکثر من ذٰلك واقلّ، فهو یحتاج فی کلّ درهم یقتضیه فما فوق ذٰلك الی معرفة ما غاب عنه من السنین والشهور والایّام ثم یخرج من زکٰوته بحساب ما یصیبه، وفی اقلّ من هٰذا ما تکون الملالة والتفریط فلهٰذا اخذوا له بالاحتیاط فقالوا یزکّیه مع جملة ماله فی رأس الحول، وهو عندی وجه الامر. (کتاب الاموال ص۴۳۳، فقره۱۲۳۶)** د عامو دیونو په باره کښې دا مشکلا د لحاظ قابل وي او که نه وي لیکن د بانک د اکاؤنټونو په باره کښې خو دا ډول حساب او کتاب د عملي اعتبار له مخې تقریباً ناممکن دی ځکه چه په عامه توګه له دغو اکاؤنټونو څخه کله کله په یوه ورځ کښې څو څو خله روپۍ را ایستل کیږي او بیا ور داخلیږي او تر قبضې وروسته د زکات د ادا کولو صورت یواځې دا کیدلی شي چه هر اکاؤنټ جوړوونکی د خپل اکاؤنټ د هرې هرې روپۍ په باره کښې دا ریکارډ په پوره ډول سره محفوظ وساتي چه هغه به څومره موده په بانک کښې وي تر څو چه په ده باندې د واجب شوي تیرو کلونو زکات اداء کړی شي او چه کله کومې روپۍ له بانک څخه باسي نو لومړی دې دا حساب وکړي چه دا روپۍ څو کاله په بانک کښې وې او په دې باندې څومره زکات واجب شوی دی، بیا دې زکات اداء کړي او په دې کښې چه کومه عملي سختي ده هغه مخفي نه ده او نخپله حنفي فقهاؤ د مال مستفاد د جلا کال په نه شمارولو باندې یو دلیل همدغه د عملي تعذر یا سختي دلیل وړاندې کړی دی. چنانچه امام محمد رحمه الله خو په مال مستفاد باندې د جلا کال په

شمارونکو باندې طنز کوي او تر دې پورې ئې ليکلي دي چه : **ينبغي لصاحب هذا المال ان يقعد حسابا يحسبون زكوة ماله متى تجب؟ ارأيتم الرجل اذا كان يفيد اليوم الفاً وغداً الفين وبعد غد ثلاثة آلاف وبعد ذلك خمسة آلاف وبعد ذلك بعشرين يوم عشرة آلاف اينبغى له ان يزكى كل مال من هذه الاموال على حدة؟ وهذا قول ضيق لا يوافق ما عليه الناس ينبغي له ان يجمع ماله كله ثم يزكيه اذا وجبت الزكوة على ماله الاول.** (**كتاب الحجة على اهل المدينة** ج۱، ص۲۹۱ و ۲۹۲) او حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله کوم چه د حنفي فقهې ډير لوی ماخذ دی د هغه يو ارشاد امام ابن ابي شيبه په دې الفاظو سره روايت کړی دی چه : **ومن كان له من دين ثقة فليزكه. وما كان لا يستقر يعطيه اليوم ويأخذ الى يومين فليزكه.** (**مصنف ابن ابي شيبة** ج۳، ص۱۶۲)

د دې منشاء هم غالباً همدغه دی چه د ډيونو چه کومې روپۍ ځي او راځي د هغو ځان ځانته حساب ساتل چونکه متعذّر يعنې سخت دی د دې لپاره د دغو ټولو زکات په يو ځای باید و ایستل شي. او د دې ډول ډيونو چه څومره مکمل مثال د بانک اکاؤنټونه دي ښائي چه دومره مکمل مثال ئې بل کوم يو ممکن نه وي.

له دې امله د دغو ټولو دلائلو په رڼا کښې د بانک له اکاؤنټونو څخه د زکات په وصولولو باندې دا اعتراض صحيح نه پاتې کيږي چه د هغو زکات د اداء له وجوب څخه مخکښې وصول شوی دی بلکه د پورتني يادو شويو دلائلو له مخې دا څرګنديږي چه د دغو اکاؤنټونو د زکات د اداء وجوب هم په هغه وخت کښې کيږي کله چه د نورو روپو کال پوره شي.

د بانک د اکاؤنټونو د دَين د کيدو په بنياد باندې له هغو څخه د زکات په وضع کولو باندې دويم اعتراض دا دی چه کله يو څوک څه روپۍ بانک ته په قرض ورکړي نو هغه د ده له ملکيت څخه ووځي او د بانک په ملِکيت کښې داخليږي. له دې امله له کومو روپو څخه چه حکومت زکات وصولوي هغه د بانک ملِکيت دی او د دې هيڅ مثال په شريعت کښې نشته چه د يوه سړي زکات د بل چا له مال څخه وصول شي.

د دې اعتراض په ځواب کښې عرض دا دی چه د کوم دَين وصوليدل چه دومره يقيني وي لکه څومره چه د بانک اکاؤنټونه يقيني وي له هغه څخه د زکات د وصولولو ګڼ شمير مثالونه موجود دي چه هغه لره ئې تقديراً د دائن په قبضه کښې ګڼلی او له هغه څخه زکات وصول کړی دی. څو مثالونه ئې په لاندې ډول دي:

۱ - مخکښې تير شول چه حضرت ابو بکر صديق، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله تعالی عنهم دزکات روپۍ له ورکول شويو تنخواه ګانو څخه ګرځولې. د امام ابو عبيد رحمه الله د

روایت دا الفاظ مخکښې تیر شوي دي چه: **فان اخبره انّ عنده مالا قد حلّت فیه الزکٰوة قاصه ممّا یرید ان یعطیه.(کتاب الاموال ص۴۱۱)** ښکاره ده چه د تنخواه تر وصولیدلو مخکښې هغه به په بیت المال باندې دَین وو او لکه څرنګه چه د تنخواه لرونکي په هغه باندې قبضه نه وه د دې لپاره هغه تر اوسه په حقیقي توګه د هغه په ملکیت او قبضې کښې نه وو راغلی لیکن په قبضه کښې تر راتلو مخکښې به ئې له هغه څخه د زکات [1] وضع کول د دې لپاره وو چه هغه د دَین متیقَن د کیدو په بناء سره تقدیراً د تنخواه لرونکي په قبضې کښې راغلې وه. چنانچه امام محمد رحمه الله دا واقعه په موطاء کښې نقل کړی او په دې باندې ئې ترجمة الباب دا قائم کړی دی چه: **(باب الرجل یکون له الدین هل علیه فیه الزکٰوة؟)** او بیا ئې دا روایت نقل کړی دی چه:

**(کان ابو بکر اذا اعطی الناس اعطیاتهم یسأل الرجل هل عندك من مال قد وجبت فیه الزکٰوة. فان قال نعم اخذ من عطائه زکٰوة ذٰلك المال، و ان قال لا سلّم الیه عطاءه)** او بیا ئې فرمائلي دي: **قال محمد و بهذا نأخذ و هو قول ابی حنیفة رحمه الله.(موطاء امام محمد ص۱۷۰)**

او حضرت مولانا ظفر احمد عثماني صاحب رحمه الله د حضرت صدیق اکبر او حضرت عمر رضی الله تعالی عنهما او داسې نورو د دې عمل تر نقل کولو وروسته لیکلي دي چه: **فیه دلالة علی انهم کانوا یأخذون زکٰوة العطاء لکونه دَیناً مستحقًا علی بیت المال، و الا لم یکن لاخذ الزکٰوة منه معنی. (اعلاء السنن ج۱۲، ص۳۳۰، کتاب السیر باب العطاء بموت صاحبه بعد ما یستوجبه)** په دغو ټولو روایتونو او عبارتونو کښې د دې خبرې څرګند دلیل موجود دی چه له دَین متیقَن څخه په قبضه کښې تر راتلو مخکښې زکات وصولیدلی شي ځکه چه هغه د متیقَن والي په بناء سره تقدیراً د مالک په قبضې کښې دی.

۲ - د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله تعالی عنهما په باره کښې امام ابو عبید رحمه الله روایت کوي: **عن نافع عن ابن عمر انه کان یکون عنده الیتامٰی فیستسلف اموالهم لیحرزها من الهلاك، ثم یخرج [2] صدقتها من اموالهم و هی دَین علیه. (کتاب الاموال ص۴۵۱، فقره ۱۳۰۹، السنن الکبرٰی للبیهقی ج۴، ص۱۳۹، و مصنف عبد الرزاق ج۴، ص۷۰، ۹۸/۹۹)**

دلته خو دا مسئله جلا ده چه د نابالغ په مال باندې زکات واجب دی او که نه دی؟ او په یادې

---

[1] - په داسې حال کښې چه د اجرت دَین د قرض له دَین څخه ضعیف دی ۱۲

[2] - لقائل ان یقول ان هذا مبنی علی الولایة، فلیتأمل ۱۲ ارشید احمد

شوې واقعې کښې له "یتامیٰ" څخه مراد نابالغ یتیمان دي او که بالغ؟ لیکن دلته چه کومه خبره د غور وړ ده هغه دا ده چه حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په هغو یتیمانو باندې زکات فرض ګڼلو او د هغوی مالونه به ئې پخپله په قرض واخیستل. بیا ئې له هغو څخه د قرض والي په حالت کښې زکات ایستلو. دا صورت د موجوده بانک اکاؤنټونو له صورت سره ډیر نژدې دی. چه په دواړو ځایونو کښې روپو لره د ودیعت په ځای د قرض د جوړولو مقصد د دغو مالونو مضمون کول دي. او له دې سره سره چه د روپو تر قرض اخیستلو وروسته به هغه روپۍ د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په ملکیت کښې راتلې لیکن هغه له همدغو روپو څخه د اصل مالکانو زکات ادا کاوه. له دې څخه دا هم څرګندیږي چه دَین متیقّن لره تقدیراً د دائن په قبضې کښې په ګڼلو سره له هغه څخه زکات ادا کیدلی شي.

## د زکات د نیّت مسئله

د بانک له اکاؤنټونو څخه د زکات په وصولولو باندې دریمه شبهه دا شوې ده چه له بانکونو څخه په زوره د زکات د وصولولو په صورت کښې د مالونو د خاوندانو له خوا څخه نیّت متحقق نه وي، په دسې حال کښې چه د اداء نیّت د زکات لپاره شرط دی.

په دې سلسله کښې د مجلس په مخکښیني تحریر کښې عرض شوی وو چه د کومو مالونو د زکات د وصولولو حق حکومت ولري له هغو څخهد حکومت له خوا زکات وصولول پخپله د نیت قائم مقام ګرځي او په دلیل کښې د علامه شامي رحمه الله دا عبارت وړاندې شوی وو: **(فی مختصر الکرخی اذا اخذها الامام کرها فوضعها موضعها اجزأ، لانّ له ولایة اخذ الصدقات فقام اخذه مقام دفع المالك، وفی القنیة وفیه اشکال لانّ النیّة فیه شرط ولم توجد منه اه. قلت قول الکرخی رحمه الله فقام اخذه الخ یصلح للجواب، تأمل". (شامی ج۲، ص۳۵)**

په دې باندې ځینو حضراتو دا شبهه ښکاره کړې ده چه علامه شامي رحمه الله تر یاد شوي عبارت وروسته په متصله توګه لیکلي دي: **(ثم قال فی البحر، والمفتی به التفصیل ان کان فی الاموال الظاهرة یسقط الفرض، لانّ للسلطان او نائبه ولایة اخذها، وان لم یضعها موضعها لا یبطل اخذه وان کان فی الباطنة فلا)**. له دې څخه معلومیږي چه که چیرته د اموالِ باطنه ؤ زکات په جبر او زور سره واخیستل شي نو نه ادا کیږي.

په دې سلسله کښې عرض دا دی چه مجلس پخپل مخکښیني تحریر کښې کوم الفاظ ویلي وو چه "حکومت چه له کومو مالونو څخه د زکات د وصولولو حق لري په هغو کښې د حکومت وصول والی پخپله د نیّت قائم ګرځي" هغه ئې د همدې عبارت له مخې لیکلی وو. ځکه چه په مذکوره

عبارت کښې مدار په دې باندې دی چه سلطان ته د "اخیستلو ولایت" حاصل وو او که نه وو؟ او د بانک له اکاؤنټونو څخه د اخذ (د زکات د اخیستلو) دلائل مخکښې په تفصیل سره بیان شو له دې امله د بحث لاندې مسئله کښې په مذکوره عبارت سره په حکم کښې هیڅ فرق نه واقع کیږي

او د کومو مالونو چه حکومت ئې د زکات د وصولولو حق لري له هغو څخه د حکومت د زکات وصولول د نیت قائم مقام ګرځیدل د څلور ګوني امامانو په نزد مسلم (منل شوی) دی. اګر که ائمهٔ ثلاثه د نیت په معامله کښې دومره سخت دي چه په څینو صورتونو کښې دلالةً نیت هم معتبر نه ګڼي. مثلاً که چیرته یو څوک خپل ټول مال بې له نیت څخه صدقه کړي نو د حنفیه ؤ په نزد د ده زکات ساقطیږي. (عالمګیریه ج۱،ص۱۷۱) لیکن د ائمهٔ ثلاثه ؤ په نزد د نیت د نه موجود والي له وجې زکات نه ساقطیږي. (المغنی لابن قدامة ج۲،ص۶۳۹، والحطّاب ج۲،ص۳۵۷)

لیکن د حکومت د وصولولو په سلسله کښې درې ګوني امامان هم په دې باندې متفق دي چه هغه د نیت قائم مقام ګرځي چنانچه د مالکي فقهې مشهور کتاب "مواهب الجلیل" کښې دي: **اذا اخر رجل الزکٰوة بغیر علم من هی علیه وغیر اذنه فی ذٰلك، فان کان مخرج الزکٰوة الامام فالزکٰوة مجزئة.(مواهب الجلیل للحطّاب ج۲،ص۳۵۶)** او د شافعي فقهې په مشهور کتاب "نهایة المحتاج" کښې دي: **الاصح عند الشافعیة ان نیة السلطان تکفی اذا اخذ زکٰوة الممتنع.(نهایة المحتاج ج۳،ص۱۳۸)** او علامه ابن قدامه لیکي: **ولا یجوز اخراج الزکٰوة الا بنیة الّا ان یأخذها الامام منه قهراً.(المغنی لابن قدامة ج۲،ص۶۳۸)**

بیا دا ټول تفصیل خو د زکات د وصولیدو په وخت د زکات په اداء کولو کښې دی او که چیرته چا ته په دې کښې شبهه وي نو د هغه لپاره دا لاره موجوده ده چه هغه د زکات تر وضع کیدو وروسته نیت وکړي څکه چه پورته ویل شوي دي چه د بانک اکاؤنټونه تقدیراً د اکاؤنټ جوړوونکو ملک دي او که چیرته یو څوک فضولي د چا له مال څخه زکات اداء کړي نو تر څو پورې چه مال د فقیر (یا د هغه د وکیل) په قبضه کښې وي تر هغه وخته پورې اصل مالک د زکات د نیت په کولو سره د دې اجازه ورکولی شي. د دې تصریح د حنفي فقهاؤ په کلام کښې موجوده ده. چنانچه په فتاوی عالمګیري کښې دي چه (**رجل ادّی زکٰوة غیره عن مال ذٰلك الغیر فاجازه المالك، فان کان المال قائماً فی ید الفقیر جاز والّا فلا. کذا فی السراجیة.(عالمګیریة ج۱،ص۱۷۱)**

او که چیرته د اصل مالک له تقدیري ملک څخه بالکل صرف نظر وشي نو بیا هم تر څو پورې چه دا غالب ګومان و نه شي چه وضع شوی زکات مسکین ته رسیدلی دی تر هغه وخته پورې مالک د زکات نیت کولی شي. په شامیه کښې دي: **قال فی التتارخانیة الّا اذا وجد الاذن او اجاز**

المالكان اه. اى اجاز قبل الدفع الى الفقير لما فى البحر لوادى زكوة غيره بغير امره فبلغه فاجاز لم يجز لانها وجدت نفاذا على المتصدق لانها ملكه ولم يصر نائبا من غيره فنفذت عليه اه. (ردالمحتار ج۲،ص۲۶۹)

فقط والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب.

رشيد احمد — ولي حسن

غرة شعبان ۱۴۰۱ هجری — جامعه اسلاميه بنوري ټاؤن كراچي

محمد رفيع عثماني عفا الله عنه — محمد تقي عثماني عف الله عنه

دار العلوم كراچي — دار العلوم كراچي

## نظر ثالث

ځينو علماؤ په نوموړي تحرير باندې مفصل بحث را ليږلی دی په هغه باندې په ۲٤ محرم ۱۴۰۵ هجری كښې مجلس د غور په كولو سره د خپلې لومړنی فيصلې بيا توثيق وكړ. البته مجلس پخپلې يادې شوې ليكنې كښې ځينې مسامحات (خامی يا غلطی) تسليم كړ او د هغوی اصلاح د ضرورت فيصله ئې وكړه. د نتيجې له لحاظه دا اصلاحات د مجلس په مخكښينی فيصلې باندې هيڅ اثر نه اچوي.

د دغو اصلاحاتو مفصل تحرير د وخت د ختميدو له وجې په دې مجلس كښې و نه شو د دې لپاره دويم مجلس ته پريښودل شول. و الله المستعان.

دا ليكنه تر پوره كيدو وروسته په "البلاغ" مياشتنی او د "احسن الفتاوی" په تتمه كښې شائع كيږي ان شاء الله تعالى. **رشيد احمد**

# باب العشر و الخراج

## عشر بر حصهء مزارعان

**سوال**: عشر بر غلهء حصهء بزگران در شرع شریف واجب است یا نه؟ اگر واجب است پس کدام حصه بر اوشان صاحب شرع مقرر و معین فرمودند؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: بر وجوب عشر در حصة مزارعان اختلاف میان امام و صاحبان رحمهم الله تعالی مشهور است و در کتب مبسوطه مسطور اما فتوٰی بر قول صاحبین است و در نقل مذهب صاحبین هم اختلاف میان کتب فقه واقع شده است بعض تفصیل کرده اند که اگر بذر من جانب مالک باشد عشر بروست و اگر منجانب مزارع باشد پس عشر بر مالک و مزارع هر دو مطابق حصة ایشان است، و اکثر مصنفین تفصیل مذکور نکرده اند، بلکه بهر صورت عشر را مشترک از حصة هر دو می فرماین یعنی از خارج ارض عشر ادا کرده بعده تقسیم خواهند کرد. علامه شامی رحمه الله همین را ترجیح داده اند لهذا در رأیِ این فقیر همین مذهب معمول به است.

والدلیل علی کل ما اذعینا ما فی شرح التنویر وفی المزارعة ان کان البذر من رب الارض فعلیه ولو من العامل فعلیهما بالحصة وفی الشامیة. (قوله فی المزارعة) قال فی النهر ولو دفع الارض العشریة مزارعة ان البذر من قبل العامل فعلی رب الارض فی قیاس قوله لفسادها وقال فی الزرع لصحتها وقد اشتهر ان الفتوٰی علی الصحة وان من قبل رب الارض کان علیه اجماعا ومثله فی الخانیة والفتح (الی ان قال) لکن ما ذکر من التفصیل یخالفه ما فی البحر والمجتبی والمعراج والسراج والحقائق والظهیریة وغیرها من ان العشر علی رب الارض عنده علیهما عندهما من غیر ذکر هذا التفصیل وهو الظاهر لما فی البدائع من ان المزارعة جائزة عندهما والعشر یجب فی الخارج والخارج بینهما فیجب العشر علیهما الخ.

وقال ابن عابدین رحمه الله فی اٰخر هذا البحث فکان ینبغی للشارح متابعة ما فی اکثر الکتب. (ردالمحتار ج۲)

فقط والله تعالی اعلم ۳ ذیقعده ۱۳۷۱ هجری

## د کاریز په اوبو کښې نیم عشر دی

**سوال**: څه فرمائي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیان کرام چه زمونږ په کلیو کښې

کاریزونه او قناتونه دي چه له فصل څخه د اوبو تر ځایه پورې مثلاً دولس زره شرعي ګزه فاصله لري او هر کال کار او زحمت غواړي که چیرته کار پکښې و نه شي نو اوبو ئې وچیږي. او د کار خرخ او مصرف ئې دومره ډیر دی چه نیمائي بلکه د حاصلاتو دوه برخې ئې په کار کوونکو باندې لګیږي. آیا په دې صورت کښې عشر واجبیږي او که نیم عشر؟ پورتنی. یاده شوې مسئله په تحقیق او د کتابونو په حوالې سره ولیکئ تر څو زمونږ اشتباه رفع او پورته شي او تاسو ته الله تعالی د دواړو جهانونو اجر در په برخه کړي.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې صورت کښې نیم عشر واجب دی. **قیاساً علی الغرب والدالیة.**

**قال فی الشامیة تحت (قوله وقواعدنا لا تأباه) لان العلة فی العدول عن العشر الی نصفه فی مسقی غرب ودالیة هی زیادة الکلفة کما علمت وهی موجودة فی شراء الماء. (ردالمحتار ج۲، ص۵۵) فقط والله تعالیٰ اعلم**

**۱۲ ربیع الاول ۱۳۹۱ هجری**

## د عُشر له روپو څخه د خراج لپاره د قرض اخیستلو حکم

**سوال** : آیا د خراج د بیت المال لپاره د صدقې له بیت المال څخه قرض اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د صدقې له بیت المال څخه د خراج د بیت المال لپاره د قرض اخیستل جائز دي. که چیرته اهلِ خراج فقیران وي نو په دوی باندې د مستقرض منه (هغه مال چه په قرض ورکړل شوي وي) بیرته ورکول ضروري نه دي.

**قال شارح التنویر رحمه الله وعلی الامام ان یجعل لکل نوع بیتا یخصه. وله ان یستقرض من احدها لیصرفه للأخر ویعطی بقدر الحاجة. وقال ابن عابدین رحمه الله (قوله لیصرفه للأخر) ای لاهله قال الزیلعی ثم اذا حصل من ذٰلک النوع شیء ردهٗ فی المستقرض منه الا ان یکون المصروف من الصدقات او من خمس الغنیمة علی اهل الخراج و هم فقراء فانه لا یرد فیه شیئا لانهم مستحقون للصدقات بالفقر و کذا فی غیره اذا صرفه الی المستحق. (ردالمحتار ج۲، ص[illegible])** د دیني ادارو د مهتممینو لپاره له یوه حساب څخه د بل حساب لپاره د قرضې اخیستل جائز نه دي ځکه چه دوی د قرض د بیرته ورکولو قدرت نه لري کیدلی شي چه څه روپی بیرته وصول [illegible] شي د ده قدرت د بل په قدرت پورې تړلی دی کوم چه غیر معتبر دی.

فقط و الله تعالی اعلم

**۲۷ جمادی الاولی ۱۳۹۹ هجری**

## د میوې له پخیدو مخکښې کوم کافر ته د باغ د ورکولو حکم

**سوال**: که چیرته یو چا خپل باغ د میوې تر پخیدو مخکښې یا فصل تر رسیدو مخکښې په کافر باندې خرڅ کړې نو په دې صورت کښې به عشر په چا باندې واجب وي؟ په داسې حال کښې چه کافر خپل حاصل د میوې تر پخیدو وروسته لاس ته راوړی وي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې عشر په هیچا باندې نشته. ځکه چه د بائع له ملک څخه مخکښې له تحقق الوجوب څخه وتلی دی او په کافر کښې د عشر اهلیّت نشته

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲٤ رمضان المبارك ۱۳۹۹ هجری

## د غلبهٔ ماء (د اوبو د زیاتوالي) د اعتبار مطلب

**سوال**: یوه ټکړه زمکه درې میاشتې د سیلاب په اوبو خړوبیږي او شپږ میاشتې د ماشین په اوبو سره خړوبیږي. د سیلاب اوبو اگر که د وخت او میاشتو په اعتبار سره کمې دې لیکن د مقدار یا اندازې په اعتبار سره درې چنده د مشین تر اوبو زیاتې دي او فصل لره دسیلاب په اوبو د خړوبولو په وخت کښې د اوبو ضرورت زیات وي د هغه وخت په نسبت په کوم وخت کښې چه په مشین سره فصل خړوبیږي. په دې صورت کښې به پوره عشر ورکوي او که نیم عشر؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې عشر واجب دی. په شامیه کښې د زیلعي په حوالې سره **قیاساً علی السائمة والعلوفة اعتبار غلبة الماء بمعنی اکثر السنة** لیکلی دی لیکن دا قیاس په هغه صورت کښې صحیح دی چه ټول کال اوبو برابرې راشي، لکه څرنگه چه د سائمه او علوفه (څریدونکی او په کور کښې خوراک خوړونکي څاروي) د خوراک حاجت د تل لپاره یو شان دی. د سوال په صورت کښې چونکه د سیلاب اوبو په مقدار کښې زیاتې دي او د فصل زیاتره مدار هم په همدې اوبو باندې دی د دې لپاره دا په سائمه او علوفه باندې نه قیاس کیږي

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ ذی الحجة ۱٤۰۰ هجری

## په بیع الثمر قبل الادراک کښې عشر په مشتري (اخیستونکي) باندې دی

**سوال**: دلته په باغ کښې میوه ظاهریږي او خلک ئې قبل الادراک خرڅوي. نو آیا عشر به په بائع باندې وي او که په مشتري باندې؟ د امداد الفتاوی په ج ۲ او ص ۵۰ کښې دي چه "زما په نزد د ابو یوسف رحمه الله قول اعدل دی، په دې باندې باندې د میوې د پخیدو په وخت کښې چه باغ د چا په لاس کښې وي عُشر به هم په هغه باندې واجب وي" ـه دې باندې دا اشکال دی چه د امام اعظم رحمه الله په نزد د عُشر وجوب **عند ظهور الثمرة والزرع** دی. چه د دې په بناء سره په مذکوره

صورت کښې عشر باید په بائع باندې وي. او د بدائع ملا صاحب د امام اعظم رحمه الله دلیل مؤخر بللی دی. له دې څخه د هغه د عادت مطابق د امام رحمه الله د قول ترجیح ثابتیږي. تاسو محترم محقق ځواب ولیکئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قبل الادراک بیع په صورت کښې عُشر په مشتري (اخیستونکي) باندې دی. د امداد الفتاوی ځواب صحیح دی لیکن دا خبره چه د عُشر د وجوب وخت د دې بناء ګرځول شوې ده په دې کښې تسامح (خامي یا غلطي) شته. ځکه چه د دې بناء د صحیح تسلیمولو مقتضا دا ده چه د وجوب په وخت کښې د اختلاف له وجې په مشتري باندې د عُشر په وجوب کښې هم اختلاف باید وي. حالانکه په دې کښې هیڅ اختلاف نشته. د بیع قبل الادراک په صورت کښې په اتفاق سره عُشر په مشتري باندې دی. د وجوب په وخت کښې د اختلاف ثمره یوائې دا ده چه د وجوب له وخت څخه مخکښې ئې چه څومره میوه خوړلې وي په هغو باندې عشر واجب نه دی. یعنې دا اختلاف د **مایجب فیه العشر** په بناء سره دی نه د **من یجب علیه العشر** په بناء سره. د **من یجب علیه العشر** بناء د نماء پوره کیدل یعنې ادراک دی. چه له چا سره د میوې نماء تامه شي په هم هغه باندې به عشر واجب وي.

قال فی العلائیة ویؤخذ العشر عند الامام رحمه الله تعالیٰ عند ظهور الثمرة وبدو صلاحها برهان وشرط فی النهر امن فسادها، وفی الشامیة قال فی الجوهرة واختلفوا فی وقت العشر فی الثمار والزرع فقال ابو حنیفة وزفر رحمهما الله تعالیٰ یجب عند ظهور الثمرة والامن علیها من الفساد وان لم یستحق الحصاد اذا بلغت حدا ینتفع بها، وقال ابو یوسف رحمه الله عند استحقاق الحصاد وقال محمد رحمه الله اذا حصدت وصارت فی الجرین وفائدته فیما اذا اکل منه بعد ما صار جهیشا او اطعم غیره منه بالمعروف فانه یضمن عشر ما اکل واطعم عند ابی حنیفة وزفر رحمهما الله تعالیٰ وقال ابو یوسف ومحمد رحمهما الله تعالیٰ لا یضمن ویحتسب به فی تکمیل الاوسق ولا یحتسب به فی الوجوب یعنی اذا بلغ المأکول مع الباقی خمسة اوسق وجب العشر فی الباقی لا غیر وان اکل منها بعد ما بلغت الحصاد قبل ان تحصد ضمن عند ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالیٰ ولم یضمن عند محمد رحمه الله وان اکل بعد ما صارت فی الجرین ضمن اجماعاً وما تلف بغیر صنعه بعد حصاده او سرق وجب العشر فی الباقی لا غیر اھ. (رد المحتار ج۲، ص۵۸، بدائع ج۲، ص۶۳) وفی العلائیة ولو باع الزرع ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتری ولو بعده فعلی البائع (رد المحتار ج۲،ص۶۰) وقال الامام الکاسانی رحمه الله ولو باع الارض العشریة وفیها زرع قد ادرک مع زرعها او باع الزرع خاصة فعشره علی البائع دون المشتری لانه باعه بعد وجوب العشر وتقرره بالادراک ولو باعها والزرع بقل فان قصله المشتری للحال فعشره علی البائع ایضاً لتقرر الوجوب فی البقل بالقصل وان ترکه حتی ادرک فعشره علی المشتری فی قول ابی حنیفة ومحمد رحمهما الله تعالیٰ لتحول

الوجوب من الساق الی الحب وروی عن ابی یوسف رحمه الله انه قال عشر قدر البقل علی البائع وعشر الزیادة علی المشتری وکذلك حکم الثمار علی هذا التفصیل. (بدائع ج۲، ص۵۷)

پو نورو ټولو کتابونو کښې هم په همدې ډول سره راغلي دي. يعنې د وخت وجوب په اختلاف باندې يواځې مایجب فیه العشر متفرع بلل شوی دی نه من یجب علیه العشر. من یجب علیه العشر ئې د نماء په تام کيدو او ادراک باندې مبني بللی دی. د شامي او بدائع عبارت پورته راوړل شوی دی. د نورو کتابونو يواځې په حوالې باندې اکتفاء کيږي. فتح القدیر ج۲، ص۳ و ۸، عالمگیری ج۲، ۸۶ او ۱۸۶، طحطاوی ج۱، ص۳۲۰، مجمع الانهر ج۱، ص۲۱۹، تبیین وحاشیته للشبلی ج۱، ص۲۹۳، اعلاء السنن ج۱۲، ص۳۱۹.

البته د مبسوط عبارت د التباس موجب دی: ونصه قال واذا باع الارض وفیها زرع قد ادرك فعشر الزرع علی البائع لان حق الفقراء قد ثبت فی الزرع وهو ملك البائع عند ابی حنیفة رحمه الله تعالی بنفس الخروج کما قال الله تعالی ومما اخرجنا لکم من الارض وعند ابی یوسف رحمه الله بالادراك قال الله تعالی واٰتوا حقه یوم حصاده وعند محمد رحمه الله تعالی بالاستحکام وذلك کله حصل فی ملك البائع وهو نماء ارضه فوجب علیه عشره واما المشتری فقد استحقه عوضاً عما اعطی من الثمن فلا شیء علیه فان باعها والزرع بقل فعشره علی المشتری اذا حصده بعد الادراك لان وجوب العشر فی الحب وانعقاده کان فی ملك المشتری وهو نماء ارضه وعند ابی یوسف رحمه الله عشر مقدار البقل علی البائع لان ذلك القدر من النماء حصل فی ملکه اما عشر الحب فعلی المشتری وکذلك ان باع الزرع وهو قصیل فان قصله المشتری فی الحال فالعشر علی البائع وان ترکه علی الارض باذن البائع حتی استحصد فالعشر علی المشتری وکذلك حکم کل شیء من الثمار وغیره مما فیه العشر الخ (مبسوط ج۲، ص۲۰۶)

په دې عبارت کښې د من یجب علیه العشر د فیصلې لپاره د بار بار نماء، ادراک او استحصاد الفاظ راوړل شوي دي ليکن ور سره ورسره لان حق الفقراء قد ثبت الخ څخه په ظاهره دا څرګنديږي چه د من یجب علیه العشر فیصله د عشر د وجوب په وخت باندې مبني ده. ليکن د مبسوط په ټول عبارت باندې د غور له کولو څخه دا حقيقت څرګنديږي چه په ابتدائي توګه د ميوې په څومره اندازې باندې چه عشر واجبيږي هغه قرار نه لري بلکه د ميوې له نماء سره د عُشر په اندازه کښې هم زياتوالی راځي. د نماء د تمام (پوره کيدو) ، ادراک او استحصاد په وخت کښې د نماء د قرار له وجې د عشر اندازې ته هم قرار حاصليږي. د حضرت امام اعظم رحمه الله په نزد اګر که له ادراک څخه مخکښې عُشر واجبيږي ليکن دې ته قرار له ادراک څخه وروسته وي، د چا په ملک کښې چه د ميوې اندازې او عشر ته قرار حاصل شي عشر به هم په هغه واجب وي. له مبسوط پرته د بدائع

**بالقصل** کښې د مذکوره عبارت **لانه باعه بعد وجوب العشر و تقرره بالادراك** او **لتقرر الوجوب فى البقول بالقصل** کښې د دې تصريح دی. لکه څرنګه چه په بقل کښې عشر واجب وي ليکن د حب «داني» تر انعقاد وروسته هغه د حبوبو «دانو» خوا ته منتقل کيږي. دا قرار نه لري البته د بقل د قطع «پرې» کولو په صورت کښې په دې کښې عشر ته قرار حاصل شو. د دې لپاره د قطع کولو په صورت کښې عشر په بائع باندې دی. **لثبوت القرار فى ملكه.** او د نه قطع کولو په صورت کښې عشر په مشتري باندې دی. **لانتقال العشر الى الحب و قراره فى ملك المشترى.** لنډه دا چه د **من يجب عليه العشر** فيصله د عشر د وجوب په وخت باندې مبني نه دی بلکه د عشر د قرار نيولو په وخت باندې مبني دی. **وهو الادراك و الاستحصاد** د عشر د قرار نيولو دوه صورتونه دي. يو د زياتوالي نه امکان **و هو الادراك و الاستحصاد** په **من يجب عليه العشر** کښې په اتفاق سره د حکم مدار همدغه دی. د درايت له مخې هم دا خبره معقوله ده چه د چا په ملک کښې نماء تر سره کيږي عشر به هم په هغه باندې واجب وي. **لان سبب فرضيته الارض النامية بالخارج حقيقة** د عشر د قرار نيولو دويم صورت عدم امکان النقص «د کموالي نه امکان» دی، د ميوې او فصل په وتو سره با لا تفاق عشر واجبيږي.

**قال الامام الكاسانى رحمه الله واما سبب فرضيته فالارض النامية بالخارج حقيقة (وبعد اسطر) وعلى هذا يخرج تعجيل العشر وانه على ثلاثة اوجه فى وجه يجوز بلا خلاف وفى وجه لا يجوز بلا خلاف وفى وجه فيه خلاف اما الذى يجوز بلا خلاف فهو ان يعجل بعد الزراعة و بعد النبات لانه تعجيل بعد وجود سبب الوجوب و هو الارض النامية بالخارج حقيقة الا ترى انه لو قصله هكذا يجب العشر واما الذى لا يجوز بلا خلاف فهو ان يعجل قبل الزراعة لانه عجل قبل الوجوب و قبل وجود سبب الوجوب لانعدام الارض النامية بالخارج حقيقة لانعدام الخارج حقيقة و اما الذى فيه خلاف فهو ان يعجل بعد الزراعة قبل النبات قال ابو يوسف رحمه الله يجوز وقال محمد رحمه الله لا يجوز (و بعد سطرين) واما تعجيل عشر الثمار فان عجل بعد طلوعها جاز بالاجماع الخ (بدائع الصنائع ج۲، ص۵۳)**

ليکن د دې د قرار وخت په معنی د عدم امکان النقص يعني د خوړل شوي ميوې له اندازې څخه د عشر په سقوط کښې اختلاف دی. د امام رحمه الله په نزد له آفت څخه امن. عند الثاني رحمه الله ادراک. عند الثالث رحمه الله احراز في الجرين د قرار وخت دی. دا قرار د مسکينانو په حق يا **ما يجب فيه العشر** پورې اړه لري له **من يجب عليه العشر** دا هيڅ تعلق نه لري. **لان مداره هو النماء.**

له مذکوره تفصيل څخه ثابته شوه چه د مبسوط په تعليل کښې اصل مقصد **قرار العشر بالمعنى الاول اى الادراك** دی او د قرار الوجوب په وخت کښې د اختلاف له بيان څخه يواځې تائيد مقصود

دی. چه په دې مخصوص صورت کښې قرار بالمعنی الثانی هم حاصل شوی دی. دا د حکم مدار نه دی ځکه چه په بیع قبل الادراک بعد الامن کښې عند الامام رحمه الله قرار بالمعنی الثانی فی ملك البائع د حاصلیدو تر ځنګ عُشر په اتفاق سره په مشتري باندې دی. د حکم مدار ئې مخکښې بیان کړی دی. یعنې د نماء او استحصاد تمام (پوره والی) د مذهب له نورو کتابونو سره تطبیق بلکه پخپله د مبسوط د عبارت هم د مختلفو اجزاؤ تر منځ د توفیق له مخې مذکوره توجیه لازمه ده. پرته له دې ځخه چه یو محظور خو دا لازمیږي چه د مبسوط په عبارت کښې تضاد دی. د نماء، ادراک او استحصاد غوندې الفاظو ځخه ثابتیږي چه د حکم مدار د عشر قرار نیول دي. او د وجوب په وخت کښې د اختلاف له بیان ځخه څرګندیږي چه دا د حکم مدار دی. دویم محظور دا چه په تعلیل باندې د احکامو په تفریع کښې لاندیني اشکالات پیدا کیږي.

۱ - د امام رحمه الله په نزد د میوې وتل د عشر د وجوب وخت دی نو د بیع بعد الخروج قبل الادراک په صورت کښې عشر باید په بائع باندې وي. په مشتري باندې ولې دی؟

۲ - عند الثاني رحمه الله د وجوب وخت د میوې او فصل ادراک دی نو د ده په نزد په بقل او قصیل کښې عشر ولې دی؟

۳ - عند الثالث رحمه الله په وخت د احراز فی الجرین کښې عشر واجبیږي نو په بیع بعد الادراک کښې عشر په بائع باندې ولې دی؟ باید چه په مشتري باندې وای.

د مبسوط په عبارت کښې له استحکام ځخه خاص احراز فی الجرین مراد دی. ځکه چه تر ادراک او استحصاد وروسته پرته له احراز فی الجرین ځخه بل هیڅ حالت نه وي. پرته له دې ځخه د نورو تولو کتابونو په مطابق هم همدغه مفهوم دی. وقال الامام الکاسانی رحمه الله و عند محمد رحمه الله وقت التنقية والجذاذ فانه قال اذا كان الثمر قد حصد فی الحظیرة وذری البر. (الی قوله) هو يقول تلك الحال هی حال تناهی عظم الحب والثمر واستحکامها فکانت هی حال الوجوب. (بدائع ج۲، ص۶۳) له دې ځخه ثابته شوه چه له استحکام ځخه احراز فی الجرین مراد دی.

فان قلت هٰذا يخالف عبارة المبسوط وذٰلك كله حصل فی مِلك البائع، فالجواب انه محمول علی ایتاء حکم الحصول للقربة اوعلی التغليب لحصول الاکثر والامر المدار ای تمام نماء الثمرة والقرار فليتأمل.

فقط والله تعالی اعلم

۴ ربیع الاول ۱۳۸۸ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿كُلُوا مِن ثَمَرِهِۦٓ إِذَآ أَثْمَرَ وَءَاتُوا حَقَّهُۥ يَوْمَ حَصَادِهِۦ﴾

## السراج لاحكام العشر و الخراج

(۱) دعشر او خراج متعلق د اوه ويشت (۲۷) سوالونو جوابونه.

(۲) د بادشاه له طرفه د عشر او خراج عفوه كيدل.

(۳) آيا د پاكستان او هندوستان زمكې عشرى دى او كه خراجى ؟

✪✪✪✪✪✪
✪✪✪✪✪✪

**د عشر او خراج په اړه اوه ويشت (۲۷) پوښتنې:**

۱ - په مزارعت كښې خراج په چا باندې دى؟

۲ - د زمكې د اجارې په وخت كښې عشر او خراج د چا په غاړه دى؟

۳ - كومه حكومتې ماليه چه وصوليږي آيا په هغې سره عشر ساقطيږي او كه نه؟

۴ - په حكومتي ماليې سره خراج ادا كيږي او كه نه؟

۵ - د عشر او خراج صحيح مصارف كوم دي؟

۶ - د زمكې په كرنې باندې چه كومه خرڅه راځي هغه به ترې ګرځول كيږي او په باقي پاتې شوي باندې به عشر واجب وي او كه په ټول حاصل يا پيداوار باندې؟

۷ - د سركاري ماليې په ګرځولو سره به له پاتې حاصل څخه عشر وركول كيږي او كه په لومړي سر كښې چه څومره حاصل وي په هغه كښې عشر واجب دى؟

۸ - پوروړى به له پور څخه د زيات حاصل عشر وركوي او كه د ټول حاصل يا پيداوار؟

۹ - د عشر لپاره كوم نصاب ټاكل شوى دى او كه نه؟

۱۰ - په پنبې، سبزي او داسې نورو باندې هم عشر شته او كه يواځې په غنمو باندې دى؟

۱۱ - د كوچني او ليوني په زمكې باندې عشر واجب دى او كه نه؟

۱۲ - د جوماتونو، ديني مدرسو او داسې نورو لپاره په وقف شويو زمكو باندې عشر واجب دى او كه نه؟

۱۳ - په عُشري زمكو كښې په كومو حالاتو كښې لسمه حصّه او په كومو حالاتو كښې شلمه حصه واجبه ده؟

۱۴ - د خراج مقدار يا اندازه څه ده؟

۱۵ - که چیرته په زمکې باندې هیڅ هم و نه کري نو بیا هم خراج واجب دی؟

۱۶ - په مزارعت کښې که چیرته عشر په مشترک حاصل باندې وي نو آیا زمیندار دا حق لري چه د حاصل له ویش څخه مخکښې عشر وباسي اگر که مزارع (دهقان) په دې باندې خوښ نه وي؟

۱۷ - خراج په ټول کال کښـــې یواځې یوځل واجب دی اوکه د عشر غوندې په هر فصل یا کروندې باندې واجب دی؟

۱۸ - که چیرته په کوم آفت سره کرونده تباه شي یا غلا شي نو آیا عشر بیا هم پرې واجب دی او که نه؟

۱۹ - که چیرته د اوسیدنې د کور په حویلی یا سرای کښې څوک باغ ولگوي نو آیا په هغه باندې د عشر یا خراج حکم شته او که نه؟

۲۰ - یو څوک چه د بل چا په زمکې باندې په زوره قبضه وکړي نو د داسې زمکې عشر او خراج به د چا په ذمې باندې وي؟

۲۱ - که چیرته د کال په منځ کښې زمکه خرڅه کړي نو عشر او خراج به ئې د بائع (پلورونکي) په ذمه وي او که د مشتري (پیرونکي) په ذمه؟

۲۲ - د عشر تر ادا کولو وروسته چه د حاصل په قیمت باندې کال تیر شي نو په هغه باندې به زکات فرض وي او که نه؟

۲۳ - د څو کلونو عشر مخکښې له وجوب څخه ورکول جائز دي او که نه؟

۲۴ - یو سړی د زرعي زمکو تجارت کوي. نو آیا پرته له عُشر څخه د زمکې په مالیت باندې هم زکات فرض دی او که نه؟

۲۵ - کومه سبزي، میوه او داسې نور چه د زمکې مالک ئې پخپله استعمالوي آیا په هغو باندې هم عشر فرض دی او که نه؟

۲۶ - عُشر د حاصل له جنس څخه ورکول ضروري دي او که قیمت ئې هم ورکول کیدلی شي؟

۲۷ - کوم سړی چه پخپله هم مسکین وي او د هغه لپاره د زکات اخیستل روا وي آیا په داسې سړي باندې هم د زمکې له پیداوار څخه د عشر ایستل واجب دي؟ په داسې حال کښې چه دی له نورو څخه د زکات او عشر اخیستلو مستحق دی. نو آیا دی د خپلې زمکې عشر خپل ځان ته نه شي کینبودلی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:**

**۱ - په مزارعت کښې عشر او خراج په چا باندې دی؟**

موظف خراج په هر حالت کښې په زمیندار یعنې د زمکې په مالک باندې دی. د مقاسمه په خراج او عشر کښې دا تفصیل دی چه خراج مقاسمه په مصرف کښې د موظف خراج غوندې دی او

په مأخذ کښې د عشر غوندې دی. قال فی الشامية تحت (قوله خراج مقاسمة الخ) خراج المقاسمة کا لموظف مصرفاً و کالعشر مأخذاً (الٰی قوله) و قد تقرّر ان خراج المقاسمة کالعشر لتعلقه بالخارج ولذا يتکرّر بتکرر الخارج فی السنة و انما يفارقه فی المصرف فکل شیء يؤخذ منه العشر و نصفه يؤخذ منه خراج المقاسمة و تجری الاحکام التی قررت فی العشر وفاقاً وخلافاً.(ردالمحتار ج۳،ص۳۵۹)

په عشر او مقاسمه خراج کښې دا تفصيل دی چه په صحيح مزارعت کښې عشر په زميندار او مزارع باندې د خپلو خپلو حصو په اندازه دی. يعنې عشر يا مقاسمه خراج به په مشترکه توګه تر ادا کولو وروسته تقسيموي. قال فی الشامية ولو دفع الارض العشرية مزارعة ان البذر من قبل العامل فعلی ربّ الارض فی قياس قوله لفسادها و قالا فی الزرع لصحتها و قد اشتهر ان الفتوٰی علی الصحة و ان من قبل ربّ الارض کان عليه اجماعاً و مثله فی الخانية و الفتح (الٰی ان قال) لکن ما ذکر من التفصيل يخالفه ما فی البحر والمجتبٰی و المعراج و السراج و الحقائق و الظهيرية انّ العشر علی ربّ الارض عنده عليهما عندهما من غير ذکر هٰذا التفصيل وهو الظاهر لما فی البدائع من ان المزارعة جائزة عندهما و العشر فی الخارج بينهما فيجب العشر عليهما الخ و قال ابن عابدين رحمه الله فی اٰخر هذا البحث فکان ينبغی للشارح متابعة ما فی اکثر الکتب ثم اعلم ان هٰذا کله فی العشر اما الخراج [1] علی رب الارض اجماعاً.(ردالمحتار ج۲،ص۶۶)

او په فاسد مزارعت کښې که چيرته بذر (تخم) د زميندار له خوا څخه وي نو عُشر او خراج مقاسمه به هم په زميندار باندې وي او که چيرته بذر د مزارع له خوا څخه وي نو په دې کښې به تفصيل هغه وي کوم چه د اجارې په اړه په راتلونکي ځواب کښې راځي. ځکه چه دا صورت هم د اجارې په حکم کښې دی.

قال فی الشامية عشر جميع الخارج علی رب الارض عنده لان المزارعة فاسدة عنده فالخارج له اما تحقيقاً او تقديراً لانّ البذر ان کان من قبله فجميع الخارج له و للمزارع اجر مثل عمله و ان کان من قبل المزارع فالخارج له و لرب الارض اجر مثل ارضه الذی هو بمنزلة الاخراج الا ان عشر حصته فی عين الخارج و عشر حصة المزارع فی ذمة ربّ الارض و فائدة ذٰلك السقوط بالهلاك اذا نيط بالعين و عدمه اذا نيط بالذمة. (رد المحتار ج۲، ص۶۶)، وفی التحرير المختار للرافعی رحمه الله (قوله العشر عند الامام علی ربّ الارض مطلقاً) لانه ان کان البذر لرب الارض فلا شبهة فی وجوب العشر عليه و اما اذا کان للأخر فلان ربّ الارض موجر و مذهبه ان العشر علی

---

[1] - ای الخراج الموظف لما مرّ من ان خراج المقاسمة کالعشر مأخذاً ۱۲ منه

الموجر.(التحرير المختار ج١،ص١٣٩)

## د مزارعت صورتونه

١ - زمکه او تخم د يوه سړي وي او غوائي او عمل د بل سړي.
٢ - زمکه د يوه سړي وي او نور ټول شيان د بل.
٣ - عمل د يوه سړي وي او نور ټول شيان د بل وي.
۴ - زمکه او غوائي د يوه سړي وي او تخم او عمل د بل وي.
۵ - غوائي او تخم د يوه او زمکه او عمل د بل وي.
٦ - غويي د يوه سړي وي او نور ټول شيان د بل وي.
٧ - تخم د يوه سړي وي او نور ټول شيان د بل وي.

په دغو اوه قسمونو کښې لومړني درې ډولونه د صحيح مزارعت دي او څلور آخري ډولونه د فاسد مزارعت دي. **قال في شرح التنوير و كذا صحت لو كان الارض و البذر لزيد و البقر و العمل للأخر او الارض له و الباقي للآخر او العمل له و الباقي للآخر فهذه الثلاثة جائزة و بطلت في اربعة اوجه لو كان الارض و البقر لزيد او البقر و البذر له و الآخران للآخر او البقر او البذر له و الباقي للآخر.(ردالمحتار ج۵،ص١٩۵)**

### ٢ - د زمکې د اجارې په صورت کښې به عشر او خراج په چا باندې وي؟

په صحيح او فاسدې اجارې کښې موظف خراج (هغه خراج چه د وخت حاکم د حاصلاتو يوه ټاکلې اندازه په خلکو باندې کښيږدي) په هر صورت په زميندار باندې دی او په عشر او خراجِ مقاسمه (هغه خراج چه د رعيت او بادشاه تر منځ د حاصلاتو څه برخه سره تقسيم شي) کښې دا تفصيل دی چه که چيرته زميندار مزدوه زياته اخيستله او له مستأجر (چا ته ئې چه زمکه په اجرت ورکړې وي) سره ډير کم شی پاتې کيده نو عشر او خراجِ مقاسمه به په زميندار باندې وي او که چيرته ئې اجرت يا مزدوه کمه اخيستله او مستأجر ته زيات شی پاتې کيده نو عشر او خراجِ مقاسمه په مستأجر باندې دی. په دې زمانه کښې په عمومي توګه اجرت کم اخيستل کيږي او د مستأجر آمدني زياته وي د دې لپاره عشر او خراجِ مقاسمه به په مستأجر باندې وي.

**قال في شرح التنوير و العشر على الموجر كخراج موظف و قالا على المستأجر كمستعير مسلم و في الحاوي و بقولهما نأخذ و في الشامية قلت و لكن افتى بقول الامام جماعة من المتأخرين (الى ان قال) لكن في زماننا عامة الاوقاف من القرى و المزارع لرضا المستأجر بتحمل غراماتها و مؤنها يستأجرها بدون اجر المثل بحيث لا تفي الاجرة و لا اضعافها بالعشر او خراج المقاسمة فلا ينبغي العدول عن الافتاء بقولهما في ذلك لانهم في زماننا**

يقدرون اجرة المثل بناءً على ان الاجرة سالمة لجهة الوقف وان المستأجر ليس عليه سوى الاجرة فان اجرة المثل تزيد اضعافاً كثيرة كما لا يخفى فان امكن اخذ الاجرة كاملة يفتى بقول الامام والا فبقولهما لما يلزم عليه من الضرر الواضح الذى لا يقول به احد والله تعالى اعلم (ردالمحتار ج۲، ص۷۵)

**۳ - په حکومتي ماليې سره عُشر نه ساقطيږي**

په حکومتي ټيکس يا ماليې سره عُشر نه ساقطيږي. د فقهې د کتابونو له دې عبارت چه (لا يجتمع العشر مع الخراج) ځنې خينو ته اشتباه ور لويدلې ده چه د حکومتي ماليې په ادا کولو سره عشر ساقطيږي. حالانکه له دې جزئيې څخه مقصد دا دی چه له خراجي زمکې څخه سره له دې چه خراج تر اخيستل کيږي د عشر اخيستل يا له عُشري زمکې څخه سره له دې چه عُشر اخيستل کيږي د خراج اخيستل جائز نه دي. دا مطلب نه دی چه له عشري زمکې څخه د خراج په ادا کولو سره عشر ساقطيږي. قال فى شرح التنوير ولا يؤخذ العشر من الخارج من ارض الخراج لانهما لا يجتمعان خلافاً للشافعى وفى الشامية اى لو كان له ارض خراجها موظف لا يؤخذ منها عشر الخارج وكذا لو كان خراجها مقاسمة من النصف ونحوه وكذا لو كانت عشرية لا يؤخذ منها خراج لانهما لا يجتمعان ولذا لم يفعله احد من الخلفاء الراشدين والا لنقل وتمامه فى الفتح. (ردالمحتار ج۳، ص۲۶۵)

لنډه دا چه عشر عبادت دی چه ادا کول ئې لازم دي. لکه ځرنګه چه د حکومت له خوا څخه انکم ټيکس او داسې نورو په وصولولو سره زکات نه ساقطيږي همدارنګه د زمکې د حکومتي ټيکس په ادا کولو سره عُشر نه معاف کيږي.

**۴ - په حکومتي ټيکس سره د خراج د ادا کيدو تفصيل**

حکومت چه په زمکې باندې کومې روپۍ وصولوي هغه په دوه ډوله دي: يو د اوبو قيمت چه "آبيان" ورته ويل کيږي. بل کومې روپۍ چه د "محصول" يا ټيکس په نامه سره وصوليږي. البته د لومړي ډول روپۍ په خراج کښې نه شميرل کيږي. البته د دويم ډول روپۍ په خراج کښې شميرل صحيح دي. له دې امله که چيرته په کومې زمکې باندې خراجِ مقاسمه فرض وي نو د خراج له ټولې اندازې څخه حکومتي محصول (دويم ډول) کم کړی شي او پاتې خراج دې ادا کړی شي. دا حکم د پاکستان د زمکو دی چيرته چه حکومت د مسلمانو دی. په هندوستان يا بل کوم غير مسلم حکومت کښې د پرتو زمکو د خراج په ادا کولو سره فرض نه ساقطيږي ځکه چه نه خو کافر حکومت د خراج د وصولولو حق لري او نه د هغه فوځ او داسې نور د خراج شرعي مصرف دي. د دې لپاره د هغه په مسلمانانو باندې فرض دي چه پخپله دې خراج وباسي او په ديني کارونو کښې دې ولګوي.

قال العلّامة عبد الغفور الهمايونی الشلدی فی رسالة "سراج الهدی فی تحقیق خراج السلد" واما آنچه حکام نصارٰی می گیرند پس در اداء خراج محسوب نه می گردد لان الکافرین لیس لهم و لایة اخذ الخراج من المسلمین و المؤمنین و ایضاً لیسوا بمصارف الخراج حتی اذا ادّی المسلمون الیهم مالاً بنیة الخراج لا یخرجون عن عهدته لانهم لیسوا بمقاتلین لاهل الحرب و لا دافعین اعداء الاسلام عنهم و عن دارهم بل هم اهل الحرب واعداء المسلمین والاسلام اعاننا الله تعالی علیهم والمصرف للخراج المقاتلون لاهل الحرب ودافعوا الاعداء عن دار الاسلام امّا عدم ولایة الکافرین لاخذ الخراج من المسلمین فلما مرّ من عبارة جامع الفصولین و امّا عدم کون الکافرین مصرفاً للخراج فلما ذکر فی الدّر المختار و الکنز و الهدایة فی فصل الجزیة من مصارف الخراج وسیجیء عباراتهم والکافرون لیسوا منهم اصلاً کما ستعرف. پس آنچه نصارٰی می گیرند محض بظلم و تعدی می گیرند که حساب آن بروز قیامت خواهد شد و مسلمانان را اعادۂ آن بروئے سوءِ خود باید کرد تا از عهدۂ آن عند الله تعالی بر آیند. (ثم قال بعد ذکر مصارف الخراج) و کفار اهل حرب چنانچه نصارٰی و غیرهم داخل درین مصارف نیستند که بدادنِ او شان خراج ادا شود. و قد صرّح بذلك صاحب الدر المختار ایضاً حیث قال فی باب المصرف و امّا الحربی و لو مستأمناً فجمیع الصدقات لا یجوز له اتفاقاً اه. فان قلت یفهم من عبارة رد المحتار انّ اهل الحرب اذا اخذوا الخراج من المسلمین فلا اعادة علیهم و تفصیله انّ صاحب الدر المختار قال فی باب زکٰوة الغنم اخذ البغاة و السلاطین الجائرة زکٰوة الاموال الظاهرة کالسوائم و العشر و الخراج لا اعادة علی اربابها ان صرف المأخوذ فی محله الأتی ذکره والا یصرف فیه فعلیهم فیما بینهم و بین الله تعالی اعادة غیر الخراج لانهم مصارفه اه. فقال المحشی تحت هٰذا القول و یظهر لی ان اهل الحرب اذا غلبوا علی بلدة من بلادنا کذٰلك لتعلیلهم اصل المسألة بانّ الامام لم یحمهم و الجبایة بالحمایة فقوله کذٰلك یدلّ علی ان حکم اهل الحرب مثل اهل البغاة اذا اخذوا الخراج فلا اعادة علی المسلمین فکیف تقول ان المسلمین یعیدون اذا اخذ منهم اهل الحرب قلت لفظ کذٰلك لیس اشارة الی عدم الاعادة بل اشارة الی عدم اخذ الامام ثانیاً بدلیل قوله لتعلیلهم اصل المسألة بانّ الامام لم یحمهم و الجبایة بالحمایة فان عدم حمایته انما هو دلیل علی عدم اخذ الامام ثانیاً منهم لا دلیل علی عدم اعادتهم فیما بینه و بین الله تعالی و المشار الیه بکذٰلك اعنی عدم اخذ الامام ثانیاً مذکور فی اول عبارة صاحب الحاشیة حیث قال (قوله اخذ البغاة) الاخذ لیس قیداً احترازیاً حتّی لو لم یأخذوا منه ذٰلك سنین و هو عندهم لم یؤخذ منه شیٔ ایضاً کما فی البحر و الشرنبلالیة عن الزیلعی و البغاة

قوم مسلمون خرجوا عن طاعة الامام الحق بان ظهروا فاخذوا ذلك نهر ويظهر لی ان اهل الحرب لو غلبوا علی بلدة من بلادنا كذلك لتعليلهم اصل المسألة بان الامام لم يحمهم و الجباية با لحماية اه فبا لجملة ههنا مسألتان احداهما ان البغاة اذا اخذوا الخراج و الصدقة فلا يأخذ الامام مرة اخرى و ثانيتهما ان اعادة الخراج على المسلمين بوجوههم غير لازم اذا اخذ البغاة سواء صرفوها فی محله اولم يصرفوه لانهم مصارفوه لكونهم مقاتلة لاهل الحرب لانهم قوم مسلمون خرجوا عن طاعة الامام بخلاف الصدقة فانها ان صرفت فی محلها لم يعيدوها و الا يعيدونها و فصل هاتين مسألتين صاحب الهداية والعلامة العينی فی شرح الكنز و صاحب المستخلص شرح الكنز قال صاحب الهداية والعلامة العينی فی شرح الكنز وصاحب المستخلص شرح الكنز قال صاحب الهداية واذا اخذ الخوارج الخراج وصدقة السوائم لا يثنی عليهم لانّ الامام لم يحمهم والجباية با لحماية و افتوا بان يعيدوها دون الخراج لانهم مصارف الخراج لانهم مقاتلة و الزكوة مصرفها الفقراء و لا يصرفونها اليهم و قيل اذا نوى بالدفع التصدق عليهم سقط عنهم و كذا الدفع الى كل جائر لانهم بما عليهم من التبعات فقراء والاول احوط اه. وقال العينی ولو اخذ الخراج والعشر و الزكوة بغاة لم تؤخذ مرة اخرى لانّ الامام لم يحمهم والاخذ بالحماية بخلاف ما اذا مر بهم هو فعشروه حيث يؤخذ منه ثانياً لان التقصير من جهته و الذمی كالمسلم فيه ثم اذا لم يؤخذ منهم ثانياً يفتون بان يعيدوها فيما بينهم و بين الله تعالى و قال فی المستخلص ولو اخذ الخراج او العشر و الزكوة بغاة لم يؤخذ اخرى اعلم ان ولاية الاخذ فی الخراج والعشر وزكوة السوائم و زكوة اموال التجارة انما هی للامام فان اخذت البغاة او سلاطين زماننا الخراج فلا اعادة على المالك ان يعطيها ثانيا وليس للامام ان يأخذ ثانياً لانه لم يحمهم ويفتی على ان للارباب ان يعيدوها بينهم و بين الله تعالى اويصرفونها الى مستحقيها واما الخراج فلا اعادة عليهم لانهم مصارف الخراج لكونهم مقاتلة و الخراج مصرفها المقاتلة بخلاف الزكوة اه فصاحب رد المحتار اشار بلفظ كذلك الى المسألة الاولى اعنی عدم الاخذ لاتحاد العلة وهو عدم الحماية من الامام لا الى المسألة الثانية اعنی عدم الاعادة على اربابه لعدم اتحاد العلة لان علة عدم الاعادة اما صرفهم الى مصارفه اولانهم مصارفه لكونهم مقاتلة والكفار ليسوا بمصارف الزكوة والخراج وليس لهم الاخذ و اداءها الى مصارفها فافهم نعم لو كان من طرفهم وال مسلم فيجوز له اخذ الخراج كما صرّح به الكتب وفی هذه الديار الولاة كفار وليسوا بمسلمين فلم يكن لهم ولاية اخذ الخراج انتهى قول الهمايونی.

**فائده** : په دې خای باندې د علامه شامي رحمه الله په تحرير کښې اشکال دی. کما قال الرافعی رحمه الله تعالیٰ (قوله الاخذ لیس قیداً الخ) کون الاخذ لیس بقید انما یظهر فی عبارة الکنز و هی لو اخذ الخراج و العشر و الزکوٰة بغاة لم یؤخذ اخریٰ لا فی عبارة المصنّف و هی قوله لا اعادة الخ فانه اذا لم یأخذوا منه سنین و هو عندهم یجب علیه الاخراج بنفسه و تکون ذمته مشغولة فیما بینه و بین الله تعالیٰ و ان کان العامل لیس له ولایة الاخذ لان الجبایة بالحمایة تأمل (التحریر المختار ج۱، ص۱۳۲) و قال الهمایونی رحمه الله تعالیٰ اذا تأملت حق التأمل فقد زلت اقدام هٰذا الهمام فی هٰذا المقام و التبس علیه بمسألة اخریٰ و لم یفرق بینهما تقریره ان صاحب الدر المختار ذکر فی کتابه مسألة عدم الاعادة لا مسألة عدم الاخذ حیث قال لا اعادة علی اربابها و لم یقل لا یأخذ منهم ثانیاً ثم ذکر المحشی تحت هٰذه المسألة عبارة تدلّ علی ان صاحب الدر متعرض لمسألة عدم الاخذ حیث قال (قوله اخذ البغاة الخ) الاخذ لیس قیداً احترازیاً حتی لو لم یأخذوا منه ستین سنة و هو عندهم لم یؤخذ منه شیء ایضاً کما فی البحر و الشرنبلالیة عن الزیلعی اهـ فقوله ایضاً یدل علی ان صاحب الدر المختار متعرض لمسألة عدم الاخذ لان المفهوم من قولهم انهم اذا لم یأخذوا الخراج منه ستین سنة و هو عندهم فآض الامر ای رجع الحکم الذی اثبت صاحب الدر و هو عدم الاخذ للامام ثانیاً ایضاً (رجوعاً) فلم یکن الاخذ فیه قیداً احترازیاً یحترز به عن عدم اخذ البغاة الخراج بل حکم اخذهم الخراج و عدم اخذهم اذا کان عندهم فی دار البغی واحد مع ان صاحب الدر لم یتعرض مسألة عدم الاخذ اصلاً فالتبس علی المحشی مسألة بمسألة اخریٰ فهو ظن انّ هٰذا مسألة عدم اخذ الامام ثانیاً مع انها مسألة عدم اعادة المسلمین فافهم، الا ان یقال ان صاحب الدر اورد اٰخر المسألة و ترک اوّلها للاعتماد علی شهرته و لکونه غیر مختلف فیه و عدم کونه ذات تفصیل فان مسألة عدم الاعادة لیست بمسألة مستقلة برأسها بل کالتذییل و التتمیم لمسألة عدم الاخذ و لهٰذا تری عبارات الکتب المارة اوردن هٰذه المسألة بطریق التبع و التذییل و التتمیم لا بطریق الاستقلال و الاصلیة کما لا یخفی علی المتدرب فی اسالیب الکلام فاورد المحشی هٰذه العبارة تنبیهاً علی اول المسألة و اشعاراً علی اصلها و یدل علیه قوله لتعلیلهم اصل المسألة ای اصل مسألة عدم الاخذ ایضاً لانّ معنی قوله لا اعادة علی اربابها لیس علی المالک ان یعطیها ثانیاً و لیس للامام ان یأخذها مرّةً اخریٰ کما یدل علیه عبارة المستخلص حیث قال فان اخذت البغاة او سلاطین زماننا الخراج فلا اعادة علی المالک یعنی لیس علی المالک ان یعطیه ثانیاً و لیس للامام ان یأخذه ثانیاً اهـ فانه فسر عدم الاعادة بکلیهما فیکون معنی

قول الدر الى اعادة على اربابها لا يعطون بوجوههم مرّة اخرى ولا يأخذ منهم الامام ثانياً ان صرف المأخوذ فى محله والا يصرف فيه فعليهما اعادة غير الخراج لوجوههم خروجاً عن العهدة فيما بينهم وبين الله تعالى ولكن لا يأخذ منهم الامام ثانياً فى هذه الصورة ايضاً ولهذه النكتة لم يقيد صاحب الدر الاعادة الاولى بقوله فيما بينهم وبين الله تعالى وقيد الاعادة الثانية به لانّ المراد بالاعادة الاولى هو المطلق وبالثانية المقيد، فالحاصل ان الامام لا يأخذ منهم مرة اخرى مطلقاً سواءٌ صرفوه فى محله او لم يصرفوه ولكن بوجوههم يعيدون غير الخراج ان لم يصرف فى محله ولم يعيدوه ان صرف فى محله. والله اعلم بالصواب.

**۵ - د عشر او خراج مصرف**

د عشر مصرف هغه دی کوم چه د زکات دی او د خراجِ مقاسمه او موظف مصرف عامه گټې دي. کوم چه د جوماتونو او مدرسو جوړول هم پکښې داخل دي.

قال فى شرح التنوير فى فصل الجزية ومصرف الجزية والخراج (الى قوله) مصالحنا ثغور وبناء قطنرة وجسر وكفاية العلماء والمتعلمين وبه يدخل طلبة العلم والقضاة والعمال ككتبة قضاة وشهود قسمة ورقباء سراحل ورزق المقاتلة وذراريهم اى ذرارى من ذكر وقال فى الشامية (قوله ومصرف الجزية والخراج الخ) قيدبا لخراج لان العشر مصرفه مصرف الزكوة كما مرّ وايضاً فيها تحت (قوله وبناء قنطرة) ومثله بناء مسجد وحوض ورباط وكرى انهار عظام غير مملوكة كالنيل وجيحون وكذا النفقة على المساجد فيدخل فيه الصّرف على اقامة شعائرها من وظائف الامامة والأذان ونحوهما (قوله وكفاية العلماء) هم اصحاب التفسير والحديث والظاهر ان المراد بهم من يعلم العلوم الشرعية فيشمل الصّرف والنّحو وغيرهما وفى التعبير با لكفاية اشعار بانه لا يزاد عليها وكذا يشعر باشتراط فقرهم الخ. (ردالمحتار ج۳، ص۳۸۷)

**۶ - عُشر په ټول پيداوار باندې پرته د مصارفو له ګرځولو څخه واجب دی**

په ټولو حاصلاتو باندې بې د مصارفو له ګرځولو څخه عشر واجب دی قال فى شرح التنوير بلا رفع مؤن اى كلف الزرع وبلا اخراج البذر لتصريحهم بالعشر فى كل الخارج. (ردالمحتار ج۲)

**۷ - د حکومتي ټيکس له ګرځولو پرته په ټولو حاصلاتو باندې عشر واجب دی**

په لومړي سر کښې چه څومره حاصلات لاس ته راوړي د هغو ټولو عشر واجب دی. داسې نه چه ټيکس ترې وباسي او بيا عشر ادا کړي لما مرّ فى جواب المسألة السابقة.

**۸ - مقروض به پرته د قرض له ګرځولو څخه له ټولو حاصلاتو څخه عشر ادا کوي**

قرض هم نه ترې کرخول کیږي بلکه په ټولو حاصلاتو باندې عشر واجب دی **قال فی شرح التنویر ویجب مع الدّین.(ردالمحتار ج۲)**

**۹ ـ د عشر هیڅ نصاب نشته**

د عشر د وجوب لپاره هیڅ نصاب شرط نه دی. البته له یوه صاع (۸۸□ه لیتر) څخه په کم باندې به عشر نه وي. **قال فی شرح التنویر ویجب العشر فی عسل وان قل (الی ان قال) بلا شرط نصاب وبقاء وحولان حول، وفی الشامیة (قوله بلا شرط نصاب وبقاء) فیجب فیما دون النصاب بشرط ان یبلغ صاعاً وقیل نصفه. (رد المحتار ج۲، ص۶۷)** د صاع د اندازې د معلومولو آسان صورت دا دی چه له **۳/۵۳۸** کیلو ګرامه وربشو څخه چه کوم لوښی ډکیږي هغه صاع ده. د صاع پوره تحقیق د بنده په "بسط الباع لتحقیق الصاع" په رسالې کښې دی

**۱۰ ـ په پنبې، سبزي او داسې نورو باندې هم عشر شته**

په پنبې، غنمو، سبزي. ترکاري او داسې نورو هر ډول ترکاریو په حاصلاتو باندې عُشر شته لیکن په پروړې، د جوارو په وچو ټنټلونو او داسې نور چه دانه ترې اخیستل شوې وي عشر نشته البته که چیرته د دانې له نیولو څخه مخکښې قطع کړی شي نو په هغو باندې هم عشر شته

**قال فی شرح التنویر ویجب العشر فی عسل وان قلّ (الی ان قال) الا فیما لا یقصد به استغلال الارض نحو حطب وقصب فارسی وحشیش وتبن وسعف وصمغ وقطران وخطمی واشنان وشجر قطن وبادنجان وبذر بطیخ وقثاء وادویة کحلبة وشونیز حتی لو اشغل ارضه بها یجب العشر وفی الشامیة تحت (قوله بلا شرط نصاب وبقاء) وفی الخضراوات التی لا تبقی وهذا قول الامام وهو الصحیح کما فی التحفة (قوله الّا فیما لا یقصد الخ) اشار الی ان ما اقتصر علیه المصنف کالکنز وغیره لیس المراد به ذاته بل لکونه من جنس ما لا یقصد به استغلال الارض غالباً وان المدار علی القصد حتی لو قصد به ذلک وجب العشر کما صرّح به بعده (قوله وتبن) غیر انه لو فصل قبل انعقاد الحب وجب العشر فیه لانه صار هو المقصود وعن محمد فی التبن اذا یبس العشر (قوله وشجر قطن) اما القطن نفسه ففیه العشر کما مرّ (قوله وبادنجان) عطف علی قطن فلا یجب فی شجره ویجب فی الخارج منه (قوله وبذر بطیخ وقثاء) ای کل حب لا یصلح للزراعة کبذر البطیخ والقثاء لکونها غیر مقصودة فی نفسها بحر ای لانه لا یقصد زراعة الحب لذاته بل لما یخرج منه وهو الخضراوات وفیها العشر کما مرّ (الی ان قال) ویجب فی العصفر والکتان وبذره لان کل واحد منها مقصود فیه (قوله حتی لو اشغل ارضه بها یجب العشر) فلو استنمٰی ارضه بقوائم الخلاف وما اشبهه او بالقصب او الحشیش وکان یقطع ذلک ویبیعه کان فیه العشر (الی ان قال) و**

يبيع ما يقطعه ليس بقيد ولذا اطلقه قاضي خان. (رد المحتار ج۲، ص۶۸)

۱۱ - د كوچنى او ليونى په ځمكې باندې عشر

د كوچني او ليوني په ځمكې باندې عشر فرض دی. قال في شرح التنوير ويجب مع الدّين وفي ارض صغير ومجنون ومكاتب ومأذون وفي الشامية فلا يشترط في وجوبه العق والبلوغ والحرّية. (رد المحتار ج۲، ص۵۳)

۱۲ - په وقف شوې ځمكې باندې عشر

په وقف شوې ځمكې باندې هم عشر واجب دی. لما في العلائية ويجب (الى قوله) ووقف، وفي الشامية افادان ملك الارض ليس بشرط لوجوب العشر وانما الشرط ملك الخارج لانه يجب في الخارج لا في الارض فكان ملكه لها وعدمه سواء بدائع. (رد المحتار ج۲، ص۵۳)

۱۳ - د عشر اندازه

عشري ځمكه كه چيرته د باران يا سيلاب يا قدرتي چينې له اوبو څخه خړوبيدله نو د داسې ځمكې په حاصلاتو كښې په لسو كښې د يوې برخې (۱/۱۰) وركول واجب دي. او كه چيرته اوبو په محنت يا قيمت سره وركول كيدلې لكه د كوهي اوبو. واټر پمپ او د نهر يا ويالې اوبو نو په هغه كښې په شلو كښې د يوې برخې وركول واجب دي. د نهر د اوبو د آبيانې په ادا كولو سره هغه له حكومت څخه اخيستل كيږي او كه چيرته د عشر او نيم عشر دواړه ډوله اوبو استعماليدلې نو غالب (ډيرو) لره اعتبار دی. كه چيرته د عشر اوبو غالبې وې نو لسمه او كه د نيم عشر اوبو غالبې وې نو شلمه برخه به واجبه وي. او كه چيرته دواړه ډوله اوبو ئي برابرې خوړلې نو د عشر به يعنې د ټولو حاصلاتو به په څلويښتو كښې درې برخې (۳/۴) واجبې وي.

في عشر التنوير يجب في مسقى سماء وسيح ونصفه في مسقى غرب ودالية، وفي الشرح لكثرة المؤنة وفي كتب الشافعية اوسقاه بماء اشتراه وقواعدنا لا تأباه ولو سقى سيحاً وبآلة اعتبر الغالب ولو استويا فنصفه وقيل ثلاثة ارباعه، وفي الحاشية (قوله وقواعدنا لا تأباه) كذا نقله الباقاني في شرح الملتقى عن شيخه البهنسي لانّ العلّة في العدول عن العشر الى نصفه في مسقى غرب ودالية هي زيادة الكُلفة كما علمت وهي موجودة في شراء الماء الخ (قوله وقيل ثلاثة ارباعه) قال في الغاية قال به الائمة الثلاثة فيؤخذ نصف كل واحد من الوظيفتين ولا نعلم فيه خلافاً اه اى لان نصفه مسقى سيح ونصفه مسقى غرب فيجب نصف العشر ونصف نصفه ورجع الزيلعي الاوّل. (رد المحتار ج۲، ص۵۵)

قلت لما اختلف الترجیح فالاحتیاط فی الاخذ بالثانی.

**۱۴ - د خراج اندازه**

د عراق د فتح په وخت کښې حضرت عمر رضی الله عنه په فتح شویو زمکو باندې د جریب له حسابه خراج موظف تعین کړی وو. د هغه جریب ټوله مسافه ۶۰×۶۰ ذراعه وو او دلته له ذراع څخه مراد اوه قبضې دي په داسې حال کښې چه عام ذراع شپږ قبضې دي. یوه قبضه مساوي ده له څلورو ګوتو سره. په دې حساب سره نوموړې ذراع ۱/۷۵ فټه شو. ۶۰ ذراع=۱۰۵ فټ= ۳۵ ګزه =۳۲ متره. لهذا جریب مساوي شو له ۱۲۲۵ مربع ګز او ۱۰۲٤ مربع متر سره.

حضرت عمر رضی الله تعالی عنه په لاندینۍ شرحې سره خراج وټاکه:

په عامو دانو او جنسونو باندې في جریب یو درهم (۳/۵ ماشه =۳/٤۰۲ ګرامه سپین زر) او له یوه صاع (۵/۸۸ لیتره) حاصلاتو څخه. (که چیرته هیڅ شی به ئې هم پکښې نه وو کرلی نو په ظاهره خو امام اختیار لري چه له کوم نس څخه ئې غواړي وصول دې کړي) او په داسې سبزیو باندې چه بوټي به ئې تر ډیرې مودې پورې میوه ورکوي لکه ککړي (تره). خربوزه. تور بانجان او داسې نور فی جریب پنځه درهمه او د انګورو داسې ګڼ باغ چه په هغه کښې زراعت و نه شي لس درهمه فی جریب.

له انګورو پرته د نورو میوو ګڼ باغونه هم د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد د انګورو د باغ په حکم کښې دی او د امام محمد رحمه الله په نزد په حکم کښې د موظف کښې نه دی. د امام ابو یوسف رحمه الله قول له ارفق والي پرته روایةً او درایةً هم ارجح معلومیږي. **اما درایةً فوجهه ظاهر و اما روایةً فلانه هو المذکور فی المتون و تقدم الامام الثانی علی الثالث.**

د حضرت عمر رضی الله عنه له خوا څخه د مذکور تفصیل له مخې د توظیف وجه دا ده چه د دانې او اجناسو لپاره په هر موسم کښې د تخم د اچولو له مصرفونو او محنت پرته د فصل د ریبلو، درمند، او په هوا کښې د بادولو په صورت کښې د پاکولو سختۍ برداشت کیږي او ګټه کمه ده او په سبزیو کښې منفعت او ګټه زیاته ده او مشقت (تکلیف) کم دی ځکه چه د هغو یو ځل تخم اچول د ډیرې مودې لپاره کار ورکوي او د ریبلو، درمند، په هوا کښې د بادولو تکلیف پکښې نشته. او د باغ حاصلات تر ټولو زیات دي او د بار بار تخم اچولو او داسې نورو تکلیف پکښې نشته.

په یادو شویو اجناسو کښې د حضرت عمر رضی الله عنه په توظیف باندې زیاتوالی جائز نه دی او کمول ترې جائز دی. او چه کله ټول حاصلات د حضرت عمر رضی الله عنه له خراج څخه دوه چنده نه وي نو تر نیمو حاصلاتو پورې په خراج کښې کمی کول واجب دي.

د کومو شیانو د خراج تعیین چه له حضرت عمر رضی الله عنه څخه ثابت نه دي لکه داسې باغ چه په هغه

کښې نور څه هم کرل کيږي. او په سبزيو کښې اوړه، پياز، ګاځره، مولۍ او داسې نور او نور فصلونه لکه زعفران، پنبه او داسې نورو کښې د حاصلاتو د تحمل مطابق خراج ټاکل کيږي ليکن که خراجِ موظف وي او که خراجِ مقاسمه په دواړو کښې له ټولو حاصلاتو څخه تر نيمائي زيات خراج مقررول جائز نه دي او له خُمس (پنځمې برخې) څخه کم مقررول جائز دي ليکن بهتره دا ده چه له دې څخه کم نه کړای شي. البته په کومې زمکې کښې چه محنت ډير زيات وي او حاصلات ئې ډير کم وي نو له خُمس څخه هم کم خراج اخيستل کيږي.

که چيرته په زرعي يا د سبزۍ د کرنې په زمکې باندې باغ ولګوي نو چه کله د حضرت عمر ﷺ له توظيف څخه دوه چنده ميوه ونيسي په دې وخت کښې په دې باغ باندې خراج لګول کيږي، تر دې مخکښې نيمه ميوه په خراج کښې اخيستل کيږي. په دې شرط چه نيمه ميوه د زرع له خراج او په رطبه زمکه کښې د رطبه تر او تازه خرما) له خراج څخه کم نه وي. او که نه نو بيا خراجِ زرع يا خراجِ رطبه اخيستل کيږي.

که چيرته چا د باغ ونې قطع کړي او په هغه کښې ئې د فصل کرل شروع کړل نو له هغه څخه د باغ خراج اخيستل کيږي. همدارنګه په زمکې کښې د سبزيو د صلاحيت تر څنګ د سبزيو د کرنې په ځای چه فصل وکري نو په هغه باندې به هم د سبزيو خراج وي.

خراجِ موظف په خراج مقاسمه باندې بدلول او د دې برعکس جائز نه دی. البته د دې له تعليل (لان فيه نقض العهد وهو حرام) څخه معلوميږي چه د زميندارانو په رضا سره تبديلول جائز دي.

قال في شرح التنوير (وضع عمر رضي الله تعالیٰ عنه على السواد لكل جريب) هو ستون ذراعاً في ستين بذراع كسرى سبع قبضات (صاعاً من بر او شعير و درهماً و لجريب الرطبة خمسة دراهم و لجريب الكرم او النخل متصلة) قيد فيهما (ضعفها و لما سواه) مما ليس فيه توظيف عمر (كزعفران و بستان) هو كل ارض يحوطها حائط وفيها اشجار متفرقة يمكن الزرع تحتها فلو ملتفة اى متصلة لا يمكن زراعة ارضها فهو كرم (طاقته و) غاية الطاقة (نصف الخارج) لان التنصيف عين الانصاف (فلا يزاد عليه) في خراج المقاسمة ولا في الموظف على مقدار ما وظفه عمر رضي الله تعالیٰ عنه وان اطاقت على الصحيح. كافي (وينقص مما وظف) عليها (ان لم تطق) بان لم يبلغ الخارج ضعف الخراج الموظف فينقص الى نصف الخارج وجوباً وجوازاً عند الاطاقة وينبغي ان لا يزاد على النصف ولا ينقص عن الخمس حدادي. وفيه لو غرس بارض الخراج كرماً او شجراً فعليه خراج الارض الى ان يطعم و كذا لو قلع الكرم و زرع الحب فعليه خراج الكرم و اذا اطعم فعليه قدر ما يطيق ولا يزيد على عشرة دراهم ولا ينقص عما كان وفي الشامية (قوله من بر او شعير) اى فهو مخيّر في اعطاء الصاع من

الشعیر او البر کما فی النهایة معزیاً الی فتاوٰی قاضی خان و الصحیح انه مما یزرع فی تلك الارض کما فی الکافی شرنبلالیة و مثله فی البحر و بقی ما اذا اعطلها و الظاهر ان الامام یخیر تأمل. (قوله الرطبة) بالفتح و الجمع الرطاب و هی القثاء و الخیار و البطیخ و الباذنجان و ما جری مجراه و البقول غیر الرطاب مثل الکراث شرنبلالیة (قوله فلو ملتفة الخ) فی المصباح التف النبات بعضه ببعض اختلط ثم اعلم ان حاصل ما ذکره من الفرق بین البستان و الکرم هو ان ما کانت اشجاره ملتفة فهو کرم و ما کانت متفرقة فهو بستان و قد عزاه فی البحر الی الظهیریة و مثله فی کافی النسفی و مقتضاه ان الکرم لا یختص بشجر العنب مع ان ما فی المتون من عطف النخل علی الکرم یفید انه غیره و فی الاختیار و الجریب الذی فیه اشجار مثمرة ملتفة لا یمکن زراعتها، قال محمد رحمه الله یوضع علیه بقدر ما یطیق لانه لم یرو عن عمر رضی الله تعالٰی عنه فی البستان تقدیر فکان مفوّضاً الی امر الامام و قال ابو یوسف رحمه الله تعالٰی لا یزاد علی الکرم لانّ البستان بمعنی الکرم فا لوارد فی الکرم وارد فیه دلالة و ان کان فیه اشجار متفرقة فهی تابعة للارض اه. و مفاد هذا ایضاً انّ الکرم مختص بالعنب و البستان غیره بقرینة التعلیل اوّلاً و ثانیاً و هذا اوفق بما فی کتب اللغة و مفاده ایضاً انّ الخلاف بین محمد و ابی یوسف رحمهما الله تعالٰی فی البستان اذا کانت اشجاره ملتفة و ان ما[1] فی المتن هو قول محمد رحمه الله و علیه جری فی الملتقی و ذکر فی البدائع مثل ما فی الاختیار حیث قال و فی جریب الکرم عشرة دراهم و اما جریب الارض التی فیها اشجار مثمرة بحیث لا یمکن زراعتها لم یذکر فی ظاهر الروایة و روی عن ابی یوسف رحمه الله انه قال اذا کان النخل ملتفا جعلت علیه الخراج بقدر ما یطیق و لا ازید علی جریب الکرم عشرة دراهم (قوله فلا یزاد علیه فی خراج المقاسمة) ترك ما لم یوظف مع ان الکلام فیه فکان علیه ان یقول فلا یزاد علیه فیه و لا خراج المقاسمة و فی الموظف الخ افاده ح قلت و قد یجاب بأن قوله و التنصیف الخ یفید انه یجوز وضع النصف او الربع او الخمس فیصیر خراج مقاسمة لانه جزء من الخارج و هو غیر الموظف فقوله فی خراج مقاسمة اراد به هذا النوع و قوله و لا فی الموظف الخ اراد به النوع الاوّل فافهم (قوله و لا فی الموظف علی مقدار ما وظفه عمر) و کذا اذا فتحت بلدة بعد عمر رضی الله تعالٰی عنه فاراد الامام ان یضع علی ما یزرع حنطة درهمین و قفیزاً و هی تطیقه لیس له ذلك عند ابی حنیفة رحمه الله تعالٰی و هو الصحیح لانّ عمر رضی الله تعالٰی عنه لم یزد

---

[1] - فیه انه لا یتجه علی هذا ذکر النخل مع الکرم و الظاهر ان المراد بذکر النخل التعمیم بجمیع الاشجار المثمر فو بالبستان الاشجار المتفرقة فالمذکور فی المتن هو قول ابی یوسف. ۱۲ رشید احمد

لما اخبر بزيادة الطاقة افاده فی البحر عن الکافی قال ط وهذا نص صریح فی حرمة ما احدثه الظلمة علی الارض من الزیادة علی الموظف ولو سلم ان الاراضی الت لبیت المال وصارت مستاجرة اھ (قوله وان اطاقت) تعمیم لقوله ولا یزاد علیه الخ فیشمل ما لم یوظف کما صرح به فی قوله وغایة الطاقة نصف الخارج ویشمل خراج المقاسمة کما نص علیه فی النهر وکذا الموظف من عمر رضی الله تعالی عنه کما فی البحر او من امام بعده کما مر فافهم (قوله وینبغی ان لا یزاد علی النصف الخ) هذا فی خراج المقاسمة ولم یقید به لانفهامه من التعبیر با لنصف والخمس فان خراج الوظیفة لیس فیه جزء معین تأمل. قال فی النهر وسکت عن خراج المقاسمة وهو اذا منّ الامام باراضیهم ورأی ان یضع علیهم جزءًا من الخارج کنصف او ثلث او ربع فانه یجوز ویکون حکمه حکم العشر ومن حکمه ان لا یزید علی النصف وینبغی ان لا ینقص عن الخمس قاله الحدادی اھ وبه علم ان قول الشارح وینبغی مذکور فی غیر محله لان الزیادة علی النصف غیر جائزة کما مرّ التصریح به فی قوله ولا یزاد علیه و کان عدم التنقیص عن الخمس غیر منقول فذکره الحدادی بحثاً لکن قال الخیر الرملی یجب ان یحمل علی ما اذا کانت تطیق فلو کانت قلیلة الریع کثیرة المؤن ینقص اذ یجب ان یتفاوت الواجب لتفاوت المؤنة کما فی ارض العشر ثم قال وفی الکافی ولیس للامام ان یحول الخراج الموظف الی خراج المقاسمة اقول وکذلک عکسه فیما یظهر من تعلیله لانه قال لان فیه نقض العهد وهو حرام اھ قلت صرّح بالعکس القهستانی. (قوله فعلیه خراج الارض) کذا فی البحر عن شرح الطحاوی. قال ط والاولی خراج الزرع کما نقله الشارح عن مجمع الفتاوی فی باب زکوة الاموال ای فیدفع صاعاً ودرهماً (قوله فعلیه خراج الکرم) ای دائماً لانه صار الی الادنی مع قدرته علی الاعلی قال فی الفتاوی الهندیة قالوا من انتقل الی اخس الامرین من غیر عذر فعلیه خراج الاعلی کمن له ارض الزعفران فترکه وزرع الحبوب فعلیه خراج الزعفران وکذا لو کان له کرم فقطع وزرع الحبوب فعلیه خراج الکرم وهذا شیء یعلم ولا یفتی به کی لا یطمع الظلمة فی اموال الناس کذا فی الکافی ح قال فی الفتح اذ یدعی کل ظالم ان ارضه کانت تصلح لزراعة الزعفران ونحوه وعلاجه صعب اھ (قوله واذا اطعم) معطوف علی قوله الی ان یطعم قال فی البحر وفی شرح الطحاوی لو انبت ارضه کرماً فعلیه خراجها الی ان یطعم فاذا اطعم فان کان ضعف وظیفة الکرم ففیه وظیفة الکرم وان کان اقل فنصفه الی ان ینقص عن قفیز ودرهم فان نقص فعلیه قفیز ودرهم اھ والقفیز صاع کما مرّ وهذا بناء علی انها کانت للزراعة فلو للرطبة فالظاهر لزوم خمسة دراهم فلذا قال الشارح ولا ینقص عمّا کان تأمل. (رد المحتار ج٣، ص٢٦٨ تا ٢٧٠)

وقال الرافعی رحمه الله (قوله هذا فی خراج المقاسمة الخ) الظاهر ان الحکم کذلک فی الخراج الموظف والتعبیر بالنصف والخمس لا یدل علی انه فی المقاسمة خاصة وذلک انك اذا وجدت الخراج الموظف زائدا علی نصف الخارج نقصته وجوباً الی النصف ولك تنقیصه الی الخمس (التحریر المختار ج۲، ص۵۹)

وفی الهندیة بعد ذکر الاشیاء الثلاثة التی وظف علیها عمر رضی الله تعالی عنه وما سوی ذلك من الاصناف کالزعفران والقطن والبستان وغیرها یوضع علیها بحسب الطاقة الخ. (عالمگیریة ج۲، ص۲۳۸)

وفی الهدایة مع الفتح ولان المؤن متفاوتة فالکرم اخفها مؤنة لانه یبقی علی الابد بلا مؤنة واکثرها ریعاً والمزارع اقلها ریعاً واکثرها مؤنة لاحتیاجها الی البذر ومؤن الزراعة من الحراثة والحصاد والدیاس والتذریة فی کل عام والرطاب بینهما لانها لا تدوم دوام الکرم ویتکلف فی عملها کل عام فوجب تفاوت الواجب بتفاوت المؤنة اصله قوله علیه الصلوة والسلام ما سقت السماء ففیه العشر وما سقی بغرب او دالیة ففیه نصف العشر (فتح القدیر ج۴، ص۳۶۳)

وفی العنایة علی هامش الفتح والرطاب بینهما لانها تبقی اعواماً ولا تدوم دوام الکروم فکانت مؤنتها فوق مؤنة الکروم ودون مؤنة المزارع. (فتح القدیر ج۴، ص۳۶۳)

وفی الفتح (قوله فان لم تطق ما وضع علیها) وفی هذا لا فرق بین الارضین التی وظف علیها عمر رضی الله تعالی عنه ثم نقص نزلها وضعفت الأن او غیرها واجمعوا انه لا تجوز الزیادة علی وظیفة عمر رضی الله تعالی عنه فی الاراضی التی وظف فیها عمر رضی الله تعالی عنه او امام اٰخر مثل وظیفة عمر. ذکره فی الکافی واما فی بلد لو اراد الامام ان یبتدء فیها التوظیف فعند ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالی وروایة عن ابی یوسف رحمه الله وقول الشافعی رحمه الله تعالی له ذلك ومعنی هذا اذا کانت الارض التی فتحت بعد الامام عمر رضی الله تعالی عنه تزرع الحنطة فاراد ان یضع علیها درهمین وقفیزاً وهی تطیقه لیس له ذلك وعند محمد رحمه الله له ذلك اعتباراً بالنقصان وهذا یؤید ما ذکرته من حمل الارض فی قوله فان لم تطق ما وضع علیها علی ما یشمل ارض عمر رضی الله تعالی عنه ومنعه ابو یوسف بان عمر رضی الله تعالی عنه لم یزد حین اخبر بزیادة طاقة الارض. (فتح القدیر ج۴، ص۳۶۳)

## له مذکوره تفصیل څخه د ځمکو درې ډولونه څرګند شول

۱- د علاقې هغه ځمکې چه په هغو باندې حضرت عمر رضی الله عنه خراج موظف متعین کړی وو، یعني

بعینه د همدې ټاکلې علاقې زمکې او په هغو کښې د عمر رضي الله عنه په توظیف باندې زیاتوالی جائز نه دی.

۲ - په کومو زمکو کښې چه د حضرت عمر رضي الله عنه له توظیف څخه پرته نور څه وکرل شي په هغو کښې حکومت لره اختیار دی چه خراج موظف پرې ټاکي او که مقاسمه. همدارنګه د خراج په اندازه کښې هم حکومت اختیار لري لیکن دا ضروري ده چه خراج د زمکې له برداشت څخه زیات نه وي. همدا ډول د برداشت د درلودلو تر څنګ له نیم پیداوار څخه زیات نه وي. برسیره پر دې په خراج موظف کښې دا شرط هم شته چه د حضرت عمر رضي الله عنه له توظیف څخه زیات نه وي.

۳ - په وروسته فتحه شویو زمکو کښې د حضرت عمر رضي الله عنه د توظیف اجناس. په هغو باندې چه خراج موظف ولګول شي نو د شیخینو رحمهما الله تعالی په نزد د حضرت عمر رضي الله عنه په توظیف باندې زیاتوالی جائز نه دی. امام محمد او ائمهٔ ثلاثه رحمهم الله تعالی ئې د جواز قائل دي. له امام ابویوسف رحمه الله څخه هم یو قول د جواز شته.

دا خبره د غور وړ ده چه د شیخینو رحمهما الله تعالی په نزد په داسې زمکو باندې د خراج مقاسمه جواز شته او که نه؟ او که چیرته جائز وي نو په هغو کښې د حضرت عمر رضي الله عنه له توظیف څخه تجاوز هم جائز دی او که نه؟

## دلاندیني دلائلو له مخې د دغو دواړو خبرو جواز څرګندیږي

۱ - که چیرته دا صورت ناجائز وای نو حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله به د دې تصریح کړې وای **والسكوت في معرض البيان بيان.**

۲ - **ما قدمنا عن الشامية معزيا الى النهر من انه اذا منّ الامام بأراضيهم ورأى ان يضع عليهم جزءًا من الخارج الخ.** دا عبارت هر ډول زمکو ته شامل دی. **وان كانت من جنس ما وظف عليها سيدنا عمر رضي الله عنه** همدارنګه په دې کښې د حضرت عمر رضي الله عنه له توظیف څخه د تجاوز د نه کولو هم شرط نشته.

۳ - محمد بن قاسم د سندھ په زمکو باندې (5/1) خراج مقاسمه مقرر کړی وو. او ښکاره ده چه په دغو زمکو کښې د حضرت عمر رضي الله عنه د توظیف د جنس زمکې هم وې. **قال العلامة الهمايوني رحمه الله في رسالته "سراج الهند في خراج السند" ارض السند خراجية وخراجها الخمس كما حققه المحققون ثم سرد النقول عن علماء السند.**

### ۱۵ - په غیر آبادو زمکو باندې خراج

که چیرته خراجي زمکه د اوبو لاندې راشي. یا د اوبو رسولو ذریعې بندې شي یا د کوم بل آفت له وجې د کرنې وړ پاتې نه شي. یا ئې څوک کرنې ته پرې نه ښودل شي یعنې په ټول کال کښې د

یوه فصل د پورته کولو موقع هم په لاس ور نه شي نو خراج به معاف وي. البته دا چه زمکه سره له دې چه د کرنې ور وي یواځې د غفلت او سستئ له وجې همداسې بې کرنې پریښودله شي نو صرف به خراجِ مقاسمه معاف کیږي لیکن خراجِ موظف به ترې اخیستل کیږي. قال فی التنویر ولا خراج ان غلب الماء علی ارضه او انقطع او اصاب الزرع آفة سماویة کغرق اوحرق وشدة برد (الی قوله) فان عطلها صاحبها و کان خراجها موظفا او اسلم او اشتری مسلم ارض خراج یجب ولو منعه السلطان من الزراعة او کان الخراج مقاسمة لا. (ردالمحتار ج۳،ص۲۷۱)

### ۱۲ - زمیندار به د مزارع له برخې څخه په زور عشر باسي

لکه څرنګه چه په مزارعینو (کرونکو) کښې دینداري نه وي که چیرته حاصلات وویشل او دوی ته خپله برخه ور وسپارله شي نو له هغوی څخه د عشر د اداء کولو هیله نشته. د دې لپاره په زمیندار باندې لازمه ده چه له مشترکو حاصلاتو څخه د عشر تر ایستلو وروسته دې مزارع ته خپله برخه ورکړي.

قال العلامة الهمایونی رحمه الله فی رسالته سراج الهند والحق الحقیق بالقبول ان هذا الامر مسلم الی اصحاب الاراضی الذین یقال لهم فی العرف "زمینداران" فعلیهم ان یخرجوا الخمس بنیة الخراج اولاً قبل التنصیف من البین ثم ینصفون لاجل حصة الارض فیجمعون ما حصل من الخمس فیصرفونه بالعدل و الانصاف فی بعض المصارف الموجودة الأن فی هٰذه الدیار فان اقامة هٰذا الامر من المزارعین محال لان الدیانة قد ارتفعت والاسلام قد ضعف حتی ان ظفر المزارعون بحصة الارض لم یعطوها لاصحاب الارض اصلاً بل یصرفونها فی معاشهم ویبدلونها فی ابویاتهم لکونهم مفلسین جائعین غیر متدینین فاین یتوهم منهم امثال هٰذه الامور الدینیة فالواجب علی صاحب الاراضی المتدین ان یخرج حصة الخراج اولاً من البین یصرفها فی بعض مصارفها لاناجربنا فی هٰذا الزمان ان اصحاب الاراضی کالحکام للمزارعین حتّٰی انهم لا یخافون من الحکام مثل ما یخافون من اصحاب الاراضی لوصلة معاشهم و رزقهم بالزراعات الکائنة فی اراضیهم فاصحاب الاراضی حکام و المزارعون رعایاهم و کلّ مسئول یوم القیامة عن رعیته اخرج البخاری و مسلم فی صحیحهما عن عبدالله بن عمر رضی الله تعالٰی عنهما قال قال رسول الله ﷺ الا کلکم راع و کلکم مسئول عن رعیته. الحدیث

### ۱۷ - خراجِ موظف په کال کښې یواځې یو ځل دی

خراج موظف په کال کښې صرف یو ځل وصولیږي اګر که حاصلات څومره زیات ترې واخیستل شي. البته خراجِ مقاسمه د عشر غوندې په هر فصل باندې واجب دی. قال فی العلائیة ولا

يتكرر الخراج بتكرر الخارج في سنة لو موظفا والا بان كان خراج مقاسمة تكرر لتعلقه بالخارج حقيقة كالعشر فانّه يتكرّر. (رد المحتار ج۳، ص۲۷۲)

### ۱۸ - چه فصل تباه یا غلا شي نو د عشر او خراج د ساقطیدلو تفصیل:

که چیرته د عشرې زمکې د فصل تر ریبلو مخکښې یا وروسته ضائع شي یا غلا شي نو عشر ساقطیږي. او که چیرته دا حاصلات د مزارعت په توګه وو نو د فصل تر ریبلو مخکښې د ضائع کیدو هم هغه حکم دی کوم چه مخکښې بیان شو. البته که چیرته د فصل تر ریبلو وروسته ضائع شي نو د قاضي د تحقیق مطابق د زمیندار د عشر برخه ساقطه ده او د مزارع د عشر برخه په زمیندار باندې لازمه ده. د خراج مقاسمه هم همدا حکم دی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله ويؤخذ العشر) وما تلف بغير صنعه بعد حصاده او سرق وجب العشر في الباقي لا غير. (رد المحتار ج۲، ص۵۸) وقال في الخانية وفي ارض العشر اذا هلك الخارج قبل الحصاد يسقط وان هلك بعد الحصاد فما كان من نصيب ربّ الارض يسقط وما كان من نصيب الاكار يبقى في ذمة رب الارض لان في نصيب الاكار الارض بمنزلة المستأجر فكان العشر على صاحب الارض وخراج المقاسمة بمنزلة العشر لان الواجب شيء من الخارج وانما يخالف العشر في المصرف. (خانية على هامش العالمگيرية ج۱، ص۲۷۴) وكذا في العامگيرية عن الخانية وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله في منحة الخالق بعد نقل قول الخانية المذكور في الولوالجية ما يخالفه وما في الخانية اقوى مدركا واوضح وجها فليكن المعول عليه. (البحر الرائق ج۲، ص۱۰۹)

لیکن د (تعلیل كون الارض بمنزلة المستأجر) څخه ثابته شوه چه د خانیه قول له هغه صورت سره خاص ده چه بذر یعنې تخم د مزارع له خوا څخه وي. همدارنګه په اجارة الارض کښې مطلقاً عشر په زمیندار باندې نه دی بلکه په دې کښې تفصیل دی. كما قدمنا. پرته له دې څخه د بحث لاندې صورت کښې خو زمیندار ته اجرت هم وصول نه شو له دې امله د بنده په خیال کښې د اولو الوالجیه د قول مطابق راجحه دا ده چه د مزارع د برخې عشر هم په زمیندار باندې واجب نه دی بلکه ساقط دی.

د خراج موظف حکم دا دی چه که چیرته ولاړ فصل په یوه داسې آسماني آفت سره تباه شي چه خان ساتنه ترې د انسان په قدرت کښې نه وي لکه ږلۍ، سیلاب او داسې نور او په همدې کال کښې د کوم بل فصل د کرنې موقع هم نه وي چه کم تر کمه اندازه ئې درې میاشتې ده. نو خراجِ موظف ساقطیږي. که چیرته له تباهۍ څخه څه حاصلات وساتل شي نو د زراعت او داسې نورو

مصارفو تر ایستلو وروسته پاتې پیداوار که چیرته د خراج دوه چنده وي نو پوره خراج ترې اخیستل کیږي او که نه نو نیم خراج ترې اخیستل کیږي او که چیرته له آفت څخه حفاظت ممکن وو لکه د مږک او داسې نورو آفت یا په همدې کال کښې دومره وخت پاتې وي چه له دې زمکې څخه کوم بل فصل واخیستل شي یعنې کم تر کمه درې میاشتې باقي وې نو خراج موظف معاف نه دی. او که چیرته فصل تر ریبلو وروسته تباه شي که په آسماني آفت سره وي یا داسې آفت وي چه ځان ساتل ترې ممکن وي په هر حال کښې به خراج موظف معاف نه وي.

قال فی شرح التنویر ولا خراج ان غلب الماء علی ارضه او انقطع الماء او اصاب الزرع آفة سماویة کغرق و حرق وشدة برد الا اذا بقی من السنة ما یمکن الزرع فیه ثانیاً اما اذا کانت الأفة غیر سماویة و یمکن الاحتراز عنها کاکل قردة وسباع ونحوهما کانعام وفار ودودة بحر او هلك الخارج بعد الحصاد لا یسقط و قبله یسقط ولو هلك بعضه ان فضل عمّا انفق شئ اخذ منه مقدار ما بینا مصنف سراج و تمامه فی الشرنبلالیة معزیا للبحر، و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله ولا خراج الخ) ای خراج الوظیفة و کذا خراج المقاسمة و العشر بالاولی لتعلق الواجب بعین الخارج فیهما ومثل الزرع الرطبة والکرم ونحوهما خیریة (قوله ما یمکن الزرع فیه ثانیاً) قال فی الکبری و الفتوی انه مقدر بثلاثة اشهر نهر، (قوله و یمکن الاحتراز عنها) خرج ما لا یمکن کالجراد کما فی البزازیة (قوله وفار ودودة) عبارة البحر ومنه یعلم ان الدودة والفارة اذا اکلا الزرع لا یسقط الخراج اه قلت لا شك انهما مثل الجرادة فی عدم امکان الدفع و فی النهر لا ینبغی التردّد فی کون الدودة أفة سماویة و انه لا یمکن الاحتراز عنها قال الخیر الرملی واقول ان کان کثیرا غالباً لا یمکن دفعه بحیلة یجب ان یسقط به و ان امکن دفعه لا یسقط هذا هو المتعین للصواب (قوله او هلك الخارج بعد الحصاد) مفهومه انه لو هلك قبله یسقط الخراج لکن یخالفه التفصیل المذکور فیما لو اصاب الزرع أفة فانّ الزرع اسم للقائم فی ارضه فحیث وجب الخراج بهلاکه بأفة یمکن الاحتراز عنها علم انه یجب قبل الحصاد الّا ان یحمل الهلاك هنا علی ما اذا کان بما لا یمکن الاحتراز عنه فتندفع المخالفة (قوله و قبله یسقط) ای الا اذا بقی من السنة ما یتمکّن فیه من الزراعة کما یؤخذ ممّا سلف ط قال الخیر الرملی ولو هلك الخارج فی خراج المقاسمة قبل الحصاد او بعده فلا شئ علیه لتعلقه بالخارج حقیقة وحکمه حکم الشریك شرکة الملك فلا یضمن الّا بالتعدی فاعلم ذلك فانه مهم ویکثر وقوعه فی بلادنا وفی الخانیة ما هو صریح فی سقوطه فی حصة رب الارض بعد الحصاد ووجوبه علیه فی حصة الاکار معلّلاً بان الارض فی حصته بمنزلة المستأجرة اه. (قوله ان فضل عمّا انفق) ینبغی ان یلحق بالنفقة علی الزرع ما یأخذه الاعراب و

حکام السياسة ظلماً كما يعلم مما قدمناه (قوله اخذ منه مقدار ما بينا) اي ان بقي ضعف الخراج كذا هو و صاحبين يجب الخراج و ان بقي اقل من مقدار الخراج يجب نصفه و اشار الشارح الى هذا بقوله و تمامه في الشرنبلالية فانه مذكور فيها افاده ح (قوله مصنف سراج) على حذف العاطف اوعلى معنى مصنف عن السراج.(ردالمحتار ج۳،ص۲۷۱)

## ۱۹ - د اوسيدنې د کور په باغ کښې عشر او خراج

که چيرته د اوسيدنې پلاټ په مکمله توګه په باغ بدل کړي نو په دې کښې به عشر يا خراج واجب وي. که چيرته کومه عشري زمکه ورته ډيره نژدې وي نو عشر پرې واجب دی او که خراجي زمکه ډيره ور نژدې وي نو خراج به پرې واجب وي. که چيرته عشري او خراجي دواړه ډوله زمکې په نژدې والي کښې برابرې وي نو په دې باغ باندې به عشر واجب وي.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله وكلّ منهما الخ) ان الماء يعتبر فيما لو احيا مسلم ارضا اوجعل داره بستاناً بخلاف المنصوص على انه عشري او خراجي و قدمنا عن الدر المنتقى ان المفتى به قول ابي يوسف رحمه الله انه يعتبر القرب و هو ما مشى عليه المصنف اولاً كالكنز وغيره و قدمه في متن الملتقى فافاد ترجيحه على قول محمد رحمه الله و قال ح و هو المختار كما في الحموي على الكنز عن شرح قرا حصاري و عليه المتون واعتبار الماء قول محمد رحمه الله.(ردالمحتار ج۳،ص۲۶۷)

او که چيرته کور خاص د اوسيدنې لپاره وي ليکن په صحن کښې ئې باغ لګول شوی وي نو بيا عشر يا خراج پرې واجب نه دی. قال في التنوير و اخذ خراج من دار جعلت بُستاناً الخ، و في الشامية قيد بجعلها بُستانا لانه لو لم يجعلها بُستانا وفيها نخل تغل اكرار الاشيء فيها بحر. و كذلك ثمر بستان الدار لانه تبع لها كما في قاضي خان قهستاني.(ردالمحتار ج۲،ص۵۷)

## ۲۰ - په مغصوبې زمکې باندې د عشر او خراج حکم

قال في شرح التنوير والخراج على الغاصب ان زرعها وكان جاحداً ولا بينة بها، و قال ابن عابدين رحمه الله قال في الخانية ارض خراجها وظيفة اغتصبها غاصب جاحداً ولا بينة للمالك ان لم يزرعها الغاصب فلا خراج على احد وان زرعها الغاصب ولم تنقصها الزراعة فالخراج على الغاصب وان كان الغاصب مقرّاً بالغصب او كان للمالك بينة ولم تنقصها الزراعة فالخراج على ربّ الارض اه قلت وفي الذخيرة قال بعض المشائخ على المالك وقال بعضهم على الغاصب على كلّ حال اه. ثمّ قال في الخانية وان نقصها الزراعة عند ابي حنيفة رحمه الله تعالى على رب الارض قلّ النقصان او كثر. كأنه اجرها من الغاصب بضمان النقصان و عند محمد رحمه الله على

الغاصب فمن زاد النقصان علی الخراج یدفع الفضل الی المالک وان غصب عشریة فزرعها ان لم تنقص الزراعة فلاعشر علی المالک وان نقصها فالعشر علی المالک کأنه اجرها بالنقصان اهـ قال ح وظاهر ان حکم ذات خراج المقاسمة کالعشریة (رد المحتار ج۲، ص۵۹) وقال الرافعی رحمه الله (قوله فلا عشر علی المالک) وعلی الغاصب العشر اجماعاً (قوله کأنه اجرها بالنقصان) هذا قول الامام وعلی قولهما العشر علی الغاصب مطلقاً وهذا اذا کان الغاصب مسلماً واذا کان ذمیاً فلا عشر علی احد عنده اما المالک فلعدم حصول المنفعة واما الغاصب فلانه لو وجب علی لوجب الخراج وهو لا یتبدّل وهو اضرار بالمالک ولا صنع له فی ذلک ولا یجوز ان یوجب العشر علی الذمی فلم یبق الّا السقوط وهذا اذا لم تنقص الارض اما اذا نقصت فینبغی ان یکون العشر علیه اذا کان النقصان مثل العشر او اکثر وعلی قول محمد رحمه الله یجب العشر علی الغاصب وعلی قول ابی یوسف عشر ان لانه لا ضرر فی ذلک لانّ العشرین یبدلان الی عشر واحد اهـ سندی عن السراج (التحریر المختار ج۱، ص۱۳۸)

حاصل دا چه که چیرته غاصب منکر وي او له مالک سره شاهدان نه وي او په ټول کال کښې د یوه فصل د اخیستلو موقع هم په لاس ور نه شي یعنې په کال کښې کم تر کمه درې میاشتې د مالک په قبضه کښې پاتې نه شي نو په مالک باندې خراج نشته، بیا ئې که چیرته غاصب وکري نو په هغه باندې خراج شته او که نه وي نو په هغه باندې هم نشته. او که چیرته غاصب منکر نه وي یا له مالک سره شاهدان وي نو په مالک باندې د خراج په وجوب کښې اختلاف دی. د بنده په نزد د تطبیق صورت ئې دا دی چه که چیرته مالک خاص د غفلت له وجې د خپلې زمکې د بیرته لاس ته راوړلو کوشش نه وي کړی نو په ده باندې به خراج واجب وي. او که چیرته له پوره کوشش سره سره د عدالت د بې پرواهي له وجې ئې زمکې بیرته لاس ته نه شوای راوړلی یعنې په ټول کال کښې درې میاشتې هم د کرنې لپاره زمکه په لاس ور نه شي نو په مالک باندې خراج نشته. چه کله د یوه انسان منع کول د خراج ساقطوونکی دی کما قدمنا نو د غصب له وجې له کرنې څخه عاجز والی په طریقهٔ اولی سره باید مسقط وي.

عشر او خراجِ مقاسمه چونکه په پیداوار باندې وي له دې امله دا دواړه په زمیندار باندې نه وي بلکه غاصب ئې چه وکري نو په هغه باندې به وي. که چیرته یو کافر عشري زمکه غصب کړي او ونې کري نو له هغه څخه عشر ساقط دی.

دا احکام په وخت کښې دي چه د غاصب په کرنې سره زمکې ته څه نقصان نه وي رسیدلی که چیرته زمکې ته څه نقصان رسیدلی وي نو د حضرت امام اعظم رحمه الله په نزد د مالک لپاره له

غاصب څخه د زمکې د نقصان تاوان اخیستل د اجارې په مرتبه کښې ده له دې امله عشر او خراج به په مالک باندې وي لیکن د اجارې په صورت کښې د فتوی لپاره چه کوم تفصیل پورته تیر شو د هغه له مخې په غصب کښې به په هر صورت عشر او خراج خاص په غاصب باندې وي اګر که مالک د زمکې تاوان وصول کړی وي.

**۲۱ - چه زمکه خرڅه شي نو عشر او خراج به په چا وی ؟**

که چیرته خلاصه زمکه په داسې وخت کښې خرڅه کړي چه د کال ختمیدو ته درې میاشتې یا تر دې زیاته موده پاتې وي او پلورونکي په همدې کال کښې له دې زمکې څخه کوم فصل نه وو پورته کړی نو خراج ئې په پیرونکي یا مشتري باندې دی او که چیرته پلورونکي هم کوم فصل ترې اخیستی وي نو خراج ئې په پلورونکي او پیرونکي دواړو باندې تقسیمیږي او که چیرته د کال ختمیدو ته له دریو میاشتو څخه کمه موده پاتې وي نو ټول خراج ئې په پلورونکي باندې دی او که چیرته د خرڅولو په وخت کښې په زمکې باندې فصل هم وو نو د فصل تر تیاریدو مخکښې د خرڅیدو په صورت کښې خراج په مشتري باندې دی په دې شرط چه بائع یعنې پلورونکي په دې کال کښې کوم فصل نه وي ترې اخیستی. او که نه نو خراج به په دواړو باندې وي. او که چیرته د فصل تر تیاریدو وروسته زمکه خرڅه شي نو په دې کښې هغه تفصیل دی کوم چه د فارغې زمکې د خرڅولو په اړه تیر شو.

او که چیرته زمکه په مسلسله توګه خرڅیدله را خرڅیدله او یوه مالک ته هم په ټول کال کښې د دریو میاشتو موده میسَره نه شوه تر څو یو فصل ترې واخلي نو خراج په هیچا باندې هم نشته.

عشر او خراجِ مقاسمه په حاصلاتو پورې اړه لري د دې لپاره که چیرته زمکه د فصل تر تیاریدو مخکښې خرڅه شي نو عشر او خراجِ مقاسمه به په مشتري باندې وي او د فصل تر تیاریدو وروسته چه خرڅه شي نو عشر او خراجِ مقاسمه به ئې په بائع یعنې پلورونکي باندې وي.

او که چیرته یواځې د زمکې حاصلات و پلورل شي نو په دې کښې هم دا تفصیل دی چه که چیرته بیع قبل الادراک وي نو عشر او خراجِ مقاسمه په مشتري باندې دی او که بعد الادراک وي نو په بائع باندې دی. که چیرته قبل الادراک فصل خرڅ کړي او مشتري ئې په همدې حال کښې وریبي نو عشر به ئې په بائع باندې وي.

قال فی شرح التنویر ولو باع الزرع ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتری ولو بعدہٗ فعلی البائع وفی الشامیة ان حکم خراج المقاسمة کالعشر کما یعلم مما مرّ ثم هٰذا اذا باع الزرع وحده و شمل ما اذا باعه و ترکه المشتری باذن البائع حتی ادرک فعندهما عشره علی المشتری وعند ابی یوسف رحمه الله عشر قیمة القصیل علی البائع والباقی علی المشتری کما فی الفتح وبقی مالو باع الارض مع الزرع او بدونه قال فی البزازیة باع الارض و

سلمها للمشتری ان بقی مدة یتمکن المشتری فیها من الزراعة فالخراج علیه و الّا فعلی البائع و الفتوٰی علی تقدیرہ المدة بثلاثة اشهر. هٰذا لو باعها فارغة ولو فیها زرع لم یبلغ فعلی المشتری بکل حال و قال ابو اللیث ان باعها بزرع انعقد حبه و بلغ ولم تبق مدة یتمکن المشتری من الزرع فالخراج علی البائع. ولو باع من اٰخر و المشتری من اٰخر و اٰخر حتی مضی وقت التمکن لا یجب الخراج علی احد اه ملخصاً ای بان لم تبق فی ید احد من المشترین مدة یتمکن فیها من الزراعة قبل دخول السّنة الثانیة (رد المحتار ج۲، ص۶۰) و فی جهاد التنویر باع ارضاً خراجیة ان بقی من السّنة مقدار ما یتمکن المشتری من الزراعة فعلیه الخراج و الّا فعلی البائع. و قال ابن عابدین رحمه الله هٰذا اذا کانت فارغة لکن اختلفوا فی اعتبار ما یتمکن المشتری من زراعته فقیل الحنطة و الشعیر و قیل ایّ زرع کان و فی انه هل یشترط ادراک الریع بکماله اولا و فی واقعات الناطفی ان الفتوٰی علی تقدیرہ بثلاثة اشهر و هٰذا منه اعتبار لزرع الدخن و ادراک الریع فان ریع للدخن یدرک فی مثل هٰذه المدة و اما اذا کانت الارض مزروعة فباعها مع الزرع فان کان قبل بلوغه فالخراج علی المشتری مطلقاً و ان بعد بلوغه و انعقاد حبه فهو کما لو باعها فارغة ولو کان لها ریعان خریفی و ربیعی و سلم احدهما للبائع و الاٰخر للمشتری فالخراج علیهما و لو تداولتها الایدی و لم تمکث فی ملک احدهم ثلاثة اشهر فلا خراج علی احد اه من التاتارخانیة ملخصاً (رد المحتار ج۳، ص۲۷۲) و قال العلامة الکاسانی رحمه الله ولو باع الارض العشریة و فیها زرع قد ادرک مع زرعها او باع الزرع خاصة فعشرہ علی البائع دون المشتری لانه باعه بعد وجوب العشر و تقررہ بالادراک ولو باعها و الزرع بقل فان قصله المشتری للحال فعشرہ علی البائع ایضاً لتقرر الوجوب فی البقل بالقصل و ان ترکه حتی ادرک فعشرہ علی المشتری فی قول ابی حنیفة و محمد رحمهما الله تعالٰی لتحول الوجوب من الساق الی الحب و روی عن ابی یوسف رحمه الله تعالٰی انّه قال عشر قدر البقل علی البائع و عشر الزیادة علی المشتری و کذٰلک حکم الثمار علی هٰذا التفصیل. (بدائع الصنائع ج۲، ص۵۷)

**۲۲ - د عشر تر ایستلو وروسته چه حاصلات وپلورل شي نو په روپو باندې ئې زکات فرض دی**

د حاصلاتو عشر بیل فرض دی او حاصلات چه خرڅ کړی شي نو له هغو څخه په حاصل شویو روپو باندې زکات بیل فرض دی. لان الحقین لم یتعلقا بمحل واحد فان العشر حق الارض النامیة بالخارج حقیقة و زکٰوة النقود حق المال النامی تقدیراً بخلاف ما اذا کانت الارض للتجارة فانه لا تجب فیها زکٰوة التجارة لان الحقین یتعلقان بمحل واحد و هی الارض و قال ابن نجیم رحمه الله فی زکٰوة مال التجارة اذا دخل من ارضه حنطة تبلغ قیمتها قیمة نصاب و نوی ان یمسکها و یبیعها فامسکها حولاً لا تجب فیها الزکٰوة. (البحر

الرائق ج۲، ص۲۰۹) په مذکوره عبارت کښې د زکات د عدم وجوب علت بیان شوی دی چه حنطه (غنم) د تجارت مال نه دی. له دې څخه ثابته شوه چه د حنطه د خرڅولو په صورت کښې به په نقدو روپو باندې زکات فرض وي. لانها متعينة للتجارة خلقةً.

## ۲۳ - له وخت څخه مخکښې د عشر او خراج ایستلو حکم

خراجِ موظف مخکښې له وخت څخه ادا کول صحیح دي او په عشر کښې تفصیل دا دی چه: که چیرته د فصل تر کرلو مخکښې عشر وباسي نو نه ادا کیږي او که چیرته د فصل تر شین کیدو وروسته عشر وباسي نو په اتفاق سره ئې عشر ادا شو. او که چیرته د فصل تر کرلو وروسته او تر شین کیدلو مخکښې عشر وباسي نو د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد صحیح کیږي او د امام محمد رحمه الله په نزد عشر نه ادا کیږي. وهو الارجح والاحوط.

په باغ په ونو باندې د ګُل تر راتلو وروسته عشر ایستل صحیح دي او که تر دې ئې مخکښې وباسي نو نه ادا کیږي.

قال العلامة الكاسانى رحمه الله وعلى هذا يخرج تعجيل العشر وانه على ثلاثة اوجه فى وجه يجوز بلا خلاف وفى وجه لا يجوز بلا خلاف وفى وجه فيه خلاف، اما الذى يجوز بلا خلاف فهو ان يعجل بعد الزراعة وبعد النبات لانه تعجيل بعد وجود سبب الوجوب وهو الارض النامية بالخارج حقيقة الا ترى انه لو قصله هكذا يجب العشر و اما الذى لا يجوز بلا خلاف فهو ان يعجل قبل الزراعة لانه عجل قبل الوجوب و قبل وجود سبب الوجوب لانعدام الارض النامية بالخارج حقيقة لانعدام الخارج حقيقة واما الذى فيه خلاف فهو ان يعجل بعد الزراعة قبل النبات قال ابو يوسف رحمه الله تعالى يجوز و قال محمد رحمه الله تعالى لا يجوز، وجه قول محمد ان سبب الوجوب لم يوجد لانعدام الارض النامية بالخارج لا الخارج فكان تعجيلا قبل وجود السبب فلم يجز كما لو عجل قبل الزراعة، وجه قول ابى يوسف رحمه الله تعالى ان سبب الخروج موجود وهو الزراعة فكان تعجيلاً بعد وجود السبب فيجوز، واما تعجيل عشر الثمار فان عجل بعد طلوعها جاز بالاجماع وان عجل قبل الطلوع ذكر الكرخى انه على الاختلاف الذى ذكرنا فى الزرع وذكر القاضى فى شرحه مختصر الطحاوى انه لا يجوز فى ظاهر الرواية، وروى عن ابى يوسف رحمه الله انه يجوز وجعل الاشجار للثمار بمنزلة الساق للحبوب وهناك يجوز التعجيل كذا ههنا، ووجه الفرق لابى حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالى ان الشجر ليس بمحل لوجوب العشر لانه حطب الا ترى انه لو قطعه لا يجب العشر فاما ساق الزرع فمحل بدليل انه لو قطع الساق قبل ان ينعقد الحب يجب العشر ويجوز تعجيل الخراج والجزية لان سبب وجوب الخراج الارض النامية بالخارج تقديراً بالتمكن

من الزراعة لا تحقيقاً وقد وجد التمكن وسبب وجوب الجزية كونه ذميًا وقد وجد والله اعلم. (بدائع الصنائع ج٢،ص٥٣)

**٢۴ - د تجارت په زمکې باندې زکات نشته**

که چيرته عشري يا خراجي زمکه د تجارت په غرض سره واخلي نو د هغې په ماليّت باندې زکات فرض نه دی.

**قال الامام الکاسانی رحمه الله قال اصحابنا فيمن اشتری ارض عشر للتجارة او اشتری ارض خراج للتجارة ان فيها العشر او الخراج و لا تجب زکوٰة التجارة مع احدهما هو الرواية المشهورة عنهم و روی عن محمد رحمه الله انه يجب العشر والزکوٰة او الخراج والزکوٰة وجه هذه الرواية ان زکوٰة التجارة تجب فی الارض والعشر يجب فی الزرع و انهما مالان مختلفان فلم يجتمع الحقان فی مال واحد وجه ظاهر الرواية ان سبب الوجوب فی الکل واحد وهو الارض الا تری انه يضاف الکل اليها يقال عشر الارض وخراج الارض وزکوٰة الارض وکل واحد من ذلك حق الله تعالیٰ وحقوق الله تعالیٰ المتعلقة بالاموال النامية لا يجب فيها حقان منها بسبب مال واحد کزکوٰة السائمة مع التجارة و اذا ثبت انه لا سبيل الی اجتماع العشر و الزکوٰة و اجتماع الخراج و الزکوٰة فايجاب العشر او الخراج اولیٰ لانهما اعم وجوباً الا تری انهما لا يسقطان بعذر الصبا والجنون والزکوٰة تسقط به فکان ايجابهما اولیٰ. (بدائع الصنائع ج٢،ص٥٧)**

د بدائع په مذکوره عبارت کښې له **(کزکوٰة السائمة مع التجارة)** څخه ځينو اکابرو ته دا مغالطه لويدلې ده چه په تجارتي څاريو کښې زکات نشته. حالانکه دلته تشبيه په عدم زکات کښې نه دی بلکه په عدم اجتماع الحقين کښې دی. په تجارتي څارويو کښې د سائمه (څريدونکو) زکات نشته، په تجارتي ماليت باندې ئې زکات شته. چنانچه پخپله امام کاساني رحمه الله فرمائي: **ولو اسيمت للبيع والتجارة ففيها زکوٰة مال التجارة لا زکوٰة السائمة. (بدائع الصنائع ج٢،ص٣٠)**

**٢۵ - په ذاتي استعمال کښې په راتلونکو سبزيو او ميوو باندې هم عشر شته**

د فصل د پيدا کيدو او د ميوې د ظاهريدو په وخت کښې عشر واجبيږي. له دې امله چه له هغه څخه کوم شی چه خپله خوري يا ئې چا ته په هبه ورکړي په ټولو باندې عشر واجب دی. د خراج موظف هم همدغه حکم دی.

**قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالیٰ واما وقته فوقت خروج الزرع وظهور الثمر عند ابی حنيفة رحمه الله تعالیٰ و عند ابی يوسف رحمه الله وقت الادراك و عند محمد رحمه الله عند التنقية و الجذاذ (البحر الرائق**

ج۲،ص۲۳۷) وفی شرح التنویر و یؤخذ العشر عند الامام عند ظهور الثمرة وبدو صلاحها. برهان. وشرط فی النهر امن فسادها. وفی الشامیة قال فی الجوهرة واختلفوا فی وقت العشر فی الثمار والزرع فقال ابو حنیفة وزفر رحمهما الله تعالیٰ یجب عند ظهور الثمرة والامن علیها من الفساد وان لم یستحق الحصاد اذا بلغت حداً ینتفع بها وقال ابو یوسف رحمه الله عند استحقاق الحصاد وقال محمد رحمه الله اذا حصدت وصارت فی الجرین وفائدته فیما اذا اکل منه بعد ما صار جهیشا او اطعم غیره منه بالمعروف فانه یضمن عشر ما اکل واطعم عند ابی حنیفة وزفر رحمهما الله تعالیٰ، وقال ابو یوسف ومحمد رحمهما الله تعالیٰ لا یضمن (الی قوله) وان اکل منها بعد ما بلغت الحصاد قبل ان تحصد ضمن عند ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالیٰ ولم یضمن عند محمد رحمه الله وان اکل بعد ما صارت فی الجرین ضمن اجماعاً وما تلف بغیر صنعه بعد حصاده او سرق وجب العشر فی الباقی لا غیر اه والکلام فی العشر ومثله فیما یظهر خراج المقاسمة لانه جزء من الخارج امّا خراج الوظیفة فهو فی الذمة لا فی الخارج فلا یختلف حکمه بالاکل وعدمه تأمل. (ردالمحتار ج۲،ص۵۸)

**۲۶ - په عشر کښې د حاصل په ځای د هغه قیمت ورکول جائز دي**

په عشر او خراجِ موظف کښې مالِک اختیار لري چه د حاصلاتو له جنس څخه ئې ادا کوي او که ئې قیمت ورکوي

قال ابن عابدین رحمه الله فی حاشیته علی قول الشارح وللامام حبس الخارج للخراج قلت وفی البدائع ان الواجب فی الخراج جزء من الخارج لانه عشر الخارج او نصف عشره وذٰلك جزؤه الّا انه واجب من حیث انه مال لا من حیث انه جزء عندنا حتّٰی یجوز اداء قیمته اه. والمتبادر منه ان المراد خراج المقاسمة فاذا کان له اداء القیمة لا یکون للامام الاخذ من عین الخارج جبراً. (ردالمحتار ج۱،ص۵۸)

**۲۷ - د مسکین سړي په زمکې باندې د عشر تفصیل**

د سلطان د نه موجودوالي په صورت کښې مسکین سړی عشر پخپله ځان ته کینبودلی شي او که سلطان موجود وي نو بیا هغه ته اختیار دی. والله سبحانه وتعالیٰ اعلم ۱۶ شعبان ۱۳۷۴ هجری

## د سلطان یا بادشاه له خوا څخه د عشر او خراج د عفو کولو حکم

**سوال** چه می فرمایند علماء دین درین مسئله که واقع شده است بین ائمه بلوچستان چرا که بادشاه حکم مقرر نموده که از محصول پیدا شده از صد من یک من و نیم تحویل پاکار بدهند. آیا ازین مقدار عُشر از ذمه زمینداران ساقط خواهد شد یا نه؟ بعضی قائل بجواز اند بدلیل تصرف

بادشاه‌که بخشد، یا ترک کند عُشرا را، آیا این تصرف خلاف آیات و حدیث و اجماع است یا نه؟ از کتب لا یجوز مثل بحر الرائق و غیره و از کتب یجوز کدام ترجیح دارد؟ از یجوز کدام مذهب و از لا یجوز کدام؟ بینوا بیاناً واضحاً و توجروا اجراً وافراً.

ترجمه: څه فرمائي د دین علماء کرام په دې مسئله کښې چه د بلوچستان د امامانو تر منځ واقعه شوې ده څکه چه بادشاه امر کړی دی چه د زمکې له پیدا شوي حاصلاتو څخه یو نیم من حکومت ته باید ورکړ شي. آیا د عشر همدومره اندازه د زمیندارانو له غاړې ساقطیږي او که نه؟ ځینې علماء ئې د جواز قائل دي د بادشاه د تصرف په دلیل سره چه یا عشر وبخښي او یا ئې پریږدي. آیا دا تصرف د آیتونو، حدیثو او اجماع خلاف دی او که نه؟ د جواز نه ورکوونکو کتابونو لکه بحر الرائق او داسې نور او د جواز ورکوونکو کتابونو څخه کوم یو ئې ترجیح لري؟ د جواز ورکوونکو کوم مذهب او د نه جواز ورکوونکو کوم مذهب دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د عشر او خراج د معاف کولو په جواز کښې د ائمه ؤ او فقهاؤ رحمهم الله تر منځ اختلاف مشهور دی. او په متداولو کتابونو کښې لیکل شوی دی. او د قول تر تحقیق وروسته او افتاء د لاندیني تفصیل له مخې لازمه ده.

۱ - که چیرت سلطان یا بادشاه د غفلت یا د شریعت له حکم څخه د بې خبری یا د بشریت د نه خیال ساتلو له وجې له ټول رعیت څخه عُشر یا خراج نه غواړي نو په دې صورت کښې عشر او خراج نه ساقطیږي بلکه صدقه کول ئې واجب دي.

لما فی الهندیة فی الباب السابع من کتاب السیر السلطان اذا لم یطلب الخراج ممن علیه کان علی صاحب الارض ان یتصدّق به و ان کان تصدّق بعد الطلب لا یخرج عن العهدة کذا فی فتاوٰی قاضی خان (عالمگیریة ج۲) و ایضاً فیها معزیاً للذخیرة و ذکر شیخ الاسلام ان السلطان اذا ترک العشر علی صاحب الارض فهو علی وجهین الاوّل ان یترک اغفالاً منه بان نسی ففی هذا الوجه کان علی من علیه العشر ان یصرف قدر العشر الی الفقیر. (عالمگیریة ج۲)

۲ - که چیرته ټاکل شوي غني سړي ته عشر معاف کړي پس دا به په مذکور غني باندې د بادشاه له خوا یوه تحفه وي او په سلطان باندې لازمه ده چه د همدې تحفې یا جائزې په اندازه له هغه بیت المال څخه چه د خراج لپاره دی هغه بیت المال ته چه د صدقې لپاره دی مال داخل کړي په دې شرطه د زمکې مالک د خراج مصرف وي. او که نه نو بادشاه به له ځانه د صدقې بیت المال ته د همدومره مال ضامن وي. پس که چیرته سلطان په مذکوره اندازې سره مال د صدقې بیت المال ته ور داخل کړي د زمکې د مالک له غاړې څخه عشر ساقطیږي او که نه نو د عُشر په اندازه صدقه

کول پرې واجب دي. همدارنګه که چیرته د غني له خوا څخه تبرعاً بادشاه د خراج بیت المال ته خراج داخل کړي د غني له غاړې څخه ساقطیږي او که نه نو تصدّق پرې واجب دی.

لما في الهندية معزياً للذخيرة ان كان من عليه العشر غنياً كان له ذٰلك جائزة من السلطان ويضمن السلطان مثل ذٰلك من مال بيت مال الخراج لبيت مال الصدقة. (عالمگيرية ج۲)

وفي الشامية تحت (قوله معزياً للبزازية) وان كان غنياً ضمن السلطان العشر للفقراء من بيت مال الخراج لبيت مال الصدقة اھ قلت وينبغي حمله على ما اذا كان الغني من مستحقي الخراج والا فينبغي ان يضمن السلطان ذٰلك من ماله تأمل. (ردالمحتار ج۳، كتاب الجهاد)

وقال في شرح التنوير وترك السلطان او نائبه الخراج لرب الارض او وهبه له ولو بشفاعة جاز عند الثاني وحل له لو مَصرفاً والّا تصدّق به وبه يفتى وما في الحاوي من ترجيح حلّه لغير المصرف خلاف المشهور. (رد المحتار ج۳)

۳ - د بادشاه معاف کول د عشر یا د خراج مصرف لره جائز دي. لما في الهندية معزياً للذخيرة وان كان من عليه العشر فقيراً محتاجاً الى العشر فترك ذٰلك عليه جائز وكان صدقة عليه فيجوز كما لو اخذ منه ثم صرف اليه. (عالمگيرية ج۲) وفي الشامية (قوله معزياً للبزازية) وذٰلك حيث قال وفي البزازية السلطان اذا ترك العشر لمن هو عليه جاز غنياً كان او فقيراً لكن ان كان المتروك له فقيراً فلا ضمان على السلطان (الى قوله) و قدمنا في باب العشر عن الذخيرة مثل ما في البزازية. (ردالمحتار ج۳)

وفي التحرير المختار لردّ المحتار للرافعي في مسائل شتى من المجلد الخامس للشامية (قوله ولو ترك العشر لا يجوز الخ) اي وكان رب الارض غنياً فلو فقيراً يجوز اھ ط عن المفتاح وعليه لم يكن فرق بين الخراج والعشر فانه يجوز ترك كل للمصرف لا لغيره. (التحرير المختار ج۲)

د دې فقیر په نظر کښې د عشر او خراج تر منځ فرق دا دی چه د خراج پریښودل غني ته جائز دی په دې معنی چه سلطان به ئې ضامن نه وي، لیکن د دې خراج اندازه د غني لپاره روا نه ده بلکه صدق کول ئې پرې واجب دي. او د عشر پریښودل غني ته جائز نه دي په دې معنی چه سلطان به ئې ضامن وي. لنډه دا چه د حلّت او حرمت په باره کښې فرق نشته لیکن د سلطان د تضمین په باره کښې فرق شته. او دا فرق د د توفیق د وجوهاتو تر منځ چه په لاندیني توګه دي څرګند او ثابت به شي.

## د توفيق وجوهات

هر څه د سراج نومي کتاب چه د تنوير شارح راوړی دی د جزئيې چه (ولو ترك العشر لا يجوز اجماعاً ويخرجه بنفسه للفقراء سراج) او د بزازيه د جزئيې (السلطان اذا ترك العشر لمن هو عليه جاز غنياً كان او فقيراً) تر منځ توفيق د دوو وجوهاتو له مخې ممکن دی.

١ - د سراج جزئيه دې په هغه سړي باندې محموله شي چه اصلاً مصرف نه وي او د د بزازيه او ذخيره جزئيه په هغه سړي باندې چه د عُشر يا خراج مصرف وي. او د جواز معنٰی په سلطان باندې له خپل مال څخه د ضمان نه واقع کيدل دي او مراد له نه عدم جواز څخه د هغه ضد دی. **قال الرافعي فی التحرير المختار لرد المحتار فی کتاب الجهاد من المجلد الثالث للشامية قد يقال يحمل ما فی السراج علی ما اذا لم يکن رب الارض مصرفاً اصلا وما فی البزازية علی ما اذا کان مصرفاً ولو للخراج. (التحرير المختار ج٢)**

او د سراج د جزئيې په هغه چا باندې چه اصلاً مصرف نه وي - حمل کولو دليل دا دی چه د تنوير شارح د خراج په بيان کښې د (جائز عند الثانی) لفظ راوړی دی او د صاحبينو رحمهما الله تر منځ اختلاف په معاف کولو د خراج له غير مصرف څخه دی. ليکن له مصرف څخه په اتفاق سره جائز دی.

**کما فی الشامية ولم يظهر لی وجه قول محمد رحمه الله ان کان مراده انه لا يجوز ولو کان مصرفاً للخراج. (شامية ج٣) وفی التحرير المختار لرد المحتار فی کتاب الجهاد (قوله ولم يظهر لی وجه قول محمد الخ) ما فی الحاوی يفيد ان الخلاف فی غير المصرف وعبارته علی ما فی الحموی واذا ترك الامام خراج ارض رجل او کرمه او بستانه ولم يکن اهلاً لصرف الخراج اليه عند ابی يوسف رحمه الله يحل وعليه الفتوٰی وعند محمد رحمه الله لا يحل الخ. (التحری المختار ج٢)**

پس د "جاز عند الثانی" لفظ په دې باندې ښکاره دليل دی چه د خراج په بحث کښې د غير مصرف حکم مذکور دی نه د مصرف. او د تقابل له وجې دې خبرې لره هم مستلزم دی چه د عشر حکم هم د غير مصرف لپاره دی.

او هر څه په دې باندې دليل چه له جواز څخه مراد په سلطان باندې د ضمان نه واقع کيدل دي. هغه څه چه علامه ابن عابدين رحمه الله د خراج په باره کښې ليکلي دي (**قوله وحل لو مصرفاً) اعاده لان قوله جاز ای جاز ما فعله السلطان بمعنی انه لا يضمن ولا يلزم من ذلك حله لرب الارض. (شامية ج٣)** پس د شريعت په حکم کښې د (لا يجوز) لفظ چه د "جاز" د لفظ په مقابل کښې واقع شي نو د هغه په ضد

باندې محمولیږي

غرض دا چه د سراج د عبارت حاصل دا دی چه که چیرته بادشاه داسې سړي ته عشر معاف کړي چه اصلاً مصرف نه وي نه د عشر او نه د خراج. پس بادشاه به له خپل مال څخه د صدقې بیت المال ته ضامن وي. که چیرته ئې سلطان ادا نه کړي نو د زمکې په خاوند باندې لازمه ده چه په مسکینانو باندې صدقه وکړي. او د بزازیې او د ذخیره له عبارت څخه حاصل دا دی چه که چیرته بادشاه داسې سړي ته عشر ساقط کړي چه مصرف وي که د عشر وي او که د خراج. پس په هغه باندې له خپل مال څخه ضمان نشته بلکه د عشر د مصرف په صورت کښې به په بادشاه باندې هیڅ حکم لازم و نه ګرځي. او په داسې صورت کښې چه د عشر مصرف نه وي بلکه د خراج مصرف وي نو بیا په بادشاه باندې لازمه ده چه د عشر په اندازه د خراج له بیت المال څخه د صدقې بیت المال ته مال ور داخل کړي. **فلاتنافی بین العبارتین.**

۲ - د توفیق دویمه وجه کومه چه د دې فقیر په ذهن کښې راځي هغه دا چه د **(لایجوز)** له لفظ څخه مراد کوم چه د سراج په جزئیه کښې دی په سلطان باندې د ضمان راتلل دي یا له خپل مال څخه او یا د خراج له بیت المال څخه. او د مصنف رحمه الله مقصد د هغه چا د حکم بیانول دي چه د عُشر مصرف نه وي او د دغو دواړو دعوو اثبات د هغه دلائلو له مخې چه د توفیق په لومړۍ وجې کښې تیر شول ممکن دی **کمالایخفی.** او په بزازیه کښې د **(جاز)** لفظ په معنی د **(حل)** سره دی نه په معنی د ضمان د نه واقع کیدلو ځکه چه پخپله په بزازیه کښې وروسته د **(جاز غنیاً اوفقیرا)** له لفظ څخه راغلي دي چه له غني څخه د عشر د معاف کولو په صورت کښې به سلطان ضامن وي. پس د سراج له عبارت څخه مراد دا دی چه که چیرته سلطان هغه چا ته چه د عُشر مصرف نه وي عُشر معاف کړي نو سلطان به د خراج له بیت المال څخه ضامن وي که چیرته د خراج مصرف وي او که نه وي نو له خپل مال څخه به ئې ضامن وي. پس د عشر په اندازه د سلطان تر اداء کولو وروسته د زمکې د خاوند لپاره به حلال وي. د حرمت هیڅ وجه نشته. البته که چیرته ئې سلطان ادا نه کړي نو د زمکې په خاوند باندې ئې ادا کول واجب دي. او د بزازیه له مقصد څخه هم همدا مقصد دی چه د عشر په اندازه معاف شوی شی د زمکې د خاوند لپار حلال دی که غني وي او که فقیر. البته د غناء په صورت کښې په سلطان باندې ضمان لازم دی. **فوضح التوفیق واندفع التعارض، فاغتنم هذا التحریر وتشکر.** وروسته له مذکوره تفصیل څخه د اصل سوال خوا ته رجوع کوو. د سوال په صورت کښې راغلي دي چه سلطان له ټول رعیت څخه په سل منه غنمو کښې یو نیم من غنم اخلي او د حکومت همدا قانون ورته تاکل شوی دی. پس دا حکم او قانون د هر غني او فقیر لپاره په ښکاره د

سپیځلي شریعت مخالف او د قطعي نصوصو په مقابله کښې دی. له دې امله دا قانون مردود دی او جوړوونکی ئې په ښکاره ګمراهی کښې دی او له پاک او حنفي شریعت څخه منحرف دی. پس د دې قانون په سبب سره هیڅکله عُشر نه ساقطیږي بلکه د وضع شوي عُشر له اندازې څخه سلطان چه څومره شی اخلي پاتې برخه ئې په مسکینانو باندې صدق کول واجب دي. فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۶ ربیع الاول ۱۳۷۳ هجری

## د پاکستان او هندوستان زمکې عشري دي اوکه خراجي؟

**سوال**: د سندھ او پنجاب زمکې عشري دي او که خراجي؟ په امداد الفتاوی کښې حضرت تهانوي رحمه الله فرمائي چه "کومې زمکې چه په دې وخت کښې د مسلمانانو په ملک کښې دي او دوی ته له مسلمانانو څخه یا ارثاً یا شراءً یا هلمّ جرّا پاتې دي دا زمکې عشري دي او کوم چه په منځ کښې کافر مالک ګرځیدلی وي هغه عشري نه دي او د کومو زمکو چه هیڅ حال معلوم نه وي او په دې وخت کښې د مسلمانانو سره دي. بیا ئې څوک پوه کړي چه خاص له مسلمانانو څخه مو لاس ته راوړي دي په دلیل د استصحاب سره پس هغه به هم عشري وي" (امداد الفتاوی ج۲، ص۵۲ بحوالۀ تتمه اُولیٰ ص۵۰) حالانکه مولانا عبد الغفور سندهي همایوني رحمه الله پخپله رسالې "سراج الهند في تحقيق خراج الهند" کښې ثابت کړي دي چه محمد بن قاسم رحمه الله د سندھ په زمکو باندې خراج مقاسمه مقرر کړی وو. د همایوني عبارت ستاسو په خدمت کښې وړاندې کیږي

(ارض السند خراجية خراج مقاسمة وخراجها الخمس كما حققه المحققون فقد قال المخدوم عبد الواحد السيوستاني فى البياض الواحدى ارض السند خراجية او عشرية؟ الظاهر ان ارض السند خراجية فتحت عنوة اما فتح السند بالسيف وعدم كونه عشرياً فذكر فى رفع الفرية للشيخ ابى الحسن الدهرى قد ثبت فى كتب التاريخ ان فتح السند كان فى سنة ثلاث وتسعين وكان عنوة الا مردم چنه استمعوا طوعاً على ما صرحوا به فى التاريخ اه وعبارة المعصومية هكذا) د چنه نومي ځای خلکو چه کله د اسلام د غلبې خبرونه واوریدل نو د محمد بن قاسم خدمت ته ئې لیکونه سره له پیشکشونو ولیکل او په طاعت او مال ورکولو سره ئې قبول کړل او بیرته را وګرځیدل. له دې سببه د اسلام فقهاؤ د اوبو هغه مخ ته چه د چنه د خلکو په تصرف کښې وو عشري وائي آه.

هذا مشعر بأن الارض التى ليست فى تصرف مردم چنه خراجية وقد صرح الشيخ ابو الحسن المذكور ان خراج اهل السند هو الخمس اى ضعف العشر وقال ايضاً فى الرسالة المذكورة وما سمعت من احد وما وجدت فى كتاب ان محمد بن القاسم وضع العشر على ارض السند فلو وضع لنفذ انتهى ما فى البياض الواحدى وقال

المخدوم محمد عارف فی بیاضه الظاهر ان ارض السند و الهند خراجية و خراجها الخمس كما حققه الشيخ المحقق الدهری فی رسالته المسماة برفع الفرية ونقل فيها عن جامع الفتاوى الناصرى ان ارضنا عشرية لكن ضعف هذا النقل اه. وقال العلامة المخدوم محمد هاشم التتوى فی اتحاف الاكابر قال الاثير فی الانساب السند بلاد من الهند اه وفيه ايضاً فی فتح القدير ان[1] بلاد السند فتحها محمد بن قاسم الثقفی سنة ثلاث وتسعين اه و ذكر الحافظ السيوطی فی تاريخ الخلفاء ان فی سنة ثلاث وتسعين ايام خلافة الوليد بن عبد الملك فتحت الدبيل ولا شك ان الدبيل هو اكبر قصبات السند و مدار ديارها اه ما فی الاتحاف. (سراج الهند فی تحقيق خراج السند)

تاسو حضرت د دغو عبارتونو په ملاحظه کولو سره خپل تحقيق وليکئ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : لکه څرنګه چه له محمد بن قاسم رحمه الله څخه د سندھ په زمکو باندې د خراج مقررول ثابت دي همدارنګه دا خبره هم تحقيق ته رسيدلې ده چه د ځينو علاقو خلکو اسلام راوړی وو له دې امله په هغوی باندې عشر مقرر شوی وو. چنانچه د تاريخ له مستندو کتابونو پرته پخپله د مولانا همايوني په همدې رسالې کښې هم د دې تصريح موجوده ده. همدارنګه له تاريخ څخه ثابت دي چه ځينو مجاهدينو ته څه جائدادونه د ملک په توګه ورکړ شوي وو. (فتوح البلدان للبلاذري (ص۴۲۵) او د وليد بن عبد الملک په آخري دور کښې د راجه داهر زوی جيسيه بغاوت وکړ او د برهمن آباد مستقل بادشاه جوړ شوی وو. همدارنګه د سندھ د نورو ډيرو رياستونو راجه ګان هم باغيان شوي او خپلواک جوړ شوي وو. د حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله زمانه راغله نو ده دغو راجه ګانو ته د خطونو په ذريعې سره لومړی د اسلام راوړلو او بيا د اطاعت کولو دعوت ورکړ چه په دې سره دوی ټول مسلمانان شول. حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله همدغه راجه ګان د خپلو خپلو رياستونو حاکمان وټاکل او د دوی په ټولو زمکو باندې د دوی ملکيت پخپل حال پاتې شو. (کامل لابن اثير ج۴، ص۲۲۳) پرته له دې څخه د اسلام قلمرو په اوږدې مودې کښې په يقيني توګه ډيرې نوې زمکې آبادې شوې. پورتنی ياد شوي د زمکې ټول ډولونه عشري دي. برسيره پر دې په کومو زمکو باندې چه په لومړۍ مرحله کښې محمد بن قاسم رحمه الله خراج ايښی وو په هغو کښې دا احتمال هم شته چه ځينې زمکې له څه مودې وروسته غير آباده يا لا وارثه پاتې شوې او د بيت المال په ملکيت کښې راغلې او بيا د بيت المال

---

۱ - راجعت الفتح فوجدت فيه واما الهند فافتتحها القاسم بن محمد الثقفی سنة ثلاث وتسعين. (فتح القدير ج۴، ص۳۵۹) ۱۲ رشيد احمد

له خوا څخه دې مسلمانانو ته ورکړ شوي وي. لنډه دا چه تقريباً د دريالس سوه كلونو له انقلاباتو څخه وروسته د كومې زمكې د صحيح حقيقت معلومول ممكن نه دي. له دې امله د حضرت تهانوي قدّس سره تحقيق په حقه دی. ليكن دا حكم د هغو زمكو دی چه له اوږدې مودې څخه نسل په نسل مملوكه (د چا په تر ملكيت لاندې) راغلې وي. له دې پرته د زمكې څه نور دولونه هم شته:

۱ - د هندوستان له تقسيم څخه مخكښې د برطانيې د حكومت له خوا څخه يا تر تقسيم وروسته د هند د حكومت يا كوم بل كافر حكومت له خوا څخه چه كومې غير آبادې زمكې مسلمانانو ته په قيمت يا پرته له قيمت څخه وركړ شوي دي. دا د كافر له ملک څخه د راتلو له وجې خراجي دي. داسې غير آبادو زمكو ته عموماً مباح الاصل يا غير مملوک ويل كيږي. له دې څخه مقصد دا دی چه دا د چا شخصي ملک نه دی. له لاندېني عبارتونو څخه ثابتيږي چه دا زمكې د حكومت په ملک كښې دي.

قال الامام الطحاوی رحمه الله مما يفرق بين الارض الموات وبين ماء الانهار والصيد انا رأينا الصيد وماء الانهار لا يجوز للامام تمليك ذلك احداً ورأيناه لو ملك رجلاً ارضاً ميتة ثم ملكها الرجل اٰخر جاز، وكذلك لو احتاج الامام الى بيعها فی نائبة للمسلمين جاز بيعه لها ولا يجوز ذلك فی ماء نهر ولا فی صيد برٍّ ولا بحرٍ، فلم كان ذلك الى الامام فی الارضين دلّ ذلك ان حكمها اليه فی يده كسائر الاموال التی فی يده للمسلمين (الطحاوی ۲، ص۱۲۹)

وقال العلامة الطوری رحمه الله لان هذه الاراضی كانت فی ايدی الكفار فصارت فی ايدی المسلمين فكانت فيئًا. (تكملة فتح القدير ص۲۱۰)

وفی الهداية لانها كانت فی ايدی الكفرة وحوتها ايدينا غلبة فكانت غنيمة (هداية ج۱، ص۱۹۹) وفی اعلاء السنن والجواب عنه انه قياس فاسد لانّ الارض الميتة ملك لبيت المال فيحتاج الى اذن الامام بخلاف الطير وغيره فانه لا ملك فيه لاحد (اعلاء السنن، ص: ۲، ۱۸).

بعضې حضرات د شامی د (باب الركزاة) عبارت (فان ارضها ای دار الحرب ليست ارض خراج وعشر) نه په مغالطه كښې پرې وتلی دی چه دا په دارالحرب كښې د اوسيدونكو مسلمانانو حكم دې، چه په هغوئ باندې نه عشر شته اونه خراج، حال داچه دهغې مقصد دادې چه د اهل حرب په ځمكو باندې عشر يا خراج نشته، ځكه چه هغه د شريعت په حكمونو باندې مكلف ندی، لكه څنګه چه د شمس الائمه امام سرخسی عبارت د دې خبرې وضاحت كوی (ونصه ان العشر والخراج انما يجب فی اراضی المسلمين وهذه اراضی اهل الحرب ليست بعشرية ولا خراجية (شرح السير الكبير، ص: ۲۰۳، ج: ۴).

۲ - د هندوستان له تقسیمیدو څخه وروسته چه د پاکستان له حکومت څخه مسلمانانو کومې غیر آبادې ځمکې په قیمت یا بغیر له قیمت نه اخیستې دی او آبادې کړی ئی دی نو دا په عشری یا خراجی کیدو کښې د نزدې ځمکې تابع دی، اوکه هغې ته نزدې ځمکې برابرې وې نوبیا به آبادې ځمکې عشری وی . (قال فی التنویر ولو احیاه مسلم اعتبر قربه وفی الشامیة ای قرب ما احیاه ان کان الی ارض الخراج اقرب کانت خراجیة وان کان الی العشر اقرب فعشریة .نهر.وان کانت بینهما فعشریة مراعاة لجانب المسلم، وهذا عند ابو یوسف رحمه الله تعالیٰ واعتبر محمد رحمه الله تعالی الماء فان احیاها بماء الخراج فخراجیة والآ فعشریة .بحر. وبالاوّل یفتی،در منتقی،ردالمحتار،ص:۲٦٧،ج:۳)

۳ - په پاکستان کښې د غیر مسلمو مملوکه ځمکې چه کومې مسلمانانو ته ورکړې شوی دی هغه عشری دی، د هندوستان د تقسیمیدو په وخت کښې اگرچه د هندوستانو او پاکستان د حکومتونو ترمینځ د تبادلۀ املاك معاهده شوې وه لیکن د هندوستان حکومت دیرزر هغه وعده ماته کړه، له همدې وجې نه د غیر مسلمو په ملکیتونو باندې د پاکستان د حکومت قبضه منتظمانه نه وه بلکه دا اموال فئ املاك دی .

۴ - د غیرمسلمو متروکه ځمکې اویا شارې ځمکې چه کومې د پاکستان حکومت کوم مسلمان ته د عاریت یا اجارې اویا مزارعت په طور ورکړې وې او په ملکیت سره ئی نه وې ورکړې نو دغه ځمکې نه عشری دی او نه خراجی، ځکه چه دا ځمکې سلطانیه دی : (قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی فی عنوان، تتمه. فی التتارخانیة السلطان اذا دفع اراضی لامالك لها وهی التی تسمّی اراضی المملکة الی قوم لیعطوا الخراج جاز وطریق الجواز احد شیئین : اما اقامتهم مقام الملاك فی الزارعة واعطاء الخراج اوالاجارة بقدر الخراج ویکون الماخوذ منهم خراجًا فی حق الامام اجرة فی حقهم - آه - ومن هذا القبیل الاراضی المصریة والشامیة کما قدمناه ویؤخذ من هذا انه لاعشر علی المزارعین فی بلادنا اذا کانت اراضیهم غیر مملوکة لهم لان ما یاخذ منهم نائب السلطان وهو المسمّی بالزعیم اوالتیماری ان کان عشرًا فلا شئ علیهم غیره وان کان خراجًا فکذلك لانه لایجتمع مع العشر وان کان اجرة فکذلك علی قول الامام من انه لاعشر علی المستاجر واما علی قولهما فالظاهر انه کذلك لما علمت من ان الماخوذ لیس اجرة من کل وجه لانه خراج فی حق الامام تأمل.ردالمحتار،ص:٦١،ج:۲).

۵ - د هندوستان د حکومت له طرف نه د مسلمانانو متروکه ځمکې چه کومې مسلمانانو ته ورکړې شوی دی هغه د استیلاء الکافر له وجه نه خراجی دی .

محمد بن قاسم رحمه الله اگرچه د سند په ځمکو باندې مقاسمه (۱/۵) یعنې خمس مقرر کړې وؤ، د بزرگانو په رضایت سره د مقاسمې خراج په مؤظف سر بدلول جائز دی، (کمایدل علیه تعلیل حرمة التبدیل بان فیه نقض العهدوهو حرام.ردالمحتار،ص:۳٦۲،ج:۳)

نن سبا دځمکې مصرف د پیداوار له خمس نه ډیر کم دې په کومه چه د بزګرانو رضایت یقینی دې. لهذا د حکومت پاکستان له خوا نه د موظف خراج اخستل صحیح دی، البته د عشری ځمکو مصارف د حکومت لخوا نه په ادا کولو سره عشر نه ساقطیږی او دهندوستان په مسلمانانو لازم دی چه د خراجی ځمکې خراج هم په خپله طریقه د خراج په مصرافو باندې صرف کړی، د حکومت له خوا نه په مقرر شوی محصول ادا کولو باندې خراج نه اداء کیږی **(لان الکافرین لیس لهم ولایة اخذ الخراج من المسلمین وایضًا لیسوا بمصارف الخراج کما فی جامع الفصولین. سراج الهند فی تحقیق خراج السند للعلامة الهمایونی). فقط والله تعالیٰ اعلم.**

**۱۶ / شعبان، سنه: ۱۳۷۴ هـ.**

# باب صدقة الفطر

## شیعه او مرزائي ته صدقة الفطر (سرسایه) ورکول جائز نه دي

**سوال**: کافر، آغاخاني، شیعه یا مرزائي ته صدقهٔ فطر ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: حربي کافر ته صدقهٔ فطر په اتفاق سره جائز نه دي، د ذمّي په باره کښې اختلاف دی. د شامي په باب المصرف او باب صدقة الفطر کښې په ظاهره جواز ته ترجیح معلومیږي لیکن د کفارهٔ ظهار په باب کښې له کافي څخه د خلاف له یادونې پرته ئې عدم جواز نقل کړی دی. کوم چه د فیصلې لپاره کافي ده. **ونصه تحت (قوله ومصرفا) قال الرملي وفي الحاوي وان اطعم فقراء اهل الذمة جاز ع وقال ابي یوسف رحمه الله لا یجوز وبه نأخذ قلت بل صرح في كافي الحاكم بانه لا یجوز ولم يذكر فيه خلافا وبه علم انه ظاهر الرواية عن الكل. (رد المحتار ج۲، ص۶۳۳)**

د آغا خاني، شیعه او قادیاني کفر او د دوی حکم له نورو کفارو څخه زیات سخت دی، دوی زندیق دي، دوی ته د فطر د صدقې ورکول په اتفاق سره جائز نه دي. له دوی سره هر ډول تعاون او امداد بلکه بیع او شراء (اخیستل او خرڅول)، اجاره او استجاره او داسې نورې ټولې معاملې جائزې نه دي. **والله سبحانه وتعالى اعلم.** **۱۶ محرم ۱۳۸۸ هجری**

**«ذمي ته صدقهٔ فطر ورکول جائز نه دي، تفصیل ئې په تتمه کښې دی»**.

## د صدقة الفطر نصاب

**سوال**: صدقة الفطر په څومره مالیت باندې واجب دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: سره زر **۸۷/۴۷۹** ګرامه یا سپین زر **۶۱۲/۳۵** ګرامه یا په دغو دواړو کښې د یوه له قیمت سره برابر نقدې روپۍ یا د تجارت مال یا په کور کښې د ورځني استعمال له شیانو څخه زیات سامان یا د دغو پنځو یا په دغو کښې د ځینو شیانو مجموعه له چا سره وي نو صدقة الفطر پرې واجب دی. له دریو جوړو جامو څخه زیاته جامه، راډیو او تلویزون غوندې خرافات په انساني حاجاتو کښې داخل نه دي له دی امله دغو شیانو قیمت هم په حساب کښې لګول کیږي.

**في اضحية الشمية وصاحب الثياب الاربعة لو ساوى الرابع نصابا غني وثلاثة فلا، لان احدها للبذلة والأخر للمهنة والثالث للجمع والوفد والاعياد (رد المحتار ج۵، ص۲۱۹)**

**فقط والله تعالى اعلم** **۲۱ رمضان ۱۳۸۸ هجری**

## په صدقة الفطر (سرسایه) کښې د غنمو قیمت معتبر دی

**سوال** : صدقهٔ فطر د وړو په شکل کښې اداء کیږي او که په بازار کښې د غنمو د نرخ په معلومولو سره اداء کیږي په داسې حال کښې خلک تیار وړه خوري، او کوم خلک چه له بازار څخه ښه وړه یا غوره غنم اخلي او بیا ئې خوري هغوی به د تیار وړه له حسابه صدقهٔ فطر ادا کوي او که د بازار په نرخ سره به ئې ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د غنمو قیمت به اداء کوي د وړو قیمت که چیرته له غنمو څخه کم وي نو د وړو یا د هغه د قیمت په ورکولو سره صدقة الفطر نه ادا کیږي. **کذا فی الشامیة.**

**فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۵ رمضان ۱۳۹۵ هجری**

## له رمضان شریف څخه مخکښې صدقة الفطر ورکول جائز دي

**سوال** : د رمضان المبارک له میاشت څخه مخکښې د صدقة الفطر ورکول جائز دي او که نه؟ په بهشتي زیور کښې ئې په رمضان کښې ورکول صحیح بللي دي لیکن له رمضان شریف څخه مخکښې د ورکولو ذکر نشته. د دې وضاحت وکړئ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې کښې اختلاف دی. د جواز اړخ ئې راجح دی. **قال فی التنویر و صح اداؤها اذا قدمه علی یوم الفطر او اخره بشرط دخول رمضان فی الاول هو الصحیح، و فی العلائیة و به یفتی جوهرة و بحر عن الظهیریة، لکن عامة المتون و الشروح علی صحة التقدیم مطلقاً و صححه غیر واحد و رجحه فی النهر و نقل عن الولوالجیة انه ظاهر الروایة قلت فکان هو المذهب.(رد المحتار ج۲، ص۸۵)**

**فقط والله تعالیٰ اعلم** **۱۱ رمضان ۱۳۹۶ هجری**

## سیّد ته صدقة الفطر (سرسایه) ورکول جائز نه دي

**سوال** : آیا سیّد ته صدقهٔ فطر ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: نه جائز نه دي. د رکاز له پنځمې پرته ټول واجب صدقات لکه نذر، کفاره او داسې نور په بنو هاشم باندې حرام دي. **کذا فی الشامیة.**

**فقط والله تعالیٰ اعلم** **۱٤ رمضان ۱٤۰۱ هجری**

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿ وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ ۝ ﴾

# بسط الباع لتحقيق الصاع

## د صاع د وزن تحقيق

**«د درهم، مثقال، صاع وغيره وزنونو شرعی تنقیح ، دمتقدمینو فقهاؤ قابل قدر تحقیقات اودعصری اوبرقی ماشین الاتو د تدقیقاتو په رڼا کښې تحقیق»**

**سوال**: د شرعي درهم، مثقال او صاع وزن څومره دی؟ حضرت مفتي محمد شفیع رحمه الله چه په اوزان شرعیه نومي رساله کوم تحقیق کړی دی د هغه په اړه ستاسو رایه څه ده؟ همدارنګه د قصر د مسافې په اړه ستاسو تحقیق څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دومره خبره خو مسلمه ده چه درهم ۱۴ قیراطه، مثقال ۲۰ قیراطه او صاع ۱۰۴۰ قیراطه دی. له دې سره سره د لاندینیو وجوهاتو پر بناء د دغو وزنونو صحیح حقیقت ته رسیدل ډیر مشکل دي.

۱ - د دغو ټولو وزنونو بناء د قیراط د وزن په تعیین باندې ده. حضراتو فقهاء کرامو د یوه قیراط وزن ۵ متوسطې وربشې چه سره له پوستکي وي لیکلی دی چه له دواړو خواوو څخه ئې په سر کښې هغه نری تار پرې شوی وي. بیا ئې د اوربشې وزن د وریژو په دانو سره او د وریژو وزن ئې د خردل په دانو سره کړی دی. لیکن د دغو شیانو دانې پخپل منځ کښې سره مختلف وي. خصوصاً په مختلفو ملکونو او مختلفو زمانو کښې په دغو دانو کښې نور هم د زیات اختلاف احتمال شته. د دې لپاره د دوی په وزن کښې هم لاندینی اختلاف پیدا شو.

یو قیراط - ۵ اوربشې، ۱۲ وریجې، ۴/۵ - ۱رتي، ۲ رتی.

یوه اوربشه - ۳ وریجې ، ۴ وریجې، ۲ خردل.

یوه وریجه - ۲ خردله، ۲ تازه ځنګلي خردله، ۴ خردله.

۲ په ابتدائي وزنونو کښې داسې فرق راتلی چه احساس ئې نه کیږي لیکن غټو وزنونو ته په تلوسره د ډیرزیات فرق باعث جوړیدلی شي. د مثال په ډول ۵ اوربشې - یو قیراط، او ۲۰ قیراطه - یو مثقال. نو په دې سره د یوه مثقال - ۲۰ × ۵ - ۱۰۰ اوربشو د حساب صحت متیقن نه دی.

۳ - کله کله په کوچنیو وزنونو کښې معمولي فرق په قصد سره له نظره اچول کیږي کوم چه بیا لویو وزنونو ته په تلو سره د ډیر لوی فرق سبب جوړیږي. چنانچه علامه شامي رحمه الله فرمائي: و

الاستار بکسر الهمزة بالدراهم ستة ونصف وبالمثاقيل اربعة ونصف کذا في درر البحار.

دلته تقريبا $\frac{1}{2}$ ۴ مثقاله ليکل شوی دی. تحقيقي وزن $\frac{11}{20}$ ۴ مثقاله دی. له دې امله د فقهاؤ رحمهم الله د تصريح مطابق د درهـــم نسبت له مثقال سره (۷/۱۰) دی. په ټولو کتابونو کښې د سبعه (اوه ګوني) وزن له تصريح پرته د درهم-۱۴ قيراطه او مثقال- ۲۰ قيراطه تصريح هم له (۷/۱۰) نسبت سره مترادف دی. پاتې شو دا احتمال چه بنائي د مثقـــال په ځای د $\frac{1}{2}$ ۲ درهمو وزن تقريباً اخيستل شوی وي. البته دا د دې لپاره صحيح نه ده چه د شامي د تصريح مطابق صاع - ۱۰۴۰ درهمه او ۱۲۰ استاره دی. پس استار - $\frac{1}{2}$ ۲ درهمـــو حساب بالکل د دې مطابق راځي پرته له دې ځخـــه رافعي رحمه الله د دې تصريح کړې ده چه پـــه مذکوره عبارت کښې $\frac{1}{2}$ ۴ مثقاله تقريباً ليکل شوی دی. ونصه (قوله وبالمثاقيل اربعة ونصف) ای تقريباً والا فستة دراهم ونصف تبلغ من القراريط واحداً وتسعين قيراطاً والاربع ونصف من المثاقيل تبلغ تسعين قيراطاً والتحقيق ان يقال وبالمثاقيل اربعة ونصف وقيراط تأمل. (التحرير المختار ج۱، ص۱۳۲)

له دې تحقيق ځخه ثابته شوه چه د اوزان شرعيه په رساله کښې ئې چه د صاع وزن د مثقال پـــه ذريعې سره د صاع وزن د درهم له ذريعې ځخه درې تولې کم ليکلی دی هغه $\frac{1}{2}$ ۲ درهمه - $\frac{1}{2}$ ۴ مثقاله تقريباً ئې د تحقيقاً بللو په مغالطه باندې مبني دی او که نه نو د تحقيقي حساب په بناء سره د صاع وزن د مثقال په ذريعې سره د درهم په ذريعه د وزن با لکل برابر دی.

۴ - د صاع د وزن په تعيين کښې يو بل اشکال دا دی چه د دې په برابر د غنمو وزن په يوه داسې لوښي کښې واچول شي کوم چه له غنمو ځخه ډک شي نو دا لوښی د هر ډول غنمو لپاره معيار نه شي جوړيدلی، ممکنه ده چه نور غنم له دې ځخه سپک وخيژي له دې امله په دې لوښي کښې د اچول شويو غنمو وزن د صاع له ټاکلي وزن ځخه کميږي.

خلاصه دا چه د دغو اوزانو په اړه کومه يقيني فيصله نه شي کيدلی. البته له غالب ګومان ځخه ترجيح يا په عباداتو کښې د احتياط طريقه غوره کيدلی شي. په فتاوی حماديه کښې ئې قيراط - $\frac{4}{5}$ ۴ رتي ليکلی دی. ليکن له لاندينې دلائلو ځخه ځرګنديږي چه قيراط له ۲ رتي سره برابر يا له دې ځخه ډير معمولي کم دی. د دې لپاره درهم تقريباً $\frac{1}{2}$ ۳ ماشې او مثقال تقريباً ۵ ماشې دی.

۱ - په شامي، بحر، شرح وقايه، مجمع الانهر، جامع الرموز او داسې نورو کښې د قيراط وزن له ۵ متوسطو وربشو چه سپين شوي نه وي او له دواړو خواوو ځخه ئې نري تارونه پرې شوي وي سره برابر ليکلی دی. او په متانه کښې ئې يوه اوربشه له ۳ وريجو سره برابر ليکلی دی. نو ۵ اوربشې - ۱۵ وريجې - $\frac{7}{8}$ ۱ رتی شوه.

۲ - په هندي وزنونو کښې دوه اوربشې - له يوې رتی سره ده. دا حساب مشهور پاتې شوی دی

قال السجاوندی فالدینار عندهم (اهل الحجاز) مائة شعيرة وعند اهل سمرقند ستة وتسعون شعيرة (الی قوله) والحبة شعيرتان والشعيرة ستة خر ادل. (فتح القدير ج۱،ص۵۲۲) وفی الحمادية و کل ماهجة ستة عشر شعيراً. (حمادية ج۱،ص۴۲)

حکیم محمد شریف خان دهلوي پخپل کتاب علاج الامراض کښې لیکي: "از چهار خردله یک برنج اعتبار کنند و از چهار برنج یک جو و از دو جو یک رتی (اوزانِ شرعیه ص۱۴)" دلته څلور وریجې - د یوې اوربشې له وضاحت څخه ثابته شوه چه هغه د متوسّطې اوربشې په ځای غټه اوربشه را اخیستې ده. نو غټې دوه اوربشې له یوې رتی سره برابرې شوې. نو متوسطې ۵ اوربشې - ۲ رتی یاله دې څخه څه کم یا زیات کیدلی شي.

۳ - حضرت مفتي محمد شفیع صاحب د اوزان شرعیه په رساله کښې د دې تصریح کړې ده چه ما د حضراتو فقهاؤ رحمهم الله تعالی د وضاحت مطابق د درهم لپاره ۷۰ معتدلې نا سپین شوي لکی پرې شوي اوربشې او د مثقال لپاره همدا ډول د ۱۰۰ اوربشو وزن پخپله څو ځله وزن کړ او له ګڼ شمیر خواوو څخه مې وتلل. د رائج الوقت ماشې د اولې ذریعې وزن ۳ ماشې ۵ رتی او د دویمې ۵ ماشې ۲ رتی شوې. تر دې وروسته فرمائي:

«لیکن رائج الوقت ماشه توله، له اصل توله ماشې څخه څه اندازه کمه ده ځکه چه په دې وخت په بازار کښې د انګریزي سکې یوه روپی یوه توله ګڼل شوې ده کوم چه په حقیقت کښې د $11\frac{1}{2}$ ماشې دی او له اصل تولې څخه ۴ رتی کمه ده. په دې حساب سره ماشه $\frac{1}{3}$رتی کمه شوه. په ۳ ماشو باندې یوه رتی او په ۵ ماشو باندې $1\frac{3}{4}$ رتی کمه شوه. نو ګوا کـه د دې وزن په حساب سره ۷۰ اوربشې (درهم) ۳ ماشې ۴ رتی، یعنې ټول ۲۸ رتی تقریباً شولې او سل اوربشې (مثقال) تقریباً ۴۰ رتی یا ۵ ماشې شوې".

په دې وزن کښې دوه کمی دي:

د ۳ ماشو ۵ رتی، د ۵ ماشو ۲ رتی $\frac{7}{10}$ نه دی، حالانکه په درهم او مثقال کښې دا نسبت ضروري دی. (۲) په وزن کښې د ۴ رتی فی توله د کمی حساب تقریباً لګول شوی دی. صحیح حساب داسې دی.

$\frac{۹۲ \times ۲۹}{۹۶}$ - ۲۷/۷۹۱ رتی - درهمه، $\frac{۹۲ \times ۴۲}{۹۶}$ - ۲۵/ ۴۰ رتی - مثقاله. دا دویم کمی خو د صحیح حساب په ذریعې سره لرې کړی شو لیکن د اولني کمی د لرې کولو هیڅ صورت نشته. ځکه چه (درهم - ۲۷،۷۹۱۷) ÷ ۱۴ - ۱/۹۸۵۱ رتی - قیراطه شو.

او (مثقال - ۴۰/۲۵) ÷ ۲۰ - ۲/۰۱۲۵ رتی - قیراطه شو. پس د قیراط دوه مختلف وزنونه ووتل چه د یوه وزن غلط والی ښکاره دی. چونکه مثقال اصل دی همدا رنګه وزن ئې له درهم څخه

زيات دی او په زيات وزن کښې تر صحيح حقيقت پورې رسيدل آسانه دي د دې لپاره د همدې وزن ته به ترجيح وي. يعنې قيراط - ۲/۰۱۲۵ رتی. له دې وروسته ئې له ګنګچيو سره د وزن کولو ذکر کړی دی. د ګنګچيو د اختلاف له وجې د ۷۰ اوربشو مقابل له ۲۵ تر ۲۸ پورې او د ۱۰۰ اوربشو مقابل له ۳۲ تر ۴۱ ګنګچې پورې راغلې. له دې وروسته فرمائي چه "لکه څرنګه چه اوربشه مو درميانه را واخيسته همدارنګه ګنګچې هم د درميانه را اخيستلو ضرورت وو. «الی قوله» ۷۰ اوربشې د ۲۵ رتی په برابر او ۱۰۰ اوربشې له ۳۲ رتی سره برابرې ووتلې»

د ګنګچيو په ذريعه په دې وزن کښې دوه اشکاله دي:

۱ - پخپله د حضرت مفتي صاحب د وضاحت مطابق دا ګنګچې د درميانه را اخيستلو ضرورت وو. چه کله د ۷۰ اوربشو مقابل له ۲۵ څخه تر ۲۸ پورې او د ۱۰۰ اوربشو مقابل له ۳۲ څخه تر ۴۱ پورې راغلې، نو په اوّل کښې ۲۵ او په دويم کښې ۳۲ له غټې څخه غټې ګنګچې شوې نه درميانه ګنګچې.

۲ - د ګنګچيو پخپله د غوره کولو په ځای د دې صحيح طريقه دا ده چه د هغو هغه دانې واخيستل شي کوم چه د ټکسال د مصدقه ماشې مقابل ۸ راشي. د ټکسالي وزن په موجودوالي کښې له ګنګچيو څخـــه د ماشې تعين نه کيږي بلکه د ټکسالي ماشې په ذريعه دا معلوميږي چه څه ډول ګنګچې په وزن کښې معتبر دي. لنډه دا چه صحيح وزن هغه دی کوم چه حضرت مفتي صاحب د ماشې په ذريعې سره کړی دی يعنې درهم تقريبا $3\frac{1}{2}$ او مثقال تقريباً ۵ ماشې.

۴ - په فتاوی حماديه ج۱ ص۴۳ کښې له شيخ بهاء الدين ابراهيم بن عبد الله ملتاني څخه نقل کړی دی چه هغه په ٦٩٤ هجری کښې د مکې مکرمې درهم، مثقال، مد او صاع راوړل او وزن ئې کـــړل او هغه ئې د دهلي په ټکسال کښې محفوظ کړ. درهم - ۳ ماشې $\frac{1}{8}$ ۲ رتی او مثقال - ۴ ماشه ۲ رتی شوې. په حماديه کښې چه په يادو شويو وزنونو کښې څه ذکر دي بنده ۲ اوربشې - يوه رتی له حسابه پورتنی وزن ليکلی دی. د ۲ اوربشې- يوه رتی تصريح پخپله له حماديه څخه پورته تير شوی دی. د مثقال دا وزن له ۵ ماشو څخه $1\frac{3}{10}$ رتی کمه ده. البته د درهم په وزن کښې زيات تفاوت يا فرق شته. پورته بيان شول چه د درهم نسبت له مثقال سره $\frac{7}{10}$ مسلم دې يعنې منل شوی دی. لکه څرنګه چه د درهم او مثقال په مذکوره وزنونو کښې دا نسبت نشته د دې لپاره دا دواړه وزنونه يا په دواړو کښې يو خو ئې يقيناً غلط دی. د صحابه وو ﷺ په زمانه کښې د مختلفو وزنونو دراهم رواج وو. حضرت عمر ﷺ د جزيې د ټاکلو په وخت د سبعه وزن درلودونکی درهم وټاکه. له دې څخه او د فقهاؤ رحمهم الله له عباراتو څخه هم د سبعه د وزن تعبير ثابت شو چه د مثقال وزن اصل دی او درهم د دې $\frac{7}{10}$ دی. د مثقال د مذکوره وزن $\frac{7}{10}$ - ۳ ماشه ۳/۰۹ رتی جوړيږي کوم چه له $3\frac{7}{10}$ سره لږ غوندې تفاوت يا فرق لري. ابراهيم بن عبد الله چه د کوم درهم وزن

کړې دی یا خو هغه شرعي درهم نه وو یا له هغه څخه د وزن په کولو کښې کومه غلطي شوې ده.

۵ - په غیاث اللغات او داسې نورو د لغاتو په کتابونو کښې او د طب په کتابونو کښې ئې درهم- $3\frac{1}{2}$ ماشې لیکلی دی. البته د اطباؤ په نزد مثقال - $4\frac{1}{2}$ ماشې دی کوم چه له شرعي مثقال څخه کم دی.

۶ - په ټیکسټ بک آف کوانټي ټیټیوان آرګینګ اینا لیسس انکلیوډنک ایلیمینټري انسټرو مینټل اینالیسس مصنفـــه آرتهر آئي ووګل لنـــدن صفـ ۱۱۲۴ باندې قیراط - ۴ ګرین- ۰/۲۵۹۲ ګرامه لیکلی دی یعنې ۲/۱۳۲ رتۍ.

۷ - ما بنده ۱۰۰ درمیانه اوربشې غیر مقشر له دوارو خواوو څخه ئې نرې ویښته پرې کړل او وزن مې کړل او تر ټولو د نویو ماشینونو په ذریعې مې څو څو ځلې وزن کړل. په کوه نور بیټري مینو فکچر لمیټډ کښې درې کسانو ځان ځانته وزن کړل، په پاکستان ریفائنري لمیټډ کښې یوه سړي یو ځلې وزن کړل، فیول اینډ لیدر ریسرچ سینټر کښې یوه سړي درې ځلې وزن کړل د دریوارو برقي ماشینونو پخپل منځ کښې ځواب ډیر لږ غوندې متفاوت وو چه وجه ئې دا وښودل شوه چه د برقي ماشین په انتهائي باریک کارکردګي کښې د هوا د رطوبت لږ غوندې اثر هم ظاهریږي. لنډه دا چه اګر که د دغو مختلفو ماشینونو ځواب پخپل منځ کښې څه زیات مختلف نه وو سره له دې له یادو شویو دریوارو ادارو څخه چونکه د فیول اینډ لیدر ریسرچ کار زیات اهم دی د دې لپاره د دې ادارې د ماشین وزن ته ترجیح ورکړ شوی دی کوم چه په لاندې ډول دی.

۱۰۰ اوربشې= ۴/۷۸۷۴ ګرام = ۳۹/۴۰۲۵ رتۍ - مثقال

۴/۷۸۷۴ × $\frac{۷}{۱۰}$ = ۳/۳۵۱۲ ګرام= ۲۷/۵۸۱۷ رتۍ - درهم

۴/۷۸۷۴ ÷ ۲۰ = ۰/۲۳۹۴ ګرام= ۱/۹۷۰۴ رتۍ - قیراط

تر اوسه پورې چه د قیراط کوم وزنونه مخې ته راغلي دي هغه دا دي:

۱ - د فتاوی حمادیه د تحقیق مطابق	۱/۸۰۰۰ رتۍ

۲ - د متانه د لیکنې مطابق	۱/۸۷۵۰ رتۍ

۳ - د ابراهیم بن عبد الله ملتاني د مثقال مطابق	۱/۹۳۵۰ رتۍ

۴ - د برقي ماشین د وزن مطابق	۱/۹۷۰۴ رتۍ

۵ - د حضرت مفتي محمد شفیع صاحب د وزن مطابق	۱/۰۱۲۵ رتۍ

۶ - د انګریزي کتاب مطابق	۱/۱۳۲۰ رتۍ

دا وزنونه پخپل منځ کښې څه زیات تفاوت نه لري بلکه په مختلفو زمانو کښې د مختلفو خلکو په وزن کولو کښې دومره لږ تفاوت خامخا وي په داسې حال کښې چه د ترقۍ د دې دور برقي ماشینونو د څو ګنو اوربشو د وزن په ښوولو کښې پخپل منځ کښې سره مختلف دي نو به

مختلفو زمانو کښې د مختلفو ډولونو اوربشو د لاس په تلې سره په تللو کښې دومره لږ غونډې فرق لږ غونډې هم لرې خبره نه ده بلکه دا د حضراتو فقهاء کرامو په محنت، قربانۍ او حقیقت ته په رسيدنې باندې ښکاره دليل دی.

که چیرته یواځې د قیراط د وزن خبره وای نو دومره لږ فرق به د پام لرنې وړ نه وای لیکن مشکل پکښې دا دی چه همدا لږ غونډې فرق تر پورتنيو وزنونو پورې لکه درهم، مثقال، صاع، د زکات نصاب او داسې نورو پورې په رسیدو رسیدو کښې د زيات فرق باعث او سبب ګرځي. د دې لپاره د قیراط له پورتنیو وزنونو څخه هم یوه وزن لره د راجح ګڼلو ضرورت شته. د وزن په اړه له پورتنیو شپږو ډولونو څخه لومړي دوه ډولونه او په شپږم ډول کښې د قیراط وزن په رتۍ سره شوی دی. بیا په دې سره د مثقال د وزن حساب لګول شوی دی. په دې کښې هغه قباحت دی چه د قیراط په وزن کښې لږ غونډې تفاوت هم د مثقال په وزن کښې د زيات تفاوت سبب ګرځي او په منځنیو دریو ډولونو کښې مخامخ د یوه مثقال وزن شوی دی کوم چه اصل مقصود دی. د دې طريقې زيات بهتر والی واضح دی او په څلورم ډول کښې د يوې ډيرې اهمې ادارې په تر ټولو نوي ماشين باندې درې ځله وزن شوی دی د دې لپاره دا وزن تر ټولو باید زيات راجح وي. دا خبره د توجه وړ ده چه په پورتنيو يادو شويو وزنونو کښې د حضرت مفتي محمد شفيع صاحب وزن د برقي ماشين له وزن سره تر ټولو نژدې دی. په يادو شويو وزنونو کښې شپږم ډول وزن د دې لپاره هم مرجوح دی چه دا د فقهاء کرامو رحمهم الله له خوا ليکل شوی نه دی او نه په دې کښې دا وضاحت شوی دی چه دا قيراط د کومې علاقې قيراط دی په داسې حال کښې چه په مختلفو علاقو کښې د قيراط وزنونه مختلف دي. د دې حواله محض د دې خبرې د تائيد لپاره ورکړ شوې ده چه د قيراط وزن تقريباً ۲ رتۍ دی.

د پاکستان د حکومت د صنعت او تجارت وزارت د اعشاري وزنونو په اړه په اردو او انګريزي کښې پمفلټ (اشتهار) شائع کړي دي چه په هغه کښې اعشاري قيراط - ۲۰۰ ملي ګرامه- ۱/۳۱۷۲ رتۍ ليکلی دی په دې سره هيڅا ته هم د قيراط په وزن کښې غلط فهمي نه وي. د دې لپاره چه دا د اعشاري قيراط وزن دی کوم چه له اصل قيراط څخه کوچنی دی. سره له دې اعشاري قيراط لره له ۱/۳۱۷۲ رتۍ سره مساوي ګڼل صحيح نه دي. څکه چه يوه توله له ۱۱/۲۲۴ ګرام سره مساوي دی نو په دې حساب سره ۲۰۰ ملي ګرامه کوم چه د اعشاري قيراط وزن دی، مساوي دی له ۱/۷۴۲ رتۍ سره. ما د صنعت وزارت ته د دې غلطۍ په اړه څه وليکل نو د پاکستان د وزارت صنعت د اوزان او پيمائش محکمې په ليک نمبر آئي اين ډي/ ډبليو ايم ډي - ۲ (۷)/ ۷۴ تاريخ ۲۷ نومبر ۱۹۷۵ء کښې په لاندينيو الفاظو سره د خپلې غلطۍ اعتراف وکړ.

«لاندينې لاسليک کوونکي ته لارښوونه وشوه چه هغه د خپل ليک په تاريخ

۱۹۷۵ــ/۱۳/۱۱ په خواب کښې لانديني ګذارشات وکړي. ستاسو لخوا ښخه په نخښه شوې د (قيراط) غلطي با لکل صحيح ده. يو قيراط له ۱/۲۴۲۲ رتی سره مساوي دی. ستاسو له تعاون څخه تر اندازې زياته مننه". **ستاسو يو ادنی خادم : خير محمد ډپټي کنټرولر**

## احتياط

په عباداتو کښې په احتياط باندې عمل واجب دی. **قال في الشامية عن المبسوط السرخسي ان الاخذ بالاحتياط في باب العبادات واجب. (رد المحتار ج۲، ص۸۳)** له دې امله د زکات، صدقة الفطر او قربانۍ په نصاب کښې له کم څخه د کم وزن معتبرول لازم دي او هغه دا دی چه قيراط - $1\frac{4}{5}$ رتی، درهم- ۳ ماشې $1\frac{1}{5}$ رتی، مثقال $4\frac{1}{2}$ ماشه. په دې حساب سره به د سپينو زرو نصاب $52\frac{1}{2}$ تولې، او د سرو زرو نصاب $7\frac{1}{2}$ تولې وي. البته د صدقة الفطر (سرسايې) په ادا کولو کښې هم هغه وزن بايد را واخيستل شي کوم يوه ته چه پورته ترجيح ورکول شوی دی. او په دې باره کښې احتياط هم په همدې کښې دی. يعنې:

| | | |
|---|---|---|
| قيراط | - | ۱/۹۷۰۴ رتی |
| درهم | - | ۲۷/۵۸۱۷ رتی |
| مثقال | - | ۳۹/۴۰۲۵ رتی |

آخري فيصله د رسالې په آخر کښې د "شرح صدر په عنوان سره ليکلې دی

او صاع له ۱۰۴۰ درهمه سره مساوي دی نو په دې حساب سره د صاع وزن ۳ سيره او ۵۸/۹ تولې دی او نصف صاع مساوي دی له يو سير او ۲۹/۴۵ تولې سره. او د مثقال په ذريعې سره به حساب داسې وي.

صاع - ۱۲۰ استاره او استار- $4\frac{11}{20}$ مثقاله، پس صاع - ۷۲۸ مثقاله، ۳۹/۴۰۲۵ رتی × ۷۲۸ - ۳ سيره ۵۸/۹ توله

**د درهم او او مثقال په ذريعې سره يواځې يو ځواب لاس ته راغی.**

علامه شامي رحمه الله فرمائي چه د درهم يا مثقال په ذريعې سره د ټاکل شوي وزن په برابر اوربشې را واخلئ له هغو څخه چه کوم کوم لوښی ډک شي هغه صاع وګنئ. د مکې مکرمې مشائخو د دې مطابق تعامل او فتویٰ را نقل کړې ده.

حضرت تهانوي قدّس سرّه په الطرائف کښې د يوه مُد (پيمانې) سند تر نبي کريم ﷺ پورې رسيدل او هغه دوه ځلې له غلو دانو څخه ډکول او وزن کول او د دې وزن پاؤ کمې دوه سيره او درې ماشې کيدل بيان کړي دي.

**په دې باندې څو اشکالات شته**

۱ - د دې سند د رجالو تحقيق نشته، په خاصه توګه په داسې حال کښې چه په حماديه کښې د

ابراهیم بن عبد الله ملتاني په صاع باندې داسې اعتراض شوی دی وهذا لا یصلح للاعتماد والتعویل علیه وان اعول بعض علماء عصرنا لانه اشتبه صاع عمر رضي الله عنه فی زمن الحجاج وقد قرب ذلك الزمان من عهد النبی ﷺ فکیف یعتمد علی صاع اتی به فی هذا العصر وقد تطاول الزمان و... مثله والبیع... رحمادیه ج۱،ص۴۲)

۲ - د پیمانې د ډکولو دوه طریقې دي: یوه دا چه د کنارو په برابر ډکه شي او دویمه طریقه کومه چه عامه مروجه ده دا چه له کنارو څخه پورته تر کومه ځایه پورې چه ډکیدلی شي. دا څرګنده نه ده چه د صاع د ډکولو اصل طریقه څه وه او دا پیمانه په څه ډول ډکه شوې ده.

۳ - د غنمو وزنونه مختلف وي. د دې لپاره په یو ډول غنمو سره ډکول او وزن کولو سره دا فیصله نه شي کیدلی. ممکنه ده چه نور غنم تر دغو غنمو زیات وزني او درانه وي. د دې صحیح طریقه دا وه چه دا مُد (پیمانه) له ماش (مې) یا مسور (یو ډول دال) څخه ډکه شوې وای بیا هغه وزن شوی وای او د دې وزن مطابق د غنمو د وزن فیصله شوې وای ځکه چه د غنمو هیڅ یو ډول هم د مې یا مسور (یو ډول دال) څخه وزني یا درانه نه وي. چونکه ماش (مې) او مسور زیات وزني دي، غنم له دوی څخه سپک او اوربشې نور هم ترې سپکې دي د دې لپاره په عبادت کښې دا احتیاط واجب دی چه د وزن په ذریعې سره د کَیل ټاکنه وي نو اوربشې به استعمالیږي او که د کَیل په ذریعې سره د وزن ټاکنه وي نو مې یا مسور استعمال کړی.

قال ابن عابدین رحمه الله ذکر صدر الشریعة فی شرح الوقایة ان الاحوط تقدیر الصاع بثمانیة ارطال من الحنطة الجیدة لانه ان قدر بالماش یکون اصغر ولا یسع ثمانیة ارطال من الحنطة لانه اثقل منها وهی اثقل من الشعیر فالمکیال الذی یملأ بثمانیة ارطال من الماش یملأ باقل من ثمانیة من الحنطة الجیدة المکتنزة آه قلت و بهذا یخرج عن العهدة بیقین علی روایتی تقدیر الصاع کیلاً او وزناً فلذا کان احوط ولکن علی هذا الاحوط تقدیره بالشعیر ولهذا نقل بعض المحشین عن حاشیة الزیلعی للسید محمد امین میر غنی ان الذی علیه مشائخنا بالحرم الشریف المکی ومن قبلهم من مشائخهم وبه کانوا یفتون تقدیره بثمانیة ارطال من الشعیر و لعل ذلك لیحتاطوا فی الخروج عن الواجب بیقین لما فی مبسوط السرخسی من ان الاخذ بالاحتیاط فی باب العبادات واجب اه فاذا قدر بذلك فهو یسع ثمانیة ارطال من العدس ومن الحنطة ویزید علیها البتة بخلاف العکس فلذا کان تقدیر الصاع بالشعیر احوط اه (رد المحتار ج۲،ص۸۳)

د پورتنۍ قاعدې مطابق ما بنده د نیم صاع د تعین لپاره یو سیر ۲۹/۴۵ تولې اوربشې وتللې او په یوه لوښي کښې مې واچولې، بیا مې په همدې لوښي کښې غنم، مې او مسور واچول او جلا

جلا مې وتلل نو په ترتيب سره دا وزنونه راغلل ۲ سيره ۳۰ تولې، ۲ سيره ۳۲ تولې، ۲ سيره ۴۲ تولې، بيا مې د لوښي حجم معلوم کړ نو ۲/۸۹۷ ليټره شو.

له پورتني تفصيل څخه ثابته شوه چه که څوک وغواړي چه صدقة الفطر د غنمو په ذريعې سره ادا کړي نو په يقيني توګه د غاړې د خلاصون لپاره د مـاش يا مې د وزن ۲ سيره ۳۲ تولې-۲/۲۸۵۹ کيلو ګرامو په برابر غنم ورکول ضروري دي.

آخري فيصله د رسالې په آخر کښې د "شرح صدر" پـه عنوان سره ليکلې دی

**د ياد شوي تفصيل نقشه**:

| | | | |
|---|---|---|---|
| قيراط | - ۰/۲۳۹۴ ګرامه | - ۱/۹۷۰۴ رتی | |
| درهم | = ۳/۳۵۱۲ ګرامه | - ۲۷/۵۸۱۷ رتی | |
| مثقال | - ۴/۷۸۷۴ ګرامه | - ۳۹/۴۰۲۵ رتی | |
| د اوربشو صاع | = ۳/۴۸۵۲ کيلو ګرامه | - ۳ /۷۳۲۱ سير | |
| د اوربشو نصف صاع- | ۱/۷۴۲۲ کيلو ګرامه | - ۱/۸۲۸۱ سيره- | ۲/۸۹۷ ليتره |
| د غنمو نصف صاع - | ۲/۲۱۵۹ کيلو ګرامه | - ۲/۳۷۵۰ سيره - | // // // |
| د ميو نصف صاع - | ۲/۲۸۵۹ کيلو ګرامه | - ۲/۴۵۰۰ سيره - | // // // |
| د مسور نصف صاع - | ۲/۳۵۵۹ کيلو ګرامه | - ۲/۵۲۵۰ سيره - | // // // |

**خبرداری**: که چيرته د اوړو قيمت له غنمو څخه کم وي لکه څرنګه چه د نن صبا د راشن اوړه نو بيا د اوړو په ځای د مذکوره وزن په برابر په غنمو سره بايد صدقة الفطر ادا شي يا دومره اوړه ورکړل شي چه قيمت ئې له غنمو سره برابر وي.

قال ابن عابدين رحمه الله (قوله او دقيقه او سويقه) الاولى ان يراعى فيهما القدر و القيمة احتياطاً و ان نص على الدقيق فى بعض الاخبار هداية لان فى اسناده سليمان بن ارقم و هو متروك الحديث فوجب الاحتياط بأن يعطى نصف صاع دقيق من بر او صاع دقيق شعير يساويان نصف صاع بر و صاع شعير لا اقل من نصف صاع يساوى نصف صاع بر او اقل من صاع يساوى صاع شعير ولا نصف لا يساوى نصف صاع بر او صاع لا يساوى صاع شعير فتح و قوله فوجب الاحتياط مخالف لتعبير الهداية و الكافى بالاولى الّا ان يحمل احدهما على الأخر تأمل. (ردالمحتار ج۲،ص۸۲)

فقط والله تعالى اعلم رشيد احمد

۲۳ ذى القعده ۱۳۹۵ هجرى يوم الجمعة

**تتمه**

د صاع د تحقيق په اړه له ځينو علماؤ سره تر خبرو اترو وروسته په ځينو عباراتو باندې د نظر ثاني ضرورت را ته محسوس شو چه نتيجه ئې په لاندې ډول ده

قال فی شرح التنویر (وهو) ای الصاع المعتبر (ما یسع الفا واربعین درهم من ماش او عدس) انما قدر بهما لتساویهما کیلا ووزنا وقال فی الشامیة (قوله انما قدر بهما) ای قدر الصاع بما یسع الوزن المذکور منهما ای من مجموعهما ای من ای نوع منهما لان کل واحد منهما یتساوی کیله ووزنه اذلا تختلف افراده ثقلا وکبرا فاذا ملأت اناء من ماش وزنه الف واربعون درهما ثم ملأته من ماش اٰخر یکون وزنه مثل وزن الاول لعدم التفاوت بین ماش وماش اٰخر وکذا لو فعلت بالعدس کذٰلک بخلاف غیرهما کالبر مثلا فان بعض البر قد یکون اثقل من البعض فیختلف کیله ووزنه فلذا قدر الصّاع بالماش او العدس فیکون مکیالا محررا یکال به ما یراد اخراجه من الاشیاء المنصوصة بلا اعتبار وزن لانک لو کلت به شعیرا مثلا ثم وزنته لم یبلغ وزنه الفا واربعین درهما ولو اعتبر الوزن لکان ما یسع الفا واربعین درهما من الشعیر اکبر من الصاع الذی یسع هٰذا القدر من الماش او العدس وقد اعتبروا الصاع بهما فعلم انه لا اعتبار بالوزن اصلا فی غیرهما ویدل علی ذٰلک ایضاً قول الذخیرة قال الطحاوی الصاع ثمانیة ارطال مما یستوی کیله ووزنه ومعناه ان العدس والماش یستوی کیله ووزنه حتی لو وزن من ذٰلک ثمانیة ارطال ووضع فی الصاع لا یزید ولا ینقص وما سوی ذٰلک تارة یکون الوزن اکثر من الکیل کالشعیر تارة بالعکس کالملح فاذا کان المکیال یسع ثمانیة ارطال من العدس و الماش فهو الصاع الذی یکال به الشعیر والتمر والحنطة اھ. وذکر نحوه فی الفتح ثم قال وبهذا یرتفع الخلاف فی تقدیر الصاع کیلا او وزنا ومراده بالخلاف ما ذکره قبله حیث قال یعتبر نصف صاع من بر من حیث الوزن عند ابی حنیفة لانهم لما اختلفوا فی ان الصاع ثمانیة ارطال او خمسة وثلث کان اجماعا منهم انه یعتبر بالوزن و روی ابن رستم عن محمد انه انما یعتبر بالکیل حتی لو دفع اربعة ارطال لا یجزیه لجواز کون الحنطة ثقیلة لا تبلغ نصف صاع اھ. وفی ارتفاع الخلا بما ذکر تأمل فان المتبادر من اعتبار نصف الصاع بالوزن عند ابی حنیفة اعتبار وزن البر ونحوه مما یرید اخراجه لا اعتباره بالماش والعدس والظاهر ان اعتباره بهما مبنی علی روایة محمد وان الخلاف متحقق وعن هٰذا ذکر صدر الشریعة فی شرح الوقایة ان الاحوط تقدیر الصاع بثمانیة ارطال من الحنطة الجیدة المکتنزة اھ. قلت وبهذا یخرج عن العهدة بیقین علی روایتی تقدیر الصاع کیلا او وزنا فلذا کان احوط ولکن علی هٰذا الاحوط تقدیره بالشعیر ولهذا نقل بعض المحشین عن حاشیة الزیلعی للسید محمد امین میر غنی ان الذی علیه مشائخنا بالحرم الشریف ولعل ذٰلک لیحتاطوا فی الخروج عن الواجب بیقین لما فی مبسوط السرخسی من ان الاخذ بالاحتیاط فی باب العبادات واجب اھ. فاذا قدر بذٰلک فهو یسع ثمانیة ارطال

من العدس و من الحنطة و يزيد عليها البتة بخلاف العكس فلذا كان تقدير الصاع بالشعير احوط اه. ولهذا قدمنا ان الاحوط فی زماننا اخراج ربع مدشامی تام. (ردالمحتار ج۲، ص۸۴)

وقال الرافعی رحمه الله (قوله فان المتبادر الخ) هذا وان كان هو المتبادر الا انا نتركه بصريح عبارة الطحاوی من ان الصاع ثمانية ارطال مما يستوی كيله ووزنه فانه صريح باعتبار وزن ما يستوی كيله ووزنه فی تعريف الصاع لا اعتبار وزن المخرج من البر ونحوه وهو اعلم بالمراد من نصوص المذهب وايضا كان صاع النبی ﷺ مكيالا معلوما لا زيادة ولا نقصان فيه و امر عليه السلام بان يخرج للفطرة المقادير المعلومة المقدرة به مع علمه باختلاف الاوزان حتی فی كل نوع منها فهذا دليل علی ان العبرة للكيل المخصوص بدون اعتبار الوزن و حينئذ يكون اعتباره بهما محل اتفاق وما نقله عن صدر الشريعة وحاشية الزيلعی مبنی علی بقاء الخلاف لا علی ارتفاعه بما قاله فی الفتح. (التحرير المختار ج۱، ص۱۴۳)

**په پورتنيو ذکر شويو عبارتونو کښې لاندينې امور د بحث لاندې راغلل:**

۱ - د تنوير او ذخيرې د ليکنې مطابق د ميو يا مسورو اته (۸) رطله د صاع لپاره معيار دي. يعنې له اتو رطلو ميو يا مسورو څخه چه کوم لوښی ډکيږي هغه صاع ده ليکن دا دعوی د لاندينيو وجوهاتو له وجې مخدوشه ده.

۱ - صاحب د ذخيرې په دې دعوې باندې د طحاوي له قول **الصاع ثمانية ارطال مما يستوی كيله و وزنه** څخه استدلال کړی دی او د تنوير د قو شارح دا علت بيان کړی دی **انما قدر بهما التساويهما كيلا ووزنا** د طحاوي او شارح التنوير له دغو عبارتونو څخه ثابته شوه چه د ميو يا مسورو ذکر په دې باندې مبني نه دی چه حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی کوم خاص د وثوق وړ صاع لره له ميو يا مسورو څخه ډک کړی او وزن کړی دی نو اته رطله شو بلکه مقصد دا دی چه د صاع د تقدير لپاره داسې اجناس بايد استعمال شي چه افراد ئې متفاوت نه وي لکه ماش (مې) يا مسور (يو ډول دال)، لکه څرنګه چه د طحاوي په عبارت کښې له ميو او مسورو سره زبيب او په حاشيه باندې د زيت (د زيتون د ونې د تخم غوړ) نسخه هم ليکلې ده، د فقهاء کرامو رحمهم الله په دې مراد باندې دا خبره هم څرګند دليل دی چه پخپله د ميو وزن هم له مسور سره برابر نه دی بلکه له هغه څخه کم دی. **کما حررنا فی اصل المسألة**. همدارنګه د زبيبو او زيت وزن هم له ميو او مسور سره فرق لري.

۲ - که چيرته کومه مخصوصه صاع له ميو يا مسورو څخه ډکه شوې او وزن شوې وای نو دا به ټولو فقهاء کرامو رحمهم الله پرته له کوم چون او چرا څخه تسليم کړې وای او د اختلاف ګنجائش

به پکښې نه وای پیدا شوی. صدر الشريعة به د تقدير با لحنطة او د حرم شریف مشائخو به د تقدير با لشعير فتواوې نه ورکولی او علامه شامي رحمه الله به دا نه وای غوره کړی.

۳ - که چیرته دا دعوه و هم منله شي چه کوم مستند صاع له میو یا مسورو څخه ډکه شوې او وزن شوې وه نو بیا هم په دې وخت کښې دا عمل د صاع د تعیین لپاره کافي نه دی ځکه چه مې او مسور پخپل منځ کښې په وزن کښې سره مختلف دي. بیا په دوی کښې هر یو ئې مختلف ډولونه لري. د ماش یعنې میو درې ډولونه دي. تور، سپین او شین. شنو میو ته هم په عربي کښې ماش وائي او د مسور دوه ډولونه دي غټ او واړه. بیا هر ډول ئې پخپل منځ کښې د حجم او وزن له مخې سره مختلف دي. **من شاء فليشاهد.**

۲ - د هدایې د قول چه **(ثم يعتبر نصف صاع من بُر من حيث الوزن فيما يروى عن ابي حنيفة)** مطلب شامي رحمه الله دا بیان کړی دی چه غنم د وزن له مخې څلور رطله ادا کول کافي دي اګر که غنم د کیل (پیمانې) له مخې له نصف صاع څخه کم وي لیکن ابن همام او رافعي رحمهما الله تعالی د هدایې له قول څخه دا مراد اخلي چه د اصل صاع په ذریعه د کیل (پیمانې) په ځای د کیل دا طریقه هم معتبر او صحیح ده چه د کوم متساوي الوزن و الکیل شي له څلورو رطلونو څخه کوم لوښی ډک شي هغه له غنمو څخه ډک شي او ورکړل شي. د حضرت امام رحمه الله د قول دا توجیه صحیح څرګندیږي ځکه چه د صاع په باره کښې د صریح نصّ په مقابله کښې پرته د کیل له لحاظه یواځې وزن لره معتبر ګڼل ډیره لرې خبره ده. پرته له دې څخه په هدایه کښې د **(فيما يروى)** الفاظ تمریض (عیب لرونکي) دي او د دې په مقابله کښې د امام محمد رحمه الله قول روایةً له قوي والي پرته درایةً هم معقول دی.

۳ - اوس دا بحث پاتې کیږي چه د صاع د تقدیر لپاره اته رطله د څه شي را واخیستل شي؟ له لاندیني دلائلو څخه ثابتیږي چه دا وزن د اوربشو دی.

۱ - په هغې زمانه کښې د خوراک مدار اکثره په اوربشو باندې وو د دې لپاره لین دین (راکړه ورکړه) هم د اوربشو زیاته وه.

۲ - په نص کښې د شعير (اوربشې) یا د تمر (خرماؤ) صاع راغلی دی له دې څخه څرګنده ده چه فقهاؤ رحمهم الله به له همدغو شیانو څخه د وزن اندازه مقرره کړې وي. له دې تجربې څخه هم د دې تینګار کیږي چه بنده د یوه سیر $\frac{1}{2}$ ۲۹ تولې اوربشو په مطـــابق د نصف صاع کوم لوښی تاکلی دی هغه ئې له چوارو (وچو خرماؤ) څخه ډک کړی نو د اوربشو له وزن سره با لکل برابر راغی.

۳ - په هرې زمانې کښې فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی د وزن او مساحت ابتداء خاص له اوربشو څخه کړې دی.

۴ - دا طريقه احوطه ده.

فقط والله تعالیٰ اعلم رشید احمد ۲۹ شعبان ۱۳۹۶ هجری لیلة الجمعة

## دويمه تتمّه

بنده ته معلومه شوه چه پير وهب الله شاه صاحب د جهندو ضلع حيدر آباد له پير سره مُدّ (پيمانه) شته كومه چه د هغه نيكه مولانا رشد الله شاه صاحب له مدينهٔ طيّبه څخه راوړې وه. مولانا رشد الله ډير ښه عالِم وو هغه به په همدې مُدّ (پيمانې) سره صدقة الفطر ادا كاوه او له هغه سره به ئې څه نقدې روپۍ هم وركولې. ما دا مُدّ را وغوښت چه و مې ليده نو په هغه كښې دا عبارت ليكلى وو.

**صنع هذا المد المشرف ابراهيم الغزنوى المدنى الحنفى على مدّ الشيخ احمد بن الشيخ عبد القادر الطاهر المدنى الشافعى وهو صنعه على مدّ مولانا احمد بن مولانا على الادريسى المالكى وهو صنعه على مدّ امير المؤمنين راجيا به البركة فى بيته و المتابعة للنبى ﷺ لانه كال طعامه به و كان يتوضأ بمقداره ماءً فى بعض ازمانه و تطهر بصاع وهو اربعة امداد و به تخرج صدقة الفطر عن كل رأس مدّان من بُرّ او دقيقه او سويقه او زبيب او اربعة امداد من تمر او شعير و كان ذٰلك ثلاث عشرة و ثلاث مائة و الف.**

ما دا مُد له غنمو، ميو او مسور څخه ډک كړ او زن مې كړ نو لانديني نتيجې ترې را ووتلې:

| | بلا تكويم | با لتكويم |
|---|---|---|
| حنطه (غنم) | ۵۰ تولې | ۵۵ تولې |
| تور ماش | ۵۲ $\frac{1}{2}$ تولې | ۵۲ $\frac{1}{2}$ تولې |
| عدس (مسور) | ۵۳ $\frac{1}{2}$ تولې | ۵۷ $\frac{1}{2}$ تولې |

د دې لوښي د تدوير په نسبت سره ئې ژوروالى كافي زيات دى همدا رنگه له لاندې څخه پراخه او خوله ئې تنگه چه له مخروط سره مشابهت لري. له دې امله د دې په تكويم او غير تكويم دواړو صورتونو كښې د وزن كوم ځانگړى فرق نشته. په هر صورت مذكوره وزن د عامو محققينو علماء كرامو له تاكل شوي وزن څخه ډير كم دى. حقيقت دا دى چه د حضرت عمر رضي الله عنه صاع خو د حجاج په زمانه كښې مشتبه شوې وه چنانچه مونږ د ابراهيم بن عبد الله په صاع باندې د حماديه دا اعتراض پورته نقل كړى دى. كه چيرته د حضرت عمر رضي الله عنه په صاع كښې اشتباه واقع شوې نه واى نو په تعيين كښې به ئې د مجتهدينو امامانو اختلاف نه واى. صاع په اتفاق سره څلور مُده دى ليكن د مُد په وزن كښې اختلاف دى. د امام صاحب رحمه الله په نزد دوه رطله او د نورو مذاهبو په نزد ۱ $\frac{1}{3}$ رطله دى. د نومورې مُــــدّ لوړنى جوړوونكى يا صانع مالكي دى او تر هغــه وروسته

شافعي له دې څخه ښکاريږي چــــه هغو د خپل مذهب مطابق ۱$\frac{1}{3}$ رطلو مُدّ جوړ کړی دی. د مولانا رشد الله صاحب په صدقة الفطر کښې د څه نقدو ورکول هم د دې دليل دی چه دا حضرات هم له دې حقيقت څخه خبر وو چه دا مُد حنفي نه دی. بنده په نصف صاع حنفي کښې د غنمو د وزن تقدير دوه سيره ديرش تولې کړی دی کما مرّ. په دې حساب سره د شافعي مُدّ غنم بايد ۲۳$\frac{1}{3}$ تولې وي. ليکن د مذکوره مُدّ په تکويم سره وزن هم له دې څخه ۸$\frac{1}{3}$ تولې کم دی. اگر که دا احتمال هم شته چه بنده په نصف صاع کښې چه کوم غنم اچولي او وزن کړي دي هغه له هغو غنمو څخه زيات وزني وو کوم چه مُدّ ترې ډک شوی وو ليکن د غنمو په مختلفو ډولونو کښې دومره تفاوت لرې معلوميږي. پس د دې تفاوت صحيح وجه دا څرگنديږي چه د دې مُدّ صانع د ۱$\frac{1}{3}$ رطلـــه اوربشو د وزن په ځــــای د غنمو وزن را اخيستی دی. بنده د حنفي نصفِ صاع اوربشو وزن يو سير ۲۹$\frac{1}{2}$ تولې ليکلی دی. په دې حساب سره چه د شافعي مُدّ د اوربشو وزن ۴۹$\frac{5}{7}$ تولې شو کوم چه د مذکوره مُدّ د حنطه لـه بلا تکويم وزن سره برابر دی. لهــــذا له دې مُدّ څخه د بنده د حساب تائيد کيږي. دا جــــلا خبره ده چه هغــــو د علامه شامي رحمه الله د ليکنې مطـــابق دا وزن د اوربشې د را اخيستلو احتيـــاط نه دی کړی.

د دولسمې هجري پيړۍ د مشهور فقيه حضرت مولانا مخدوم محمد هاشم صاحب ټهټوي رحمه الله فضل او کمال د هيڅ يوه اهلِ علم څخه پټ نه دی. بنده تر ټولو مخکښې د مسبوق خلف المسافر په اړه د نوموړي فتوی وليدله نو د دې قوي استدلال، ژور نظر او له اختصار سره فيصله کوونکی او ډاډمن څواب زه ډير متاثر کړم. تر دې وروسته زما د تل لپاره دا کوشش پاتې شوی دی چه په هرې پيچلې مسئلې کښې د نومړي علامه تحقيق معلوم کړم چنانچه د بحث لاندې مسئله کښې هم ما د دې کوشش وکړ کوم چه بحمد الله گټور تمام شو. مولوي محمد صديق صاحب (د منتهار فقير) د محمديه د مدرسې مهتمم نزد ټنډو آدم په ذريعې سره له سيّد ډائرائ او ډيرو لعل ضلع حيدر آباد څخه مې د بياض هاشمي قلمي نسخه تر لاسه کړه. د دې کتاب په آخر کښې دا عبارت ليکلی دی:

"اين کتاب نوشته است حافظ اسحاق هالکنډي نو"

د کتابت تاريخ پکښې نه دی ليکلی.

په دې کتاب کښې د حضرت مخدوم رحمه الله د بحث لاندې مسئلې په اړه يوه مستقله رساله "نتيجة الفكر في تحقيق صدقة الفطر" شته. چونکه له دې رسالې څخه مخکښې او وروسته په څو پاڼو کښې هم گټور بحثونه شته د دې لپاره د بياضِ هاشمي د دولسو (۱۲) مخونو عکس يا فوټو کاپي دلته ورکول کيږي او وروسته د خپل مقصد په اړوند د دغو مضامينو خلاصه ليکل کيږي ان شاء الله تعالی.

## د هاشمي تحريراتو لنډيز سره له نتائجو

۱ - په مدينهٔ طيبه کښې مې هلته سل متوسطې اوربشې وتللې نو $\frac{۴}{۵}$۴ ماشـــې شولې. په دې حساب سره د سپينو زرو نصاب ۵۲ تولې او د سرو زرو نصاب ۸ تولې شو. (ص۱)
په ټهټه کښې رائج مثقال - ۵ ماشې سره سل وربشې وتلل شوې نو با لکل برابرې راغلې. (ص۲)

### نتيجه:

د مثقال په مذکوره له دواړو وزنونو څخه دويم وزن يعنې ۵ ماشې راجح دی ځکه چه دا د سرکاري مثقال وزن دی. د سلو اوربشو پخپله په وزن کولو کښې د معمولي کسر د فرق د نه ښکاريدو او د اوربشو د کوچنيوالي او غټوالي احتمال شته. د دې لپاره پخپله حضرت مخدوم رحمه الله هم په همدې باندې اعتماد کړی دی او پخپلو ليکنو کښې ئې ځو ځو ځلې د دې ذکر کړی دی او د نتيجة الفکر په رساله کښې ئې هم همدا غوره کړی دی. ملاحظه کړئ ۱، ۲، ۲ مخونه. په دې بناء باندې ئې يوه توله $\frac{۲}{۵}$۲ مثقاله ګڼلې دی. (ص۳)

۲ - د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې يو درهم - ۱۲ قيراطه هم رائج وو. (ص۵). په ټهټه کښې چه د درهم په کومې سګې باندې شرعي درهم ليکلې دی او عام خلک ئې هم شرعي درهم بولي هغه د سبعه وزن خلاف دی ځکه چه کله مثقال - ۵ ماشې دی نو ضروري شوه چه د څلورو درهمو وزن څوارلس ماشې وي. حالانکه له دغو دراهمو څخه د څلورو وزن له ۱۳ ماشو څخه هم څه کم دی. (ص۷)

خواجه بهاؤ الدين ملتاني له مکې مکرمې څخه شرعي درهم راوړی دی چه وزن ئې ۳ماشې ۴ اوربشې وو. (ص۲)

په حرمين شريفينو کښې رائج درهم - ۲۴ اوربشې دی. (ص۱۱)

د صحابه ؤ رضي الله عنهم په زمانهٔ کښې دراهم د مختلفو وزنونو درلودونکي وو. حضرت عمر رضي الله عنه د سبعه وزن درلودونکی درهم متعين کړی وو. (ص۴)

### نتيجه:

کومو حضراتو چه د درهم وزن ۳ ماشې يا له دې سره نژدې نژدې بللی هغوی د لانديني امورو له وجې په مغالطه کښې لويدلي دي

۱ - د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې يو درهم - ۱۲ قيراطه رائج وو - ۳ ماشه

۲ - په ټهټه کښې په رائج درهم باندې شرعي درهم ليکل شوی وو. خلکو هم شرعي درهم ورته وايه ددې درهم وزن له۳ ماشوڅخه څه زيات وو. شيخ محمد قائم سندهي هم پخپل کتاب المصباح

المنیر کښې د دې ذکر کړی دی کوم چه حضرت مفتي محمد شفیع صاحب هم را نقل کړی دی.

۳- په اوومې پیړۍ هجري کښې خواجه بهاؤ الدین ملتاني له مکې مکرمې څخه چه کوم شرعي درهم راوړی وو هغه درې ماشې او دوه رتۍ وو.

۴ - په دولسمې پیړۍ هجري کښې چه په حرمین شریفینو کښې کوم درهم رائج وو د هغه وزن ۲۴ اوربشې وو - ۳ ماشې ۱ رتۍ $\frac{۲۱}{۳۵}$

له دې څخه ثابته شوه چه پخپله د حضرت عمر رضي الله عنه له زمانې څخه یو درهم داسې چلیدلی دی چه وزن ئې درې ماشې له لږ غوندې زیات وو کوم چه د اختلاط او اشتباه باعث جوړ شوی دی.

د حضرت مخدوم رحمه الله په نزد دا درهم د دې لپاره شرعي درهم نه دی چه د سبعه وزن په خلاف دی. د سبعه وزن د مسلّم قانون په مطابق د شرعي درهم صحیح وزن $۳\frac{۱}{۲}$ ماشې دی. موصوف ځای په ځای د دې ذکر کړی دی. ملاحظه کړی ص۲.

په دریم مخ باندې ئې یوه توله - $۳\frac{۳}{۴}$ درهم لیکلی دی. یعنې یو درهم - $۳\frac{۱}{۲}$ ماشې.

۳ - مذکوره تحقیق د سپینو زرو د درهم په اړه دی. د سنګ درهم له دې څخه مختلف دی چه وزن ئې ۴ ماشې دی. (ص۲ او ص۱۰) د دې نکتې په لحاظ ساتلو سره د درهم په تعریف کښې له اشتباه او اختلاط څخه سړی محفوظ پاتې کیږي.

۴ - په ۱ مخ باندې مثقال- $\frac{۴}{۵}$ ۴ ماشې پر بناء د سپینو زرو نصاب ۵۲ تولې او د سرو زرو نصاب ۸ تولې لیکلی دی لیکن تر دې وروسته په همدې مخ او دویم مخ باندې هم مثقال - ۵ ماشې پر بناء د سپینو زرو نصاب $\frac{۱}{۳}$ ۵۸ او د سرو زرو نصاب $۸\frac{۱}{۳}$ تولې ګڼلی دی.

۵ - مثقال - ۵ ماشې او درهم - $۳\frac{۱}{۲}$ ماشې پر بناء نصف صاع - $۱۵۱\frac{۲}{۳}$ تولې ګڼلی دی. ملاحظه کړئ ۲، ۲، او ۹ مخونه. پرته له دې څخه په ۹ مخ باندې له مدینې منورې څخه ئې د یوه مُدّ (پیمانې) د راوړلو یادونه کړې ده او د هغه په ذریعه ئې د نیم صاع وزن ۱۵۳ تولې لیکلی دی او د یوه بل مُدّ یادونه ئې هم کړې ده چه د هغه په ذریعې سره د نیم صاع وزن له دې څخه هم تقریباً ۱۰ تولې زیات راځي.

۲ دنتیجة الفکر درسالې له (ص۲ تر ص۹) پورې د هند له علماؤ سره د اختلاف څه چه په ډیر تفصیل سره بیان کړی دی په آخر کښې ئې په اُمت باندې د توسیع (پراخۍ) د جذبې لانده فرمائلي دي:

" و شک نیست که حساب علماء هند اسهل و اوسع است و حساب مخدومِ مذکور از علماء سند اوسط و حساب فقیر ا. ط است عامل بر هر چه توفیق یابد عمل نماید و الله تعالی هو الموفق (ص۹) رحمه الله تعالی رحمةً واسعةً آمین.

## هاشمي اوزان په یوه نظر کښې

| | | | |
|---|---|---|---|
| قیراط | - ۲ رتی | - ۰/۲۴۳ | ګرامه |
| درهم | - $\frac{1}{2}$۳ ماشې | - ۳/۴۰۲ | ګرامه |
| مثقال | - ۵ ماشې | - ۴/۸۲۰ | ګرامه |
| د سپینو زرو نصاب | - $\frac{1}{3}$۵۸ تولې | - ۲۸۰/۳۸۸ | ګرامه |
| د سرو زرو نصاب | - $\frac{1}{3}$۸ تولې | - ۹۷/۱۹۸ | ګرامه |
| نصف صاع | - $\frac{2}{3}$۱۵۱ تولې | - ۱/۷۲۹ | کیلو ګرامه |

د درهم تر ټولو نژدې اعشاري وزن ۳/۴۰۱۹۴۲ ګرامه دی

د مثقال تر ټولو نژدې اعشاري وزن ۴/۸۵۹۹۱۷ ګرامه دی

## شرح صدر:

بنده ته خو دومره خبره لا له مخکښې څخه محققه وه چه مثقال تقریباً ۵ ماشې او درهم تقریبا $\frac{1}{2}$۳ ماشې دی او د زړه رجحان مې هم له ۵ ماشو او $\frac{1}{2}$۳ ماشو سره برابر وو لیکن په دې باندې مې پوره اطمینان نه وو. د بیاض هاشمي تر ملاحظې وروسته پوره اطمینان را ته حاصل او سر مې پرې خلاص شو چه مثقال پوره ۵ ماشې او درهم پوره $\frac{1}{2}$۳ ماشې دی.

ما اګر که سل اوربشې په برقي ماشینونو باندې تللې وې سره له دې د اوربشو د وړو او غټو دانو احتمال او عدم اعتدال اشتباه خامخا راسره وه. برسیره پر دې د ځینو برقي ماشینونو په مطابق هم مثقال له ۵ ماشو سره برابر شو. پورته مې د برقي ماشینونو په وزنونو کښې څه نا څه اختلاف لیکلی دی. د حضرت مفتي محمد شفیع صــاحب د وزن مطابق هم مثقال له ۵/۰۳ ماشو سره مساوي دی چــه تفصیل ئې پورته بیان شوی دی. لــه صحیح وزن څخه یوائې $\frac{3}{100}$ زیات شو.

## تیر سبق

حضرت مخدوم رحمه الله دې خوا ته نه دې کتلي چه دا د اوربشو وزن دی. کما قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی. د غنمو د وزن معلومولو طریقه دا ده چه $\frac{2}{3}$۱۵۱ تولې اوربشو څخه چه کوم لوښی ډک شي هغه له غنمو څخه ډک کړئ او وزن ئې کړئ بیا لکه څرنګه چه غنم هم مختلف ډولونه لري او ځینې له ځینو څخه زیات وزني او درانه دي د دې لپاره د غنمو د یقیني وزن د لاس ته راوړلو لپاره همدا لوښی له میو څخه ډک او باید وزن ئې کړئ. د دې لپاره چه د میو هر ډول د غنمو له هر ډول څخه زیات وزني دي.

بنده په تیر مضمون کښې نصف صاع کوم چه (د یو سیر ۲۹/۴۵ تولې) مقابل غنم ۲ سیره ۳۰ تولې او ماش ۲ سیره ۳۲ تولې لیکلی دی. اوس لــه دې تــازه تحقــیق وروسته له نوي سره د

یو سیر $\frac{۲}{۳}$ ۷۱ تولې څخه ډکیدونکي لوښي کښې غنم او مې ور واچولې او ډک مې کړ د وزن د کولو د تطویل په ځای مې د حساب له تناسب څخه کار واخیست نو غنم ۲ سیره ۳۲/۸۱۲ تولې او ماش یا مې ۲سیره ۳۸/۹۰۴ تولې شول.

د اوربشو نیمه صاع - ۱/۸۹۵۸ سیره - ۱/۷۲۹ کیلو ګرامه - ۲/۹۴ لیټره

د غنمو نیمه صاع - ۲/۴۱۰۲ سیره - ۲/۲۴۹ // - // //

د میو نیمه صاع - ۲/۴۸۲۳ سیره - ۲/۳۲۰ // - // //

پس په صدقة الفطر کښې د میو د وزن (۲/۳۲ کیلو ګرامو) په برابر غنم باید ورکړی شي.

بنده د مذکوره حساب مطابق د اوسپنې (ستیل) پـه لوښي باندې "$\frac{۱}{۲}$ صاع اوربشې - ۱/۷۲۹ کیـلو ګرامه - ۲/۹۴ لیټره" نقش جوړ او د محفوظ ساتنې وصیّت مې کړی دی. و الله الحفیظ.

**تنبیه:**

۱ - پورته چه تر کومو کسرونو او اعشاریو پورې حساب لګول شوی او لیکل شوی دی له دې څخه دا مقصد نه دی چه په عملي توګه د هغو رعایت داسې لازم دی چه له هغو څخه د لږ غوندې کموالي او زیاتوالي ګنجائش نشته او ادا کول ئې صحیح نه دی بلکه د علم د تصحیح او د حدودو د حفاظت له مخې د کسرونو او اعشاریو پورې حساب لګول شوی دی. او که نه نو د کسرونو د حذف نتیجه دا وي چه د شي حقیقت مستور ګرځي او د داسې محذوف الکسورو افرادو مجموعه د جمع له حقیقي حاصل څخه ډیر متفاوت راځي.

۲ - که چیرته په صدقة الفطر کښې غنم یا د غنمو اوړه ورکړل شي نو د میو د وزن مطابق ۲/۳۲ کیلو ګرامه ورکول لازم دي. البته که چیرته د قیمت ورکولو وغواړي نو د ۲/۲۵ کیلو ګرامو د قیمت د ورکولو ګنجائش هم شته. سره له دې د ۲/۳۲ کیلو ګرامو قیمت ورکول افضل دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم رشید احمد ۱۲ ذی القعده ۱۳۹۶ هجری یوم الجمعة

(د دویم سوال په اړه د سفر د مسافت ځواب په نامه د "القول الاظهر في تحقیق مسافة السفر" په باب د صلوة المسافر کښې درج کړی شوی دی. مرتب)

**تمت بالخیر**

**داحسن الفتاوی دریم جلد ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً وظاهراً وباطناً**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله وصحبه وسلم اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین**

# د موضوعاتو فهرست

صفحه

عنوان

**تمت بالخیر**

**تم فهرس الکتاب بعون الملک الوهاب**

**د احسن الفتاوی د دریم جلد فهرست ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله وصحبه وسلم اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین**